بسم الله الرحمن الرحيم

من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين (الحديث)

پښتو شرح

# مشکوٰة المصابيح

تاليف:

فضيلة الشيخ ابو محمد امين الله البشاوري حفظه الله

ترتيب: ابو زهير سيف الله

ترجمة احاديث: ابو سلمان حضرت محمد غفرله

په دے جلد کښې د دوه سو څلورشپيته 264 (۲٦۴) احاديثو تشريح کړے شوے ده

مكتبه محمديه

بيرون کنج گيت
منکل مارکيت
پېښور

د کتاب نوم ——— الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح پښتو

د مؤلف نوم ——— الشیخ العلامه ابو محمد امین الله الپشاوری حفظه الله

ترتیب ——— ابو زهیر سیف الله

ترجمه احادیث ——— ابو سلمان حضرت محمد غفرله

تعداد ——— ایك هزار نسخے

کال ——— ۱۴۲۷ هـ صفر المظفر موافق ۱۵/۳/۲۰۰۶ء

فن ——— الحدیث

ناشر ——— مکتبه محمدیه گنج پیښور

طباعت ——— دوهم ځل / څلورم ځل صفر ۱۴۳۳ / موافق ۳۰/۱/۲۰۱۲ء

**مکتبه محمدیه**

بیرون گنج گیټ پهندو روډ منگل مارکیټ پیښور

مدیر : ولی الله

موبائل نمبر : 03018828402

## بسم الله الرحمن الرحيم

### تقريظ الشيخ العلامة المفسر السيد عبد السلام الرستمي حفظه الله

ان الحمد لله نحمده ونستعينه ونستغفره ونعوذ بالله من شرور انفسنا ومن سيئات اعمالنا من يهده الله فلا مضل له ومن يضلل فلا هادي له . وأشهد أن لا اله الا الله وحده لا شريك له واشهد ان محمدا عبده ورسوله صلى الله تعالى عليه وسلم تسليما كثيرا .

**اما بعد :**

الله تعالى د ذکر د حفاظت وعده کړیده : ﴿ انا نحن نزلنا الذكر وانا له لحافظون ﴾ او الذکر لفظ وحي متلو او وحي غير متلو يعنى قرآن كريم او احاديثو د رسول الله ﷺ ته عام او شامل دے . الله تعالیٰ دا وعده پوره کړیده د دواړو حفاظت ئے په لیکلو سره کړیدے، او دارنګه په حفظ سره کړے دے . د قرآن کريم الفاظ او معانی ئے محفوظ ساتلی دی، نو داسے د احاديثو ئے لفظی او معنوی یا صرف معنوی حفاظت کړیدے . دا حفاظت علمائے حدیث په خپله غاړه باندے کیخودلے دے . د احاديثو یاد ساتل او دهغے لیکل او دهغے درس و تدریس کول او دهغے ترجمے او د هغے تشريحات لیکل او دا په امت باندے د دغه علمائے کرامو عظیم احسان دے چه په دے سره دین اسلام محفوظ ساتلے شویدے .

په دے سلسله کښے زما ورور الشيخ ابو محمد امين الله البشاوری په دے وخت کښے مشهور او نمایان عالم دے، چه هغه د نورو دینی مصروفیاتو سره سره د مشکوه المصابيح شرح چه نوم (**الحق الصريح**) دے شروع کړیده . چه د هغے دوه جلدونو پوره شوی دی، دا شرح د دے کتاب، زما په نظر کښے داسے شرح ده چه عالم او طالب العلم بلکه د پښتو ژبے لوستونکو دپاره د نورو شرحو د کتلو نه بے پرواه کوی . د حديث معنیٰ، د هغے تشریح، أو دحديث درجه، صحيح، حسن، ضعيف، موضوع په کښے په ډیر تحقیق سره ذکر کړی دی .

طلباء د حدیث او بالخصوص د مشکوه المصابيح د طالبانو دپاره ضروری دی چه ددے کتاب نه استفاده اوکړی .

او الله تعالیٰ نه دعاء ده چه مؤلف د کتاب ته ددے د تکمیل توفیق احسن ورکړی . او دا د هغه دپاره صدقه جاریه مقبوله اوګرځوی . وما ذلك على الله بعزيز .

اخوكم في الله ابو زكريا **عبد السلام** الرستمي

٢٧ محرم /١٤٢٧ هـ

# بَابُ مَا يُوجِبُ الْوُضُوْءِ

## ربط او مناسبت دما قبل سره

مخکښې فضائل داودس وغیره بیان شو نو اوس مسائل او احکام داوداسه ذکر کوی، چه اودس په کومو څیزونو سره واجبیږی۔

بیا چونکه اودس زیات واقع کیږی په نسبت د غسل او صلوة وغیره نو ځکه دا باب مقدم شو په نورو ابوابو باندے. دلته اوس موجبات الوضوء بیانوی۔

**فائده** : بعضے مصنفین په دے مقام کښے داسے باب لګوی :

بَابُ نَوَاقِضِ الْوُضُوْءِ – یعنے اودس ماتونکی څیزونه. لیکن دا عنوان غوره نه دے ځکه چه اول اودس کول ضروری دی بیا روسته بیان دنواقضو پکار دے. اود مصنف طرز راجح دے، وجه داده چه ده اول موجبات داودس ذکر کړی دی چه په کومو څیزونو سره اودس کول واجبیږی۔

الْوُضُوْء : وُضوء چه په ضمے سره شی نو مراد ترینه اودس کول دی، اوچه په فتحے د واؤ سره شی نو مراد ترینه هغه اوبه دی چه په هغے سره اودس کیږی، خو لیکن کله ددوارو لفظونو نه اوبه مراد وی، اوکله ددوارو نه اودس کول مراد وی (یعنے مصدری معنی) هکذا فی القاموس۔

## مُوجِبات الوضوء دوه قسمه دی :

١ – اتفاقی. ٢ – اختلافی د علماؤ ترمینځ۔

اتفاقی موجبات الوضوء هغه دی چه د سبیلینو (قبُل، دُبر) نه اوځی، لکه منی، مذی، حیض، نفاس، استحاض، ریح، بول، غائط وغیره خارج شی، نو په دے سره اتفاقا اودس

واجبیږي۔

۲ – ددے نه علاوه نور ټول اختلافي دي، اودا اختلافي څیزونه ډیر زیات دي چه په هغې کښې د صحابه کرامؓ اوتابعینؒ اختلاف وي، دوجې د تعارض د ادله نه، چه په دے کښې به راجح باعتبار الدلیل اخستلے شي، لکه:

۱ – وضوء مِمَّا مَسَّتِ النار (کوم څیزونه چه په اور پخ کړے شوي وي هغې خوړلو نه اودس کول)۔

۲ – الوضوء من اکل لحوم الابل (اوبښ غوښه خوړلو نه پس اودس کول).

۳ – مس الذکر . ٤ – مس المرأة. ٥ – النوم. ٦ – خروج الدم والقیح. ۷ – خروج القیٔ من المعدة بالفم۔ ۸ – وضوء من حمل الجنازه۔

**فائده عجیبه**: لنډه خبره د فتوی ورکولو دپاره داده چه په احادیثو کښې درے شیان بغیر دڅه قید نه موجبات الوضوء ښودلے شویدي:

۱ – ما خرج من السبیلین: که هر څه وي۔

۲ – اکل لحوم الابل علی القول الراجح۔

۳ – النوم مطلقا، من غیر قید الاتکاء والاسناد۔

دے وجې نه امام بخاري رحمه الله باب تړلے دے:

باب من لم یر الوضوء الامن المخرجین ۔ اشاره کوي ترجیح ددے قول ته چه صرف په ماخرج من السبیلین سره اودس ماتیږي، نه په قیٔ، دم وغیره باندے۔

او هرچه دم او مس الذکر او مس المرأة دي نو دا په شرطونو سره اودس واجبوي، اوکله اودس کول مستحب کوي لکه خروج الدم باندے وجوب نه راځي، صرف استحباب راځي، لکه چه خپل خپل ځائے کښې به راشي ان شاء الله تعالیٰ۔

(دا خلاصه ددے باب ده)۔

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ – اول فصل

۱ – عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: (لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ اَحْدَثَ حَتّٰی یَتَوَضَّأَ) مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

**ترجمه** : ابـو هریره ﷺ نـه روایت دے چـه رسـول الـله (ﷺ) اوفرمائیل : دیے اودسه شخص مونځ نه قبلیږی تر دیے چه اودس او کړی (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ اَحْدَثَ حَتّٰی یَتَوَضَّأَ :

## دَرْءُ الْغُلُوْلِ فِیْ تَحْقِیْقِ اَقْسَامِ الْقَبُوْلِ

قبول په کلامِ عربئ او قرآن او احادیثو کښے په دوه معنو استعمالیږی :

(١) **یو قبول** پـه مـعـنیٰ د صحت او ترتب د ثواب سره، یعنے چه یو عمل صحیح هم وی او ثـواب هم پرے ملاویږی، دیته قبول فقهی او قبول مطلق او قبول اصابت وائی، نو د عدم قبول معنیٰ به داوی چه داشے صحیح هم نه دے او ثواب هم پرے نه ملاویږی، ذمه به ئے نه وی فارغه۔

حافظ ابن حجرؒ فتح الباری (١/١٨٩) کښے فرمائی : د قبول حقیقت دادے چه طاعات پـه داسے طریقه واقع شی چه په هغے سره ذمه واری ساقطه شی، او ذمه هله فارغیږی چه اتیـان بـالشـرائط اوشي (یعنے عمل د شرائطو سره اوکړے شی) او په اتیان بالشرائط باندے اجزاء او صحت د عمل مرتب دے۔ په دے وجه په اتیان بالشرائط سره قبول (یعنے صحت) مرتب کیـږی، او پـه عـدم قبـول سـره عـدم صحت راځی۔ دا د قبول حقیقی معنیٰ ده۔ نو مـعـنـی د حـدیث به داشی چه د بے اودسه انسان مونځ صحیح نه دے، ترڅو چه اودس اونه کـړی، ځـکـه چه اودس شرط دے دمانځه دپاره، او چه شرط پوره نه کړے شی نو صحت او اجزاء د عمل نه راځی۔

ددے قسم قبول تعریف داسے کولے شی :

کون الشئ مستجمعا لجمیع الشرائط والارکان.

(یعنے : د یو شئ د ټولو شرائطو او ارکانو سره موجودیدل)۔

(٢) – **دویم قسم قبول** : پـه مـعـنـیٰ د ترتب د ثواب او عدم قبول په معنیٰ د نفی د ثواب سره۔ اودیته قبول اجابت، قبول کامل او قبول عند الله وائی۔ د دے قبول په نفی سره صـرف نـفـی د ثـواب راځی، او نفی ددے قسم قبول مستلزم نه ده نفی د صحت لره، بلکه

عمل به ئې صحیح وي، فقهاء به ورته د اعادې حکم نه کوي، ذمه به ئې فارغه وي، لیکن
اجر او ثواب به ورته نه ملاویږي. ددې مثال دادې لکه حدیث کښې دي : (من اتی عرافا لم
تقبل له صلاة) دلته معنیٰ داده چه څوك فالګر ته راغلو نو مونځ ئې قبول نه دې، یعنې اجر
او ثواب ورته نه ملاویږي، اګرکه ذمه به ئې فارغه وي. فقهاء به ورته د دوباره راګرځولو
حکم نه کوي. یا لکه (لا تقبل صلاة امرأة باتت وزوجها علیها غضبان) دلته هم معنیٰ داده
چه ثواب او اجر ورته نه ملاویږي، ځکه مونځ په شرائطو او ارکانو سره شویدې، نو
صحیح دې، لیکن فساد په کښې د خارج نه راغلې دې.

ددې قسم قبول تعریف داسې دې : کون الشئ واقعا فی حیز مرضاة اللّٰه (یعنې یو شې د
اللّٰه تعالیٰ د رضا په مقام کښې واقع کیدل).

**خلاصه**: داچه که شرائط او ارکان نه وي اداء شوي نو اول قسم عدم قبول به مراد وي.
اوکه شرائط او ارکان پوره وو لیکن فساد په کښې د خارج نه راغلې وو، نو هلته به د عدم
قبول نه دویمه معنیٰ مراد وي یعنې عدم قبول عند اللّٰه. اودا معنیٰ مجازي د قبول ده، کما
قال الحافظ. او امام ابن دقیق العید فرمائي : قبول مشترك دې په دوارو معنو کښې، یعنې
صحت او ترتب د ثواب کښې. نو د (لا تقبل صلاة من احدث) معنیٰ داده چه بغیر داودس
نه مونځ صحیح هم نه دې او اجر او ثواب ئې هم نشته. دلته که معنیٰ ثاني د قبول
واخستې شي نو معنیٰ به داشي چه بغیر د اودس نه مونځ باندې اجر او ثواب نشته. او
هرچه عدم صحت دې نو هغه به د بل حدیث نه معلومیږي چه (مفتاح الصلاة الطهور)
رواه الترمذی، وقد تقدم فی اول الطهارة.

لیکن دلته اوله معنیٰ مراد ده. او په ترمذي کښې چونکه دوه بابونه یوشان راغلي دي،
یو : باب ماجاء لا تقبل صلاة بغیر طهور (صفحه : ۲). بل : باب ماجاء مفتاح الصلاة
الطهور (ص : ۵). نو شارحینو د تفرقه د بابونو دپاره په اول مقام کښې عدم قبول په معنیٰ
ثاني اخستې دې او په دویم مقام کښې دویمه معنیٰ مراد کړیده.

بعضې علماء فرمائي : قبول استعمالیږي په ضد او په مقابل د رد کښې، نو د (لا تقبل)
معنیٰ به داوي چه دده عمل مردود دې، لکه قرآن کریم کښې راځي ﴿ انما یتقبل اللّٰه من

المتقین ﴾ او ﴿ لن یقبل من احدهم ملء الأرض ذهبا ﴾ آل عمران ۔ معنیٰ هم داده چه ددے کفارو دا عمل (فدیه ورکول) مردود دے، صحیح نه دے۔

★ د بعضے علماؤ په نیز **قبول** په درے قسمه دے :

۱ - **قبول اعلیٰ** : په دے کښے ددرے څیزونو موجودیدل ضروری وی (۱) صحت (۲) ترتب دثواب (۳) استحسان، یعنے داشے به صحیح هم وی او اجر او ثواب به ئے هم وی، او پوره مستحسن او بهتر او کمال والا بـه وی ۔ ددے قبول په نفی سره صرف کمال او استحسان نفی کیږی، نه صحت او نه ترتب د ثواب، ځکه چه نفی اکثر متوجه کیږی اعلیٰ قید ته، نو د (لا تقبل) معنیٰ به داوی چه داشے قبول نه دے، یعنے مستحسن (مزیدار او اعلیٰ درجے والا) نه دے اګرچه صحیح به وی او ثواب به هم په دے باندے مرتب وی، ځکه چه په صورت د نفی کښے صرف اعلیٰ قید سلب کیږی چه هغه استحسان دے۔ ددے مثالونه په احادیثو کښے دومره نشته، صرف یو مثال دوه دی، یو (لا صلاة لجار المسجد الا فی المسجد)، یا د ابوداود روایت کښے دی (من صلی علی جنازة فی المسجد فلا اجر له)، ددے معنیٰ بعضے علماء دا کوی چه مونځ صحیح هم دے او جر هم شته، لیکن اعلیٰ درجه قبول نه دے۔

۲ - **قبول متوسط** : په دے کښے دوه څیزونه وی (۱) صحت (۲) ترتب د ثواب ۔ نو کله چه ددے قبول نفی اوشی نو صرف ترتب دثواب به نفی کیږی، او صحت به باقی وی، او معنیٰ د (لایقبل) به داوی : (ای لا یثاب مع صحة ذلك الشئ فی الدنیا) ۔ ددے مثال دا حدیث دے لکه (لا یقبل الله صلاة امرأة باتت وزوجها علیها غضبان) یا لکه (لا تقبل صلاة مسبل ازاره) یا لکه (لا تقبل صلاة عبد آبق حتی یرجع) یا لکه حدیث کښے دی (من اتی عرافا لم تقبل له صلاة ) فتح الباری۔ په دے تولو ځایونو کښے مونځ به صحیح وی، ذمه به فارغه وی، البته د الله په نزد به ددے خلقو اجر او ثواب نه وی۔

۳ - **قبولِ ادنیٰ** : پـه دے کښے صرف صحت وی، نـو ددے پـه نفی سرهٔ بـه نفی د صحت کیږی او مطلب بـه داوی چـه دا عـمـل صحیح نه دے بلکه باطل دے، اعاده ئے ضروری ده، لکه په دے حدیث الباب کښے، یا لکه (لا صلاة لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب)

ځکه چه اودس شرط دے او فاتحه رکن دے، نو ددے دواړو په نفی سره نفی د مانځه راځی۔
په دے ټولو کښے به مقام او قرینے ته کتلے شی، او ددلیل په بناء باندے به یو قبول مراد کولے شی۔

لیکن **جمهور** علماء دا تقسیم ښه نه ګڼړی، ددے وجے نه هغوئ د قبول صرف دوه قسمه بیانوی، لکه چه مخکښے تیر شو۔ او وجه د غوره والی د تقسیم ثنائی داده چه که مونږ قبول اعلیٰ مراد کړو نو بیا به د نبی ﷺ مضبوطه مؤکده خبره په خلاف الأفضل باندے حمل کیږی، مثلا نبی ﷺ په تاکید سره فرمائی (لا تقبل صلاة امرأة الخ) او ته وائے چه ثواب هم شته او صحیح هم دے۔ خو صرف کمال او استحسان په کښے نشته۔ نو دا مناسبه نه ښکاری، ددے وجے نه قبول صرف دوه قسمه کول پکار دی، او قبول اعلیٰ په کښے شاذ او نادر دے، مثالونه ئے په احادیثو کښے ډیر نشته۔

شیخ محمد صالح العثیمین د **قبول** تحقیق داسے کوی : چه نفی د قبول سره نفی د صحت راځی او که نه ؟ نو پدے کښے د دلائلو په اعتبار اختلاف واقع شویدے خو صحیح دا ده چه دلیل نافی د قبول په څلور قسمه دے (۱) چه په هغه کښے انتفاء د امر وجودی وی لکه : لایقبل الله صلاة احدکم اذا احدث حتی یتوضأ . یا لکه لاصیام لمن لم یبیت النیة من اللیل .وغیره۔ نو دلته نفی د قبول نفی د صحت ده یقینا ځکه دلته قبول معلق شویدے په امر مطلوب پورے او هغه خو حاصل نشو نو بطلان د منفی متعین شو۔

(۲) دویم دا چه : نفی د قبول د یو معنی د وجه نه وی چه هغه مناقض د منفی وی لکه لا یقبل الله صدقة من غلول ) نو په غلول کښے داسے معنی ده چه هغه منافی ده د معنی د صدقے سره۔ ځکه مقصود د صدقه نه احسان دے او هغه د غلول نه کول لویه ګناه ده دا قسم د اول پشان دے۔ (۳) نفی د قبول ددے نه سوا بل څه وجه نه وی لکه (من شرب الخمر لم تقبل له صلاة اربعین صباحا )۔ نو نفی د قبول نه مراد دا دے چه پدے کښے ډیر شر دے چه هغه مقابل دے د ثواب د مانځه سره تردے مودے پورے او تقاضا د بطلان نه کوی ۔ یا لکه (من اتی عرافا فسأله لم تقبل له صلاة اربعین لیلة). رواه مسلم۔

(٤) چه امر متردد وی ددے اقسامو ترمینځ که اکثر مشابهت ئے د کوم قسم سره وی نو

هغه پورې به ملحق کولې شي ددې وجه نه علماء پدې قسم کښې مختلف شويدي۔

نو ددې قسم نه هغه احاديث دي چه راغلي دي په باره د عبدِ آبق او هغه ښځه چه خاوند ترې ناراض وي او د يو قوم امام چه هغوی ته ناخوښ وي چه ددې خلقو مونځونه د غوږونو نه نه تيريږي۔ نو چا چه دا وئيلي دي چه پدې خلقو کښې يوه معنی ده چه هغه منافي ده د منفي سره نو هغوی وئيلي دي چه مونځ ئې صحيح ندې او همدغه شان خبره په عبد آبق کښې ده ليکن علماؤ دا خاص کړيدې په نفل مانځه پورې ځکه چه فرض خو د مالك په خوا کښې هم ادا کولې شي او د مالك حق دده په ذمه نشته په دغه وخت کښې۔

او هر چه ناشز دې نو علماؤ په هغوی کښې د عبد آبق حکم ندې کړې ځکه فرق دوارو کښې دادې چه زمالهٔ د غلام من کل الوجوه د سيد مملوك ده، په خلاف د زوجه نه ځکه چه زوج د زوجه نه د هغه زمانې مالك دې چه دا ترې فائده حاصلوی او عام حالت کښې ئې ملکيت پرې نشته ددې وجه نه مالك غلام په اجاره ورکولې شي خو خاوند زوجه نشي ورکولې۔ او د امام حکم دا دې چه مقصود د جماعت نه حصول الائتلاف دې ( چه د مومنانو اُلفت او اجتماعيت پيدا شي ) او امامت خو د جماعت دپاره ضروري دې نو کله چه مقصود د جماعت باطل شو نو ددې متعلقات (چه امامت دې ) هغه به هم باطل وي۔ نو کله چه امامت باطل شو نو مونځ ئې ( هم)باطل شو۔

بيا ئې د (النکت) نه نقل کړيدې چه دا احاديث چونکه بعضو کښې ضعف دې نو ددې وجه نه په تحريم باندې دلالت نکوی البته کراهت پيدا کوی انتهی۔

المنتقى من فرائد الفوائد ص (۵۰) لابن عثيمين رحمه الله۔

**فائده** : په دې حديث کښې صرف دا خبره راغله چه انسان ترڅو اودس نه وی کړې نو مونځ ئې نه دې صحيح، او حال دا چه دمانځه دپاره خو نور شرائط او ارکان هم شته، چه هغه اداء نه کړی نو هم مونځ نه کيږی، لکه ستر العوره، قبلې ته مخ کول وغيره۔ نو دلته ورسره دا مراد دې چه (لا تقبل صلاة احدکم حتى يتوضأ مع باقي الشرائط والأركان) يعني نور ارکان او شرائط به ئې هم اداء کړی وی نو هله به ئې مونځ قبليږی، ليکن دلته صرف د اوداسه متعلق خبره بيانيږی، ددې وجې نه ئې صرف اودس ذکر کړو، نه باقي ارکان او شرائط

اګرچه هغه هم مراد دی.

۲ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُوْرٍ وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُوْلٍ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او جناب ابن عمرؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : بغیر د طهارت (اودس) نه مونځ نه کیږی، او د حرام مال نه خیرات نه قبلیږی.

**تشریح : لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُوْرٍ :**

**فائده** : اقسام د طهارت دریے دی (۱) طهارت بالغسل (۲) طهارت بالوضوء (۳) طهارت بالتیمم. کۀ دا څیزونه څوك اونه مومی هغه به څه کوی ؟ نو په دے باندے مسئله د فاقد الطهورین متفرع ده.

## ﴿ طلوع النیّرین فی مسئلة فاقد الطهورین ﴾

فاقد الطهورین هغه شخص ته وائی چه نه په استعمال د اوبو باندے قادر وی اونه په خاوره. مثلا په یو داسے ځائے کښے راګیر وی چه هلته اوبه هم نه وی او هغه مکان هم نجس وی چه تیمم پرے نه کیږی لکه جیل شو. یا دواورے په غره کښے روان وی، خاوره اوبه نشته، یا د یو شخص لاسونه نه وی، تیمم نشی وهلے اود بل په لاس خو تیمم نه کیږی. یا هوائی جهاز کښے اوګد سفر وی، نو دابه څه کوی؟ آیا مونځ به کوی که نه ؟.

نو په دے کښے په ګنړو اقوالو سره اختلاف شویدے :

۱ – امام ابو حنیفهؒ او سفیان ثوریؒ وائی چه : (لا یصلی بل یقضی اذا قدر) فی الحال به مونځ نه کوی کله چه قادر شو نو بیا به قضاء راوړی.

**دلیل** : ظاهر ددے حدیث دے چه بغیر د طهارت نه مونځ نه کیږی، دغه شان د آیت : اذا قمتم الی الصلاة فاغسلوا الآیة ﴾، او ﴿ فلم تجدوا ماء فتیمموا الآیة ﴾ نه معلومیږی. نو شرط دمانځه نشته نو مونځ هم نشته. اوچونکه مونځ خو ئے په ذمه پاتے دے لهذا قضائی به ئے راوړی.

۲ – صاحبینؒ وائی : تشبه بالمصلین به کوی، یعنے د مانځه هیئت به جوړ کړی او

رکوع سجده کښې به نیت نه کوی او قرائت به هم نه کوی، بیا به روستو قضاء راوړی.
اودا قول عند الأحناف مفتیٰ به دے، اود امام صاحبؒ نه دے قول تهرجوع هم ثابت ده.
(درس ترمذی: ۱/۱۵٦).

دوئ په خپله رائے باندے څو مثالونه پیش کړی دی: (۱) په اضحیه کښې دحاجیانو سره مشابهت کولے شی (۲) یو ګنجے شخص دے چه په سر باندے ئے ویښته نشته نو دا به په حج او عمره کښې دحلق په وخت هسے په سر باندے چاړه راکاږی او تشبّه بالمحلقین به کوی (۳) دغه شان دوئ قیاس کوی په صوم رمضان باندے چه یو شخص درمضان په ورځ کښې مسلمان شو یا بالغ شو یا حائضه پاکه شوه نو هغه به په باقی ورځ کښې خوراك څکاك نه کوی بلکه تشبه بالصائمین به کوی.

الغرض: دصاحبینو سره دلیل نقلی نشته سیوا د قیاسونو نه.

۳ - امام شافعیؒ فرمائی: (یصلی ثم یقضی). یعنے فی الحال به مونځ کوی ځکه چه امر ورته متوجه دے، او بیا به قضاء راوړی ځکه بلا شرطه مونځ ئے کړیدے، په دے قول باندے هیڅ دلیل نشته.

٤ - امام مالكؒ فرمائی: (لا یصلی ولا یقضی بعده). یعنے فی الحال به هم مونځ نه کوی او قضاء پرے هم نشته.

**دلیل**: فی الحال په نه اداء کولو باندے دلیل حدیث الباب دے چه طهارت نه دے موجود نو مونځ نشته، او چونکه د خروج الوقت په صورت کښې ده ته د اقیموا الصلاة خطاب نه دے متوجه. لهذا قضاء هم نشته.

لیکن دا قول هم بے دلیله دے ځکه مونځ په هیڅ حالت کښې بالکلیه نه ساقطیږی، بلکه یا به فی الحال کوی او یا به قضائی راوړی.

٥ - امام احمد بن حنبلؒ او محدثینؒ فرمائی: (یصلی ولا یقضی). یعنے فی الحال به مونځ اداء کوی اګرچه بے اودسه دے او قضاء پرے نشته ځکه مونځ ئے اوکړو. وهو الراجح دلیلا. په دے قول باندے **دلائل** عامه دادی:

(۱) قرآن کریم کښې عامه قاعده ده: ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾.

﴿ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفۡسًا اِلَّا وُسۡعَهَا ﴾ ـ او دلته ددې شخص د طهارت استطاعت او وسع ختمه شويده نوې اودسه به مونځ کوي۔

(۲) حديث البخاري ومسلم : (إذا امرتكم بشئ فاتوا منه ما استطعتم)۔ يعنې کله چه زه تاسو دځه شئ حکم اوکړم نو هغې باندې د خپل وس مطابق عمل کوئ۔

اودلته فاقد الطهورين خو يقينا په اوبو اوخاوره باندې قادر نه دې نو معذور دې په حصول د طهارت کښې لهذا بدون الطهاره مونځ کول ورله جائز دی . خو په دې شرط چه ده خپل کوشش صرف کړې (لګولې) وی په طلب د اوبو اوخاوره پسې، اوکه کوشش او طلب او نه کړی نو مونځ ئې نه قبليږی۔

ددې مسئلې تفصيل ابن حزم په المحلی (۱/۳٦۲) او ابن قدامه په المغنی (۱/۱ ۱ ۳) او نووی په شرح مسلم (۱/۱۱۹) کښې کړيدې۔

**بل دليل** : حديث د عائشة ؓ دې چه دې په غزوه د بنی المصطلق کښې د خپلې خور اسماء) اميل ورك کړو، نو صحابهؓ ورپسې ګرځيدل او بيا پيدا شو، دې کښې د مانځه وخت راغې او اوبه نه وې نو بغير د اودس نه ئې مونځ اوکړو، بيا ئې رسول الله ﷺ ته ددې شکايت اوکړو، نو آيت د تيمم نازل شو۔ بيا اسيد بن حضيرؓ اوفرمائيل :

(فو الله ما نزل بك امر تكرهينه الا جعل الله ذلكَ لكِ وللمسلمين فيه خيرا)۔

يعنې پتا باندې چه کومه حادثه راغلې وی په هغې کښې الله تعالی ستا اود نورو مسلمانانو دپاره ضرور خير ګرځولې وی۔

حافظ په فتح الباری (۱/۳٤۹) کښې فرمائی : (ففيه دليل على وجوب الصلاة لفاقد الطهورين) دا دليل دې چه فاقد الطهورين باندې په دې حالت کښې مونځ فرض دې او کوی به ئې۔ بيا فرمائی : (ولو كانت الصلاة حينئذ ممنوعة لانكر عليهم النبی ﷺ)، يعنې که چرې په دې حالت کښې مونځ ناجائز وې نو نبی ﷺ به په دوئ باندې ضرور انکار او رد کړې وې، هرکله چه نبی ﷺ منع نه کړل نو دا دليل دې چه په همدې حالت کښې به مونځ کوی (فتح الباری : ۱/۱٤۹)، اودا قول امام بخاریؒ غوره کړيدې ځکه هغه داسې باب ترلې : باب اذا لم يجد ماء ولا ترابا۔

## ﴿ نشر الضياء في مسئلة البناء ﴾

ددے حدیث متعلق یوه بِله مسئله هم بیانیږی چه دیته (مسئله د بناء) وائی۔ دا مسئله اګرچه د کتاب الصلاة سره مناسب ده، مګر ددے حدیث نه په دے مسئله باندے استدلال کیږی۔ د مسئلے خلاصه داده چه یو انسان په مانځه ولاړ وی او په مانځه کښے ورته پے اودسی راپیښه شی، نو آیا دابه استیناف کوی (یعنے مونځ به دسره کوی) اوکه بناء به کوی (یعنے کوم ځائے ته ئے چه مونځ رسولے وو د اودس کولو نه پس به ددغه ځائے نه مونځ شروع کړی او مینځ کښے به خبرے نه کوی) ؟ په دے مسئله کښے اختلاف دے :

(١) احناف وائی : بناء کول جائز دی او مونځ د سره راګرزول بهتر دی۔

(٢) محققین علماء – لکه امام مالكؒ، سفیان ثوریؒ، قول آخر د امام شافعیؒ، امام زهریؒ، ابن سیرینؒ، ابن حزم ظاهریؒ، او په صحابو کښے مسور بن مخرمةؓ وغیره – فرمائی : استیناف به کیږی (یعنے مونځ به دوباره کوی)۔

**دلائل** : د احنافو سره دلیل : روایت د عائشةؓ دے مرفوعا : (من قاء او رعف في صلاته فلينصرف وليتوضا وليبن على صلاته ما لم يتكلم).

(رواه ابن ماجه والدارقطني : ١/١٥٢، والبيهقي : ٢/٢٥٥).

داسے حدیث په روایت د ابو سعید خدریؓ هم راغلے دے (دارقطني : ١/١٥٧) او په روایت د ابن عباسؓ کښے د نبی ﷺ عمل ذکر دے چه هغه به بناء کوله۔

لیکن ددے نه جواب دادے چه دا درے واړه روایتونه سخت ضعیف دی، یو حدیث هم قابل استدلال نه دے۔ روایت د عائشةؓ کښے اسماعیل بن عیاش دے چه د ابن جریج حجازی نه ئے نقل کړیدے، اود اسماعیل روایت د غیر شامینو نه ضعیف دے۔ اودلته ئے هم د غیر شامی یعنی حجازی نه روایت نقل کړیدے۔

او د ابو سعید خدریؓ روایت موضوع حدیث دے، په دے کښے ابو بکر الداهری کذاب راوی دے۔ او حجاج بن ارطاة د زهری نه سماع هم نه ده ثابت

او په روایت د ابن عباسؓ کښے عمر بن رياح د رجال راوی دے، دارقطني وائی : متروك دے۔

**خلاصه** دا چه: مرفوع احادیث په کښې نشته۔ البته د صحابوؓ آثار په کښې شته، لکه د عبد الله بن عمرؓ عمل داوو چه کله به ئې مانځه کښې دپوزې نه وينه لاړه نو اودس به ئې اوکړو او بناء به ئې اوکړه، او مینځ کښې به ئې خبرې نه کولې۔ (اخرجه مالك في الموطأ: ۲۷/۱، والبيهقي: ۲۵٦/۲، وسنده صحيح)۔ دغه شان د علي بن ابي طالبؓ نه هم نقل دی (كذا في الجوهر النقي: ۲۵٦/۲).

ابن عبد البرؓ په (الاستذكار) کښې فرمائي:

بناء الراعف على ما صلى مالم يتكلم ثبت عن عمر وعلي وابن عمر، وروى عن ابي بكر، ولا مخالف لهم من الصحابة، الا المسور بن مخرمة وحدهٗ.

## د محققینو علماؤ دلائل

۱ – حدیث د طلق بن عليؓ دې مرفوعا: (اذا فسا احدكم في الصلاة فلينصرف فليتوضأ وليعد الصلاة).(رواه ابو داود: ۳۱/۱، والترمذي، باب الرضاع، واحمد، وذكره الزيلعي في نصب الراية: ٦۱/۲. وفي سنده عيسى بن حطان، ومسلم بن سلام وهو مجهول، وصححه ابن حبان، وقال الترمذي: حديث حسن. وقال الشيخ عبد الله البسام في توضيح الأحكام: ۴۳۳/ : الحديث حسن، ويشهد له ما رواه مسلم عن ابي هريرة مرفوعاً: اذا وجد احدكم في بطنه شيئا .... الحديث. وقد حسن الحديث الامام احمد وصححه كل من ابن حبان وابن السكن انتهى).

۲ – بل روایت د ابن عباسؓ مرفوعا کښې د (وليستقبل صلاته) الفاظ راغلي دي: (نصب الراية: ٦۱/۲، وسنده ضعيف جدا، فيه سليمان بن ارقم وهو متروك، قاله ابن عدي).

۳ – علامه ابن حجرؒ ددې حديث الباب نه داسې استدلال کوی چه کله د انسان اودس مات شو نو دوباره اودس کولو وخت پورې مونځ بغير د طهارت جوړیږي، او مونځ بغير د طهارت نه درست نه دې، نو دا دلیل دې چه کله اودس مات شو نو بناء کول د باقي مونځ په اول مونځ باندې صحيح نه دي، اودا استدلال ابن حزمؒ په المحلی (۶۵/۳) کښې په داسې الفاظو سره ذکر کړیدې:

فاذ صح ان الصلاة من احدث لا يقبلها الله حتى يتوضأ وقد صح بلا خلاف وبالنص ان

الصلاة لا تجزئ الا متصلة، ولا یجوز إن یفرق بین اجزائها بما لیس صلاة - الی آخر ما قال.

یعنې : کله چه دا خبره صحیح ثابته شوه چه دې اودسه انسان مونځ الله تعالیٰ نه قبلوی ترڅو چه اودس اونه کړی، او دا هم صحیح په نص او اجماع سره ثابت ده چه مونځ به هله جائز وی چه کله هغه متصل اداء شی او دهغې په اجزاؤ کښې بل شے چه د مانځه نه نه وی - ورداخل نکړے نشی.

بیا فرمائی : د بناء د قائلینو نه تپوس کوو : چه دا پے اودسه شخص په مانځه کښې دے اوکه نه ؟ که دوئ وائی : په مانځه کښې دے په دے حالت کښې، نو د نبی ﷺ دا قول ئے تکذیب کوی چه (ان الله لا یقبل صلاة من احدث حتی یتوضأ) نو دا خبره ثابته شوه چه دده مخکښې عمل منقطع شو، او اجرئے باقی دے. او اوس په مانځه کښې نه دے، ځکه په دے حالت کښې خو مونځ قبول نه دے. اوکه دوئ وائی : په مانځه کښې نه دے، نو مونږ وایو چه تاسو رشتیا وائے، هرکله چه دا په مانځه کښې نه دے نو ده باندے لازم دی چه مونځ متصل را اوګرځوی، او ددے د اجزاؤ ترمینځه بل شے حائل واقع نه کړی، کوم چه د مانځه نه نه دے. (وهذا برهان لا مخلص منه) انتهی.

شیخ بسام ؒ فرمائی : فکل حدث منع ابتداء الصلاة منع البناء علیها، فان صلاته بلا وضوء استهزاء بالدین (توضیح الأحکام : ۱/٤۳۸). هره بے اودسی چه ابتداء د مانځه منع کوی نو انتهاء د مانځه هم منع کوی، ځکه چه کله دده اودس مات شو نو دا پدے حالت کښې بے ادسه دے او پدے حالت کښې مونځ کول استهزاء ده په دین پورے.

په دے دوارو قولونو کښې راجح قول د محققینو دے، د وجے ددے حدیث مرفوع نه، او احنافو سره مرفوع حدیث نشته، البته د بعضې صحابوؓ عمل شته چه د دوئ مخالف مسور بن مخرمهؓ دے چه دده په نیز اعاده د مانځه ضروری ده. نو راجح داده چه اعاده اوکړی ځکه چه د صحابوؓ اختلاف شو او مرفوع حدیث د علی بن طلق د محققینو سره دے، او ددے حدیث مرفوع نه هم استدلال کیدے شی، لکه چه د حافظ په عبارت کښې کر شو.

**وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُوْلٍ : مناسبت** ددے جملے د ما قبل سره دادے چه قرآن اوسنت

کښې عبادت بدنی اومالی یوځائے ذکر کیږی نو اول عبادت بدنی ذکر شو اوس عبادت مالی ذکر کوی۔

(۲) مخکښې طهارت حسیه بیان شو اوس طهارت معنویه بیانوی په صدقې سره چه په دې سره طهارت عن البخل راځي. لکه دیته په دې آیت کریمه کښې اشاره شویده:

﴿ خُذۡ مِنۡ اَمۡوَالِهِمۡ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمۡ وَتُزَكِّيهِمۡ بِهَا ﴾ التوبة۔

(۳) په بے اودسه مونځ کولو سره انسان کافر کیږی ځکه د الله بے ادبی کوی او الله تعالیٰ ته په نجاساتو باندې تقرب حاصلوی، اودا قسم تقرب حرام دې نو دغه شان په حرام مال سره صدقه کښې نیت د ثواب کول انسان کافر کوی. لکه چه دا د احنافو رائے هم ده۔

کذا فی المرقات (٦/)، بذل المجهود (١٤٥/١) دار الدیان للتراث القاهرة۔

او نور علماء فرمائی چه کافر نه دې خو سخت ګنهګار دې او حرام کارئے کړیدې، بلکه حرام مال به دځانه جدا کوی په نیت د فراغ الذمه سره، که مالك د مال وی هغه له به ئے ورکړی اوکه مالك نه وی معلوم لکه سود یا رشوت ئے اخستې وی نو بیا به مال دهغوئ دطرفنه خیرات کړی، ددې تفصیل به په کتاب البیوع کښې راشی. ان شاء الله۔

غُلُوۡلٍ : په ضمه دغین سره په مال غنیمت کښې خیانت کولو ته وائی۔

(شرح مسلم: ١١٩/١). کما فی الآیة ﴿ وما کان لنبی ان یغل ﴾ آل عمران.

اودلته ترې مراد مطلق حرام مال دې. بیا دغلول لفظ ئے دلته راؤړو اشاره ده دیته چه په مال غنیمت سره چه مشترك دې دعام خلقو په مینځ کښې صدقه کول حرام دی نو په هغه پردی مال کښې چه خاص د یو شخص وی صدقه کول بنیه الثواب په طریقه اولیٰ سره حرام دی۔

---

۳ - وَعَنۡ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : ( كُنۡتُ رَجُلاً مَذَّاءً فَكُنۡتُ اَسۡتَحۡيِيۡ اَنۡ أَسۡأَلَ النَّبِيَّ ﷺ لِمَكَانِ ابۡنَتِهٖ فَأَمَرۡتُ الۡمِقۡدَادَ فَسَأَلَهٗ، فَقَالَ : يَغۡسِلُ ذَكَرَهٗ وَيَتَوَضَّأُ ) . مُتَّفَقٌ عَلَيۡهِ

---

**ترجمه** : او جناب علیؓ نه روایت دې دا فرمائی : ما ته مذی زیاته راتله، نو زه به شرمیدلم چه د نبی ﷺ نه تپوس اوکړم (چه آیا دې سره غسل واجبیږی اوکه اودس)۔

ځکه چه دهغوئ لور (فاطمهؓ) زما په نکاح کښې وه، نو ما مقدادؓ ته حکم اوکړو (چه نبی ﷺ نه دا مسئله اوتپوسه) نو مقدادؓ د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو، نو نبی ﷺ ارشاد اوفرمائیلو : اندام مخصوصه دې اووینځی او اودس دې اوکړی۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : کُنْتُ رَجُلاً مَذَّاءً : بفتح المیم وتشدید الذال، دمبالغې صیغه ده، ای کثیر المذی. مذی هغه سپینې نرمې ځلیښناکې اوبه دی چه د سړی نه په وخت د لوبو ټوقو او خکلولو د بی بی کښې یا دجماع په یادولو سره خارجیږی. مذی دهغه ځوان نه خارجیږی چه قوی وی، بدن ئې مضبوط وی. مذی نجس ده خو په دې کښې تخفیف دې، صرف ذکر او خصیتین وینځل ددې نه کافی وی. غسل کول واجب نه دی۔

**فوائد الحدیث** : ۱ – خروج المذی من اسباب وجوب الوضوء. ۲ – مذی نجس دې غسل پرې نشته بالاتفاق، لیکن په وینځلو کښې ئې تخفیف دې چه هسې اوبو چنړکاؤ کولو سره پاکیږی (کما فی روایة ابن حبان وابن خزیمة : وینضح من المذی) ځکه کوم شے چه ډیر واقع کیږی هغې کښې حرج وی نو شریعت تخفیف ورکوی۔ ۳ – مذی صرف اوبو سره پاکیږی، نه په بل شئ سره۔

بیا بل روایت کښې ورسره تشریح ده چه علی – رضی الله عنه – فرمائی : مابه د مذی په خارجیدو غسل کولو تردې چه کله به په ورځ کښې نمبر درې کرتو غسل کولو ته اورسیدلو تردې چه ملا مې د ډیر غسل کولو په وجه ماته شوه، نو اراده دتپوس مې اوکړه، خو خپله مې نشوه کولې ځکه چه د نبی کریم ﷺ لور زما سره وه (ځکه د تپوس مطلب دا جوړیدو چه یا رسول الله ! ستا دلور سره لوبې کوم نو مذی رانه خارجیږی، اودا خو ډیره دحیاء خبره ده سخر سره شوك دا خبرې نشی کولې پاتې لا دا چه پیغمبر وی، نو ځکه ئې بالواسطه تپوس کړیدې)۔

اَسْتَحْیِیْ : **فائده** : د حیاء شرعی معنیٰ په اول جلد (۱۰۹/۱) کښې تیره شویده، د الحیاء شعبة من الایمان – حدیث لاندې دلته د فائدې دپاره جدا طرز سره لیکلې شی :

۱ – د جنیدؒ نه نقل دی : الحیاء رؤیة الآلاء، ورؤیة التقصیر : یعنې د الله د نعمتونه لیدو او بیا د خپلو کوتاهیانو لیدلو نه چه کوم حالت پیدا شی دیته حیاء وائی۔

۲ - حافظ ابن قیمؒ فرمائی : (وحقیقته خلق یبعث علی ترك القبائح ویمنع من التفریط فی حق صاحب الحق)۔ یعنې د حیاء تعریف دادې چه دا یو خوئی دی چه انسان د قبائحو او بدکارونو په پریخودلو باندې را پورته کوی، او د حقدار په حق کښې د تفریط او تقصیر کولو نه انسان منع کوی۔

او د **حیاء لس اقسام** ئې ذکر کړی دی (۱) حیاء جنایت (۲) حیاء تقصیر (۳) حیاء اجلال (٤) احیاء اکرام (٥) حیاء حشمت (٦) حیاء استصغار للنفس واحتقار لها (۷) حیاء محبت (۸) حیاء عبودیت (۹) حیاء شرف وعزت (۰) حیاء المستحی من نفسه۔

(۱) حیاء جنایت : هغه حیاء ده چه د جرم کولو نه پس انسان ته عارضه شی لکه حیاء د آدم علیه السلام کله ئې چه اونه اوخوړه نو جنت کښې ئې منډه کړه، الله ورته اوفرمائیل :

افرارا منی یا آدم ؟ قال : لا، یا رب ! بل حیاء منك۔

(۲) حیاء التقصیر : چه یو شخص ځان کوتاه ګڼړی، لکه حیاء د ملائکو چه د قیامت په ورځ به اووائی : سبحانك ما عبدناك حق عبادتك۔

(۳) حیاء الاجلال : دیته حیاء المعرفه هم وائی، چه د یو ذات لوئی شان اوپیژنی او د هغې نه پس ده ته د هغه نه حیاء ورځی۔ څومره چه انسان د الله معرفت لری هغومره ترې حیاء کوی۔

(٤) حیاء الاکرام : لکه یو عزتمند انسان چانه د خپل عزت د وجې نه خپل حق نشی طلب کولې، لکه حیاء د نبی کریم ﷺ د هغه صحابو نه چه د زینب رضی الله عنها د واده ولیمې ته راغوختلې شوی وو، او هغوئ راغلل او ډیر وخته پورې نبی اکرم ﷺ کره ناست وو، نو هغوئ نه پاڅیدل او نبی ﷺ هغوئ ته دحیاء د وجې نه د پاڅیدلو حکم نه کولو۔

(٥) حیاء الحشمت : یعنې دغیرت حیاء، لکه د علی بن ابی طالبؓ حیاء چه نبی ﷺ نه ئې د مذی باره کښې تپوس نشو کولې۔

(٦) حیاء الاستحقار : د ځان سپك ګڼړلو د وجې نه چه کومه حیاء پیدا شی، لکه : حیاء العبد من ربه عز وجل حین یسأل حوائجه احتقارا لشانه، واستصغارا لها، واستعظاما لذنوبه۔

(۷) حیاء المحبت : لکه د محب حیاء د خپل محبوب نه۔

(۸) حیاء العبودیة: دا هغه حیاء ده چه مرکب ده د خوف او محبت نه چه بنده خپل عبادت د معبود د شان سره موافق نه ويني، نو حیاء ورته راشي۔

(۹) حیاء الشرف: د لوئی او غټ نفس حیاء کله چه هغه چاسره څه احسان اوکړي، چاله څه ورکړي خو د خپلې مرتبې نه کم، نو دې ددې سخاوت نه حیاء کوي، د عزت نفس او شرافت د وجې نه۔

(۱۰) حیاء المرء من نفسه: یعنې د انسان د خپل ځان نه حیاء کول، فهو حیاء النفوس الشریفة العزیزة الرفیعة من رضاها لنفسها بالنقص وقناعتها بالدون، فیجد نفسه مستحیا من نفسه حتی کأن له نفسین یستحیي باحداهما من الاخری، وهذا اکمل ما یکون من الحیاء، بان العبد اذا استحیی من نفسه فهو بان یستحیي من غیره اجدر.

(مدارج السالکین: ۲/۲٦۲) ډیر مزیدار ابحاث ذکر کړی دی هغې ته رجوع پکار ده)۔

حیاء دوه قسمه ده (۱) مذموم (۲) ممدوح. مذموم هغه ده چه مانع واقع شي د طلب د علم نه چه د هغې په وجه علم نه زده کوي لکه امام مجاهدؒ فرمائي: لا یتعلم العلم مستکبر ولا مستحی. اودلته حیاء ممدوح ده ځکه مانع نه ده واقع شوې د طلب د علم نه ځکه چه علی رضی الله عنه بالواسطه علم زده کولو۔

لِمَكَانِ ابْنَتِهِ: مکان مصدر میمي دې په معنیٰ د کینونت سره یعني دوجې د کیدو د لور د هغه نه زما په نکاح کښې۔

(۳) امام بخاريؒ ددې حدیث نه فائده معلومه کړیده چه علم دوه قسمه زده کیږي، یو بالذات او بل بالواسطه، دلته بالواسطه دې چه یو انسان مقرر کړي د تپوس کولو دپاره نو هغه لاړ شي او تپوس اوکړي چه فلانې داسې واقعه نوم دې واخلي یا دې په طریقه د عموم تپوس اوکړي چه یو انسان ته داسې حالت راپیښیږي نو دا به څه کوي؟۔

فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ: **سوال** دادې چه په روایت د نسائي کښې دي: (فَأَمَرْتُ عمَّاراً) او په روایت دابن حِبان او ترمذي کښې دي چه (فسألتُ) علی – رضی الله عنه – په خپله تپوس کړیدې، او په دې روایت کښې دي چه مقداد ته ئې امر کړیدې د تپوس کولو، اودا صریح تعارض دې ددې تطبیق څه دې؟۔

**جواب** : ابن حِبان ؒ داسے تطبيق كړيدے چه علي – رضى الله عنه – اول عمار ته د تپوس كولو حكم كړے وو، بيا ئے مقداد ته حكم كړے وو ليكن دهغوئ د تپوس كولو نه مخكښے علي – رضى الله عنه – پخپله تپوس اوكړو. نو اول ئے دوئ دواړو ته حكم كړے وو نو ځكه هغوئ ته د سوال نسبت اوشو.

(٢) يا علي رضى الله عنه پخپله تپوس نه دے كړے ليكن ده ته د تپوس ضرورت وو نو ځكه ده ته نسبت كيږى مجازاً، أي : سألتُ بواسطة المقداد او عمار، اود عمار تپوس كولو نه مخكښے مقداد تپوس اوكړو.

(٣) يا دا چه عمارؓ به مقدادؓ ته وئيل چه ته تپوس اوكړه او مقدادؓ به عمارؓ ته وئيل چه ته تپوس اوكړه، آخر دا چه په يو مجلس كښے علي او عمار او مقداد – رضى الله عنهم – درے واړه حاضر وو نو مقداد تپوس اوكړو، نو درے واړو ته نسبت كيږى ځكه چه درے واړه دتپوس كولو قصد كړے وو. وهو الراجح.

**فائده** : حديث دليل دے چه خبر واحد به قبلولے شى، دلته مقدادؓ يا عمارؓ عليؓ ته خبر وركوى، نو عليؓ به ئے خامخا معتبروى.

**يَغْسِلُ ذَكَرَهُ** : **مسئله نادره** : (١) استنجاء په اوبو او كاڼو دواړو سره كولے شى او په وينځلو د مذى كښے به فقط اوبه استعمالوى، په كاڼو وغيره سره استنجاء نه كيږى، ځكه نبى ﷺ د (يغسل ذكره) لفظ وئيلے دے، كه (يستنجى) ئے وئيلے وے نو مونږ به په دواړو سره جائز ګڼړلے. (فتدبر واحفظه) !

(٢) – **دويمه مسئله** :

١ – جمهور علماء وائى چه مذى كوم ځائے ته رسيدلے وى هغه ځائے به وينځى فقط. دليل ئے دا حديث دے چه (يغسل ذكره) لفظ په كښے راغلے دے، نو خصيتين (هګئ) وينځل ورسره ضرورى نه دى.

٢ – امام احمدؒ او نور محدثينؒ فرمائى : چه ذكر او خصيتين دواړه به وينځى. جمهور وائى : دے حديث كښے دخصيتين ذكر نشته. دغه شان اكثر رواياتو دصحيحينو كښے هم خصيتين نه دى ذكر. ليكن د امام احمدؒ د طرفنه وئيلے شى چه ابوداود

(۳۱/۱) کښې په صحيح سند سره حديث دے (ليغسل ذكره وانثيه) صحيح ابى داود (٤٢/۱) رقم (۱۹۲) دغه شان طحاوی (۳۹/۱) کښې صحيح حديث دے (اذا وجدت الماء فاغسلل فرجك وانثيك وتوضأ وضوئك للصلاة) وصحيح ابى داود رقم (۱۹٦) ـ اود غه روايت د علی ؓ کښې دی په مصنف عبد الرزاق (۱۵۷/۱)۔

اودا قانون دے چه يو حديث کښې زيادت ذکر شي او بل حديث کښې نه وی ذکر، نو په زيادت باندے به عمل کولے شي۔

جمهور جواب کوی چه خصيتين وينځل عِلاجاً او تَبرِيْدًا دی، حکم شرعی نه دے، ځکه چه خصيه کله او وينځل شی نو مذی اودريږی۔

امام احمد ورته فرمائی: نبی کريم ﷺ امر کړيدے مونږ د هغه د امر دوجے نه عمل کوو۔ او علاج خو يو حکمت ذکر کول دی، او په حکمت سره حکم شرعی نشی ساقطيدلے۔ نبی کريم ﷺ ورته داسے نه دی وئيلی چه: انما امرتكم بهذا للعلاج۔

بيله دا چه د نبی کريم ﷺ په امر باندے عمل کول – د هر حکمت دپاره چه وی – زمونږ دپاره دين دے، او دا علاج خو زمونږ دپاره څه بد هم نه دے۔

---

٤ – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ : (تَوَضَّؤُوْا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ. قَالَ الشَّيْخُ الإِمَامُ الْأَجَلُّ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا مَنْسُوْخٌ بِحَدِيْثِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او جناب ابو هريرة ؓ نه روايت دے دا فرمائی: ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چه کوم څيز اور پخ کړے وی د هغے خوړلو نه پس اودس کوئ۔ (مسلم)۔

امام مُحيى السنة ؒ فرمائی: دا حکم د ابن عباس ؓ هغے حديث سره منسوخ دے چه جناب نبی کريم ﷺ د چيلئ د پتون غوښه اوخوړله بيائے مونځ اوکړو او اودس ئے اونه کړو۔ (بخاری او مسلم)۔

**تشریح : تَوَضَّؤُا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ :**

اول حکمت او بیا اختلاف ذکر کیږی۔ **حکمت** دادے چه انسان کله اور پخ کړے شے اوخوری نو دهغے نه پس اودس کول واجب دی، وجه داده چه شیطان د اور نه پیدا دے نو د اور پخ کړی سره د شیطان تسلط په انسان باندے زیاتیږی، نو په اوبو استعمالولو سره د شیطان تسلط کم شی۔

دویم داچه : په اور پخ کړی شی خوړلو سره انسان په قرائت کښے نخلی کله چه اوبه استعمال شی نو ژبه جاری شی۔

بیا **وضوء مما مست النار،** اختلافی مسئله وه په صحابوؓ کښے :

(۱) د ابو هریره، ابن عمر، زید بن ثابت او بعضے نورو صحابو - رضی الله عنهم - چه امام طحاویؒ ورله نوم نه اخستی دی مذهب داوو چه وضوء مما مست النار واجب دے۔ دوجے ددے حدیث اوداسے نورو احادیثو نه چه ابوداؤد نقل کړیدی۔

(۲) ددے مذکوره صحابوؓ نه سیوا د باقی تولو صحابه کرامو لکه خلفاء راشدینو، ابن مسعود، ابودرداء، جابر، ابن عباس، انس، ابو موسیٰ، ابی بن کعب - رضی الله عنهم - او ائمه اربعهؒ وغیرهم تولو په دے اتفاق دے چه دا حکم منسوخ دے. دلائل په نسخ باندے دادی : چه د ناسخ زمانه روسته وی او منسوخ مقدم وی، اودلته هم داسے ده لکه چه دا معلومیږی د حدیث د جابرؓ نه، دے فرمائی :

كَانَ آخِرَ الأمرينِ مِنَ النَّبِيِّ ﷺ تَرْكُ الْوُضُوْءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ.(رواه ابوداود و النسائی، نیل الأوطار : ۲۶۳/۱) صحیح ابی داود رقم (۱۷۷).

نو دا مؤخر او ناسخ دے. دغه شان نور احادیث دی چه دلالت کوی په دے خبره چه دا امر منسوخ دے (کما تراها فی مسلم : ۱۵۶/۱)۔

لیکن شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ په مجموع الفتاوی (۲۴۱/۲۱) کښے فرمائی چه صرف وجوب منسوخ شویدے او استحباب اوس هم باقی دے. اودلیل په دے باندے دادے چه بعضے صحابه کراموؓ د وفات د نبی کریم ﷺ نه روستو هم اودس کولو لکه چه طحاوی او مسلم ذکر کړی دی. نو دا دلیل دے په دے چه صرف وجوب منسوخ دے نه

استحباب، ځکه که بالکلیه دا امر منسوخ وے نو په منسوخ باندے عمل کول جائز نه دی، نو دے صحابوؓ بیا ولے دا عمل کولو ؟ معلومیږی چه صرف وجوب منسوخ دے. او په دے قول سره تطبیق راځی په مابین دهغه احادیثو کښے چه په هغے کښے امر راغلے دے په اودس کولو اود هغه احادیثو کښے چه ترك الوضوء په کښے راغلے.

۲ – دویم بنه دلیل په بقاء داستحباب داودس باندے د اور پخ کړی د خوړلو نه پس، روایت د جابر بن سمرهؓ دے لکه چه روستو به راشی : (اخرجه الطحاوی : ۱/ ٥٦) عن جابر بن سمرة : ان رجلا قال : یا رسول اللّٰه ! اتوضأ من لحوم الغنم ؟ قال : اِنْ شِئْتَ فَعَلْتَ وإنْ شِئْتَ لَمْ تَفْعَلْ. قال : یا رسول اللّٰه ! أتوضأ من لحوم الابل ؟ قال : نعم ! و کذا رواه مسلم (۱/ ۱٥۸).

نو په دے حدیث کښے (ان شِئْتَ) لفظ دلیل دے په اختیار باندے یعنے اجر په کښے شته خو واجب نه دے، نو اودس کول ترینه مستحب شو. دا وجه ده چه عرف الشذی (۱/ ٢٤) کښے شاه انور شاه صاحبؒ دامام ولی اللّٰه دهلویؒ نه نقل کوی چه هغه په ترجمه د الموطأ کښے داسے فرمائیلی : چه اودس کول دخواصو دپاره مستحب دی . اودے خبرے ته شعرانی هم اشاره کړیده. نو معلومیږی چه استحباب باقی دے. او پدے استحباب باندے ابن تیمیه په المنتقی بشرح النیل (۱/ ٢٦٢) کښے باب ایخے دے :

باب استحباب الوضوء مما مسته النار والرخصة فی ترکه.

پدے تحقیق سره دا سوال دفع شو چه د نبی علیه السلام په فعل سره د امر نسخ څنګه راتلے شی ؟ ځکه دا اصولی مسلمه قاعده ده چه د نبی فعل او عمل ناسخ نه ګرځی د هغه د امر دپاره. نو مونږ ته ئے د مما مست النار نه د اودس کولو حکم کړیدے او هغه دے خپله ددے نه اودس نه وی کړے ؟. پدے کښے هیڅ مانع نشته. ددے وجه نه یوه طائفه د علماؤ – چه هغه شرح مسلم (۱/ ۱٥٦) او نیل الاوطار (۱/ ۲٥۲) کښے ذکر دی لکه عمر بن عبد العزیز، حسن بصری، زهری، ابوقلابه او ابو مجلز – قائل دی پدے باندے چه د اور پخکړی نه پس اودس کول واجب دی او ندی منسوخ د وجے ددے قاعدے نه.

لیکن د دویؒ دا خبره مدفوع ده په دے چه دا امر یواځے په عمل د نبی علیه السلام

باندې ندې منسوخ بلکه په دغه حدیث د جابر بن سمرةؓ سره منسوخ دے چه تا اوپیژندلو چه په هغې کښې اختیار دے چه که اودس ترے کوے او که نه؟۔ او متصل راروان دے۔

**هٰذَا مَنْسُوْخٌ بِحَدِيْثِ ابْنِ عَبَّاسٍ ؓ قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ أَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

د مصنفؒ د اخبره په محل د نظر کښې ده ځکه (۱) چه دا اصولی قاعده ده چه فعلی حدیث ناسخ د قولی حدیث نشی جوړیدلے ، اودلته دا حدیث فعلی دے او توضؤا مماست النار والاحدیث قولی دے، او حدیث فعلی کښې دومره قوت نه وی چه حدیث قولی پرے منسوخ کړے شی، ځکه چه فعلی حدیث کښې احتمال د تخصیص کیدے شی ، لیکن نور احادیث قولیه شته چه ددے وجوب پرے منسوخ کیدلے شی کما عرفت۔ نو مصنفؒ ځکه اکتفاء په حدیث قولی اوکړه۔

۲ - دویم داچه : نبی ﷺ کله یو عمل اوکړی او وجه دتخصیص دخپل ځان پورے ذکر نه کړی نو دا په منزله دحدیث قولی شو نو په دے سره نسخ دحدیث قولی صحیح ده.

**فائده** : نبی کریم ﷺ ته لحم (غوښه) محبوبه وه، بیا په حیوان کښې ورته دکتف غوښه ډیره محبوبه وه۔

---

**٥ - وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ ؓ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ : أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُوْمِ الْغَنَمِ ؟ قَالَ : اِنْ شِئْتَ فَتَوَضَّأْ، وَاِنْ شِئْتَ فَلَا تَتَوَضَّأْ. قَالَ أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُوْمِ الْاِبِلِ ؟ قَالَ : نَعَمْ، فَتَوَضَّأْ مِنْ لُحُوْمِ الْاِبِلِ. قَالَ : أُصَلِّيْ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ ؟ قَالَ : نَعَمْ، قَالَ : أُصَلِّيْ فِيْ مَبَارِكِ الْاِبِلِ ؟ قَالَ : لَا !) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

**ترجمه** : او جابر بن سمرةؓ فرمائی : یو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو : آیا مونږ د چیلئ د غوښې خوړلو نه پس اودس کوو ؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل : که ستا زړه غواړی، نو اودس اوکړه، اوکه نه غواړی مه ئے کوه۔ بیا هغه سړی تپوس اوکړو : آیا د اوښ غوښه خوړلو نه پس اودس اوکړم ؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل : هو، د اوښ غوښه خوړلو نه پس اودس اوکړه، بیا هغه سړی تپوس اوکړو : آیا د چیلو اوسیدو ځائے

پنړغالی) کښې مونځ کووم؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل: هو، بیائے تپوس اوکړو: آیا د اوښانو تړلو ځائے کښې مونځ کووم؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل: نه. (مسلم).

## تعارف د جابر بن سمره رضي الله عنه:

دا مشهور صحابی دے او پلار ئے سمره بن جناده السوائی هم صحابی دے، دکوفے اوسیدونکے دے او په هغې کښې په سنه (٧٤ هـ) کښې د عبد الملك بن مروان په خلافت کښې وفات شویدے. تول (١٤٦) احادیث ترے نقل دی.

**تشریح**: قَالَ أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُوْمِ الْإِبِلِ ؟ قَالَ : نَعَم :

## أَسَفُ البَال على من انكر من الوضوء بِأَكْلِ لَحْمِ الْآبَال

مخکښې دا معلومه شوه چه لحوم الغنم وغیره خوړلو نه پس اودس کول واجب نه دی بلکه وجوب ئے منسوخ دے، نو آیا په لحوم الابل کښې هم دا حکم دے؟ نو په دے باره کښې دعلماؤ اختلاف دے: (۱) أئمه ثلاثه ؤ قول دادے چه لحوم الابل خوړلو سره اودس واجب نه دے، بلکه مستحب درجه کښې دے. دلیل: دادے چه د (مامست النار) والا احادیث منسوخ شویدی، اولحوم الابل هم په مامست النار کښې داخل دی، نو دا هم منسوخ شول.

٢ – امام نوویؒ په شرح دمسلم (١/١٥٨) کښې وئیلی دی چه خلفاء راشدینو، ابن مسعود، ابی بن کعب، ابن عباس او ابو درداء – رضی الله عنهم – به دلحوم الابل نه اودس نه وئیلو. (فذهب الأكثرون الى انه لا ينقض الوضوء).

**(٢) قول ثانی**: اکل لحوم الابل سره اودس ماتیږی:

وذهب احمد بن حنبل واسحق بن راهوية ويحيى بن يحيىٰ وابوبكر بن المنذر وابن خزيمة واختاره الحافظ ابو بكر البيهقي وحكاه عن أصحاب الحديث مطلقا وحكى عن جماعة من الصحابة انه ناقض للوضوء.

اودا قول په احنافو کښې د علامه عبد الحی لکهنویؒ هم دے، اودا صحیح او راجح مذهب دے. د وجے ددے دلائلو نه:

۱ - **یودلیل** : دا حدیث دجابربن سمرهٔ دے (نعم فتوضأ من لحوم الابل) . او په دے حدیث کښے ناسخ او منسوخ دواړه موجود دی، نو لحم الابل په (مما مست النار) کښے نه ده داخل ځکه چه نبی کریم ﷺ جدا راویستلے ده . نو وضوء من لحوم الغنم منسوخ دے ، او وضوء من لحوم الابل غیر منسوخ دے . وجه داده چه حدیث دجابر (کان آخر الأمرين من رسول الله ﷺ ترك الوضوء مما مست النار) عام دے، او حدیث (الوضوء من لحوم الابل) خاص دے . اودا قانون دے چه خاص مقدم وی په عام باندے . او عام ناسخ دخاص نشی کیدے . کذا فی المغنی (۲۱۳/۱) ونیل الاوطار (۲۵۲/۱) وشرح مسلم . او دارنګه د نبی علیه السلام اودس نکول د اور پخکړی نه ناسخ نشی کیدے د ترك الوضوء من لحوم الابل دپاره ځکه دا مسلمه اصولی قاعده ده چه :

(فعله ﷺ لايعارض القول الخاص بنا ولا ينسخه بل يكون فعله لخلاف ما امر به امرا خاصا بالامة دليل الاختصاص به. قاله الشوكانیؒ. فتدبرا۔

شیخ رمضان په تعليق المشكاة النسخة الهندية (۱۵٦/۱) کښے فرمائی :

كان آخر الامرين من رسول الله ﷺ ترك الوضوء مما مست النار. هذا حديث عام وما ورد فی نقض الوضوء بلحم الابل خاص والعام يحمل على الخاص فيخرج منه الصور التى قام عليها دليل التخصيص لايقال بالنسخ مع امكان الجمع لان النسخ مع امكان الجمع ابطال احد الدليلين وهو ليس بباطل ـ یعنی دغه حدیث د جابر عام حدیث دے او د لحوم الابل والا حدیث خاص دے او عام محمول وی په خاص باندے نو ددے عام نه هغه خاص صورت اوځی کوم باندے چه دلیل د تخصیص موجود وی او کله چه جمع د دوه نصینو ممکن وی نو بیا د نسخ خبره کول صحیح ندی ځکه چه په نسخ سره احد الدليلين باطليږی او حال دا چه هغه باطل ندے۔

دارنګه حدیث الباب په درے وجهو سره قوی دے دحدیث دجابرؓ نه، نو حدیث دجابرؓ ناسخ نشی کیدے،کما فی المغنی .

۲ - **دویم دلیل** : حديث البراء بن عازب رضی الله عنه ، قال : سئل النبی ﷺ عن الوضوء من لحوم الابل فأمر به۔

يعنې : د نبي ﷺ نه د اوښانو د غوښې خوړلو نه پس د اودس کولو متعلق تپوس اوشو، نو هغه حکم اوکړو چه اودس اوکړئ۔

قال احمد بن حنبل واسحق بن راهوية : صح عن النبي ﷺ فی هذا حديثان : حديث جابر، وحديث البراء. قال النووی : وهذا المذهب أقویٰ دليلا وان كان الجمهور على خلافه.

ترجمه : امام احمدؒ او امام اسحقؒ فرمائي : د نبي ﷺ نه په صحيح سند سره په دې باره کښې دوه حديثونه ثابت دي يو حديث د جابرؓ او بل حديث د براءؓ دے۔ امام نوویؒ وائي دا مذهب د دليل په لحاظ ډير قوي دے اګرکه جمهور ددے مخالف دی۔

(شرح مسلم : ۱/۱۵۸).

اودا د امام نوویؒ انصاف او حق پرستي ده، اګرکه دے شافعي المذهب دے خو دلته د دليل تابع شويدے . او پخواني علماء به تول داسے انصاف دار وو چه ديو امام قول به غلط يا ضعيف وو نو هغه به ئې نه اخستلو . په خلاف ددے زمانے دمقلدينو نه چه دامام خبره که غلطه وی نو هغې دپاره غلط دلائل لټوی او حديث ورته ورانوی، دا کارحرام دے۔ نور دلائل په (السنن الكبرى ۱۵۸) کښې اوګوره۔

پاتې شو دخلفاء راشدينو – رضى الله تعالى عنهم – عمل، نو دهغې جواب شيخ الاسلام ابن تيميةؒ په القواعد النورانية ص (۹) کښې ورکړيدے چه :

داخبره غلطه ده چه څوك وائي چه خلفاء راشدينؓ به وضوء من لحم الابل نه کولو . بلکه دهغوئ نه دا ثابت دي چه هغوئ به وضوء مما مست النار نه کولو، نو ددے نه خو دا نه معلوميږی چه هغوئ به (وضوء من لحم الابل) نه کولو . ځکه نبي کريم ﷺ چه د لحوم الابل خوړلو نه پس داوداسه حکم کړيدے نو دهغې سبب مس النار نه دے، بلکه دا ئې دمس النار نه خارج کړيدے لکه وئيلے شي چه فلانے دمس الذکر نه اودس نه کوی، نو ددے مطلب خو دا نه دے چه که هغه نه مذی خارجه شي نو هم اودس نه کوی، نو دغه شان دلته هم خلفاء راشدينؓ د مما مست النار نه اودس نه کولو اود لحوم الابل نه به ئې کولو – انظر فتاوى الدين الخالص (۲/۳۹۹).

د شيخ الاسلام د قول تائيد دادے چه طحاوی (۱/۴۱) او بيهقی (۱/۱۵۷) کښې دجابر

بن عبد اللهؓ روایت دے : (ان ابا بکر الصدیق وعمر بن الخطاب اکلا خبزا ولحما فصلیا ولم یتوضآ، وهکذا عن عثمان، والبیهقی عن علی)۔

نو په دے آثارو کښے دلحم الابل ذکر نشته بلکه عامه غوښه ذکر ده۔

او کوم روایت چه کشف النقاب (۲۳۱/۲) د ابن ابی شیبة (۴۷/۱)، او عبد الرزاق (۴۰۸/۱، رقم : ۱۵۹۸) نه نقل کړے دے د عمر فاروقؓ نه چه هغه به د اوښ غوښے خوړلو نه پس اودس نکولو نو د هغے په سند کښے ابو سبره النخعی الکوفی راغلے دے، ابن حجرؒ په التقریب کښے وائی : دا لین الحدیث یعنے ضعیف دے، او په روایت د علیؓ کښے شریك بن عبد الله الکوفی النخعی مشهور ضعیف راوی دے۔ حافظ ابن حجرؒ په تقریب ص (۲۶۶۱) کښے وائی : ضعیف تغیر حفظه فی آخر عمره۔ اوکه بالفرض والتقدیر دا روایات ثابت هم شی، نو دا ددے صحابه کرامو اجتهاد دے، او مرفوع حدیث ورته نه دے رسیدلے چه په هغے کښے د اوښ د غوښے خوړلو اودس ضروری خودلے شویدے کما مرّ۔

**خلاصه:** دا چه دخلفاء راشدینو نه د عدم الوضوء من لحوم الابل نقل درست نه دے۔

**۳ - دلیل :** عمر رضی الله عنه فرمائی : کنا نتوضأ من لحوم الابل.

(مصنف ابن ابی شیبه : ۱۴۶/۱).

نو د عمر فاروق رضی الله عنه نه خو اودس کول نقل دی۔ معلومه شوه چه دا دعویٰ هم باطله ده چه خلفاء راشدینؓ د اوښ د غوښے خوړلو نه روستو د اودس کولو قائل نه وو۔

۴ – دارنګه دنورو صحابه کرامو نه هم اودس کول ثابت دی، جابر بن سمرةؓ فرمائی :

کنا نتوضأ من لحوم الابل، ولا نتوضأ من لحوم الغنم.

رواه ابن ابی شیبة (۴۶/۱) بسند صحیح.

علامه شوکانیؒ فرمائی : نبی کریم ﷺ د مما مست النار د خوړلو نه پس اودس نه دے کړے اود ا منسوخ شویدے، اود اوبنانو د غوښے خوړلو نه پس د اوداسه حکم ئے کړیدے امت ته، نو دا حکم نبی ﷺ ته په هیڅ طریقه نه دے شامل، نه بالتنصیص اونه بالظهور، نو ترك الوضوء مما مست النار ناسخ نه جوړیږی دپاره ددے امر، ځکه دا اصولی قاعده ده چه (فعله ﷺ لا یعارض القول الخاص بنا ولا ینسخه) چه د پیغمبر ﷺ فعل د هغه د قول

ناسخ نه گرځي کوم چه امت پورې خاص وي، نو معلومه شوه چه وضوء من لحوم الابل امت دپاره شته اګر که وضوء مِمَّا مَسَّتِ النَّار منسوخ دے (نيل الأوطار : ۲۵۲/۱).

حاصل دا چه دخلفاء راشدينؓ نه په صحيح سند سره دا نه دی ثابت چه هغوئ دلحوم الابل نه اودس نه کولو او اودس کول ترې په صحيح حديثونو کښې ثابت دي.

بيا دا امر للوجوب دے، نه د استحباب، ځکه چه نبی کريم ﷺ جواب د سوال ورکړيدے، نو په وجوب به حمل وي. که چرې په استحباب حمل شي نو دا جواب بيا نه صحيح کيږي، ځکه چه بيا خو تلبيس جوړيږي چه مخاطب دا مطلب فهم کړي چه اودس دلحم الابل نه واجب دے اود نبي ﷺ مطلب داوي چه امر للاستحباب دے، بيا جواب مطابق د سوال نه جوړيږي فتدبر!.

۲ – بله قاعده مسلمه ده چه کوم امر مطلق عن القرينه وي هغه به د وجوب دپاره وي. اود وضوء نه مراد وضوء شرعي دے ځکه الفاظِ شرعيه به په حقيقتِ شرعيه باندے حمليږي حتی ياتی القرينة بخلافها. كذا فی نيل الأوطار (۲۵۳/۱).

په دے کښې رد دے په هغه چا چه وائي: په حديث کښې د اودس نه مراد وضوء لغوی دے، يعنے صرف لاسونه وينځل.

أُصَلِّيْ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ ؟ قَالَ : نَعَمْ :

مرابض جمع د مربض ده، د ګډو بيزو د اوسيدو ځائے، غوژل ته وائي. په دے کښې مونځ ځکه جائز شو چه انسان ددے ګډو بيزو نه نه يريږي، دا اصيل مال دے، د انسان خشوع نه خرابوي. او هرچه اوښان دي نو دهغوئ نه يره کيږي نو دانسان خشوع او توجه خرابوي. اودا وجه نه ده چه ګنے يو پاك دے او بل ناپاك. خو دا علت بعضے علماؤ ذکر کړيدے حديث کښې نه دے راغلے. دا وجه ده که اوښان په خپل پنړغالی کښې نه وي، غرونو ته تلي وي او ځائے خالي وي نو آيا مونځ به په کښې کيږي اوکه نه ؟ نو ظاهر دحديث دادے چه بيا به هم په کښې مونځ نه کوي، ځکه حديث مطلق دے عام دے. دنبي کريم ﷺ الفاظو ته اوګوره، اوکه انسان هميشه دپاره حکمتونو ته ګوري نو سړی نه قياسي جوړيږي اوکله منکر حديث هم شي. پکار داده چه د نبي کريم ﷺ الفاظو ته اوکتلے شي

هغه فرمائي : مبارك الإبل كښې مونځ مه کوه.

بيا مرابض الغنم کښې د مونځ کولو مطلب دا نه دے چه ته به هلته درئ او جانماز واچوے او مونځ به کوے، دا خبره غلطه ده بلکه همداسې مونځ کول هم جواز لري . اوددے دلائل به روسته راشي چه کوم حيوانات ماکول اللحم وي د هغې بول نجس نه دي.

ددے مسئلے تفصيل به روسته راشي، لږ تفصيل دادے.

## بول او روث د ماکول اللحم او غير ماکول اللحم څه حکم لري ؟

نو په دے کښې خو اتفاق دے چه بول دماکول اللحم حيوان مستقذر دي يعنې طبيعت ئے بدګنړي ليکن : (۱) د امام ابو حنيفةؒ په نيز نجس دي (۲) امام ابو يوسفؒ وائي : نجس دي ليکن صرف تداوي دپاره ئے استعمال جائز دے (۳) امام مالكؒ، امام محمدؒ، امام زهريؒ او ابن سيرينؒ وغيره په نزد دا څيزونه جائز هم دي او پاك هم دي . او ددے قول دپاره (۱٦) دلائل دي چه په خپل ځائے کښې به راشي ان شاء الله، چه يو د هغې دلائلو نه دا حديث الباب دے.

---

٦ – وَعَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: (اِذَا وَجَدَ اَحَدُكُمْ فِیْ بَطْنِهٖ شَيْئًا فَاَشْكَلَ عَلَيْهِ أَ خَرَجَ مِنْهُ شَيْئٌ اَمْ لَا، فَلَا يَخْرُجَنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ حَتّٰى يَسْمَعَ صَوْتًا اَوْ يَجِدَ رِيْحاً). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او ابو هريرةؓ نه روايت دے، چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : هر کله چه تاسو کښې څوك خيټه کښې دننه څه (قرقوړ) بيامومي او په هغه باندے دا خبره مشتبه شي چه څه څيز خارج شو، يانه، نو هغه وخته پورے دے اودس دپاره دجومات نه بهر نه اوځي څو پورے چه آواز وانه وري، يا بوئے بيانه مومي. (مسلم).

**تشريح** : اِذَا وَجَدَ اَحَدُكُمْ فِیْ بَطْنِهٖ شَيْئًا :

**فائده** : په دے حديث کښې يوه قاعده ذکر ده اودا اتفاقي قاعده ده، د علماؤ په کښې څه اختلاف نشته هغه دا چه : اليقين لا يزول بالشك . دا فقهي قاعده ده، ډير مسائل پرے حل کيږي. ددے قاعدے مطلب دادے چه يقيني شے په شك سره نه زائله کيږي، نه

خرابیږی لکه مثلاً تا یقینی اودس اوکړو، پته درته شته چه ما فلانی ځائے کښے اودس کړیدے خو روستـه دے شك پیدا شو چه کیدے شی مابه متیازے کړے وی، اودس به مے مات کړے وی، نودے شك لره اعتبار نشته ځکه ستا اودس کول یقینی دی او ماتول ئے شکی دی، نو شکی څیز سره به یقینی څیز نه خرابیږی۔

دغه شان ستا یقین دے چه ما مخکښے ساعت کښے متیازے اوکړے، خو اوداسه کښے دے شك دے چه دابه مے کړے وی اوکه نه ؟ نودا اودس نه دے شوے خامخا به اودس کوے۔

دغه شان یو انسان اودس کړیدے (کما فی هذا الحدیث) خو په ځان ئے شك شو چه خیته کښے ګړبړ دے، هواء خو به رانه نه وی خارجه شوی، نو نبی کریم ﷺ فرمائی چه په دے اشتباه باندے اودس نه ماتیږی ځکه چه شیطان کله نا کله په مقعد کښے پوکے اوکړی نو انسان شکی کړی چه ګنے څه رانه خارج شو حال دا چه دهغه نه هیڅ نه وی خارج شوی، نو دے شك لره هیڅ اعتبار نشته . دغه شان کله بدن کښے اختلاج بیماری راشی . اختلاج دیته وائی چه دبدن بعضے حصه اوریږی لکه کله سترګه اوریږی اوکله مخ اوکله د ملا غوښه غیر اختیاری طریقے سره اوریږی، نو کله دُبر هم اوریږی ځکه هلته هم رګونه دی، نو شیطان ورته وائی چه ستانه څه خارج شو، اودس دے مات شو، خو نبی علیه السلام فرمائی اودس دے نه دے مات، ترڅو چه یقین دے نه وی راغلے چه آو، یقینی هواء خارجه شوه۔

د یقین صورت دادے چه هواء د سړی نه خارجه شی بالصوت چه آواز واوری، یا دهغے بدبوئ پرے راشی، که آواز نه وی۔

دلته د ټولو محدثینو په دے باندے اتفاق دے چه د (حَتّٰی یَسۡمَعَ صَوۡتًا اَوۡ یَجِدَ رِیۡحاً) نه مراد تیقن دے، ولے دیو سړی غوږونه به کاڼه وی، اوپوزه به ئے بنده وی، دده نه به هواء خارجه شوے وی اونه به ئے بوئی محسوس کړے وی اونه به ئے آواز، نو آیا دده اودس بـه نه وی مات ؟ ولے نه ؟ نو مراد ددے دواړو جملو نه یقین دے چه دده یقین راشی او محسوسه کړی چه دده نه یقینا هواء خارجه شوه نو اودس به کوی، اوکه هسے خیته کښے ګړبړ وی یا اختلاج اوشی نو هغے باندے اودس نه ماتیږی، او هر انسان په خپل ځان باندے

پوهیږي، ځکه دهرا نسان علم په خپل ځان باندے علم حضوري دے. ددے تشریح ته ضرورت نشته، هرچاته دا معلومه ده۔

بیا دا قاعده په اوقاتو او مونځونو تولو کښے جاري کیږي مثلا تا مونځ اوکړو، دمانځه نه روسته دے شك شو چه مانه به سجده پاتے شوے وي، نو ددے شك هیڅ اعتبار نشته۔

★ ستا شك دے چه وخت د ماسپخین به داخل شوے وي اوکه نه؟ نو مونځ جائز نه دے۔ دغه شان کله چه وقت داخل دے خو ستا شك دے چه دا به خارج شوے وي اوکه نه؟ نو یقینا داخل دے، شك لره اعتبار نشته. اوکه مانځه کښے دننه شك پیدا شي نو دهغے درے صورتونه به روستو راشي. ان شاء الله تعالی۔

فَلَا يَخْرُجَنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ : قید ئے ځکه اولګولو چه دا سړے به مسجد ته راغلے وي، د مانځه په انتظار به ناست وي نو د مسجد نه دے بهر نه وځي دپاره د اوداسه کولو. اوکه مسجد کښے نه وو، بلکه په کور کښے په مانځه ولاړ وي، نو هم د اقانون دے، لیکن مسجد قید ئے اولګولو د وجے د عادت نه ځکه اکثر او اغلبه داده چه انسان اودس اوکړي نو مانځه دپاره مسجد له ځي۔ اود (حَتّٰى يَسْمَعَ صَوْتًا) قید هم بنا بر اغلبیت دے ځکه چه د عامو انسانانو غوږونه کار کوي، نو آواز آوریدے شي، بوئی محسوس کولے شي۔ او که څوك آواز وا هم نه اوري یا بوئی محسوس هم نه کړي نو بیا ئے هم اودس مات دے۔

**تنبیه** : بعضے اهلِ بدعت په اهلِ حدیثو باندے دا تهمت لګوي چه دوئ په لګ شان بادو باندے اودس مات نه ګنړي ددے حدیث د وجے نه. خو دا په غلط انداز سره خبره پیش کول دي، او خلقو لره دحق او اهل حقو نه متنفر کول دي۔

مونږ وایو تاسو دا حدیث منئ یا نه؟ که منئ نو بیا خو ستاسو هم داسے مذهب دے. اوکه نه ئے منئ نو بیا خو مسلمانان نه ئے۔ دلږ او ډیر خبره په کښے نشته بلکه دے حدیث کښے خود خیتے د ګړیړ مسئله ده چه په دے سره اودس نه ماتیږي ترڅو چه دځه بادو په وتلو سره ئے یقین رانشي، برابره خبره ده که باد لګ وي اوکه ډیر وي په اتفاق دمسلمانانو سره په دے باندے اودس ماتیږي کله چه د دبر نه خارج شي، ځکه چه دا هواء په ګندګئ ورتیریږي، نو ممکنه ده چه ځان سره ګندګي رابهر کړي اګرکه دا فِيْ نَفْسِهٖ نجس نه ده،

ولې که دا نجس وې نو بيا که په جامه اولګي دهغې جامې وينځل به لازم وې، ليکن دې کښې مظنه د خروج النجاست (ګمان د نجاست د وتلو) دې نو ځکه اودس ماتوی . بيا که څه ګندګي ئې رابهر کړي وي اوکه نه خو د شريعت حکم دې چه اودس به کوی۔

بيا **ريح** په دوه قسمه دې (١) مِنَ الدُّبر: ددې حکم خو معلوم شو چه اودس پرې ماتيږي لک ري که ډير (٢) مِنَ القُبُل : يعنې قُبُل المرأة والرجل، دزنانه ياناريته دفرج يا کر نه چه هواء خارجه شي نو ددې په نقض الوضوء کښې اختلاف دې .

(١) امام شافعيؒ ته منسوب ده او اسحاق بن راهويهؒ او امام محمدؒ قول دې (كما ذكر عنه القدوري، انظر حاشيه شرح الوقايه : ٦٩) ـ چه ريح خارجه من القبل والذكر موجب د اوداسه دې، اودس پرې ماتيږي . دوئ استدلال کوی په اطلاق ددې احاديثو باندې چه په دې کښې خروج الريح مطلق دې که د دبر نه وي اوکه د ذکر نه .

(اخرجه الدارقطني في كتاب غرائب مالك، انظر عمدة الرعاية) .

(٢) صاحب هدايه، منيه او محيط والاوثيلي دي چه د قبل او ذکر نه په ريح خارجيدو سره اودس نه ماتيږي . وجه ئې دا بيان کړيده چه دا اختلاج دې او ريح نه دې (السقاية على شرح الوقاية : ١/٤٨). اوکه بالفرض دا ريح هم وي نو په نجاست باندې نه ورتيريږي . بل داچه د سړي په ذکر کښې دا قسم ريح خارجيدل نه متصور کيږي ځکه هغې کښې څه کهلاوه لاره نشته چه هواء په کښې خارجه شي ځکه دهغې لاره مثانې ته تلې ده او مثانه محل دريح نه دې . او هرچه دزنانه قبل (فرج) دې نو هغې کښې اګرچه دا متصور کيدې شي ځکه درحم په لاره باندې ريح راتلې شي، کله په کښې جمع کيدې شي مګر هغه نجس نه دې ځکه هغه دبهر نه هواء ورغلې وي يا رحم اوړي راوړي نو هواء پيدا کړي او په نجاست باندې نه ورتيريږي نو ناقض داوداسه نه شو .

بيا فقه حنفي کښې ئې ورسره دا مسئله هم ليکلې ده چه که يوه زنانه مُفضَاة وي يعنى دواړه لارې ئې يو ځائې شوې وي نو د قبل نه چه کومه هواء خارجه شي نو په دې سره اودس کول مستحب دي (كذا في السراجية) ـ اوبعضې وائي چه اودس پرې واجب دې، ځکه احتمال شته چه دا د دبر نه خارجه شوې وي۔

لیکن دا وجه خطاء ده ځکه چه انسان په خپل ځان باندے علم حضوری لری، او الله تعالی په اندامونو کښے دحِس ماده اچولے ده، ضرور پو هیږی چه دا هواء د دبر نه خارجه شوه اوکه د فرج نه، لکه دا مجربه خبره ده، خودا د فقهاؤ تعمقات دی چه بعضے وخت یے ځایه وجے بیانوی. صحیح خبره داده چه که د ریح القُبُل والذکر په وجه څه لوندوالے بهر شو نو اودس مات دے اوکه نه وی نو نه دے مات اودا اختلاج دے. دے باره کښے څه صریح نص نشته چه دریح خارجه من القُبُل نه اودس مات دے۔

اودغه شان اختلاف په دودة القبل والذکر کښے هم دے چه د ذکر یا فرج نه چینجے اوځی. کوم خلق چه په ریح القبل والذکر باندے اودس مات نه ګڼری نو په چینجی باندے ئے هم نه ګڼری، او څوك چه په هغے باندے اودس مات ګڼری نو په دے باندے ئے هم مات ګڼری. صاحب دشرح وقایه (۷۷/۱) وائی : چه که دذکر نه خارج شی نو اودس نه ماتیږی ځکه دا دزخم نه خارج شویدے، اوکه د قُبُل المرأة نه خارج شی نو په دے کښے دغه اختلاف دے۔

---

۷ – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ شَرِبَ لَبَنًا فَمَضْمَضَ، وَقَالَ : اِنَّ لَهٗ دَسَمًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او عبد الله بن عباسؓ نه روایت دے چه (یو ځل) رسول الله ﷺ پئ اوڅکل او (هغے نه پس ئے) خله کنګال کړه او وے فرمائیل : پیئو کښے غوړوالے وی۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : شَرِبَ لَبَنًا : ۱– **فائده** : د پیئو څکلو نه روسته – باخه وی که کچه – خوله وینځل سنت طریقه ده او اودس پرے لازم نه دے۔ ځکه ابن عباسؓ پخپله د پیئو څښلو نه پس مضمضه پریخے ده۔ لکه فتح الباری کښے دی :

عن ابن عباس انه شرب لبنا فمضمض ثم قال : لو لم اتمضمض ماباليت. رواه الشافعی.

(یعنے : ابن عباسؓ پئ اوڅکل او بیائے مضمضه اوکړه، او وے فرمائی : که زه مضمضه اونه کړم نو زه هیڅ باك نه کووم)۔

نو دا ترك بَيَانًا للجواز دے۔ او مضمضه کول مستحب دی لکه دا حدیث الباب ئے

دلیل شو۔

دغه شان نبی ﷺ هم پریخے ده لکه په حدیث د انس کښې دی : (ان النبی ﷺ شرب لبنا فلم یتمضمض ولم یتوضأ) رواه ابو داؤد باسناد حسن.

**اِنَّ لَهُ دَسَمًا** : دُسُوْمَت غوړزئ ته وائی، ددې علت ذکرکولو نه دا فائده معلومه شوه چه هر هغه شے چه هغه غوړزی لری دهغے دخوړلو او څکلو نه پس خوله وینځل سنت طریقه ده، اتباعًا لرسول الله ﷺ، څکه علت ئے ذکر کړو. او وجه داده چه خوله چه کله غوړه وی نو مانځه کښې توجه نه برابرېږی انسان به هغې سره مشغول وی زړه به ئے غافل وی، او قرأت کښې انسان بند بند کیږی۔

ابن بطال د مهلب نه نقل کړی دی هغه فرمائی چه (انّ لَهُ دَسَمًا) سره علت د امر بالوضوء مما مست النار بیانوی، څکه چه عام خلقو په جاهلیت کښې د نظافت ډیر خیال نه ساتلو، دقلتِ نظافت سره آموخته وو، نو صحابهؓ ؤ ته حکم اوشو چه د اور پخکړی خوړلو نه پس اودس کوئ، خو کله چه هغوئ کښې نظافت عام شو نو دا حکم منسوخ شو (فتح الباری : ۱/ ۱۵۰)۔

**مناسبت** دحدیث د باب سره دادے ۱ – چه دا قسم مضمضه دمتمماتو داوداسه نه ده .

۲ – یا پیۓ او هر غوړ شے خوړل ، څنبل موجب د اودس نه دی۔

---

**۹ – وَعَنْ بُرَيْدَةَ ﷺ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى الصَّلَوَاتِ يَوْمَ الْفَتْحِ بِوُضُوْءٍ وَاحِدٍ، وَمَسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ. فَقَالَ لَهُ عُمَرُ : لَقَدْ صَنَعْتَ الْيَوْمَ شَيْئًا لَمْ تَكُنْ تَصْنَعُهُ ! فَقَالَ : عَمْدًا صَنَعْتُهُ يَا عُمَرُ !) . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

**ترجمه** : بریدهؓ فرمائی : دمکے دفتح په ورځ نبی ﷺ یواودس سره څو مونځونه اوکړل (یعنی یو اودس سره ئے پنځه واړه مونځونه اوکړل) او په موزوئے مسح اوکړله (دے لیدو سره) جناب عمرؓ، نبی ﷺ ته عرض اوکړو : نن تاسو هغه څیز اوکړو چه مخکښې مو هیڅ کله نه دے کړے ! نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل : اے عمر ! ما داسے قصداً اوکړل۔ مسلم)۔

**تعارف د بريده** رضي الله عنه :

دده پلار نوم حُصيب بن عبد الله بن الحارث الاسلمي دے، دغزوه بدر نه مخکښې ئې ايمان راوړے او جنګ بدر ته نه دے حاضر شوے او بيعة الرضوان، خيبر او فتح مکې ته حاضر شويدے، دمدينې اوسيدونکے دے بيا بصرے ته نقل شويدے، بيا مرو ته نقل شو، او نبي کريم ﷺ عامل مقرر کړے وو په صدقاتو د قوم خپل. په مرو کښې د يزيد بن معاويه په خلافت کښې په (٦٣ هـ) کښې وفات شويدے. دده نه (١٦٤) احاديث منقول دي، اودا آخري صحابي دے چه په خراسان کښې وفات شويدے.

**تشريح** : بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ :

ډير مونځونه په يو اوداسه سره کيږي، اګرکه مستحبه داده چه هر مانځه دپاره جدا جدا اودس اوکړے شي. په ابتداء داسلام کښې هرمانځه ته اودس کول لازم وو، بيا دا منسوخ شو دهغې په ځائے دمسواك حکم اوکړے شو چه اودس کولو کښې مسواك استعمالوئ.

(كذا في حديث ابى داؤد عن عبد الله بن حنظلة الغسيل، وسيأتي في المشكاة : ١/٤٧).

بيا **سوال** پيدا شو چه په يو اودس باندے پنځه مونځونه کول خو د ظاهر د قرآن خلاف معلوميږي ځکه آيت ﴿ اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا وجوهكم ..الآية ﴾ کښې دي چه هر کله مانځه ته اودريږئ نو اودس کوئ ؟.

**جواب** : د قرآن آيت مجمل دے او احاديث ئې تفسير او شرح ده، (لان السنة مبينة لكتاب الله). پيغمبر ﷺ په قرآن کريم ښه پوهيدلو نو د هغه تشريح به معتبره وي.

٢- **جواب** : آيت کښې قيد مراد دے ﴿ اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلَاةِ ﴾ وَاَنْتُمْ مُحْدِثُوْنَ. اودا معلوميږي د سياق د آيت نه چه ﴿ وان كنتم جنبا فاطهروا ﴾ ځکه که چرے دا قيد مراد نه کړے شي نو بيا ددے عطف په ماقبل باندے نه صحيح کيږي، فتدبر.

٣ - **جواب** : آيت کښې عموم دے او امر مشترك دے په وجوب او استحباب کښے، نو د محدث دپاره امر د وجوب دے او دمتوضئ دپاره امر للاستحباب دے.

٤ - **جواب** : آيت مطلق دے او نبي کريم ﷺ مقيد کړيدے او تقييد دکتاب الله په

خبر واحد سره صحیح او جائز دے بناء په قول صحیح باندے .

عَمْدًا : د عمر رضی الله عنه د وینا مطلب دا وو چه د نبی ﷺ معمول داوو چه هر مانځه ته به ئے اودس تازه کولو، لیکن نن هغه په یو اودس باندے پنځه واړه مونځونه اوکړل او بیا ئے یو نوے کار هم اوکړو چه په موزو باندے ئے مسح هم اوکړه چه داسے کار نبی ﷺ مخکښے کله نه وو کړے۔ نبی ﷺ ددے په جواب کښے اوفرمائیل : چه دا کار ما د هیرے او نسیان په وجه نه دے کړے بلکه قَصْداً مے اوکړو، دے دپاره چه خلقو ته دا مسئله معلومه شی چه دا دواړه صورتونه هم جائز دی او نور خلق هم داسے عمل کولے شی۔

**فوائد الحدیث** : ۱ – د رسول الله ﷺ دپاره مفضول کار افضل وو، اجر ورته ملاویدو، ځکه چه هغه داعی دے اود بیان په نیت باندے عمل کول اجر دے، مثلا یو مفضول کار دے هغه ته دے دپاره کوے چه خلقو ته دا مسئله واضحه شی نو تاله الله تعالیٰ پوره اجر درکوی .

۲ – د رسول الله ﷺ افعال به محمول وی په دین باندے، نه په سهوه او غفلت او تخصیص باندے، ترڅو چه بل دلیل او قرینه نه وی راغلی د تخصیص یا دسهو وغیره . دا ډیره مفیده نکته ده، په ډیرو مقاماتو کښے پکار راځی . ځکه بعضے خلق د یو حدیث باره کښے وائی : دا د پیغمبر ﷺ پورے خاص دے یا خاص واقعه ده، عموم په کښے نشته، نو دا خبره صحیح نه ده ترڅو چه دلیل ئے نه وی موجود نو اصل په افعالو د نبی کریم ﷺ کښے داده چه دابه دین او تشریع عامه وی دالله دامر په بناء باندے به وی : ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴾۔

۳ – **فائده** : په موزو باندے مسح کول مشهور عمل وو، لیکن خلیفه راشد عمر فاروق رضی الله عنه ترے اوسه پورے خبر نه وو، او بیا عبد الله بن عمرؓ ترے د خلافت عمریؓ پورے خبر نه وو، تردے چه د سعدؓ په واسطه ترے خبر شو، او هغه داسے چه ابن عمر سعدؓ اولیدلو چه په موزو باندے ئے مسح کوله، نو ابن عمرؓ ناشنا اوګڼړله، سعدؓ ورته اووئیل : د خپل پلار (عمرؓ) نه تپوس اوکړه الخ۔ (بخاری : ۱/۳۲، بشرح الفتح :

/۲٤٥)۔ نو دا دلیل دے چه کله کله په صحابیؓ باندے یو حدیث پټ پاتے کیږی۔

---

۱۰ – وَعَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ رضي الله عنه أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ عَامَ خَيْبَرَ حَتّٰى إِذَا كَانُوْا بِالصَّهْبَاءِ وَهِيَ مِنْ أَدْنٰى خَيْبَرَ، صَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَعَا بِالْأَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ إِلَّا بِالسَّوِيْقِ، فَأَمَرَ بِهِ فَثُرِّيَ فَأَكَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَأَكَلْنَا ثُمَّ قَامَ إِلَى الْمَغْرِبِ، فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : سوید بن نعمانؓ نه روایت دے چه دے د رسول الله ﷺسره د خیبر د (فتح) په کال په سفر لاړو، کوم وخت چه صبهاء (مقام) ته اورسیدلو چه خیبر ته نزدے دے، نو د مازیګر مونځ ئے اوکړو، بیا نبی کریم ﷺ (د لارے) توښے اوغوښتے، نو د ستوانو نه علاوه بل څیز حاضر نه کړے شو، رسول الله ﷺ حکم اوکړو (چه لامده ئے کړئ) نو هغه (په اوبو) لامده کړے شو، نو رسول الله ﷺ او مونږ هغه اوخوړل۔ بیا د ماښام مونځ دپاره اودریدو، نبی کریم ﷺ خله کنګال کړه اومونږ هم کنګال کړه بیا ئے مونځ اوکړو او اودس ئے اونه کړو ۔(بخاری)۔

**تعارف : د سوید بن النعمان رضي الله عنه :**

انصاری اوسی مدنی صحابی دے، غزوه احد او ما بعد غزواتو ته حاضر شوے او (۷) احادیث ترے منقول دی، دده صرف یو شاګرد دے بشیر بن یسار۔

**تشریح** : عَامَ خَيْبَرَ : دا غزوه د شپږم کال په ابتداء کښے واقع شویده دیهودو سره، په خیبر کښے آته قلعه جات وو ټولے اونیولے شوے او (۱۸) صحابه کرام – رضی الله عنهم – شهیدان شول، او ډیر غنیمتونه په کښے ضبط شول، خلق دده وخت نه روستو په کجورو باندے ماړه شول۔

فَثُرِّيَ : بضم الثاء وتشدید الراء ویجوز تخفیفها : یعنے په اوبو لامده کړے شو چه خوراك ئے آسان شی۔

**فوائد الحدیث :**

۱ – د نبی کریم ﷺ زندګی جهادي وه، لکه ددې واقعې نه معلومیږي.
۲ – د نبی کریم ﷺ زمانه کښې به د ماښام روټۍ مازیګر کښې خوړلې شوه چه دا صحت او هضمیدو ته فائده رسوی، او انسان سَحر وختې پاڅیدې شی، خو نبی ﷺ کله کله نا وخته هم خوړلې ده۔
۳ –زاد او توښه په سفر کښې ځان سره اخستل د توکل خلاف نه دی بلکه بعینه توکل دې ۔
٤ – امام مهلبؒ دا فائده معلومه کړیده چه امام او خلیفه له دا جائز دی چه محتکرین ذخیره اندوزو) باندې زور اوکړی په راویستلو دطعام باندې کله چه کم وی، او په محتاجینو باندې ئې خرځ کړی۔
۵ – وضوء مما مست النار منسوخ دې، ځکه ستوان په اور پاخه شوی دی، نبی ﷺ او صحابوؓ خوړلی دی او بیا ئې ددې د وجې نه اودس نه دې کړې، صرف خله ئې کنګال کړیده۔
٦ – دهر خوراك نه پس مضمضه مستحب ده، اګرچه غوړوالې په کښې نه وی ځکه چه په دې سره د غاښونو نه ګند او باقی اجزاء لرې کیږي۔
۷ – هر مانځه دپاره اودس واجب او ضروری نه دې کله چه دانسان اودس په ځائې وی۔
۸ – امیر او مشر له پکار دی چه دخپل رعیت دفقر او لوګې خیال اوساتی او مالدارو ته حکم اوکړی چه غریبانو ته طعام ورکړی۔
۹ – منا هده ثابت شوه، طعام شریکول او بیا په یو ځائې خوړل اګرکه یو ډیره اوخوری اوبل لږه۔
۱۰ – توښه ځان سره سفر کښې وړل سنت دی او د توکل خلاف نه دی۔

## الفصل الثانی : دویم فصل

۱۱ – وَعَنْ أَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی اللہ عنہ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : (لَا وُضُوْءَ اِلَّا مِنْ صَوْتٍ اَوْ رِیْحٍ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِیُّ.

**ترجمه** : ابو هریرةؓ نه روایت دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اودس کول صرف آواز

يا بوئی سره واجب کيږی ـ (احمد، ترمذی)ـ

**تشريح** : لَا وُضُوْءَ اِلَّا مِنْ صَوْتٍ اَوْ رِيْحٍ : يعنے اودس واجب نه دے مګر په آوريدو د آواز او يا په محسوسولو دهواء سره يعنی يقينی حدث (بے اودسی) وی، نو هله وضوء واجب دے او په مشکوك حدث سره اودس نه دے واجب نو مقصود په حصر کښے نفی دجنس شك ده، يعنے په هيڅ قسم شك سره اودس نه واجبيږی ترڅو چه يقين نه وی، اودلته قصر اضافی دے، يعنے قصر په نسبت سره شك ته دےـ اودا مطلب نه دے چه صرف او صرف په صوت او ريح سره اودس واجبيږی او په نورو څيزونو سره نه واجبيږیـ

٢ – **فائده سَنِيَّه** : اودس به نه وی مګر دهغه څيز نه چه حديث کښے ذکر وی، نو په وينه، زوه، قيح وغيره باندے اودس نه ماتيږی، ځکه دليل قوی نشته اوقياس ته ضرورت نشته، والاصل الطهارةـ

**درجة الحديث** : رواه أحمد (٢/٤١٠، ٤٣٥، ٤٧١) والترمذی (١/١٦) وقال : حديث حسن صحيح، وابن ماجة رقم (٥١٥) وهذا سند صحيح على شرط مسلم، كذا فی صحيح الترمذی (١/٣٣) رقم (٦٤)، وتعليق المشكاة (١/١٠٢) وقال : انه حديث صحيح.

١٢ – وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : سَأَلْتُ النَّبِيَّ ﷺ عَنِ الْمَذِيِّ، فَقَالَ : مِنَ الْمَذِيِّ الْوُضُوْءُ، وَمِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : د علی رضی الله عنه نه روايت دے دا فرمائی : ما د نبی کريم ﷺ نه د مذی په باره کښے تپوس اوکړو (چه په دے باندے غسل واجب کيږی اوکه اودس) نو نبی ﷺ اوفرمائيل : د مذی نه اودس کول دی اود منی نه غسل کول ـ (ترمذی)ـ

**تشريح** : وَمِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ :

١ – امام شافعیؒ ته منسوب دی چه خروج المنی مطلقًا غسل واجبوی، برابره خبره ده که په طريقه د دفق (ټوپ) سره وی اوکه نه، نو په جريان بيماریٔ سره دده په نزد غسل واجب دے. دے عمل کوی په اطلاق ددے دحديث باندے ځکه قيد د دفق وغيره ورسره نشته دےـ

٢ - جمهور علماء وائی : هغه منی سره غسل واجبیږی چه په شهوت سره خارجه شی، اوکه دمرض په وجه بغیر دشهوت نه خارجه شی لکه دجریان والا نه نو غسل نه واجبیږی.

**١ - دلیل** : په مسند احمد (١٠٩/١)، وابن حبان (٢٤١) کښې حدیث د ے ، وصححه ابن خزيمة : اذا حذفت فاغتسل من الجنابة، واذا لم تكن حاذفا فلا تغتسل.

وسنده حسن او صحيح، ارواء : ١٦٢/١، وفى رواية : اذا فضخت الماء فاغتسل.

(وكذا فى صحيح ابى داود : ٤١/١، وارواء الغليل : ١٦٢/١، باسناد صحيح عن على).

حَذْف او فَضْخ په هغه منی کښې وی چه په شهوت سره په دفق اوځی وهو الراجح (هكذا فى حاشية ابى داؤد : ٤١/١، رقم : ٢٠٦) .

**٢ - دلیل** : روایت د ابن عباسؓ کتاب العلم کښې تیر شویدے په حدیث د (فقيه واحد اشد على الشيطان من الف عابد) کښې، چه هغه یو شخص ته دا فتویٰ ورکړے وه چه که خوند نه محسوسوے نو غسل مه کوه۔ كذا فى ابن عساكر بسند حسن، حياة الصحابة : ١٦٦/٣، عن مجاهد، الارواء، فتاوى الدين الخالص : ٤٥٥/٢)۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذى (٢٤/١) وابن ماجة وقال : حديث حسن صحيح، وهو كما قال، وقال الألبانى : بل هو صحيح كما فى صحيح الترمذى (٣٦/١) رقم (١١٤).

په دے حدیث کښې د منی او مذی په مابین کښې فرق کړے شویدے چه د منی په وتلو غسل لازم دے اود مذی په وتلو صرف اودس لازم دے، لیکن ددے دواړو څه حقیقت دے ؟۔ ددے وضاحت هم ضروری دے۔ نو د انسان نه چه کومے اوبه اوځی هغه درے قسمه دی یو مذی دویم منی دریم ودی۔

په مذی کښې درے لغات دی (١) د میم فتحه اود ذال سکون (٢) د ذال کسره اود یاء تشدید (٣) د ذال کسره او د یاء تخفیف۔ اولنی دوه لغات مشهور دی، او اولنی په کښې اوضح او اشهر دے۔

**د مذی تعریف** : هو ماء ابيض رقيق لزج يخرج عند شهوة، لا بشهوة ولا دفق ولا يعقبه فتور وربما لا يحس بخروجه ويكون ذلك للرجل والمرأة وهو فى النساء اكثر منه فى

الرجال. (نووی شرح مسلم : ۱/۱۴۳).

مذی : هغه سپینې نرمې ښلیښناکې اوبه دي چه د شهوت په وجه راځي اود وتو په وخت کښې ئې خوند او توپ نه وي، او ددې د وتلو نه پس د انسان په اندام کښې څه سستي هم نه راځي او ډیر کرته انسان د هغې په وتلو باندې پو هیږي هم نه، اوداد سړي او ښځې دواړو نه اوځي خو د ښځې نه زیات خارجیږي.

شیخ بسامؒ ئې داسې تعریف کوي : المذی ماء ابیض لزج رقیق یخرج عند الملاعبة والتقبیل ونحوهما وخروجه من مجری البول من افراز الغدد المبالیة.

یعنې : دا هغه سپینې ښلیښناکې نرمې اوبه دي چه د خپلې بی بی سره د لوبو توقو او بوس وکنار په وخت اوځي او د متیازو په لاره د جدا رګونو نه اوځي.

بعض وائي مذي هغه ده چه د معمولي شهوت سره بغیر د توپ نه اوځي او د اوبو پشان نرئ وي او ددې په وتو سره شهوت زیاتیږي او د متیازو نه پس چه د خړو اوبو په شان بغیر د شهوت نه اوځي هغه ودي ده. السقایه علی شرح الوقایه. ص (۶۳)

اود **مني تعریف** امام نوويؒ داسې کوي :

قال العلماء مني الرجل في حال الصحة ابیض ثخین یتدفق في خروجه دفقة بعد دفقة ویخرج بشهوة ویتلذذ بخروجه، واذا خرج استعقب خروجه فتور او رائحة کرائحة طلع النخل ورائحة طلع النخل قریبة من رائحة العجین.

ترجمه : علماؤ وئیلي دي چه د صحت په حالت کښې د سړي مني سپینه، ټینګه وي، د وتو په وخت ټپوپونه وهي او په شهوت سره اوځي، اود وتو په وخت انسان خوند محسوسوي اوکله چه د بدن نه اوځي نو بدن سست شي. د مني بوئي د کجورې د غونچك پشان وي، او ددې غونچك بوئي د وړو بوټي ته نزدې وي.

بعضې وائي : کله چه مني اوچه شي نو ددې بوئي د متیازو پشان وي.اوکله چه انسان مریض وي نو مني ئې نرمه زیړه وي، یا کله چه د مني لوخې سست شي نو بغیر د خوند او شهوت نه بهیږي، یاکله چه انسان جماع زیاته کړي نو مني سره شي او د غوښې د اوبو پشان شي، اوکله ترې وینه خارجه شي، خو کله چه مني سره وینه خارجه شي نو دا پاکه

ده۔ اګرکه په وتو ئے غسل واجب دے۔
امام نوویؒ دا هم فرمائي : د مني هغه خواص چه شریعت کښے معتبر دي درے دي (١) چه په شهوت سره اوځي او بدن ورسره سست شي (٢) د کجورے د غونچك پشان بوئي کوی (٣) توپونو سره اوځي۔ دا هریو د مني د اثبات دپاره کافي دے او د تولو اجتماع شرط نه ده، اوکله چه په دے کښے هیڅ یو موجود نه شي نو دیته مني نه وائي، دا خو د سړي مني ده۔
او د زنانه مني زیړه او نرمه وي، اوکله چه د زنانه قوت زیات شي نو بیا ئے مني سپینه وي، د دے په مني کښے دوه خصوصیته دي (١) بوئي د سړي د مني پشان کوی (٢) په وتو سره ئے خوند ملاویږي۔ او د دے نه پس شهوت سوړ شي۔ (شرح مسلم : ١/١٤٥)۔
شیخ بسام په یو مقام کښے د مني داسے تعریف هم کوی : واما المنی فهو عباره عن مادة مکونة من جمیع اجزاء البدن ولذا نری الجسم یتأثر بخروجه ولا یتأثر بخروج البول توضیح الاحکام (١/٢٩٠) یعني مني هغه مادے ته وائي چه جوړیږي د تول اجزاؤ د بدن نه دا وجه ده چه د دے په وتو سره جسم متأثر کیږي او د بول په وتو سره نه متأثر کیږي دارنګه د انسان پس د جماع کولو نه د بدن قوت کښے ضعیف پیدا کیږي خو کله چه په اوبو باندے اولامبي نو بدن ته دوباره دا ورك شوے قوت راواپس شي کوم چه په خروج المني سره ختم شوے وو او هغه سستي ختمه شي او په غسل سره یو نشاط او تازه ګي پیدا شي او طبیبانو دا تصریح کړیده چه د جماع نه پس غسل کول بدن ته خپل قوت راواپس کوی او دا په بدن کښے د وینے په ګردش کښے د تازګي پیدا کولو دپاره ډیر فائده مند وي۔ او غسل نه کولو نه ډیر اضرار پیدا کیږي۔
**دریم شے ودي** : تعریف ئے دا دے : هو ماء ابیض کدر ثخین یشبه المنی فی الثخانة ویخالفه فی الکدورة لا رائحة له یعقب البول وقد یسبقه۔ مراقی الفلاح ص (٢٣) البحر الرائق (١/٦٢)۔ دا هغه سپینے خړے تینګے اوبه دي چه د مني مشابه وي په تینګوالي کښې او خلاف وي د هغینه په خړوالي کښے، بوئي نه لري او عام حالاتو کښے د متیازو په آخر کښے اوځي او کله نا کله مخکښے هم اوځي، د دے حکم تول په توله د متیازو پشان

دې مګر صرف دومره ده چه د ودې نه روستو بول کول مناسب دی، دې دپاره چه د ذکر په لاره کښې څه شے پاتې نشي. او د مذي حکم دا دې چه ددې نه روستو اودس کول سره د خصيتينو وينځلونه ضروري دي.

**۱۳ – وَعَنْهُ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُوْرُ ، وَ تَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ وَتَحْلِيْلُهَا التَّسْلِيْمُ ).رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.**

**۱٤ – وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهُ عَنْهُ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ.**

**ترجمه** : او د علىؓ نه روايت دے دا فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د مونځ قنجي اودس دے، او د مونځ تحريم تکبير دے (يعني الله اکبر وئيل دي) او د مونځ تحليل سلام ګرځول دي. (أبوداود، ترمذي، دارمي). او ابن ماجه دا حديث د علىؓ او أبو سعيدؓ نه روايت کړيدے.

**تشريح** : وَ تَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ : دا مصدر مبنى للفاعل دے په معنىٰ د مُحَرِّمُ سره يعني حرامونکے شے حلال څيزونو لره تکبير دے، او حلالونکے څيز حرامو څيزونو لره په مانځه کښې سلام ګرځول دي، په مانځه کښې داخليدلو دپاره چه کوم شے وضع شوے دے هغے ته تکبير تحريمه وائي دا ځکه چه په مُصلِّي باندے ددے تکبير په وجه اکل او شرب اوباقي څيزونه چه د مانځه نه بهر حلال دي حراميږي.

دلته يو اختلاف دے خو ليکن مخکښے داخبره اوپيژنه چه اختلاف دوه قسمه دے :

(۱) اختلاف علمي (۲) اختلاف عملي . علمي هغه اختلاف دے چه هيڅا عمل پرے نه وي کړے، بلکه ټول په عمل کښے متفق وي، ليکن اختلاف صرف په زعم او اعتقاد کښے وي.

(۲) او عملي هغه دے چه دواړه فريقين جدا جدا عمل کوي، سره د جدااوالي د عقيدے نه.

نودلته دا راتلونکے اختلاف علمي دے، عملي نه دے، عمل کښے ټول متفق دي.

اختلاف دادے چه په مانځه کښے په :

## كومو الفاظو سره شروع كول جواز لري ؟

**١** - نو د امام ابو حنيفةؒ او محمدؒ مذهب دادے چه په هر هغه لفظ باندے شروع كولے شي چه هغه دال وي په تعظيم د الله باندے او شريك د الله سره په كښے نه وي، يعنے الله پورے خاص وي.

او استدلال كوي په آيت د ﴿ وَذَكَرَاسْمَ رَبِّهِ فَصَلّٰى ﴾ باندے. دا ذكر عام دے كه په لفظ د (الٰـه اجل) سره وي اوكه (الله اعظم) يا (الرحمن اعظم) يا الرحمن اكبر او يا لا اله الا اللّٰهُ، ياتَبَارَكَ اللّٰهُ وغيره سره وي. نو په دے آيت سره نفس تكبير فرض دے او په حديث (خبر واحد) سره وجوب د تكبير (الله اكبر وئيلو) ثابت شو . نو كه چا قصداً الله اكبر پريخودلو نو مونځ ئے جائز دے خو بِصِفَةِ النقصان، اوكه نِسْيَانًا ترك شو نو سجده سهو به واجبيږي فقط. ځكه د احنافو په نزد په خبر واحد باندے فرضيت نه ثابتيږي. او د جمهورو علماؤ په نزد په خبر واحد باندے فرضيت ثابتيږي - وهو الراجح كما قدمنا في بحث (انما الأعمال بالنيات : ١/٦٤) فراجعه. او د دوئ په نيز په اللهم اغفرلي سره تكبير صحيح نه دے ځكه چه دے كښے خالص تعظيم نشته بلكه دا تعظيم د طلب الحاجت سره خلط دے.

**٢** - د امام ابو يوسفؒ او امام شافعيؒ په نزد په هغه لفظونو سره جائز دے چه د تكبير مناسب وي، بيا ابو يوسفؒ څلور الفاظ وائي : الله اكبر، الله الأكبر، الله الكبير، الله كبير. ځكه افعل اوفعيل وزن د الله په صفاتو كښ په معنىٰ كښے برابر دي.

**دليل** : استدلال كوي په آيت ﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴾ باندے. اودا حديث دليل دے چه دے كښے تكبير لفظ راغلے دے، نو ما سيوا د لفظ د تكبير نه به جائز نه وي.

او امام شافعيؒ وائي : اللّٰه اكبر، او اللّٰه الأكبر باندے جواز لري نه په نورو الفاظو، ځكه چه دے دويم كښے مبالغه ده په ثناء كښے ځكه چه خبر معرف مفيد د حصر وي په مبتداء كښے.

**٣** - د امام مالكؒ، احمدؒ او عام امت قول دا دے چه صرف په (اَللّٰهُ اكبر) لفظ سره د مانځه شروع كول فرض دي، اوددے نه سيوا په بل لفظ باندے مونځ شروع كول باطل دي. او همدا قول صحيح دے.

(١) **دلیل** : قرآن کریم کښې ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ او ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ﴾ راغلی دی، دا عبادت دے او عبادات مُجْمَلات وی، بیان ته محتاج وی او الله تعالی نبی کریم ﷺ ددے عباداتو د بیان دپاره رالیږلے دے ﴿لتبین للناس﴾ او نبی کریم ﷺ ددے بیان صرف په (الله أکبر) سره عملا هم کړیدے، څکه چه هغه تقریبا دیرش (٣٠) زره مونځونه کړیدی په خپل ژوند مبارك کښې، او په یو مونځ کښې هم دهغه نه دا ثابت نه دی چه هغه د (الله اکبر) لفظ نه علاوه په بل لفظ سره مونځ شروع کړے وی. دغه شان قولا او تعلیما هم. او دصحابه کرامؓ تعامل هم په دے (الله اکبر) سره دے.

او آیت مطلق نه دے، وجه دا ده چه په مطلق باندے چه مخاطب څنګه عمل کوی هغه ورله جائز وی. او په مجمل باندے عمل کول ممنوع وی تردے چه متکلم (نبی ﷺ) دهغے بیان اونه کړی۔

٢ - **دلیل** : دا حدیث الباب دے، چه په دے کښې د تکبیر نه مراد ( الله اکبر ) دے، الف لام په کښې عهدی دی اودا دپاره دحصر دی۔

وَتَحْلِيْلُهَا التَّسْلِيْمُ : سلام ته ئے تحلیل بمعنی مُحَلِّل اووئیلو څکه چه د سلام په وجه کوم څیزونه چه په مانځه کښې حرام وو حلال کړے شو۔ دلته هم مبتداء او خبر معرفے دی مفید د حصر دی یعنے صرف او صرف حرامونکے شے اکبر دے، نه بل څه۔

## په سلام کښې اختلاف

په دے کښې هم اختلاف دے چه د مانځه نه وتل په سلام سره فرض دی که نه ؟۔

١ - د ائمه ثلاثه مذهب دادے چه سلام اړول فرض دی۔

٢ - د امام ابو حنیفهؒ نه مشهور روایت دادے چه خروج بِصُنْعِ الْمُصَلِّیْ فرض دے (کما فی کتب الفقه)، یعنے دمانځه نه په یو کار کولو سره وتل فرض وی، او دده په نیز لفظ د سلام فرض نه دے، بلکه واجب درجه کښې ئے ګڼړی. او دا خروج بصنع المصلی څکه فرض ګڼړی چه که ته همیشه په مانځه کښې ناست ئے او څان نه فارغوے نو په پتا باندے د بل فرض مونځ وخت راځی او هغه اداء کول به واجب وی او هغه به هله اداء کیږی چه ددے مانځه نه خو څان اوباسے نو دا خروج څکه فرض دے۔

★ **اول دليل** : اخبار آحاد ظني الثبوت او قطعي الدلالة دي نو کوم احاديثو کښې چه لفظ د سلام راغلې دے نو په هغې سره فرضيت نه راځي (عندهم) نوکه په هر څه سره اوځي، وتلې شي او مونځ به دے جائز وي، او سلام لفظ وئيل واجب دي۔ ليکن تحقيقي قول دادے چه اخبارو آحادو باندے فرضيت ثابتيږي و هو قول الجمهور۔ وقد مر هذا البحث في اول الکتاب۔

★ **دويم دليل** : حديث دابوداؤد (١٤٦/١) باب التشهد کښې دابن مسعودؓ نه نقل دي قال : اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتك، وان شئت ان تقوم فقم وان شئت ان تقعد فاقعد۔

طريقه د استدلال داده : چه دلته نبي ﷺ ابن مسعودؓ ته اوفرمائيل : چه کله تشهد اولولے، ستا مونځ پوره شو، نو د تشهد لوستلو نه پس ستا اختيار دے که پاڅيږے اوکه کينې۔ يعنې لفظ د سلام نه دے ذکر کړے نو بغير د سلام نه هم مونځ پوره دے۔

**جواب** : ١- په دے روايت کښې صحيح خبره داده چه دا د ابن مسعودؓ قول دے خپل شاګرد علقمه ته، يعنې موقوف حديث دے، لکه چه دا خبره امام زيلعيؒ په نصب الرايه (٤٢٤/١) کښې تفصيلا کړيده چه دا قول د نبي ﷺ نه دے . بلکه دا مدرج روايت دے، شبابه بن سوار راوي دخپل استاذ زهير بن معاويه نه دا روايت نقل کړيدے اوهغه دا کلام د ابن مسعودؓ ګرځولے دے، او د زهير نورو شاګردانو دا قول د نبي ﷺ ګرځولے دے . ليکن قول د شبابه ډير قوي دے چه دا قول د ابن مسعودؓ دے، نه د نبي ﷺ . اودا قول ابن حبان هم غوره کړيدے، اوردئے کړے په هغه چا چه وائي دا قول د نبي ﷺ دے۔

٢ – **جواب** : که اومنو چه دا حديث د نبي ﷺ دے نوپه دے حديث کښې دي (وان شئت فقم وان شئت فاقعد) يعنې دتشهد نه پس که پاڅيږے اوکه کينې دواړو کښې اختيار دے . حالانکه داچه تاسو احناف هم دا وايئ چه څوك قصدا پاڅيدو نو مونځ ئے باطل دے، اوکه ، سهوا پاڅيدو نو سجده سهوه به کوي (کما في حاشية شرح الوقاية : ١٦١/١)۔

نو تاسو هم په پوره حديث عمل اونه کړو ځکه حديث کښې خو اختيار ورکړے شويدے په قعود او قيام کښې، او تاسو اختيار نه منئ ، فما هو جوابکم فهو جوابنا .

۳ -- **جواب** : دا حدیث دلیل نه دے په عدم فرضیت دسلام باندے، ځکه چه د ټولو اهل علمو په دے باندے اتفاق دے چه کله انسان تشهد اووائی نو مونځ ئے نه دے کامل شوے تردے چه صلاه (درود) په نبی کریم ﷺ باندے اونه وائی او دعاء اونه کړی او سلام اونه ګرځوی،نو خامخا د (تَمَّتْ صَلَاتُكَ) معنی به دا وی چه (قَارَبَتِ التَّمَامَ) یعنے تمامیدو ته نږدے شو، او بالفعل تام نه دے ځکه چه تاسو هم درود او سلام وئیل واجب ګڼړئ! حال دا چه درود اوسلام او دعاء خو لا نه دی اداء شوی! نو بیا څنګه دمذکوره حدیث نه استدلال کوئ؟ نو ګویا په اجماع د فریقینو دا تاویل متعین دے۔

٤ - یا د دغه مذکوره حدیث توجیه دا ده چه (ان شئت فقم) نه مراد دادے چه د سلام ګرځولو نه روسته تاله اختیار دے که په خپل ځائے کینے اوکه پاځیږے، لکه چه دا د نورو روایاتو نه معلومیږی۔

٥ - **جواب** : دا حکم منسوخ دے، دا په هغه وخت کښے وو چه کله سلام نه ؤ فرض شوے، لکه : السنن الکبری (۱/۱۷٦) او نیل الأوطار (۲/۳٤٤) کښے ذکر دی چه نبی کریم ﷺ به ابتداء کښے کله چه د تشهد نه فارغ شو نو خلقو ته به ئے مخ راګرځولو، بیا روسته د سلام ګرځولو حکم نازل شو۔

٦ - **جواب** : دا حدیث ضعیف دے۔ وجه د ضعف امام بیهقی په الخلافیات کښے داسے بیان کړیده چه دا روایت کالشاذ ( د شاذ پشان ) دے ځکه چه د حسن بن الحر اکثر شاګردانو دا زیادت نه دے ذکر کړے نه په قول د ابن مسعود کښے او نه ئے مدرج ګرځولے دے په قول د نبی علیه السلام کښے بلکه دا زیادت صرف عبد الرحمن بن ثابت عن الحسن ذکر کړیدے او دا ئے قول د ابن مسعود ګرځولے دے او زهیر بن معاویه عن الحسن په آخر د حدیث کښے مدرج ګرځولے دے لکه د هغه اکثرو شاګردانو دا اقرار کړیدے۔ لکه چه دارقطنی ذکر کړیدی۔ بلکه د ابن مسعود نه ددے زیادت مخالف روایت امام بیهقی د ابی الاحوص عن ابن مسعود په سند ذکر کړیدے د هغے الفاظ داسے دی : مفتاح الصلوة التکبیر وانقضائها التسلیم اذا سلم الامام فقم ان شئت. قال وهذا الاثر صحیح عن ابن مسعود ۔ یعنی مونځ به هله پوره کیږی چه سلام اوګرځوے او کله چه امام سلام

اوګرځولو نو که ډېر خوښه وی نو پاڅه۔ په سلام باندې ستا او د امام تعلق ختم شو۔
علامه ابن حزمؒ فرمائی : د ابن مسعود نه صحیح ثابت دی چه سلام فرض دے۔ انظر لتفصیل ذلك نیل الاوطار (٣٤٤/٢)۔
نو کله چه ابن مسعود په فرضیت د سلام قائل شو نو د احناف د اصولو مطابق کله چه د یو راوی روایت د هغه د رأی مخالف وی نو روایت باندې به ئې عمل نشی کیدے نو احنافو له پکار دی چه په دے اصولو عمل اوکړی۔
دا وجه ده چه شان انور شاهؒ او ابن الهمامؒ وئیلی دی چه دا قول د امام ابو حنیفةؒ نه نه دے ثابت، بلکه دا د ابو سعید البردعی قول دے، استنباط ئې کړیدے د بعضې مسائلو نه۔ دے وجې نه در مختار کښې دی : (ومنها) ای ومن الفرائض الخروج بصنعه فرضا غیر منصوص عن الامام،واستنبطه البردعی الخ. انظر اعلاء السنن : ١٧٥/٢). وكذا بذل المجهود : ١٥٥/١)۔
نو امام ابو حنیفةؒ هم په فرضیت د لفظ سلام باندې قائل دے، لکه تنظیم الأشتات (٦٣٠/١) کښې اوګوره. اوشرح السنه کښې هم دا خبره ده چه دا قول د امام نه دے بلکه هغه هم په فرضیت باندې قائل دے. نو د دے نه بیا دا فائده معلومه شوه چه امام ابو حنیفةؒ هم په اخبار آحادو باندې فرضیت ثابتوی لکه د جمهورو پشان۔ او د فقهاؤ خبره د خپل صاحب مذهب نه مخالف شوه۔

### په فرضیت دسلام باندې د جمهورو دلائل :

جمهور علماؤ دپاره دسلام په فرضیت باندې ډیر دلائل دی، نوکه چا خروج د مانځه نه په لفظ دسلام سره اونه کړو نو د ده مونځ فاسد اوباطل دے، ځکه چه ده رکن د مانځه پریخودلو بعضې دلائل دادی :
**١ – دلیل** : عن علی – رضی الله عنه – قال : قال رسول الله ﷺ : مفتاح الصلاة الطهور، وتحریمها التکبیر وتحلیلها التسلیم (اخرجه ابوداود : ١٥٠/١، والترمذی : ١٥/١).
دا حدیث دارمی هم نقل کړیدے په اسناد صحیح سره، ابن حجر ورته په فتح الباری (٢٦٧/٢) کښې صحیح وئیلې دے۔

نـو دلته نبي كريم ﷺ مانځه دپاره حلالونكے شے صرف سلام گرځولے دے نه بل شے. دا دليل دے چه دا ركن دے۔

**٢ - دليل** : عـن عـائشة - رضي الله عنها - قالت : كان رسول الله ﷺ يستفتح الصلاة بالتكبير والقرائة بالحمد لله. (وفيه) وكانْ يختم الصلاة بالتسليم.

(رواه مسلم : ١/١٩٤، وهو في المشكاة : ١/٧٥)۔

او نبي ﷺ فرمائي : (صلوا كما رأيتموني اصلي) نـو امر د نبي كريم ﷺ دپاره د وجوب او فرضيت دے ځكه چه نبي ﷺ يوه ورځ هم چه يو مونځ هم بغير دسلام نه نه دے ختم كړے، معلومه شوه چه سلام ركن دے۔

**٣ - دليل** : ابـو نـعيـم الأصبهـانى پـه خپـل كتـاب كښے د عبد الله بن مسعودؓ نـه موقوف روايت نقل كړيدے چه (مفتاح الصلاة الطهور، وانقضاؤها التسليم، واسناده صحيح وتقدم مثله برواية البيهقي ايضا).

نـو د ابن مسعودؓ په نزد هم سلام ركن دے د مانځه، هغه ابن مسعودؓ چه احناف دعوىٰ لري چه ده زمونږ فـقـه حـنـفي كړلے ده، نو دوئ د هغه نه هم خلاف كوي ، وجه داده چه دكركيلے خبره بے بنياده ده۔

**٤ - دليل** : صحيح مسلم (١/١٨١) كښے دجابرؓ طويل مرفوع حديث كښے دی انمايكفي احدكم ان يضع يده على فخذه، ثم يسلم على أخيه من على يمينه وشماله۔

نـو پـه دے حـديـث كښے هم داخبره ده چه د مانځه نه وتلو كښے صرف سلام كافي دے، بل شے نه كافي كيږي. ځكه (انما) دحصر دپاره دے.

**٥ - دليل** : رسـول الـلـه ﷺ او تـول صحابه كرامؓ او تابعينؒ نه مداومت نقل دے په لـفظ د سلام بـانـدے، او هيـڅ يـو صحيـح حديث كښے دا نشته چه نبي يا صحابي بغير د سلام نـه پـه بـل څـه سره خروج د مانځه نه كړے وي. نو دا يو لويه قرينه ده چه سلام ركن دے، بغير د سلام نه د مونځ نه خارجيدل باطل دی ۔

(كذا في فتاوى الدين الخالص : ٤/٤٢٠)۔

**لطيفه** : علامه كمال الدين الدميري يوه قصه نقل كړيده هغه وائي :

ذكر ابن خلكان في ترجمة سلطان محمود الغزنوى، عن امام الحرمين عبد الملك بن الشيخ ابى محمد الجويني ان السلطان المذكور كان حنفى المذهب، وكان مولعاً بعلم الحديث وكان يسمع عنده الحديث وكان يسئل عن معناه فيجد اكثره موافقاً لمذهب الامام الشافعيؒ فجمع فقهاء المذهبين والتمس منهما الكلام فى ترجيح احد المذهبين فوقع الاتفاق على ان يصلى بين يديه ركعتين على مذهب الامام الشافعى ثم على مذهب الامام ابى حنيفة ركعتان، فينظر السلطان الى ذلك ويختار الاحسن – فصلى القفال المروزى (الفقيه الشافعى توفى سنة ٤١٧) بطهارة سابغة وشرائط معتبرة من الطهارة والسترة واستقبال القبلة، واتى بالاركان والهيئات والسنن والابعاض والآداب على وجه الكمال وكانت صلاة لايجوز الشافعى دونها – ثم صلى ركعتين على مايجوز ابو حنيفة، فلبس جلد كلب كان مدبوغا ولطخ ربعه بالنجاسة وتوضا بنبيذ التمر وكان ذلك فى صميم الصيف، فاجتمع عليه الذبان والبعوض وكان وضوئه منكسرا، ثم استقبل القبلة واحرم بالصلاة من غير نية فى الوضوء وكبر بالفارسية، ثم قرأ بها دوبرك سبز، ثم نقر كنقر الديك من غير فصل بينهما، ومن غير طمانينة وتشهد وضرط فى آخرهما وخرج من غير نية السلام، وقال ايها السلطان ! هذه صلاة ابى حنيفة، فقال السلطان : لولم تكن هذه صلاة ابى حنيفة، لقتلتك، لان مثل هذه الصلاة لا يجوزها ذو دين، فانكر الحنفية ان تكون هذه الصلاة جائزة عند ابى حنيفة، فطلب القفال كتب ابى حنيفة فامر السلطان باحضارها وامر نصرانيا ان يقرأ كتب المذهبين جميعا، فوجدت الصلاة التى صلاها القفال جائزة عند ابى حنيفة، فاعرض السلطان عن مذهب ابى حنيفة وتحول شافعياوتوفى السلطان بغزنة سنة (٤٢٢هـ) اثنتين وعشرين واربع مائة، وتفسير دوبرگ : ورقتان خضراوتان وهو معنى قوله تعالى : مدهامتان.

(حيوة الحيوان (٣٥٢/٢) للدميرى المتوفى (٨٠٨هـ)، سير اعلام النبلاء (٤٨٦/١٧)، للامام الذهبى رحمه الله۔

**ترجمه** : ابن خلكان د سلطان محمود غزنوى په سوانحو كښې دامام حرمين عبد الملك بن الشيخ ابى محمد عبد الله الجوينى نه يوه قصه نقل كړېده دے وائى : سلطان محمود غزنوى حنفى مذهب والا وو، خو د علم الحديث سره ئې مينه وه، اود امام جوينى

نه به ئې حدیث اوریدل اودهغې د معنی تپوس به ئې ترې کولو، سلطان محمود به اکثر احادیث د امام شافعي د مذهب سره موافق بیا موندل، نو د شافعي اوحنفي دواړو مذهبونو فقهاء ئې راجمع کړل اود دواړو نه ئې دخپل خپل مذهب د ترجیح پوښتنه وکړه، نو د دوئ په دې اتفاق راغې چه د هر مذهب په هغه طریقه چه صرف مونځ پرې جائز وي دوه رکعته مونځ به کوي، اوسلطان محمود غزنوی به ئې ګوري اوبیا به په دې دواړو طریقو کښې چه کوم مونځ ښه وي هغه به اختیاروي (چه دچا جوازي مونځ دحدیث موافق دې) نو علامه قفالؒ المروزي د امام شافعي په مذهب دوه رکعته مونځ وکړو، خو اول ئې اودس په پوره شرطونو باندې چه کوم معتبر دي په اودس کښې اوبغیر د هغې نه مونځ نه کیږي – وکړو، بیا ئې سُتره مخې ته کیښودله اومخ ئې قبلې ته وګرځولو اوپه مونځ کښې ئې پوره ارکان اوهغه واجبات چه بغیر د هغې نه مونځ نه کیږي اداء کړل، خلاصه داچه داسې مونځ ئې اوکړو چه دامام شافعي د مذهب د اصولو مطابق د دغه مونځ نه علاوه بل قسم مونځ نه کیږي – بیا ئې نور دوه رکعته داسې وکړل کوم چه د امام ابو حنیفه په مذهب کښې دغه قسم مونځ جواز لري، نو اول ئې دسپې څرمن چه رنګ کړې شوې وه واغوستله، اوڅلورمه حصه ئې ورله په ګندګئ باندې ګنده کړله (ځکه احناف وائي چه څلورمه حصه دجامې پاکه وي، نو مونځ کیږي) او اودس ئې دکجورو په شربت اوکړو (ځکه چه دوي داجائز ګنړي) اودا واقعه په موسم داوړي کښې چه ګرمي وه پیښه شوه نو (چونکه په شربت باندې ئې اودس کړې وو نو ) مچان اوماشي پرې راټول شو او اودس ئې هم سرچپه وکړو، (یعنې اول ئې خپې بیائې مسح د سر اوبیائې لاسونه اوبیا ئې مخ ووینځلو) بیا مخ په قبله شو اومونځ ئې شروع کړو، په غیر د نیت نه په اودس کښې (ځکه دوي په اوداسه کښې نیت ضروري نه ګنړي) اوتکبیر ئې په فارسئ ژبه کښې اووئیلو (یعنې خدا بزرګ است) بیائې د (مدهامتان) ترجمه اووئیله چه دوبرګ سبز (یعنې دوه شنې پاڼې) بیائې دچرګ د ټونګو په شان یو څو ټونګې اووهلې ( چه قومه اوجلسه ئې معلومه نه وه) اوتشهد ئې ووئیلو، اوپه آخره کښې ئې په مانځه کښې دننه باد واچول (ځکه احناف خروج بصنع المصلي ته فرض وائي) او د مونځ نه فارغ شو، په غیر د سلام نه (یعنې سلام ئې وانه ړولو

دغسې پاڅیدلو) بیا ورته دغه قفال شاشي اووئیل : اې بادشاه ! دا د ابو حنیفه مونځ دې !
سلطان محمود غزنوی ؒ ووئیل : که دا مونځ د ابو حنیفه نه وی نو بیا به دې قتل کړم، ځکه دا قسم مونځ خو دیندار ه سړې جائز نه گنړی، یعنې که چا کښې لږ غوندې هم دین وی نو دا به جائز ونه گنړی، نو احنافو د دې مونځ نه انکار اوکړو چه دغه مذکوره مونځ زمونږ د مذهب مونځ نه دې، اود ابو حنیفه په نیز دا مونځ جائز نه دې، نو قفال شاشی د ابو حنیفه د مذهب کتابونه راوغوښتل، نو بادشاه امر وکړو په حاضرولو دکتابونو، اویو نصرانی مُلا ته ئې امر وکړو چه د دواړو مذهبونو کتابونه وګوری، نو دغه نصرانی کتابونه ولوستل نو دغه (ناوړه مونځ) د ابو حنیفه په نیز جائز وختلو، نو سلطان محمود غزنوی د مذهب حنفی نه شافعی مذهب ته نقل شو، سلطان محمود غزنوی په سنه (٤٢٢ هـ) کښې وفات شویدې، اوتفسیر د دو برګ سبز ، دوه شنې پاڼړی دی اودا معنې ددې قول د الله تعالی ده : مدهامتان۔

**درجة الحدیث** : رواه الترمذی (۱/ ٢٤) بسند حسن صحیح، کذا فی صحیح الترمذی للألبانی)۔

**١٥ – وَعَنْ عَلِیِّ بْنِ طَلْقٍ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِذَا فَسَا أَحَدُکُمْ، فَلْیَتَوَضَّأْ، وَلَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِیْ أَعْجَازِهِنَّ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ وَأَبُوْدَاوُدَ .**

**ترجمه** : اود علی بن طلق ؓ نه روایت دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : هرکله چه تاسو کښې څوك بې اودسه شی (یعنې بغیر د آواز نه هوا ترې خارجه شی) نو هغه دې اودس اوکړی، او تاسو ښځو ته دهغوئ په شا طرف کښې راتګ مه کوئ (یعنې دُبر کښې ورسره جماع مه کوئ ۔ (ترمذی ، ابوداود)۔

**تعارف** د علی بن طلق : دا صحابی دې (۳) احادیث ترې نقل دی، دلته صحیح نسخه داده چه علی بن طلق دې او بعضو نسخو کښې طلق بن علی دې لیکن هغه صحیح نه ده ځکه علی بن طلق دطلق بن علی پلار دې، اوطلق ئې ځوئې دې نو دعلی پلار طلق دې او علی ئې نیکه دې نسب ئې داسې دې : علی بن طلق بن علی۔

**تشریح** : فَسَا : د ماضی صیغه ده، فسوّ او فسیائې مصدر دې هغه هواء ته وائی

چه بغير د آوازه د انسان نه اوځي۔ ددې په وتلو سره اودس ماتيږي، لږه وی که ډيره، قصداً وی که په هيره۔

**وَلَا تَـأْتُوا النِّسَاءَ فِيُ أَعُجَازِهِنَّ** : ددې دواړو جملو مناسبت واضح دے هغه دا چه هواء هم په شا باندے خارجيږی نو لکه څنګه چه دچانه هواء خارجه شوه او بيا همدغسے الله تعالیٰ ته پے اودسه اودريږی نو داډير لوئی مجرم دے نو دغه شان څوك چه خپل اهل (بی بی) ته په شا طرف کښے راتګ کوی نو دا هم لوئی مجرم دے، دواړه ګناهونه دی د يو ځائے، څکه نبی ﷺ دواړه جمع کړيدی۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذی فی الرضاع من أبواب النكاح من طريقين حسن احدهما، ولم يحكم بالطريق الأخرىٰ بشيء، ولكن ضعفه الألبانی فی ضعيف الترمذی (١/٣٦) (١١٨٠) وضعيف سنن أبی داود وقال فی تعليق المشكاة : قال الترمذی : حديث حسن، ويشهد له حديث مسلم : اذا وجد أحدكم فی بطنه شيئاً - الحديث السابع من هذا الباب - وقد نقل المنذری تحسين الترمذی وأقره. وصحح الالبانی الشطر الثانی منه فی ضعيف الترمذی رقم (١١٨١) وفی اسناده عبد الملك بن مسلم بن سلام عن ابيه، وهو ثقة وابوه مقبول، كما فی التقريب، فلا ينحط عن درجة الحسن ان شاء الله، لا سيما وشواهده كثيرة.

---

**١٦ - وَعَنُ مُعَاوِيَةَ بُنِ أَبِيُ سُفُيَانَ رَضِيَ اللهُ عَنُهُمَا : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ : ( اِنَّمَا الُعَيُنَانِ وِكَاءُ السَّهِ، فَإِذَا نَامَتِ الُعَيُنُ اسُتَطُلَقَ الُوِكَاءُ ). رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.**

**ترجمه** : او معاويه بن أبی سفيان ؓ نه روايت دے چه نبی ﷺ اوفرمائيل : سترګے د کوناتو سربند (اومزے) دے، کله چه سترګے اودے شی نو سربند پرانستے شی۔

**تعارف : د معاويه بن ابی سفيان** رضی الله عنهما :

دده پلار ابو سفيان صخر بن حرب الأموی القرشی مشهور صحابی دے د عام الفيل نه لس کاله مخکښے پيدا شوے دے د جاهليت په زمانه کښے د اشرافو د قريشو نه وو، او په غزوه احد کښے د مشرکانو رئيس وو، او په خندق کښے هم د احزاب رئيس وو، په زمانه د فتح مکه کښے ئے ايمان راوړو او حنين او طائف غزاګانو ته حاضر شويدے۔ نبی ﷺ ورته

د حُنين په غنيمتونو کښې سل اوښان او څلوېښت اوقيه د مؤلفة القلوب په مناسبت ورکړې وو، او په جنګ طائف کښې ئې سترګه ړنده شوې وه، په سنه (۳۲ هـ) کښې وفات شويدې. او معاويه هغه چالاك هوښيار جليل القدرصحابي دے چه علماء فرمائي په صحابو کښې په امورو د سياست باندے ښه پوهيدونکو کښې يو معاويه او عمرو بن العاص او مغيره بن شعبه دے.

**تشريح** : مطلب د حديث دادے چه کله انسان ويښ وي نو د هغه په مقعد باندے يو بند لګيدلے وي چه د هغے په وجه هواء نه خارجيږي بلکه په کنټرول کښې وي، اوکه اوځي نو انسان ته د هغے احساس کيږي. خو کله چه اوده شي نو څونکه هغه بے اختياره شي او اندامونه اوجوړونه سست شي نو د هواء د وتلو احتمال وي چه انسان ته يقيني طور سره د هغے احساس نه کيږي چه دده نه څه خارج شو، په دے وجه خوب ته ناقض د اودس وئيلے شويدے.

وِكَاءُ السَّهِ : وکاء بکسر الواو، پړي او مزي ته وائي چه په هغے سره د بوجئ، کسوړے خوله تړلے شي. او (سه) بفتح السين وتخفيف الهاء دُبر ته وائي، يا د دُبر حلقے ته وائي. السَّهُ په اصل کښ السته تاء په کښې حذف شوه جمع ئې اَسْتَاهٌ راځي او تصغيرئې سُتَيْهٌ دے په . په دے حديث کښې نبي ﷺ د سترګے ويښ کيدل د کناتو دپاره داسے اوګرځول لکه مزے د بوجئ دپاره، نو لکه څنګه چه بوجئ په مزي تړلے شوې وي نو هغه د مالك په اختيار کښې وي، دغه شان کناتي چه تر څو پورے د سترګو په ويښ والي باندے محفوظ وي نو د انسان په اختيارکښې وي.

نو حاصل د معنیٰ دادے چه ويښ والے د دُبر مزے دے، يعنے د دُبر حفاظت کوي د هواء د وتلو نه څکه انسان چه ترڅو ويښ وي نو د څه څيز په وتلو پو هيږي. فتدبر.

مسئله په کښې داده چه (۱) خوب سره اودس ماتيږي (۲) خوب نجس نه دے ليکن دا مظنه دخروج النجاسة ده، نو دا قائم مقام دنجاست دے فله حكم النجاسة.

**درجة الحديث** : رواه الترمذي (١٤٩/١) وأحمد (٩٦/٤) وفي سندهما أبو بكر بن أبي مريم وهو ضعيف لاختلاطه، لكن يشهد له حديث علي الذي بعده، وحديث صفوان بن

عسال الآتي في الفصل الثاني من باب المسح على الخفين، فانه يشمل باطلاقه كل نوم سواء كان قاعداً او قائماً (تعليق المشكاة ص ١٠٣) فالحديث صحيح بمجموع الطرق. و كذا حسنه الالباني في صحيح ابي داود (١/٤١).

١٧ – وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (وِكَاءُ السَّهِ العَيْنَانِ، فَمَنْ نَامَ فَلْيَتَوَضَّأْ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ. وَقَالَ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا فِيْ غَيْرِ الْقَاعِدِ.

١٨ – لِمَا صَحَّ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ يَنْتَظِرُوْنَ الْعِشَاءَ حَتّٰى تَخْفِقَ رُؤُوْسُهُمْ ثُمَّ يُصَلُّوْنَ وَلَا يَتَوَضَّؤُوْنَ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ (بِاسْنَادٍ صَحِيْحٍ) وَالتِّرْمِذِيُّ إِلَّا أَنَّهُ ذَكَرَ فِيْهِ : يَنَامُوْنَ، بَدَلَ يَنْتَظِرُوْنَ الْعِشَاءَ حَتّٰى تَخْفِقَ رُؤُوْسُهُمْ.

**ترجمه** : او د علي رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د كوناتو تسمه سترګے دي نو څوك چه اوده شو هغه دے اودس اوكړي ـ (ابوداود)ـ امام محيي السنة رحمه الله فرمائي : دا حكم هغه سړي دپاره دے چه ناست نه وي ځكه چه د أنس رضي الله عنه نه صحيح طور سره ثابت دي چه هغه فرمائيلي دي : د نبي كريم ﷺ ملګري به د ماسخوتن مانځه په انتظار ناست وو تردے چه دخوب په وجه به ئے سرونه ښكته شو ـ دے حالت كښے به هغوئ مونځ كولو او اودس به ئے نه كولو ـ (أبوداود، ترمذي)ـ خو ترمذي خپل روايت كښے د (ينتظرون العشاء حتى تخفق رؤسهم) په ځائے لفظ (ينامون) ذكر كړيدے ـ

**تشريح** : وَقَالَ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : اوس تاويل كوي دپاره د تطبيق ددوه روايتونو اودا تاويل مصنف دامام شافعي رحمه الله دقول مطابق كوي، چه په ناسته باندے خوب كول اودس نه ماتوي، او بل حديث په عامو حالاتو باندے حمل دے . ليكن دا تاويل دده صحيح نه دے، ځكه دغه حديث كښے لفظ د (ينتظرون العشاء) دے اودا نه معلوميږي چه په ناسته به اوده كيدل بلكه كيدے شي په تكيه ياپه ملاسته باندے انتظار كړے وي نو دغه تطبيق صحيح نشو، دا وجه ده علامه الباني رحمه الله فرمائي : د انس رضي الله عنه دا حديث په قاعد باندے په حمل كولو كښے نظر دے ځكه په روايت د احمد (في مسائل ابي داود

عنه) کښې داسې الفاظ دی (انهم کانوا ینامون مضطجعین) وسنده صحیح کما ذکره فی صحیح ابی داود رقم (۱۹۶) وصححه الحافظ۔

نو بهتره داده چه دا حمل دې په ابتداء د اسلام چه هغه وخت کښې خوب ناقض د اودس نه وو (تعلیق المشکاه: ۱/۱۰۴)۔

**درجة الحدیث** : رواه أبوداود وسکت عنه وهو حدیث صحیح، وحسّن سنده المنذری وابن الصلاح والنووی والألبانی فی صحیح سنن أبی داود (۱/۴۱) وتعلیق المشکاة (۱/۱۰۳) والمرعاة (۲/۳۱) وفی سنده بقیة بن الولید، قال الحافظ: صدوق سیئ الحفظ، ووثقه عبد الرحمن بن إبراهیم وابن معین وأحمد، وقال ابن عدی: لم أر بحدیثه بأساً، فهو حدیث حسن أو صحیح لغیره.

**۱۹ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: (إِنَّ الْوُضُوْءَ عَلٰی مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا، فَإِنَّهُ إِذَا اضْطَجَعَ اِسْتَرَخَتْ مَفَاصِلُهُ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : او ابن عباس ؓ فرمائی: رسول الله ﷺ اوفرمائیل: اودس په هغه چا لازم دے چه په اړخ باندے اوده شی، ځکه چه وخت انسان څملی نو د هغه د بدن جوړونه سست شی۔ (ترمذی، ابوداود)۔

**درجة الحدیث** : حدیث ابن عباس رواه ابوداود والترمذی واسناد الحدیث ضعیف. په دے کښې یزید بن عبد الرحمن ابی خالد الدالانی راوی دے چه امام بخاری، ترمذی په العلل المفرد کښې او احمد بن حنبل او دارقطنی او منذری، بیهقی او ابوداود اوبغوی ورته ضعیف وئیلے دے. قال ابوداود: قوله الوضوء علی من نام مضطجعا هو حدیث منکر.

وضعفه الالبانی فی ضعیف سنن ابی داود: ۱/۱۸، رقم: ۱۶، وقال: ان الدالانی اخطأ فی متن الحدیث۔ زیات تفصیل په المرعاه (۲/۳۳) باندے اوګوره۔

## مسئلة نقض الوضوء بالنوم

په نوم کښې مجموعی طور سره درې مذاهب دی چه ټول اقوال په کښې راګیر دی (۱) یو داچه نوم مطلقا اودس نه ماتوی (۲) مطلقا اودس ماتوی (۳) اودس ماتوی خو په

شرطونو باندے، يعنے مقيد خوب اودس ماتوی. بيا په دے مقيد كښے مذاهب دی، څوك شرط دقيام لګوی، څوك تكيه اوڅوك جلوس. لكه ددے تفصيل امام نووی په شرح دمسلم (١٦٣/١) كښے او شوكانیؒ په نيل الاطار (٢٣٩/١) او صاحب د سبل السلام داسے ذكر كړيدے چه ټول آته اقوال دی:

١ - **اول قول** : نوم (خوب) مطلقا اودس نه ماتوی لږ وی كه ډير او په هر حالت كښے چه وی. اودا قول دابو موسیٰ اشعریؒ، سعيد بن المسيبؒ، ابو مجلزؒ، شعبةؒ اوحميد الأعرجؒ او شيعه اماميه دے. دوئ سره دليل نشته سيوا دعمل الصحابه نه، اوددے جواب روستو په حديث سره راځی۔

٢ - **قول ثانی** : النوم ينقض الوُضُوءَ بِكُلِّ حالٍ، وهو الراجح. اودا مذهب د حسن بصریؒ، مزنیؒ، ابو عبيد القاسم بن سلامؒ، اسحق بن راهويةؒ، ابن المنذرؒ او د امام شافعیؒ يو غريب قول هم دے. اودا قول د ابن عباسؓ، انسؓ او ابو هريرةؓ نه هم نقل دے. البته ددے نه نعاس او پركالی مستثنی دی لكه روستو به راشی۔

**تنبيه** : دا قول اګركه د أئمه أربعه ؤ د قول خلاف دے ليكن همدا راجح دے، اودا هم د هغه مسائلو نه دے چه راجحه مسئله ده او أئمه أربعه پرے قائل نه دی، نو دين په ائمه اربعه ؤ كښے راګيرول صحيح خبره نه ده. ورجحه الألبانی فی تعليق المشكاة (١٠٤/١)، وتمام المنة ص (٩٩) فتاوی الدين الخالص (٤٨٣/٢) وهو اختيار الامام البخاری رحمه الله فی صحيحه (١٥٠/١)۔

٣ - **قول ثالث** : كثير خوب ناقض الوضوء دے بكل حال، او قليل خوب غير ناقض دے، اودا قول د امام زهریؒ، ربيعةؒ، اوزاعیؒ، مالكؒ او احمدؒ نه يو روايت دے، ليكن دا مذهب هم قوی نه دے ځكه د لږ او ډير معلومات نشته، نو په فرق باندے دليل نشته، يو انسان به ډير خوب كړے وی واثی به مالږ خوب كړيدے.

٤ - **قول رابع** : كه په يو هيئت د هيئاتو دمونځ كونكی باندے وی لكه راكع، يا ساجد، يا قائم يا قاعد وی نو اودس نه ماتوی، برابره خبره ده كه په مانځه كښے وی يا خارج دمانځه نه. اوكه چرے مضطجع وی يا مُسْتَلْقِيًا په څټ باندے اوده شی نو اودس مات

دی. اودا قول دامام ابو حنیفة، ابن مبارک، احمد، نووی اود داؤد ظاهری او یو غریب قول دامام شافعی دی.

۵ - **قول**: صرف نوم الراکع والساجد ناقض داودس دی. اودا یو قول دامام احمد بن حنبل دی. وجه دا ده چه د رکوع سجدی حالت کښی غالب گمان کیدی شی، چه د انسان نه به څه خارج شوی وی.

٦ - **قول**: نوم الساجد صرف ناقض دی، دا هم یو روایت داحمد دی. وجه دا ده چه په سجده کښی د خروج الریح امکان زیات دی.

۷ - **قول**: نوم په مانځه کښی ناقض نه دی په هر حال کښی چه وی او خارج د مانځه نه ناقض دی. دا یو ضعیف قول دامام شافعی دی. او په البحر الرائق کښی ئے زید بن علی او ابو حنیفه ته منسوب کړیدی.

۸ - **قول**: کله چه په ناسته اوده شی چه په زمکه مضبوط ناست وی، مقعد ئے لګولی وی نو اودس مات نه دی، اوددی نه بغیر ناقض دی، لږ وی که ډیر، خارج الصلاة وی که داخل. اودا قول دامام شافعی دی او صاحب المشکاة هم ذکر کړیدی. ورجحه الشوکانی فی النیل (۱/ ٢٤٠).

په دی اقوالو کښی قول ثانی راجح دی چه خوب مطلقا ناقض دی، د وجی ددی راتلونکو دلائلو نه. بیابه جواب الاشکالات وی:

## دلائل

۱ - **اول دلیل**: حدیث د مسند احمد (٤/ ٢٠٤) والترمذی (۱/ ۳۰) عن صفوان بن عسال فی حدیثه الطویل قال: نعم، کان یأمرنا اذا کنا سفرا او مسافرین ان لا ننزع خفافنا ثلاثة ایام ولیالیهن الا من جنابة، ولکن من غائط وبول ونوم... الحدیث. وهو حدیث صحیح.

نو دا حدیث مطلق دی دلالت کوی په دی چه نوم مطلقا ناقض دی.

۲ - **دلیل**: عن علی – رضی الله عنه – قال: قال رسول الله ﷺ: وکاء السه العینان، فمن نام فلیتوضأ – اخرجه ابو داود: ۱/ ٤۱، وسنده صحیح، کما مر.

په دې حديث کښې امر دے هر نائم ته په اودس کولو باندے، هيڅ قيد په کښې نشته.

**٣ - دليل** : لغت دے، امام خطابیؒ په غريب الحديث (٣٢/٢) کښې ليکلي دي :

وحقيقة النوم هى الغشية الثقيلة التى تهجم على القلب فتقطعه عن معرفة الأمور الظاهرة (والناعس) هو الذى رهقه ثقل فتقطعه عن معرفة الأحوال الباطنة.

نو په نوم کښې دروند والے وی چه انسان ظاهری امورو باندے نه پوهيږی، او په نعاس (پرکالۍ) کښې دومره دروندوالے نه وی، بلکه صرف باطنی امورو باندے انسان نه پوهيږی، زړه بيدار وی.

نو کله چه دا فرق اوشو نو په دے سره ډير اشکالات ختميږی چه نعاس سره اودس نه دے مات او نوم سره مات دے. دا وجه ده امام بخاریؒ باب لګولے :

باب الوضوء من النوم ومن لم ير الوضوء من النعسة والنعستين والخفقة وضوء، آهـ (٣٤/١).

اود صحابه کرامؓ احوال به هم په نعسه (پرکالی– جوته) باندے محمولولے شی او په دے سره جمع د احاديثو راځی، حافظ فرمائی : دا قول د اکثرو علماؤ دے.

اوس **اشکالات** وراندے کيږی :

**١ - اول اشکال** : ابوداود، اونيل الأوطار (٢٣٩/١) د ابن عباسؓ نه مرفوعا درے احاديث نقل دی چه په هغے کښې نوم مقيد سره اودس ناقض بنودل شويدے.

عن ابن عباس ليس على من نام ساجدا وضوء.

**جواب** : درے واړه احاديث ضعيف دی، اګرچه نيل الأوطار کښې ئے ورته صحيح وئيلی دی چه د يو بل تقويت کوی، ليکن هغه روايات ډير ضعيف دی چه د يو بل تقويت نه کوی، شديدة الضعف دی اکثر متروك دی.

**٢ - دويم اشکال** : روايت د ابن عباس کښې دی :

فاذا اضطجع استرخت مفاصله.

دا روايت دليل دے چه په اضطجاع سره استرخاء د مفاصلو (جوړونو) راځی اودا سبب دے د نقض الوضوء په خوب سره، ځکه په دے کښې احتمال د خارجيدو دڅه شی شته دے

لکه چه دا قول دائمه أربعه ؤ دیے.

**جواب**: دا روایت هم ضعیف دیے، رواه الترمذی وابوداود من طریق یزید بن عبد الرحمن ابی خالد الدالانی وهو حدیث منکر کما تراه فی المرعاة (٣٣) ونیل الأوطار (١/٣٣٩). وانکروا سماعه من قتادة۔ وضعفه ابوداود قال ذکرت حدیث یزید الدالانی لاحمد بن حنبل فانتهرنی استعظاما له وقال الترمذی فی العلل المفرد: سألت البخاری عن هذا الحدیث فقال: هذا لا شئ۔ ونحوه فی البیهقی ولکنه ایضا منکر۔

**٣ - دریم اشکال**: (ابوداود: ١/٤٠، او مسلم: ١/١٥٨) کښې صحیح حدیث دیے:

عن انس قال کان اصحاب رسول الله ﷺ ینتظرون العشاء الآخرة حتی تخفق رؤسهم ثم یصلون ولا یتوضؤون.

لکه دا حدیث صاحب المشکاة هم په تطبیق کښې ذکر کړو. نو دیے نه معلومیږی چه په ناسته اوده شویدی او اودس ئے بیا نه دیے کړیے.

**جواب**: دا حدیث صحیح دیے لیکن مجمل دیے، حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری (١/٢٥١) کښې لیکی: دا حدیث مجمل دیے. دغه شان په کشف الأستار عن زوائد البزار (١/١٤٦) کښې ددیے تفصیل داسے شویدیے:

عن انس ان اصحاب رسول الله ﷺ کانوا یضعون جنوبهم فینامون، فمنهم من یتوضأ ومنهم لا یتوضأ.

یعنے صحابه کرامو به ډډه کیخودله نو چا چه به خوب اوکړو نو اودس به ئے کولو، او چا چه به خوب نه وو کړیے نو اودس به ئے نه کولو. نو مخکنی روایت کښې چه راوی انسؓ دیے دصحابو حال بیانوی نو د ټولو حال په دیے طریقه نه وو چه ټول به اوده وو، ځکه چه د ماسخوتن د مانځه په انتظار کښې چه څوک ناست وی نو آیا هغه ټول اوده کیږی؟۔ نه، بعض به اوده وو او بعض به نه وو.

نو دا حدیث تفسیر او بیان شو ددغه مخکنی مجمل حدیث، ځکه چه د دواړو راوی هم یو دیے، او تعارض به هم ختم شی. او په دیے خبره سره د امام بغوی صاحبؒ د تاویل بطلان هم ښکاره شو، فتذکر!۔ دارنګه د امام بغوی تاویل پدیے وجه هم صحیح ندیے چه

په همدے روایت د انس کښے ورسره په روایت د بزار او ابویعلی کښ داسے الفاظ دی : یضعون جنوبهم۔ نو دا په نوم الجالس باندے حمل کول صحیح نشو۔ بلکه صحیح خبره دغه ده چه که په حالت د ناسته یا ډډه لګولو کښے خوب راغلے وی نو اودس مات دے او که هسے ناست وی یا ئے ډډه لګولے وی خوب نه وی نو بیا اودس ندے مات۔
یا جواب دادے چه ددے بعض صحابو عمل په مقابله د نص کښے نه دے مقبول لکه چه مخکښے ددے بیان اوشو، خو لیکن مونږ به ددے صحابه کرامؓ دا عمل په ښه حالت باندے حمل کوو، هغه دا چه دوئ به هم دحدیث موافق عمل کولو چه قائل وو په دے خبره چه نوم مطلقًا ناقض دے نو اودس به ئے کولو.
شیخ البانی رحمه الله په ارواء الغلیل (١/١٤٩ – رقم ١١٤) کښے د دغه صحابو دے قسم عمل په باره کښے داسے فرمائی چه (لاحتمال ان یکون الحدیث کان قبل الایجاب علی البرائة الاصلیة ثم جاء الامر بالوضوء) یعنی دا احتمال شته چه دا په ابتداء د اسلام کښے وو چه په خوب سره اودس نه ماتیدو او بیا حکم راغلو چه چاخوب اوکړو نو اودس به کوی۔
٤ - **اشکال** : نوم خو پخپله نجس نه دے بلکه دا مظنه دخروج د یو شی ده، نو مطلقا څنګه ناقض ګرځی ؟۔
**جواب** : هر نائم ته نبی علیه السلام امرکړیدے چه اودس اوکړه ځکه چه هغه خبر ورکړیدے (انما العینان و کاء السه) (یعنی سترګے پټیدلو سره د دبر خوله سسته شی) نو که تانه څه نه وی خارج شوی لیکن احتمال شته چه ته په ناسته باندے خوزیدلے ئے او ریح درنه خارج شوے وی. فقد ینطلق و کاء السه ولو فی بعض الأحوال . نو دحکمت تقاضا داده چه دے ته مطلقًا حکم اوکړے شی په اودس کولو باندے .
هرکله چه احتمال او شك راغلو نو شریعت امر اوکړو چه مطلقًا خوب نه پس اودس اوکړه اګرچه فی الحال ستانه څه نه وی خارج شوی، نو نفس نوم سبب داودس شو لکه چه نفس سفر قائم مقام د قصر د مانځه دے اګرچه مشقت په سفرکښے نه وی.
**خلاصه** دا چه : نوم سره مطلقًا اودس مات دے. او هرچه نعاس او پرکالی او پریشانی ده

نو دے سره اودس نه ماتيږي، هركله ئے چه زړه بيدار وي، بلكه دا شريعت معاف كړيدے لكه ابن عمرؓ نه په صحيح سند سره نقل دي چه دابه په ناسته اوده كيده او بيا به ئے اودس نه كولو، نو دا صرف نعاس دے چه دا معاف دے. (كما في الموطأ : ١٥/١).

دا وجه ده چه امام بخاريؒ هم دا قول كړيدے چه په عام نوم سره مطلقا اودس مات دے، سيوا د نعسه او نعستين نه،اودا راجح قول دے، په دے سره جمع دټولو احاديثو رائحي. ددے مسئلے تفصيل په : تمام المنة للشيخ الألباني ص : ٩٩، فتاوى الدين الخالص : ٤٨٣/٢، نيل الأوطار : ٢٣٩/١، كښے اوګوره۔

٢٠ - وَعَنْ بُسْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : ( إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ ). رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** : او بى بى بسرهؓ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمايه : تاسو كښے چه كوم سړے خپل ذكر (اندام مخصوصه) له لاس وروړي نو هغه له پكار دي چه اودس اوكړي ۔(مالك، احمد، ابوداود، ترمذى، نسائى،ابن ماجه، دارمى)۔

**درجة الحديث** : رواه مالك وأحمد وأبوداود والترمذى وقال : حديث حسن صحيح، قال الألباني : وهو كما قال وصححه جماعة آخرون، تعليق المشكاة (١٠٤/١) ارواء الغليل (١٥٠/١) وصححه البخارى وابن معين وأحمد والدارقطنى وابن خزيمة وابن حبان وابن السكن والحاكم والبيهقي وابن عبد البر وأبو حامد بن الشرقى والحازمى والنووى والحافظ. وضعفه الطحاوى وحده، وهو مدفوع كما سيأتى . فقوله بلا دليل.

٢١ - وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ : سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَنْ مَسِّ الرَّجُلِ ذَكَرَهُ بَعْدَ مَا يَتَوَضَّأُ، قَالَ : وَهَلْ هُوَ اِلَّا بَضْعَةٌ مِنْهُ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ. وَرَوَى ابْنُ مَاجَه نَحْوَهُ.

**ترجمه** : او طلق بن عليؓ فرمائى : (يو ځل) رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو چه داودس نه پس كه يو سړے خپل ذكر له لاس يوسى (نو ددے څه حكم دے)، وے فرمائيل : هغه هم دسړي دغوښے يو ټكړه ده۔ (أبوداود، ترمذى، نسائى) او ابن ماجه هم دغسے روايت

کېږي۔

**درجة الحديث** : اخرجه ابوداود : ١/٢٤، والترمذى : ١/٢٥، والنسائي : ١/٢٧، وابن ماجه : ١/١٣٥، وهو في المغنى : ١/٢٤١. صححه عمرو بن الفلاس وعلى بن المدينى والطحاوى وابن حبان والطبرانى وابن حزم، وضعفه الشافعي وأبو حاتم وأبوزرعة والدارقطنى والبيهقى وابن الجوزى. وقال الشيخ الألبانى : هذا حديث حديث صحيح ـ صحيح سنن أبى داود : ١/٣٧. وقال العلامة المباركفورى فى المرعاة (٢/٣٧) : والراجح أن حديث طلق هذا لا ينحط عن درجة الحسن، وحديث بسرة أصح وأثبت وأرجح من حديثه.

**بَضْعَةٌ** : قطعه او حصے ته وائي دلته مراد يو اندام دے د اندامونو نه۔

**تشريح** : د بسره بنت صفوانؓ په حديث کښې امر دے په اودس کولو باندے هغه چاته چه خپل ذکر (شرمگاه) له لاس يوسى۔ او په حديث د طلق بن علىؓ کښې د اودس د نه واجب کيدو بيان دے، دے وجے نه دا مسئله هم د نورو مسائلو په شان اختلافى ده د وجے د تعدد د احاديثو نه په طرفينو کښې۔

## ﴿ خُمُود الشَّرَر فى مسئلة مَسّ الذَّكَر ﴾

نو آيا په ذکر يا فرج يا دبر مس کولو اودس ماتيږى اوکه نه ؟ په دے مسئله کښې څو اقوال دى :

**١ - قول اول** : مس الذکر والفرج اودس نه ماتوى مطلقا، اودا قول د على، ابن مسعود، حذيفه، عمران بن حصين، ابو درداء، سعد - رضى الله عنهم - ربيعهؒ، سفيانؒ ثورى، حسن بصرىؒ، ابراهيم نخعىؒ او احنافو دے.

**دليل** : حديث د طلق بن على دے : سئل رسول الله ﷺ عن مس الرجل ذکره بعدما يتوضأ، قال : وهل هو الا بضعة منه ).

دا مرفوع حديث دے او باقى آثار د صحابوؓ پيش کوى چه ابن عباس، ابن مسعود، عمار بن ياسر، حذيفه او عمران بن حصين - رضى الله عنهم - نه نقل دى :

ما أبالى ذکرى مسست فى الصلاة او أذنى أو انفى، کذا فى الطحاوى : ١/٤٧، والمرقات : ١/٣٤١۔

یعنې دوئ فرمائي : زمونږ په نيز پوزه غوږ او ذکر مس کول يو برابر دي په نه ماتولو داودس کښې . او دوئ اعتراضونه کوی په حديث د بسره بنت صفوانؓ باندې کوم چه راروان دي.

## په حديث د بسرةؓ باندې اعتراضات او د هغې جوابات

**١ - اعتراض** : حديث د بسره زنانه نقل کړيدې اودا مس الذکر يو داسې مسئله ده چه عموم البلوئ ده اود سړو ورته ضرورت دې نو پکار ده چه سړي ئې نقل کړي، هرکله چه سړو نقل نه کړه معلوميږي چه دا حديث ثابت نه دې.

١ – **جواب** : دا خبره خطاء ده، ځکه په باب د روايت کښې دسړو او زنانو فرق نشته، که فرق راشي نو ډيره ذخيره داحاديثو به ضائع شي، لکه دا خبره معلومه ده، چه احاديث خو د ډيرو زنانو نه هم نقل دي، اودا قاعده داحنافو شوکاني په ارشاد الفحول ص (٤٩) کښې او ابن حزم په اصول الأحکام (١٢/٢) کښې او ابن قدامه په جنة المناظر (٣٢٧/١) کښې باطله کړې ده.

٢ – **جواب** : دا حديث يوائې بسرةؓ نه دې نقل کړې بلکه د (٢١) صحابوؓ نه نقل دې چه بعض طحاوی (٥٧/١) ذکر کړی دی، اوځينې نيل الأوطار او اکثر په ارواء الغليل (١٥١/١) او ترمذي (٢٥/١، او مسند احمد (٢٢٣/٢) کښې دعمرو بن شعيب په روايت سره ذکر کړی دی. چه هغه صحابه :

ابو ايوب انصاری، جابر، عمر بن الخطاب، ابن عمر، ابن عباس، زيد بن خالد، سعد بن ابی وقاص (فی احدى الروايتين عنه) ابو هريرة، ام حبيبة، عائشة، اروئ بنت انيس، ام سلمة، طلق بن علی، نعمان بن بشير، انس، ابی بن کعب، معاوية بن حيدة او قبيصة وغيره – رضی الله عنهم – دی. او د دوئ روايت حسنه الأسناد دی، کذا فی الارواء (١٥١/١).

بل داچه دا حديث خو د حديث الوضوء بالنبيذ نه ډير مشهور دې، فتفکر. نودا خبره دجاهلانو ده چه دا صرف د زنانه حديث دې، او سړو ددې روايت نه دې کړې، هکذا فی فتاوی الدين الخالص (٣٨٤/٢) وفی التلخيص الحبير (٤٦/١).

**٢ - اعتراض** : دا روايت عروه د مروان نه يا د هغه د شرطي (فوجي) نه نقل کړې او

مروان عادل نه دے، مطعون دے په عدالت کښے دده د فسق د وجے نه او شرطی ئے مجهول الحال دے نو دا روايت قابلِ قبول نه دے.

**جواب** : عروة خپله فرمائی : كان مروان لا يتهم فى الحديث.

يعنے په احاديثو کښے مروان غير متهم دے. دا وجه ده دمروان نه به سهل بن سعد صحابیؓ هم حديث نقل کولو، او امام مالكؒ به هم دده په حديث اعتماد کولو، او امام بخاریؒ هم پرے اعتماد کوی په خپل صحيح کښے، نو دموطأ او د بخاری درجالو نه حساب دے.

بلكه داچه ابن حزمؒ فرمائی : مروان باندے هيڅ دفسق وغيره جرح نشته، مخکښے د خروج نه په ابن الزبيرؓ باندے. او عروةؒ د مروان نه دا حديث مخکښے د خروج نه په ابن الزبيرؓ باندے- نقل کړيدے۔

دغه شان دا ثابته ده چه عروةؒ بلا واسطه د بسرةؓ نه دا حديث نقل کړيدے چه په هغے کښے مروان نشته. لکه دا خبره ابن خزيمه، ابن حبان او حاكم کړيده.

(التلخيص الحبير : ٤٥/١، مستدرك : ١٣٧/١، تعليق الترمذی للشيخ احمد شاكر).

٣ - **اعتراض** : دا حديث په روايت د هشام بن عروةؒ نقل دے او هشام دخپل پلار عروةؒ نه سماع نه ده ثابت، لکه په دے باندے دليل روايت د طبرانی دے.

**جواب** : دا خبره خطاء ده، وجه داده چه روايت داحمد، ترمذی او حاكم صريح دے په دے کښے چه هشام دخپل پلار نه سماع ثابت ده۔ او صحيح بخاری (٢/١) کښے عن هشام عن ابيه عروه سند راغلے دے۔

اوکه بالفرض اومنو، نو بيا هم دا علت هيڅ تاثير نه لری، وجه داده چه دا روايت دهشام نه سيوا نورو ثقاتو هم دعروةؒ نه آوريدلے دے، لکه عبد الله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم، او دده پلار ابو بكر شو. لکه چه دا په روايت دمالك، احمد او ابن الجارود کښے کتلے شی۔

٤ - **اعتراض** : کوم خلق چه مس الذكر ناقض ګڼړی نو هغوئ مضطرب دی په مصداق دحديث د بسرةؓ کښے په ډيرو اقوالو باندے چه شلويښتو ته رسيږی، لکه ابن

العربي په شرح د ترمذی کښې تفصیلا ذکر کړی دی، او د یو روایت په مصداق کښې دومره اختلاف راتلل شبهه پیدا کوی په استدلال کښې په حدیث باندې، ځکه دا دلیل دے چه دا حدیث نه دے ثابت او محمل دحدیث نه دے متعین، نوکه اومنو چه حدیث صحیح دے نو بیا هم مجمل دے مراد ئې ښکاره نه دے ددے علماؤ په نزد، او هرچه د عدم نقض قائلین دی نو هغوئ کښې اختلاف نشته.

**جواب** : معنی دحدیث ښکاره ده او مصداق ئې ظاهر دے، او محمل ئې هم متعین دے دهغه چا دپاره چه متبع سنت وی، اومنصف وی. او ځوك چه متعسف حیله ګر وی داحادیثو صحیحو او سنن ثابته ؤ نو هغه دحدیث دپاره باطل عذرونه ګوری. او خپل مذهب ته ئې راړوی، نو هغوئ لره هیڅ اعتبار نشته. دغه شان هغه اختلاف دمالکیه او شوافعو چه په معنی دحدیث کښې دے هغے لره هم څه اعتبار نشته، ځکه دچا په تفریعاتو اوتاویلاتو سره صریح حدیث نه مجمل کیږی.

٥ - **اعتراض** : دا حدیث (د بسرهٔ) مقید دے په هغه وخت پورے کله چه په مس الذکر سره څه خارج شی نو ناقض دے، اوکه خارج نشی نو غیر ناقض دے.

**جواب** : په دے تقیید باندے هیڅ دلیل په احادیثو کښې نشته، دا خبره مردود ده،دځان نه به احادیثو ته پیوندونه نشی اچولے، داپه نبی ﷺ باندے جرأت کول دی.

٦ - **اعتراض** : دا حدیث د قیاس خلاف دے ځکه چه قیاس تقاضا کوی چه کله نجاست د ذکر یا فرج نه نه وی خارج شوے نو پکار ده چه اودس مات نشی ؟

**جواب** : قیاس په مقابله د نص صریح صحیح کښې باطل دے، او نص صریح صحیح ثابت دے په خلاف دقیاس باندے، او قیاس خو دضرورت په وخت کیږی کله چه نص نه وی، اوکله چه نص موجود وی نو قیاس نص لره نشی رد کولے. اودا خبره به احناف هم منی.

٧ - **اعتراض** : احتمال شته چه مس الذکر کنایه وی د اودس وچولو نه پس د بولو نه نو بول نه په مس الذکر سره کنایه شویده، ځکه ئې حکم داودس کړے دے.

**جواب** : دا احتمال بعید بلکه باطل دے دلیل دبطلان ئې روستو حدیث دابو هریرهٔ دے

(اذا افضیٰ احدکم بیده لیس بینه وبینها شئ الخ).

دغه شان دا احتمال دهیڅ صحابی یا تابعی په زړه کښې هم نه دے تیر شوے او هیچا دا قول نه دے کړے که وے نو نقل شوے به وے بلکه هر عالم په ظاهری معنی باندے حمل کړیدے. دا لانجے روستو په مقلدینو کښې پیدا شوے.

۸ - **اعتراض** : د وضوء نه مراد وضوء لغوی دے یعنی لاس وینځل، وضوء شرعی نه دے مراد، لکه د وضوء قبل الطعام پشان، کما قال الطحاوی، مرقاة (۳۴۱/۱).

**جواب** : الفاظ شرعیه به په حقائق شرعیه ؤ باندے حمل کولے شی،او وضوء په شریعت کښې وضوء عرفی ته وائی. وهو غسل الأعضاء الثلاثة ومسح الرأس. اوکله چه قرینه موجوده وی نو بیا به دمعنی شرعی نه عدول کیږی معنی لغوی ته، او دلته هیڅ دلیل نشته او هیچا دا معنی نه ده اخستے په سلفو کښې.

علاوه لا دا چه دابن عمرؓ نه دارقطنی (۱۴۷/۱) بسند صحیح نقل کړی دی (فلیتوضأ وضوئه للصلاة). یعنی داسے اودس دِ وکړی لکه څنګه ئے چه مانځه دپاره کوی.

تحفة الأحوذی (۸٦/۱) وهکذا عن بسرة فی مجمع الزوائد (۲۴٥/۱).

۹ - **اعتراض** : وضوء شرعی مراد دے لیکن دا حکم دخواصو دپاره استحبابی دے نه دعوامو دپاره.

**جواب** : دلته امر (په حدیث کښې) دپاره دوجوب دے ځکه چه امر مطلق للوجوب وی عند الجمهور، کله چه قرینه صارفه عن الوجوب نه وی. او په حدیث دابو هریرةؓ کښې ددے رد دے لکه په مسند احمد (۳۳۰/۲) کښې دی : (من افضیٰ بیده الی ذکره فقد وجب علیه الوضوء) صححه الحاکم وابن حبان وابن السکن. نو په دے حکم کښې عوام اوخواص تول یو شان شریک دی، مَن لفظ تولو ته شامل دے.

نوپه دے حدیث کښې صفا د وجوب لفظ ذکر دے.

بیا هرکله چه دوئ اودس مستحب ګڼړی نو د خواصو او عوامو فرق دکوم ځائے نه ثابتوی ؟.

اوهرچه داخبره کوی چه بیا خو ذکر د فخذ (پتون) نه هم لګیږی اود هغے نه خو اودس

کول ضروری نه دی، نوددے مس بالید نه هم اودس کول ضروری ندی. نو دا خبره خطاء ده، وجه داده چه د فخذ په مس کولو سره اودس ناقض نه دے، او په مس بالید سره اودس مات دے، اودلیل په دے باندے حدیث دابو هریرةؓ دے (کوم چه راروان) دے چه په هغے کښے لفظ د (ید) ذکر دے، نو لاس وروړلو سره اودس ماتیدل په حدیث کښے ذکر دی او د ذکر د پتون سره مسه کیدلو سره اودس ماتیدل په هیڅ حدیث کښے ندی ذکر. نو دا قیاس په مقابله د نص کښے دے.

**١٠ - اعتراض** : دلته تاویل دے او مفعول حذف دے : (ای من مس ذکره بفرج امرأته) (چا چه ذکر د خپلے بی بی د فرج سره اوجنګولو) یعنی چه التقاء الختانین اوشی نو اودس په خپله ماتیږی نو دلته ذکر د سبب دے او مراد ترینه مسبب دے ځکه چه په مس الختان سره ضرور د بدن نه څه خارجیږی، نو امر بالوضوء للاحتیاط دے.

**جواب** : دا تحریف معنوی دے په دے حدیث کښے . اوددے تحریف درد کولو دپاره حدیث دابو هریره (راتلونکے) کافی دے چه په هغے کښے لفظ د (ید) راغلے دے، کما مر (اذا افضیٰ احدکم بیده الخ) .

نو حدیث کښے ید ذکر کیږی او دوئ په هغے کښے تحریف کوی او بدلوی ئے په مس الفرج سره، دا دتقلید ړوندوالے دے.

تلك عشرةٌ كاملةٌ. دا ټول تاویلات باطل دی په حدیث د بسرةؓ کښے. واکثرها فی المرعاة (٢/٣٦، وتحفة الأحوذی : ١/٨٦) . اوس دویم قول ذکر کوو.

**٢ - القول الثانی** : مس الذکر او فرج المرأة والدبر اودس ماتوی په شرطونو سره (١) چه مُبَاشرةً (بلا حائل) لاس اولګوی (٢) مس بالکف اوکړی یعنے ورغوے اولګوی، ځکه (افضیٰ) لفظ راغلے دے. بل روایت کښے (کف) لفظ راغلے.

اودا قول د عمر بن الخطاب، سعد بن ابی وقاص، ابن عمر، ابن عباس، ابو هریرة، عائشة – رضی الله عنهم – سعید بن المسیب، عطاء بن ابی رباح، ابان بن عثمان، عروة بن زبیر، سلیمان بن یسار، مجاهد، ابو العالیة، الزهری، مالك، احمد، شافعی، اوزاعی، اسحق بن راهویه، ابو ثور او مزنی – رحمهم الله – دے.

(المجموع شرح المهذب : ۲/ ۵۱، المغني لابن قدامة : ۱/ ۲٤۰ نيل الاوطار ۱/ ۲٤۹).

**دلائل : ۱** – حديث دبسره بنت صفوانؓ دے :

ان النبي ﷺ قال : من مس ذكره فلا يصلي حتى يتوضأ.

اخرجه مالك : ۱/ ۲۹، واحمد وابوداود : ۱/ ۲٤، والترمذي : ۱/ ۲۵، والنسائي : ۱/ ۱۳۱، واسناده صحيح وصححه احمد ايضا في المناظرة بين ابن المديني ويحيى بن معين.

۲ – **دليل :** عن ام حبيبة قالت : سمعت رسول الله ﷺ يقول : من مس فرجه فليتوضأ.

اخرجه ابن ماجة : ۱/ ۱۳۵، وغيره وسنده صحيح، كذا في الارواء : ۱/ ۱۵.

۳ – **دليل :** عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده قال : قال رسول الله ﷺ : من مس فرجه فليتوضأ، وايما امرأة مست فرجها فلتتوضأ.

اخرجه احمد : ۲/ ۸، مع الفتح الرباني، وسنده حسن.

**اودا دليل دے چه د نارينه او زنانه فرق په دے باب كښے نشته، كذا قال صاحب بلوغ الأماني.**

٤ – **دليل :** عن زيد بن خالد الجهني قال : سمعت رسول الله ﷺ يقول : من مس فرجه فليتوضأ.

اخرجه احمد : ۲/ ۸٤، مع الفتح الرباني، قال الهيثمي : رواه احمد والبزار والطبراني في الكبير ورجاله رجال الصحيح،الا ابن اسحق مدلس، وقال : حدثني، فانتفى التدليس فالحديث صحيح، بلوغ الأماني شرح مسند احمد الشيباني : ۲/ ۸۵، ومجمع الزوائد : ۱/ ۲٤۵.

**تنبيه : دهيثمي په قول سره رد اوشو په صاحب د تنظيم الأشتات (۱/ ۱۳۳) باندے چه د طحاوی (۱/ ٤٤) نه ئے نقل كړيدی چه په دے روايت كښے مدلس راوی (محمد بن اسحق) دے ، دے وائی دا خو دوئ هم منی چه مدلس دے، نو بيا په مونږ باندے په دے حديث سره حجت قائمول ظلم دے.**

**جواب : هيثمی هم وائی چه دا مدلس دے ليكن مدلس چه كله عنعنه اوكړی نو هله قابل قبول نه وی، اوكله چه تصريح بالتحديث اوكړی لكه لفظ (حدثنا، اخبرنا) نو بيا دهغه روايت اتفاقا مقبول دے، كذا في قواعد الجرح والتعديل.**

**۵ - دلیل :** عن ابی هریرة عن النبی ﷺ قال : من أفضیٰ بیده الی ذکره لیس دونه ستر، فقد وجب علیه الوضوء.

اخرجه احمد : ۲/۸۰، ورواه ابن حبان فی صحیحه وقال فی کتاب الصلاة : هذا حدیث صحیح سنده، عدول نقلته، وصححه الحاکم من هذا الوجه وابن عبد البر. بلوغ الأمانی :۲/۸۵.

دغه شان دمذکوره صحابوؓ نه هم دا احادیث نقل دی، چه اکثر حافظ ابن حجرؒ په التلخیص الحبیر (۱/۱۸٦) کښې جرحا وتعدیلا ذکر کړیدی، هغې ته رجوع پکار ده، وکذا الطحاوی (۱/۵۷).

اوس د اول شرط دپاره دلیل څه دے (چه مباشرت به وی، حائل به نه وی) ؟

دلیل دادے چه : حدیث دابو هریره رضی الله عنه کښې دی :

اذا افضیٰ احدکم بیده الی فرجه لیس دونها حجاب ولا ستر، فقد وجب علیه الوضوء.

(اخرجه ابن حبان، کذا فی تحفة الأحوذی :۱/۸۵، ومر الحدیث بمعناه).

او د دویم شرط (چه په کف او ورغوی سره به مس شوے وی) دپاره هم دلیل دے ځکه د افضاء معنی اهل اللغة دا کړیده چه په باطن الکف (ورغوی سره) سره وی.

لکه صاحب د بلوغ الأمانی (۲/۸۸) دواړو شرطونو ته اشاره کوی فرمائی :

وفی احادیث الباب ایضا اشتراط عدم الحائل بین الید والذکر وهذا متفق علیه عند من قالوا بالنقض - واستدل به الشافعیة فی ان النقض انما یکون اذا مس الذکر بباطن الکف، لما یعطیه لفظ الافضاء فی حدیث ابی هریرة، وقد فسره الامام الشافعی فی الأم، فقال : الافضاء بالید انما هو بباطنها، کما تقول : افضیٰ بیده معانقا وأفضیٰ بیده الی الأرض ساجدا آهـ.

یعنې : کوم علماء چه په مس الذکر والفرج والدبر سره اودس واجبوی دهغوئ ټولو اتفاق دے په دے خبره چه په مابین د ذکر او لاس کښې به حائل نه وی. (دا اول شرط) او په دے باندے شوافعو هم استدلال کړیدے چه اودس به هله ماتوی چه په باطن الکف سره مس کړی، ځکه چه په حدیث دابو هریرةؓ کښې د افضاء لفظ دیته شامل دے، او امام شافعیؒ په کتاب الأم کښې هم ددے تفسیر داسے کړے چه افضاء بالید دا په باطن الکف

سره وي، لکه چه عرب په محاوره کښې وائي : افضیٰ بیده معانقا الخ .

**خلاصه** : دا چه پدې باب کښې احناف هم صرف په يو حديث عمل کوی چه حديث دطلق دے، او شوافع هم صرف په يو حديث عمل کوی چه حديث دبسرةؓ دے .

**۳ - قول ثالث** : وهو الراجح :

دا قول شيخ الاسلام ابن تيميةؒ په مجموعه الفتاوى (۲۴۱/۲۱) کښې ذکر کړے چه په دے سره تطبيق راځي ددواړو حديثونو ترمينځ فرمائي چه :

حديث دطلق بن عليؓ محمول دے په مس بغير دشهوت باندے، اودليل په دے باندے دادے چه دلته د ذکر تشبيه ورکړے شويده دانف او اصبع وغيره سره (هل هو الا بضعة) اوکه ذکر د شهوت سره واخستے شي نو بيا دا تشبيه نه صحيح کيږي، ځکه چه ذکر کله په شهوت کښے وي نو هغه کښے حرکت وي، او په انف او اصبع وغيره کښے حرکت نشته .

او حديث د بسره بنت صفوانؓ محمول دے په مس الذکر بشهوةٍ باندے . اودا ډير ښه تطبيق دے، وجه داده چه په دواړو حديثونو باندے عمل راځي، اوکه دا اونه کړے شي نو بيا په يو حديث عمل راځي او بل مهمل پاتے کول راځي۔ اوشيخ الباني رحمه الله هم ددے خبرے تحسين کړيدے (تعليق المشكاة : ۱۰۴/۱)۔

او صاحب د توضيح الأحكام يوه بله توجيه هم ذکرکړيده چه : مس د ذکر ناقض د اودس دے، که چرے دا مس بغير د حائل (پردے) نه وي، اوناقض داودس نه دے که چرے سره دحائل اوپردے نه وي۔ دارنګ وائي چه : ددے تائيد د يو بل روايت نه هم کيږي چه هغے کښے داسے تپوس شويدے (الرجل يمس ذکره في الصلاة) يعنے مانځه کښے لاس يوسي، نو مونځ کښے خو بغير د حائل نه شرمګاه نه مسه کيږي۔

ليکن بيا وائي : کومه جمع چه شيخ الاسلام ابن تيميةؒ ذکرکړيده دا ډيره قريبه ده حق اوصواب ته (توضيح الأحكام : ۲۷۷/۱) .

باقي ددے تفصيل په نيل الأوطار : ۲۴۷/۱، ارواء الغليل : ۱۵۰/۱، السنن الکبرى : ۱۳۰/۱، المغني : ۲۴۰/۱، المجموع شرح المهذب : ۵۱/۲، المصنف لعبد الرزاق :

١١٢/١، البيهقي : ١٣٠/١، ابن ابي شيبة : ١٦٣/١، فتاوى الدين الخالص : ٣٨٩/٢، التحقيقات لرد الهفوات : ٧٧) كښې تفصيلا اوګوره.

**تنبيه :** كه يو شخص د ماشوم يا د بل چا ذكر له ګوتے يوسى نو ددے څه حكم دے؟

نو راجح داده چه دده اودس مات دے، كله چه په شهوت سره وى. وجه داده چه علت د مس كولو مشترك دے چه خپل ذكر وى اوكه د بل.

دويم : داچه په مصنف عبد الرزاق (١٢٢/١) كښې دعطاءؒ وغيره نه نقل دى (قال: توضأ من ذلك) يعنے ددے نه هم اودس اوكړه.

اوكله چه په شهوت سره نه وى نو اودس نه ماتيږى، لكه داسے حكم په فتاوىٰ العثيمين (٢٠٣/٢) كښې هم شته.

يا داچه : اودس ترے كول مستحب دى، واجب نه دى .راجع فى ذلك الدين الخالص : ٣٨٥/٢.

**مسئله :** په مس الدبر سره د اودس په نقض كښ څه صريح دليل نشته، نو ظاهر رائے داده چه په دے سره اودس نه ماتيږى، او قياس كولو ته حاجت نشته.

قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا مَنْسُوْخٌ لِاَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَسْلَمَ بَعْدَ قُدُوْمِ طَلْقٍ.

٢٢- وَقَدْ رَوٰى اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ : اِذَا أَفْضٰى اَحَدُكُمْ بِيَدِهٖ اِلٰى ذَكَرِهٖ لَيْسَ بَيْنَهٗ وَبَيْنَهَا شَيْئٌ فَلْيَتَوَضَّأْ ). رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَالدَّارِقُطْنِيُّ.

٢٣- وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ بُسْرَةَ اِلَّا اَنَّهٗ لَمْ يَذْكُرْ : لَيْسَ بَيْنَهٗ وَبَيْنَهَا شَيْئٌ .

**ترجمه :** امام محيى السنةؒ فرمائى : دا حديث منسوخ دے ځكه چه ابو هريرةؓ د طلق بن علىؓ دراتلو نه وروستو اسلام راوړے دے او أبو هريرةؓ د رسول الله ﷺ نه دا حديث نقل كړے دے : هر كله چه تاسو كښې د چا لاس ذكر ته اورسى، او د لاس او ذكر مينځ كښې څه حائل (پرده) نه وى نو هغه له پكار دى چه اودس اوكړى (شافعى، دارقطنى) او نسائى د بى بى بسرةؓ نه دا روايت نقل كړے دے چه هغے كښې (ليس بينه وبينها شئ) الفاظ مذكور نه دى .

**درجة الحديث** : رواه الشافعي والدارقطني وفي سندهما يزيد بن عبد الملك، وقد ضعفه الأكثرون، ووثقه ابن سعد وابن معين في رواية. وأخرجه أحمد وابن حبان في صحيحه والحاكم والبيهقي (١٣٣/١) والطبراني في الصغير من طريق نافع بن أبي نعيم، وفيه : فقد وجب عليه الوضوء، بدل قوله : فليتوضأ. قال ابن حبان : هذا حديث صحيح سنده، عدول نقلته، وصححه الحاكم وابن عبد البر، وقال ابن السكن : هو أجود ما روى في هذا الباب. وقال الألباني في السلسلة الصحيحة : ٢٣٨/٣، رقم : ١٢٣٥ : إذا أفضىٰ أحدكم بيده إلى فرجه وليس بينهما سترة ولا حجاب فليتوضأ، أخرجه ابن حبان (٢١٠) والسياق له، والدارقطني (٥٣) والبيهقي (١٣٣/١) واسناد ابن حبان جيد، آهـ.

نو دا حديث صحيح دے، او د تطبيق او جمع بين الأحاديث دپاره كافي شافي دے۔ و انظر ايضاً : المشكاة النسخة الهندية بتعليق رمضان بن أحمد بن على آل عوف (١٦٣/١).

اوس محى السنه صاحبؒ تطبيق بين الحديثين كوى، چه حديث دطلق بن علىؓ (چه په هغے كښے عدم نقض الوضوء بالمس ده) منسوخ دے په حديث دابو هريرةؓ او بسرةؓ باندے. چه ابو هريرةؓ د نبى كريم ﷺ نه نقل كوى فرمائى :

**تشريح** : **اِذَا اَفْضٰى اَحَدُكُم بِيَدِهٖ الخ**: يعنى مس الذكر بغير د حائل نه اودس ماتوى. نو دا حديث دابو هريرةؓ ناسخ دے. وجه دا بيانوى چه ابو هريرةؓ د طلق بن علىؓ نه اووه (٧) كاله روستو ايمان راوړے، ځكه چه طلقؓ د هجرت په اول كال كله چه نبى ﷺ مسجد جوړولو د يمن نه راغے او ايمان ئے راوړو، او ابو هريرةؓ په اووم كال (دخيبر) باندے ايمان راوړے.

نو د ابو هريرةؓ حديث متاخر شو او د طلقؓ حديث مقدم دے، او متاخر ناسخ وى د مقدم دپاره. دغه شان د بسرةؓ ايمان راوړل متاخر دى. مطلب دا شو چه په مس الذكر سره اودس نه ماتيدل منسوخ دى۔ دا د محيى السنه صاحبؒ تطبيق دے.

ليكن دا صحيح نه دے، د دوه وجهونه :

١ – اوله وجه داده چه په دے خبره صريح دليل نشته چه حديث د طلق مقدم دے منسوخ دے، او حديث دابى هريرةؓ متاخر او ناسخ دے.

۲– دویمه وجه : دا چه په نفس تقدم داسلام باندے حدیث منسوخ نه ګرځی او په تاخر داسلام باندے حدیث ناسخ نه ګرځی، ځکه کیدے شی چه یو کشر صحابی (متاخر الاسلام) دِے دمشر صحابی نه حدیث الرسول ﷺ اوریدلے وی، او یا مشر صحابی – مثلا ابو بکرؓ – دے دکشرانو صحابوؓ په زمانه کښے د نبی ﷺ نه حدیث آورریدلے وی په زمانه د وفات د نبی کریم ﷺ کښے نو په نفس مخکښے والی او روستو والی سره نسخ نه ثابتیږی، ترڅو چه یقینی دلیل نه وی په نسخ باندے، اودا خبره هله صحیح ده چه کله طلق بن علیؓ دا یو حدیث آوریدلے وی او بیا د نبی کریم ﷺ سره بالکل نه وی ملاؤ شوے (ولم یثبت الرجوع الی المدینة عند المبارکفوری فی التحفه : ۱/۸۷).

البته طلق بن علیؓ نه یوبل حدیث هم نقل دے چه طبرانی فی الکبیر نه صاحب د مجمع الزوائد (۱/۲٤٥) نقل کړے وکذا فی النیل (۱/۲٥۰) چه هغه د بسره بنت صفوانؓ دحدیث پشان دے :

عن طلق بن علی و کان فی الوفد الذین وفدوا الی رسول الله ﷺ : ان رسول الله ﷺ قال : من مس فرجه فلیتوضأ.

دے حدیث ته طبرانی صحیح وئیلی دی، نو دوه روایته ثابت شو دطلق نه.

او بیائے داسے تطبیق کړے لکه چه محیی السنه صاحبؒ کړے، چه ممکنه ده چه طلق دا اول حدیث (چه په عدم نقض الوضوء باندے دلالت کوی چه هل هو الا بضعه په کښے ذکر دے) د نبی علیه السلام نه مخکښے آوریدلے وی او روستو ئے دا دویم حدیث آوریدلے وی (کوم چه په نقض الوضوء باندے دال دے) نو دده دویم حدیث دبسرےؓ، ام حبیبهؓ، ابو هریرهؓ او زید بن خالدؓ دحدیث سره مطابق شو نو داناسخ شو داول حدیث دده دپاره. نو طلق بن علیؓ ناسخ او منسوخ دواړه حدیثونه آوریدلی دی.

لیکن حاشیه کښے لیکی چه په روایت ثانیه دطلقؓ کښے (کوم چه دال دے په نقض الوضوء باندے) ایوب بن عتبه دے، اودا ضعیف دے، اوده ته په تقریب کښے صدوق کثیر الخطأ وئیلے شویدے، نو دده روایت ثانیه منکر شو.

۳– دریمه وجه داده : چه نسخ ته ضرورت نشته ځکه تطبیق ممکن دے کما مرّ.

## وجوه ترجیح حدیث بسرة علی حدیث طلق

۱ – اوله وجه : دترجیح خوداده چه صاحب المرعاة (۳٤/۲) کښې لیکلي ده چه حدیث دبسره امام شافعي في الأم، ابن خزیمه، ابن حبان، ابن الجارود، حاکم، بیهقي نقل کړې، او امام احمد، بخاري، ابن معین، ترمذي ورته صحیح وئیلی دی. دارنګه دارقطني، ابن حبان، ابن السکن، حاکم، بیهقي، ابن عبد الله ابو حامد الشرقي، حازمي، نووي، ابن حجر اونورو علماؤ – رحمهم الله – ورته صحیح وئیلي.

اوهرچه حدیث دطلق بن علي دې نو دیته بعضې علماؤ صحیح او بعضې نورو ورته ضعیف وئیلې، نو دا حسن شو او هغه صحیح دې، او صحیح ارجح وي په حسن باندې.

۲ – وجه : په حدیث دطلق کښې چه کوم راویان دي نو په هغې باندې شیخان (بخاري او مسلم) احتجاج نه دې کړې، او په حدیث دبسرة کښې چه کوم راویان دي په هغې تولو باندې شیخانو احتجاج کړیدې. قال في المغني : ۲۰۳/۱ : قال البخاري : اصح شئ في هذا الباب حدیث بسرة.

۳ – وجه : حدیث دبسرة دپاره کثره الطرق او شواهد کثیره دي، سره دصحت دسند نه، لکه چه مخکښې تیر شو نو دا هم یوه طریقه دترجیح ده.

٤ – وجه : بسرة به دا حدیث د مهاجرینو او انصارو په کورونو کښې بیانولو او صحابه پوره موجود وو او هیچا نه منع کوله، بلکه منع لا څه چه بعضې صحابو هم دا مذهب اختیار کړې وو. (مرعاة).

۵ – وجه : حدیث دطلق ته بعضې علماؤ منسوخ وئیلی لکه امام حازمي په کتاب الاعتبار کښې او ابن حبان. او حدیث د بسرة وغیره ته هیڅ عالم منسوخ نه دی وئیلی.

٦ – وجه : حدیث د طلق موافق دې د پخواني حالت سره چه عدم النقض دې او حدیث د بسره د هغې نه ناقل دې نو ناقل ته به ترجیح وي.

د نورو وجهو دپاره تحفة الأحوذي : ۸۷/۱، او مرعاة : ۳۵/۲ او نیل الاوطار ۲٤۹/۱) ته رجوع اوکړه. په دې مسئله کښې د جمع بین الأحادیث دپاره دویم قول راجح دې، کوم چه شیخ الاسلام ذکر کړیدې.

**٢٤ -- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ ثُمَّ يُصَلِّي وَلَايَتَوَضَّأُ . رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : عائشهؓ نه روایت دے چه دا فرمائی : نبی کریم ﷺ به خپلے ځینے بیبیانے خکل کړے، بیا به ئے مونځ کولو او اودس به ئے نه کولو ـ (أبوداؤد، ترمذی، نسائی)۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (١٧٨، ١٧٩) والترمذى (٨٦) والنسائى (١/١٠٤) وابن ماجة (٥٠٢) واسناده صحيح، وأخرجه أحمد (٦/٢١٠) وقد صححه العلامة أحمد شاكر فى شرح الترمذى (١/١٣٣، ١٤٢) والألبانى، المشكاة بتعليق رمضان بن أحمد (١/١٦٣) وقال الألبانى فى تعليق المشكاة : لكن الحديث صحيح، فقد جاء من طرق أخرى بعضها صحيح، كما حققناه فى صحيح سنن أبى داود (١/٣٦) رقم (١٧٨) ورجحه أيضاً فى تحقيق أحمد شاكر على الترمذى (١/١٣٣، ١٤٢).

**تشريح : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ :**

١- ددے حدیث نه دا معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به د خپلو بی بیانو سره محبت کولو او دا د زنانو حق دے په سری باندے۔

٢- دارنګه دین بیانولو کښے حیاء کول صحیح ندی ځکه چه عائشه رضی الله عنها تول امت ته د خپل راز بیان کوی چه رسول الله ﷺ به ما سره داسے بوس او کنار کولو که عائشے وغیره دا بیان نه وے کړے نو دا حکم شرعی به څنګه معلومیدلو۔

٣- بیا عائشے دلته بعضے بی بیانے ذکر کړے مراد ترینه پخپله عائشه ده لکه دا د بل روایت نه معلومیږی چه کله دے دا حدیث بیان کړو نو عروه بن الزبیر (چه ددے خورئے وو) دے ته ئے اووئیل (هل هی انت ؟ فضحکت)۔ یعنی دا بی بی ته وے نو هغے اوخاندل۔

٤- کله چه یوه خبره د حیاء سره تعلق ساتی او په هغے کښے مقصود په کنایاتو سره حاصلیږی نو تصریح کول مناسب ندی۔

مرکزی مسئله په حدیث کښے دا ده چه دخپلے بی بی خکلولو او لاس وروړلو سره اودس نه ماتیږی۔ لیکن دے مسئله کښے هم اختلاف شته۔

: - **اول مذهب** دادے چه مس المرأة مطلقًا ناقض دے اودس لره، اودا قول دابن

مسعودؓ، ابن عمرؓ، زهریؒ امام شافعیؒ او دهغه داتباعو دے.
**دليل**: دسورت المائده او النساء آيت ﴿ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ ﴾ وفی قرائةٍ: ﴿ أَوْ لَمَسْتُمُ النِّسَاءَ ﴾ ۔ دا آيت دليل دے چه مس المرأه سره اودس ماتيږی، وجه داستدلال داده چه لمس حقيقت دے په لمس باليد (لاس وروړلو) کښے او مجاز دے په جماع کښے نودلته حقيقت مراد دے، نه مجاز.
اوددے حديث الباب نه جواب کوی چه دا حديث ضعيف دے لکه چه امام ترمذیؒ ددے ضعف بيان کړے، كما يأتی فی الكتاب.
۲ - **دليل**: دابن عمرؓ نه امام بيهقیؒ اود ابن مسعودؓ نه امام مالكؒ او شافعیؒ نقل کړے چه: من قبل امرأته اوجسها بيده فعليه الوضوء، وعن ابن مسعود: القبلة من اللمس وفيها الوضوء. كذا فی نيل الأوطار: ۱/۲٤٥.
۲ - **قول ثانی**: مس المرأه اودس نه ماتوی مګر کله چه څه خارج شی نو بيا اودس مات دے، اودا قول دعلیؓ، ابن عباسؓ، عطاءؒ، طاؤسؒ، حسن بصریؒ، مسروقؒ او يو روايت قويه د احمدؒ نه او د امام ابو حنيفةؒ او ابو يوسفؒ دے. او همدا قول راجح دے.
**دلائل**: ۱ - په دے مسئله کښے هيڅ صحيح واضح دليل نشته چه دلالت اوکړی په ماتيدو داودس باندے، لهذا اودس به په خپل حال باندے باقی وی، ترڅو چه واضح دليل په ماتيدو رانشی.
۲ - **دليل**: دا مسئله ډيره عامه ده او هر مُتَزَوّج انسان ته راپيش کيږی يعنے پديکښے عموم بلوی ده، نوکه په مس المرأه سره اودس ماتيدلے نو نبی کريم ﷺ به ددے عمومی بيان کړے وے، ځکه چه نبی ﷺ د بيان دپاره راغلے دے، هرکله چه د نبی ﷺ د طرفه صحيح او واضح بيان رانغے نو دا دليل دے په دے چه اودس نه ماتيږی. والأصل بقاء الطهارة على حالها۔
او هرچه اول مذهب والا په آيت استدلال کړے نو هغه مرجوح دے، ځکه د لمس نه مراد جماع ده لکه دا تفسير دابن عباسؓ او علیؓ نه نقل دے (مغنی: ۱/۲۲۱، تحفة الأحوذی: ۱/۹۸، مجموعة الفتاوی: ۲۱/۲۳۲، هيئة كبار العلماء: ۱/۱۵۱، ابن كثير)۔

او په دے تفسیر باندے دوه قرینے دی :

اولـه قـرینـه : دادهٔ چه په آیت کریمه کښے الله تعالی دوه قسمه طهارتونه بیان کړی دی (۱) صغری (۲) کبرئ . نو پـه ﴿ فـاغسـلـوا وجـوهـکـم وأیدیکم الی المرافق وامسحوا بـرؤسـکم وأرجلکم الی الکعبین ﴾ کښے طهارت بالماء ذکر کوی اودا طهارت صغرئ دے . او د ﴿ لامستم النساء ﴾ نه مراد سبب د طهارت کبرئ دے . او ﴿ جاء احد منکم من الغائط ﴾ سبب د طهارت صغرئ دے . او ﴿ فلم تجدوا ماء ﴾ نه روسته بدل دطهارت بیانوی چه تیمم دے نوکه دلته د ﴿ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ ﴾ نه جماع مراد نشی نو په آیت کښے به دطهارت صغرئ دپاره سبب راشی اود طهارت کبرئ دپاره به سبب موجود نشی (سره ددے نه چه طهارت کبرئ ئے په ﴿ وان کنتم جنبا فاطهروا ﴾ سره ذکر کړیدے) نو بیا به دبلاغت قرآنی نه خلاف راشی اودا خو صحیح نه ده . کذا فی فتاوی الدین الخالص : ۳۹۵/۲ ـ

بلـه وجـه داده : چـه پـه آیـت کښـے مـلامست ذکر دے او مفاعله باب کښے شرکت وی دجانبینو نه اودا متصـور کیـږی پـه دوه کسـانو کښے چه ښځه اوخاوند دی اودا د جماع صورت دے . (المغنی : ۲۲۱/۱) .

۳ – دویمه قرینه **او دریم دلیل** : حدیث التقبیل (حدیث الباب) دے چه د نبی ﷺ عـمـل دلیـل دے چـه دویٔ د خپلے بی بی تقبیل کړے او اودس ئے نه دے کړے . او دے حدیث کښے اګرچه امام ترمذیؒ کلام کوی لیکن دا صحیح دے لکه روسته به راشی ـ

٤ – **دلیل** : عـائشـه رضـی الـلـه عـنها فرمائی : ان کـان رسـول الله ﷺ لیصلی وانی لـمـعـتـرضة بین یدیه اعتراض الجنازه حتی اذا أراد أن یوتر مسنی برجله . رواه النسائی، کذا فی النیل : ۲٤٦/۱ . قال الحافظ فی التلخیص : اسناده صحیح، انظر التحفة: ۸۸/۱ .

نو په دے کښے د نبی ﷺ خپه د عائشهؓ نه لګیدلے ده ـ

او په بل روایت د عائشه صدیقهؓ کښے داسے دی :

ان کـان رسـول الله ﷺ لیـصـلـی وانـی لـمـعترضة بین یدیه اعتراض الجنازة، فاذا أراد أن یسجد غمزنی فقبضت برجلی . متفق علیه .

په دے حدیث کښے نبی ﷺ په مانځه کښے عائشهؓ سکونډلے ده ـ

اوبل روایت کښې دی : قالت : فزعت ذات لیلة و فقدت رسول الله ﷺ فمددت یدی فوقعت یدی علی قدمیه وهما منصوبتان هو ساجد (رواه احمد : ٦/٥٨، ٢٠١، ابوداود : ١/٥٤٧، دارقطنی : ١/١٤٣).

په دے کښې د عائشہؓ لاسونه د نبی کریم ﷺ په قدمونو لګیدلی دی.

**۵ - دلیل** : نبی کریم ﷺ اُمَامَه بنت ابی العاص بن الربیع په مانځه کښې په اوګو باندے اوچتوله اوکله به ئے چه سجده کوله نو هغه به ئے کینوله (متفق علیه).

اونبی کریم ﷺ په باب داحکامو کښې دامت سره شریك دے ترڅو چه دلیل دخصوص رانشی، اودلته دلیل دخصوص نشته. لهذا مس المرأه سره اودس نه ماتیږی.

**سوال** : ابن مسعودؓ او ابن عمرؓ قول سره به څه کیږی چه قائل دی په نقض الوضوء بمس المرأه باندے ؟

**جواب** : دوئ دواړو سره نورو عامو صحابوؓ په دے مسئله کښې اختلاف کړے اوکله چه دصحابوؓ اختلاف راشی په یوه مسئله کښې نو رجوع به کیږی کتاب او سنت د رسول ﷺ ته، او کتاب او سنت دواړو کښې دا خبره ده چه مس المرأه ناقض للوضوء نه دے.

ددے ځائے نه بله فائده معلومه شوه هغه دا چه : احنافو او نورو علماؤ د عمر، ابن عمر او ابن مسعود - رضی الله عنهم - خبره نه ده منلے ځکه هغوئ سره دلیل دے اودے صحابوؓ سره دلیل نشته ، نود دلیل د تابعداریٔ د وجے نه ددے صحابوؓ خبره پریدی اودا ډیر ښه کار دے، اودیته انصاف وائی، حق پرستی هم داده چه دلیل کله راغے نو که غټو خلقو هم - په خپل اجتهاد سره -- دهغے خلاف خبره اوکړه هغه به پریدی.

احناف دا دعویٰ کوی چه فقه حنفی ابن مسعودؓ کړلے ده، حال دا چه د ابن مسعودؓ ډیرے فتوے د فقه حنفی خلاف دی، یو دهغے نه دا فتویٰ ده (چه د ښځے ښکلولو کښے اودس لازم دے) مونږ دلته د ابن مسعودؓ خبره پریدو ځکه چه دلیل ورسره نشته، په امت باندے د دلیل تابعداری فرض ده، تقلیدونه دین کښې نشته.

**۲** - په دے مقام کښې یو بل قول هم شته هغه دا چه : مس المرأه ناقض د اودس دے که چرے په شهوت سره وی، او نه دے ناقض که چرے بغیر د شهوت نه وی. اودا قول د

علقمةؒ، ابی عبیدةؒ، نخعیؒ، حمادؒ، امام مالكؒ، امام شعبیؒ، امام سفیان ثوریؒ، اسحقؒ او مشهور قول د امام احمدؒ دے (المغنی : ۲۱۹/۱) اودا قول صاحب د مغنی او علامه شوکانیؒ په نیل الأوطار (۲٤۷/۱) کښے او علامه بسامؒ په توضیح الأحکام (۲۳۱/۱) کښے غوره کړیدے۔

وجه دا بیانوی چه دا حدیث محمول دے په هغه تقبیل باندے چه په شهوت سره نه وی، بلکه د محبت او شفقت خکلول دی، او دا قسم لمس خو ناقض د اودس نه دے، ځکه چه نبی ﷺ عائشهؓ په مانځه کښے سکونډلے ده، او د لمس ذات خو ناقض نه دے بلکه دا مَظِنَّه د خروج الشهوة ده، نو هغه لمس چه عادی وی او بغیر د شهوت نه وی نو هغه به په خپل اصل باقی پاتے وی چه اودس نه ماتیدل دی۔

ددے قول والا سره هیڅ دلیل په دے فرق باندے نشته دے سیوا ددے نه چه تاویل په احادیثو کښے کوی . او په دے قید باندے هیڅ صریح واضح صحیح دلیل نشته لکه دا خبره مونږ مخکښے اوکړه.

نو په مس المرأه سره اودس مات ګنړلو باره کښے هیڅ حدیث نشته ترڅو پورے چه څه شے خارج شوے نه وی نو بناء په دے باندے قول ثانی راجح دے، لکه چه دیته ئے ترجیح ورکړیده په تحفة الأحوذی : ۸۸/۱،کښے، ابن جریرؒ راجح کړیدے په خپل تفسیر کښے . او دے قول ته په فتاوی الدین الخالص (۳۹٤/۲) کښے هم ترجیح ورکړے شوے ده، اوددے مسئلے پوره تحقیق په نیل الأوطار ، المغنی او تحفة الأحوذی کښے اوګورئ۔

---

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : لَا يَصِحُّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا بِحَالٍ إِسْنَادُ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ. وَأَيْضًا : إِسْنَادُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنْهَا. وَقَالَ أَبُوْدَاوُدَ : هٰذَا مُرْسَلٌ وَإِبْرَاهِيْمُ التَّيْمِيُّ لَمْ يَسْمَعْ عَنْ عَائِشَةَ.

اوترمذی وئیلی دی : زمونږ د علماؤ په نیز په هیڅ حال کښے دعروه سند اودغه شان دابراهیم تیمی سند دعائشےؓ نه صحیح کیدے نشی، او ابوداود وئیلی دی چه دا حدیث مرسل دے ځکه ابراهیم تیمی د بی بی عائشهؓ نه، نه دے آوریدلے۔

## ﴿ تحصيل الثروة فی تحقيق اعتراض الترمذی علی حديث عروة ﴾

دلته **سوال** پيدا کيږي چه امام ترمذيؒ په دے مقام کښے رد کوی چه اسناد عروه عن عائشه صحيح نه دے حالانکه ترمذی کښے ډير داسے روايات دی چه عروةؒ په کښے دعائشے رضی الله عنها نه نقل کوی، نو آيا دامام ترمذيؒ په دے خبره کښے تعارض نه ښکاری ؟۔

**جواب** : ظاهر کښے تعارض معلوميږی ولے په واقع کښے هيڅ تعارض نشته ځکه چه عروه دوه کسان دی (۱) عروة بن الزبير (۲) عروة المزنی. نو دلته چه رد کوی نو دا په اسناد د عروة المزنی باندے کوی، او نور احاديث چه موجود دی نو هغه دعروة بن الزبير دی۔

اوس به راشو اعتراض د ترمذيؒ ته : نو غرض د امام ترمذيؒ په دے عبارت خپل سره چه (لانه لا يصح عندهم بحال الاسناد) تضعيف ددے حديث دے او په دے ضعيف کولو باندے دوه قوله بيانوی، اول قول د يحيىٰ بن سعيد القطان پيش کوی چه هغه فرمائی (هُوَ شِبْهُ لا شئ) او بل د امام بخاريؒ قول پيش کوی چه هغه ورته ضعيف وئيلے دے.

ليکن که فکر اوکړے شی نو دا خبره بے حقيقته ده، اودا حديث صحيح دے او د امام مسلم د شرطونو برابر دے. نو په دے خبره ځان پوهول پکار دی چه ددے حديث دوه طريقے دی چه په هغے سره رانقل شويدے :

اولے طريقے سره داسے نقل شوے : عن حبيب بن ابی ثابت عن عروة عن عائشة ۔

اودويمه طريقه : عن ابی روق عن ابراهيم التيمی عن عائشة۔

په اوله طريقه باندے (چه هغه طريقه د عروه ده ) دوه اعتراضه واردېږی.

اول **اعتراض** دادے چه د عروه نه مراد عروه المزنی دے نه عروه بن الزبير، او عروه المزنی خو مجهول دے، اوددے خبرے دليل چه مراد عروه المزنی دے دادے چه امام ابوداود ددے حديث يوه بله طريقه نقل کړيده او په هغے کښے د عروه المزنی تصريح موجود ده.

معلوميږی چه دلته هم د عروه نه مراد عروه المزنی دے. هغه طريقه داسے ده :

حدثنا ابراهيم بن مخلد الطالقانی قال حدثنا عبد الرحمن بن مغراء قال حدثنا الأعمش قال ثنا أصحاب لنا عن عروة المزنی عن عائشة بهذا الحديث ۔

(۲) دارنګه امام ابوداؤدؒ د سفیان الثوریؒ دا قول هم نقل کړے دے چه قال : ما حدثنا حبیب الا عن عروة المزنی (یعنی لم یحدثهم عن عروة ابن الزبیر بشئ)۔

نو دا هم دلیل دے ددے خبرے چه په حدیث الباب کښے مراد د عروه نه عروه مزنی دے.

**جواب** : دا طریقه او سند د ابوداود انتهائی ضعیف دے، په دے کښے خو یو عبد الرحمنؒ بن مغراء دے او دا چه کله د اعمش نه روایت کوی نو دده روایت لیس بشئ دے، یحیی بن معین دده په باره کښے فرمائی : له ست مائة حدیث یرویها عن الأعمش ترکناها لم یکن بذاك ۔

۲ – دویم دا چه په دے سند کښے اصحاب لنا، مجاهیل روات دی نو په دے سند سره استدلال باطل دے. او امام ابوداؤدؒ چه د سفیان الثوریؒ قول پیش کړیدے نو دهغے جواب دادے چه هغه ئے بے سنده ذکر کړیدے فلا یعتبر.

دویم دا چه : د سفیان ثوریؒ دقول نه امام ابوداؤدؒ خپله خلاف کړے لکه چه فرمائیلی دی :

وقد روی حمزة الزیات عن حبیب عن عروة بن الزبیر عن عائشة حدیثا صحیحا.

ددے نه مراد د امام ابوداود هغه حدیث دے چه کتاب الدعوات (۲/۲۰۵) کښے امام ترمذیؒ نقل کړیدے۔

نو ددے خبرے د ابوداود نه دوه خبرے معلومے شوے :

(۱) د عروه نه مراد عروه بن الزبیر دے، لکه چه ددے تصریح امام احمدؒ او ابن ماجه کښے شویده، لکه چه روستو به راشی۔

(۲) د ابوداود په نیز هم روایت د حبیب عن عروه صحیح دے ۔

(کذا فی المرعاة : ۱/٤۰)۔

۳ – **جواب** : د سفیان ثوریؒ قول د خپل علم مطابق دے یعنے د هغه د عدم علم نه دا نه لازمیږی چه په واقع کښے دے هم دا روایت نه وی ثابت، بلکه بذل المجهود کښے څلور صحیح روایتونه په واسطه د حبیب ابن ابی ثابت د عروه نه روایت شویدی، چه د هغے نه معلومیږی چه حبیب بن ابی ثابت د عروه نه نقل د روایت کول بعید نه دی۔

اوس دلیل په دے خبره چه دا عروه ابن الزبیر دے دادے چه ابن ماجه (۱/۳۸) باب الوضوء من القُبلة ، وصحیح سنن ابن ماجه رقم (۵۰۲) بسند صحیح کښے، ددے روایت سند داسے مروی دے :

حدثنا ابو بکر بن ابی شیبة وعلی بن محمد قالا ثنا وکیع عن حبیب بن ابی ثابت عن عروة بن الزبیر عن عائشة ان رسول اللّٰه ﷺ قبل بعض نسائه ثم خرج الی الصلاة ولم یتوضأ، قلت : ما هی الا أنت، فضحکت۔

ددے روایت سند پوره صحیح دے، او امام البانیؒ ورته صَحیح وئیلی دی، دغه شان نصب الرایه (۱/۷۲) کښے دی : صحیح.

۲ – بل دلیل دادے چه په سنن دارقطنی (۱/۱٤۲) مسند احمد او مصنف ابن ابی شیبه (۱/٤٤) کښے ددے حدیث متعدد طرق راغلی دی چه په بعضو کښے ابن الزبیر اوپه بعضو کښے ابن اسماء الفاظو سره تصریح موجود ده.

۳ – صاحب المرعاة ذکر کړی دی چه په عرف دمحدثینو کښے چه کله عروه مطلقا ذکر شی نو مراد ترینه عروه بن الزبیر وی.

٤ – په روایت مذکوره دابن ماجه کښے ورسره د (ما هی الا انت) سوال ذکر دے. ددے نه معلومیږی چه داجرأت په تپوس چه کوی نو دا ابن الزبیر (چه خورئے د عائشےؓ دے) کولے شی، نه عروه المزنی، څکه هغه اجنبی شخص دے. دغه شان خندا دعائشےؓ دعروهؒ سره دلیل دے چه دائے خورئے دے نه بل څوك، فتدبر فیه!

دا خو یو اعتراض دے په روایت د عروه۔

۲ – دویم **اعتراض** په دے سند دادے چه که عروه نه مراد ابن الزبیر شی بیا هم د حبیب ابن ابی ثابت سماع د هغه نه نه ده ثابت، لکه چه په دے باندے دلیل امام ترمذیؒ دامام بخاریؒ نه دا قول نقل کړیدے : (حبیب بن ابی ثابت لم یسمع من عروة) نو حدیث منقطع شو.

**جواب** : صاحب د نصب الرایة (۱/۷۲) او صاحب المرعاة (۲/٤۰) د ابن عبد البرؒ نه داسے نقل کړیدی چه د حبیب بن ابی ثابت سماع د عروه بن الزبیر نه ثابت ده، وجه داده چه

د حبیب سَماع د داسې خلقو نه هم ثابت ده چه هغه د عروه نه هم مقدم دی په عمر کښې اومخکښې ترې وفات شوی دی، ابن عبد البرؒ فرمائی :

صححه الکوفیون وثبتوه لروایة الثقات من ائمة الحدیث له، وحبیب لا ینکر لقائه عروة لروایته عمن هو اکبر من عروة واقدم موتا. وفی موضع آخر : لا شك انه ادرك عروة، انتهیٰ. (نصب :۱/۷۲).

اودې خبرې ته ابوداود هم میلان کړیدې پشان دابن عبد البرّ، لکه چه مخکښې دابوداود عبارت تیر شو (وقد روی حمزة الزیات عن عروة ... حدیثا صحیحا) . نو سماع دحبیب ثابت ده د عروه نه۔

۲ – بله وجه داده چه حبیب سَماع کړیده دعروه بن الزبیر نه هم اودارنګه دعروه المزنی نه هم، لکه چه دا په ډیرو احادیثو کښې ثابت ده . انظر نصب الرایه (۱/۷۲) .

او هرچه دا قول د امام بخاریؒ دې چه (حبیب لم یسمع من عروة) نو ددې جواب دادې چه امام بخاریؒ دا خبره د خپل شرط مطابق کړیده ځکه چه د هغه شرط په اتصال د حدیث کښې دادې چه معاصرت د راوی به د مروی عنه سره هم وی، او سماع به هم ثابته وی، او نفس معاصرت کافی نه دې ترڅو چه ثبوت د لقاء نه وی . اود امام مسلمؒ صرف معاصرت (یو والې دزمانې) او امکان د لقاء او سماع شرط ګنړی د صحت دحدیث دپاره . او دلته خو معاصرت د حبیب اوعروه موجود دې، نوپه دې وجه دا حدیث صحیح علیٰ شرط مسلم دې۔

اود امام بخاریؒ دا شرط ډیر سخت دې ډیر علماء ورسره اتفاق نه کوی، نو دا اعتراض هغه د خپل شرط مطابق کړیدې، ورنه سماع هم ثابت ده (کما أسلفنا لك)۔

**خلاصه** : دا چه هیڅ اعتراض په دې طریقه باندې نه دې صحیح۔ هاؤ ! یو ژور اعتراض شته هغه دا چه حبیب مدلس دې او عنعنه ئې کړیده۔ نو جواب دادې چه نور طرق شته هغه به جبیره شي۔

اوکه اومنو چه دا حدیث منقطع دې نو ددې حدیث نور ډیر اسانید دی، امام احمد (۶/۲۱۰) ابن ماجه (۵۰۲) البزار الدارقطنی (۱/۱۴۱) الطبری ذکر کړیدی چه بعض

جید الاسناد دی، او بعضے حسن ته نزدے دی. نو په دے کثرة الطرق سره به جبیره اوشی د ضعف دانقطاع. نو بیا حدیث صحیح اوګرځیدلو، فتدبر!

(کذا فی المرعاة، ونصب الرایة : (۷۲/۱) او شوکانیؒ هم دا خبره تسلیمی ذکر کړیده. (نیل الأوطار (۲٤٦/۱)۔

## الاعتراض علی الطریق الثانی :

په دویمه طریقه باندے امام ترمذیؒ داسے اعتراض کوی :

ولا نعرف لابراهیم التیمی سماعا من عائشه.

داسے اعتراض امام ابوداوٗدؒ هم کړے د هغه طریقه داسے ده :

حدثنا محمد بن بشار قال ثنا یحییٰ وعبد الرحمن قالا ثنا سفیان عن ابی روق عن ابراهیم التیمی عن عائشة ان النبی ﷺ قبلها ولم یتوضأ.

امام ابوداوٗدؒ فرمائی : قال ابو داود : وهومرسل وابراهیم التیمی لم یسمع من عائشة شیئا.

ترمذی او ابوداود دواړو ورته منقطع حدیث وئیلے دے ؟۔

**جواب** : ددے اعتراض نه دادے چه دا حدیث دے مرسل شی اومراسیل الثقات حجت دے په دے شرط سره چه کله ددے بل مؤید روایت موجود وی، کذا فی مصطلح الحدیث. او دلته ددے مؤید روایات ډیر زیات دی، لکه چه مخکښے ددے تفصیل اوشو۔

۲ — **جواب** : امام دارقطنیؒ په خپل سنن (۱٤۱/۱) کښے ددے حدیث ذکر کولو نه روسته لیکی :

وقد روی هذا الحدیث معاویة بن هشام عن الثوری عن ابی روق عن ابراهیم التیمی عن ابیه عن عائشة فوصل اسناده۔

په دے سند کښے د (عن ابیه) زیادت په وجه حدیث متصل شو. نو اعتراض دارسال ختم شو. نو حدیث صحیح شو لکه چه اکثرو علماؤ ورته صحیح وئیلی دی. (کذا فی نصب الرایة والمرعاة)۔

او د ابراهیم التیمی د پلار نوم حارث دے او دا صحابی دے نو د حدیث ټول راویان پوره ثقات دی۔

امام البانیؒ په السلسلة الضعيفة (۲/۴۲۹) کښې فرمائی : د دې حديث لس طرق نقل دی چه بعضې د هغې نه صحيح دی لکه چه هغه په صحيح ابی داود کښې نقل کړيدی.
نو د دې طرقو دوجې نه هم د انقطاع ضعف ختم شو.
او مصنف عبد الرزاق (۱/۱۳۵، رقم الحديث : ۵۰۰، باب الوضوء من القبلة واللمس والمباشرة) کښې يو روايت په بل سند داسې نقل کړيدې :
عن عبد الرزاق عن ابراهيم بن محمد عن معبد بن بنانة عن محمد بن عمرو عن عروة بن الزبير عن عائشة قالت : قبلني رسول الله ﷺ ثم صلى ولم يحدث وضوء.
په دې روايت کښې د ابن الزبير تصريح هم شويده او په سند کښې نه ابراهيم التيمی شته او نه حبيب ابن ابی ثابت.

---

**۲۵ - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ : أَكَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ كَتِفًا ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ بِمِسْحٍ كَانَ تَحْتَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى . رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : ابن عباسؓ فرمائی : رسول الله ﷺ د چيلئ د پتون (ورېته) غوښه اوخوړله، بيا ئې خپل لاس په تهاتړ سره اوچ کړل چه لاندې ترې غوړېدلې وو، بيا اودرېدلو مونځ ئې اوکړو. (ابوداود، ابن ماجه).

**تشريح : ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ : فائده** : ۱- حديث دليل دې په دې چه اور پخ کړې شی خوړلو نه روسته اودس نه دې لازم. ۲ - خوراك نه روسته لاس وينځل يا ځټل يا صرف اوچول سنت کښې راغلی دی، او وينځل واجب نه دی. ۳ - په دستر خوان وغيره باندې لاس اوچول جواز لري، ځکه هغه د دې دپاره وی او که قيمتی درئ وغيره وی نو په هغې باندې اوچول نه دی پکار ځکه چه دا د مال ضائع کول دی.
مسح : د ميم کسره ده هغه زګې جامې، درئ ته وائی چه د وينښتو نه جوړه وی.

**درجة الحديث** : رواه أبو داود واللفظ له، وابن ماجة (۴۸۸) واسناد الحديث حسن، و قال الألبانی فی صحيح ابی داؤد (۱۸۹) : اسناده صحيح، وقال ابن حجر : وصححه ابن حبان (۱۱۲۹) و (۱۱۶۲) وأصله فی الصحيح . تعليق المشكاة لرمضان بن أحمد .

٢٦ - وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا اَنَّهَا قَرَّبَتْ اِلَى النَّبِيِّ ﷺ جَنبًا مَشْوِيًا فَأَكَلَ مِنهُ ثُمَّ قَامَ اِلَى الصَّلاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ . رَوَاهُ أَحْمَدُ .

---

**ترجمه** : بی بی أم سلمهؓ نه روایت دے چه دے نبی ﷺ ته (د چیلۍ) وریت کړے پټون یوړلو، نبی کریم ﷺ دهغے نه اوخوړلو بیا مونځ دپاره اودریدلو او اودس ئې اونه کړو ـ (احمد)ـ

**تشریح** : د (جَنبًا) نه مراد اړخ او لیچه دے، مشوی هغے ته وائی چه په اور باندے په انګار کښے وریت شوے وی۔

وَلَمْ يَتَوَضَّأْ : نه دا معلومه شوه چه شرعی اودس ئې اونه کړو، او لاسونه ئې هم په څه څیز رانه خکل چه دیته لغوی وضوء وائی، د بیان د جواز دپاره ئې دا کار اوکړو۔ بله دا چه لاسونه به هله وینځی یا اوچوی چه غوړ شی او دلته غوړ نه وو۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح، أخرجه أحمد (٣٠٧/٦) والحديث أخرجه كذلك الترمذي (١٨٢٩) وقال : حديث حسن صحيح، وقال الألباني : وسنده صحيح على شرط الشيخين تعليق المشكاة (١٠٦/١) للألباني ولرمضان (١٦٤/١) .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ - دریم فصل

٢٧ - عَنْ أَبِي رَافِعٍ ﷺ قَالَ : أَشْهَدُ لَقَدْ كُنْتُ اَشْوِيْ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ بَطْنَ الشَّاةِ ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ .

**ترجمه** : ابو رافعؓ فرمائی : زه په دے خبره قسم خورم چه ما به رسول الله ﷺ دپاره د چیلۍ د خیټے دننه څیزونه (مثلا زړه، اینه وغیره) وریتول، نبی ﷺ به دهغینه خوراک اوکړو بیا به مونځ دپاره اودریدلو او اودس به ئې نه کولو ـ (مسلم)۔

**تشریح** : مقصود د حدیث دا دے چه نبی علیه السلام اور پخکړے شے خوړلے دے او بیا ئې اودس ندے کړے نو دا دلیل دے چه حکم د وضوء ما مست النار منسوخ دے۔

بطن الشاة : نه مراد د ګېډې، چيلۍ باطني څيزونه دي يعنی جګر، تورې زړه وغيره لوړ ماخ دي.

---

۲۸ – وَعَنْهُ ﷺ قَالَ : أُهْدِيَتْ لَهُ شَاةٌ فَجَعَلَهَا فِي الْقِدْرِ فَدَخَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَقَالَ : مَا هٰذَا يَا أَبَا رَافِعٍ؟ فَقَالَ : شَاةٌ أُهْدِيَتْ لَنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ! فَطَبَخْتُهَا فِي الْقِدْرِ، قَالَ : نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ يَا أَبَا رَافِعٍ فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ، ثُمَّ قَالَ : نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الآخَرَ، فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ الآخَرَ، ثُمَّ قَالَ : نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الآخَرَ، فَقَالَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ!، إِنَّمَا لِلشَّاةِ ذِرَاعَانِ. فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَكَتَّ لَنَاوَلْتَنِي ذِرَاعًا فَذِرَاعًا مَا سَكَتَّ، ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَتَمَضْمَضَ فَاهُ وَغَسَلَ أَطْرَافَ أَصَابِعِهِ، ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى، ثُمَّ عَادَ إِلَيْهِمْ فَوَجَدَ عِنْدَهُمْ لَحْمًا بَارِدًا فَأَكَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلّٰى وَلَمْ يَمَسَّ مَاءً). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : او أبو رافع ؓ فرمائي : (يوه ورځ) ماته د تحفې په طور چيلۍ راوليږلے شوه ما دهغې غوښه پخولو دپاره کټوۍ کښې واچوله (دې مينځ کښې) رسول الله ﷺ تشريف راوړلو۔ وې فرمائيل : أبو رافع داڅه دی ؟ ما عرض اوکړو : يا رسول الله ! د چيلۍ غوښه ده چه ماته هديه شويده۔ ما کټوۍ کښې پخ کړې ده۔ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ابو رافع ! يو لاس (ليچه) ماته هم راکړه، نو ما يو ليچه د رسول الله ﷺ خدمت کښې پيش کړه، بيا هغوی اوفرمائيل : يو ليچه راکړه ! ما دويمه ليچه هم پيش کړه، بيا نبی ﷺ اوفرمائيل : بل راکړه۔ ما عرض اوکړو : يا رسول الله ! د چيلۍ خو دوه ليچې وی (اوهغه دواړه مې ستاسو په خدمت کښې پيش کړلے، اوس بله ليچه خو نشته) نبی کريم ﷺ هغه ته اوفرمائيل : اے ابو رافع ! که ته خاموش پاتے شوے وے نو ماته به دې ليچه په ليچه راکولو څو پورې چه ته چپ وې، بيا نبی کريم ﷺ اوبه اوغوښتلې او خله ئې کنګال کړه او دګوتو طرفونه ئې اووينځل، بيا پاڅيدلو او مونځ ئې اوکړو۔ بيا أبو رافع ته ورغلو هغه سره ئې يخه (پخه) غوښه اوليده نو نبی کريم ﷺ هغه اوخوړله، هغې نه پس ئې مسجد ته

تشریف یوړلو، او مونځ ئے اوکړو، او اوبه ئے مسه هم نه کړے (یعنی نه ئے اودس اوکړو اونه ئے خله کنګال کړه) - احمد) اودا حدیث دارمی هم روایت کړے دے خو (ثم دعا بماء) نه آخر پورے ئے نه دے ذکر کړے۔

**تشریح** : أُهْدِيَتْ لَهُ شَاةٌ (ای لابی رافع) شَاةٌ : ځکه دا د نبی کریم ﷺ غلام دے ده ته هدیه داسے ده لکه مالك ته۔

**فائده** : د نبی کریم ﷺ دپاره هدیه خوړل جائز او صدقه خوړل ناجائز وو. ځکه صدقه کښے مقصود د ګناهونو ازاله او درجات اوچتول وی اودا صدقه دانسانانو خیرے صفا کوی نو د نبی ﷺ د شان سره دا مناسب نه وه. او هرچه هدیه ده نو په دے کښے مقصود د مُهْدىٰ له (چاته چه هدیه شوے وی) رضاء کول اوخوشحالول وی. اودا دنبی کریم ﷺ دشان اوچتوالے دے. نو دا هغه دپاره جائز وه۔

بیا په دے مقام کښے د وفاء الوفاء (۲/۲ ۹۰) په حاشیه کښے ددے حدیث رد کړیدے په مجرد عقل باندے چه د نبی کریم ﷺ د شان سره دا نه ښائی چه هغه دومره ډیره غوښه اوخوری دا خو د خواهش پرستو کار دے، اود اسبابو خلاف دے. ددے جواب دادے چه قیاس په مقابله د نص کښے صحیح نه دے، وجه داده چه دا معجزه د نبی ﷺ وه. اود اختسو د ذراع نه خو دا نه معلومیږی چه نبی کریم ﷺ دے خوړلے وی، کیدے شی چه ملګرو لره ئے ورکولو۔

۲ - یا داچه مقصود په دے مقام کښے ښکاره کول د خپلے معجزے وو نه خوراك دهغے، ځکه چه نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل که ته غلے شوے وے او لاس ډے خکته کړے وے نو نورے لیچے به دے هم راکولے۔ نو د یوے ګډے لاسونه (لیچے) زیاتیدل به معجزه وے۔

۳ - بله داچه دا تهول شاروے یوه کتوئ کښے راتلو نودا وروکے وو، او په یو یو وروکی ذراع باندے د انسان هیڅ کار نه کیږی، نو په عقل باندے صحیح حدیث رد کول جائز نه دی. کله به ستا عقل یوے خبرے ته رسیږی او کله به نه رسیږی، خو چه د رسول الله ﷺ نه صحیح ثابت شو، نو په آمنا سره به دهغے تصدیق کوے، اود معتزله او خوارجو پشان

چون وچرا به په کښې نه کوې !۔

اِنَّمَا لِلشَّاةِ ذِرَاعَانِ : **فائده** : ابو رافع عقل اوچلولو په مقابله د نص کښې اجتهاداً، پکار داده چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ذراع راکړه نو ده به لاس اچولے وے، ده به ظاهر ته کتلې وے عقل به ئې نه چلولے . دے باندے د انسان ذهن کهلاویږی که څوك سوچ اوکړی، په دے وجه ده باندے رسول الله ﷺ ضمنی رد هم اوکړو چه تالره داخبره کول نه وو پکار، چه دګډے دوه ذراعه وی، بلکه تابه ورته لاس اچولے وے چه پیغمبر ﷺ وائی راکړه نو که یو ځائے کښې څه شے نه وی هم خو ته ګوتے وروړه الله به ئې پیدا کوی، لکه بعض صحابوؓ سره داسے واقعات راغلی دی. دجابر بن عبد اللهؓ او ابو طلحهؓ کور ته نبی کریم ﷺ ډیر مسلمانان ور وستل او هغه پروګرام دلږو کسان دپاره کړے وو، نو هغه خفه شو چه ددے سره به څه کوو ؟ ښځې ورته اووئیل : پیغمبر ﷺ راوستی دی نو الله به ئې مړوی، نبی ﷺ ښه پو هیږی، الله به ئې ورله ورکوی ! نو دلته هم دغه شان پکار وه، نو که دیو شی په باره کښې شارع اووئیل چه دے کښې ستاسو خیر دے نو مونږ به په کښې خیر ګنړو اګرچه زمونږ د مشاهدے خلاف وی۔ نو حدیث کښې اتباع سنت ته کلك ترغیب دے۔

لَوْ سَكَتَّ : **سوال** دادے چه هرکله دا ذراع راپیدا کیدل معجزه ده نو څه وجه ده چه په خبرو د ابو رافع سره منقطع شوه ؟۔

**جواب** : وجه داده چه په وخت د معجزه کښې نبی کریم ﷺ رب ته متوجه وی، او په دے خبرو سره د نبی کریم ﷺ توجه د ابو رافعؓ خبرو ته راغله نو ځکه معجزه منقطع شوه۔

۲ – یا دا چه د عالم الغیب نه چه یو څیز په طریقه دخرق العادت سره ښکاره کیږی نو ددے شرط دادے چه په هغې کښې شك نه وی، او نقصان به په یقین اوتصدیق کښې نه وی او دلته د ابو رافع دخبرو په وجه تردد او شك پیدا شو، نو ځکه معجزه منقطع شوه۔

مَا سَكَتَّ : پدے کښې ما په معنی د مودے سره دے او ظرف دے د ناولتنی دپاره ای لناولتنی ذراعا فذراعا مُدَّةَ سکوتك ۔

لَحْمًا بَارِدًا فَأَكَلَ ، وَلَمْ يَمَسَّ مَاءً : يعنې كله چه اوچه غوښه اوخوړلے شي او هيڅ غوړوالے نه لري نو خوله وينځل هم ضروري نه دي ـ

**درجة الحديث** : رواه أحمد فى المسند (٦/٣٩٢) واسناده صحيح، وقال الألبانى فى تعليق المشكاة : فى اسناده ضعف، لكنه يتقوى بالشاهد الذى قبله وبالشاهد الذى بعده، كذا فى التعليقين للمشكاة. فالحديث صحيح .

٢٩ – وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِيْ عُبَيْدٍ اِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ : ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ اِلٰى آخِرِهٖ.

ابى عبيد : دا د نبى كريم ﷺ غلام دے اوصحابى دے، په اسم كنيه مشهور دے خپل نوم ئے نه دے معلوم، او صرف دا يو حديث ترے نقل دے۔

**درجة الحديث** : رواه الدارمى (١/٢٢) واسناد رجاله ثقات غير شهر بن حوشب وهو ضعيف من قبل حفظه، لكن الحديث قوى بحدث أبى رافع الذى قبله بطريقيه، مشكاة الألبانى (١/١٠٧) .

---

٣٠ – وَعَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضی اللہ عنہ قَالَ : كُنْتُ اَنَا وَاُبَيٌّ وَاَبُوْطَلْحَةَ جُلُوْسًا فَاَكَلْنَا لَحْمًا وَخُبْزًا ثُمَّ دَعَوْتُ بِوَضُوْءٍ فَقَالَا : لِمَ تَتَوَضَّأُ ؟ فَقُلْتُ : لِهٰذَا الطَّعَامِ الَّذِيْ اَكَلْنَا فَقَالَا : اَتَتَوَضَّأُ مِنَ الطَّيِّبَاتِ لَمْ يَتَوَضَّأْ مِنْهُ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْكَ. رَوَاهُ اَحْمَدُ.

---

**ترجمه** : انس بن مالكؓ فرمائى : زه، أبى بن كعب او أبو طلحه ناست وو، مونږ غوښه او روټئ اوخوړله (خوراك نه پس) ما د اودس اوبه راوغوښتے، ابئ بن كعبؓ او أبو طلحهؓ اووئيل : ته اودس ولے كوے ؟ ما ورته اووئيل : ددے طعام په وجه چه ما اوس اوخوړلو، نو هغے دواړو اووئيل : آيا پاكيزه څيزونو خوړلو نه اودس كوے، دے څيزونو خوړلو سره هغے سړى اودس نه دے كړے كوم چه تانه بهتر دے (يعنى نبى كريم ﷺ)۔ احمد۔

**تعارف د ابو طلحه رضی اللہ عنہ :**

دده نوم زيد بن سهل بن الأسود بن حرام دے، انصارى مدنى نجارى دے، په كنيه باندے

مشهور دے، د اوچتو صحابو^ نه شمار دے، عقبه او بدر او نورو تولو معرکو ته حاضر شویدے، دام سلیمؓ خاوند دے اود انس بن مالکؓ پلندر دے. اودا په صحابو^ کښے مشهور تیر انداز (غشی ویشتونکے) وو، ده باره کښے نبی کریم ﷺ فرمائی :

لصوت ابی طلحة فی الجیش خیر من فئة۔

د حنین په جنګ کښے ئے شل کفار وژلی وو، اود احد په جنګ کښے ورته ډیر مصیبت رسیدلے وو، د نبی کریم ﷺ دحفاظت دپاره ئے غشو ته لاس وړاندے کولو تردے چه هغه شل شو. دوه نوی (۹۲) احادیث ئے امت ته رانقل کړی دی .

انسؓ فرمائی : د نبی کریم ﷺ د وفات نه روستو څلویښت کالو پورے ژوندے وو، او ټول عمر ئے روژه نیوله، سیوا داخترونو نه اود نبی ﷺ په ژوند کښے روژو نیولو ته اوزګار نه وو، ځکه چه په غزواتو اوجهادی امورو باندے مشغول وو. په سنه (٥١) هـ کښے وفات شویدے. رضی الله تعالیٰ عنه.

**تشریح** : ثُمَّ دَعَوْتُ بِوَضُوْءٍ : دلته انسؓ ته حدیث ناسخ نه دے معلوم چه دا حکم منسوخ دے او نورو صحابوؓ ته معلوم دے.

فَقَالَا : اَتَتَوَضَّأُ مِنَ الطَّيِّبَاتِ : دلته ورته دلیل عقلی اوقیاس ذکر کوی اوددے سره نص پیش کوی اودا ډیر ښکلے دلیل وی چه د نص سره دلیل عقلی هم پیش شی، اوګویا کښے دلته دنسخ حکمت ورته ښائی چه لحم اوخبز طیبات دی اود طیبات نه روستو اودس نه وی لازم، نو په دے وجه دا حکم منسوخ شوے دے. او ابتداء داسلام کښے چه اودس کول لازم وو نو دهغے به نور حکمتونه وو۔

**فائده** : صحابه کرامؓ به په هغه عمل باندے ځان الله تعالیٰ ته نه نزدے کولو کوم عمل چه به نبی کریم ﷺ نه وو مشروع کړے۔ او أنسؓ چه د غوښے نه اودس کولو نو شاید چه ده ته به نسخ نه وه رسیدلے۔ نودے حدیث کښے رد الحدیث بالقیاس نه دے، کما یفعله الجهال بلکه تنبیه ده په علم بالمنسوخ باندے۔

طحاوی نقل کړی دی : قال ابو طلحة : اعراقیة ؟ آیا دا مسئله انس د عراق نه راوړے ؟ عراق چونکه موضع الفتن والبدع دے ځکه ئے ددے تخصیص کړیدے۔ (۱/٥٦)۔

**درجة الحديث** : رواه أحمد في المسند (٤/ ٣٠) ورجاله ثقات معروفون، غير عبد الرحمن بن زيد بن عقبة قال أبو حاتم : ما بحديثه بأس. وذكره ابن حبان في الثقات. فالاسناد جيد. تعليق المشكاة (١٠٧/١).

**۳۱** – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقُوْلُ : قُبْلَةُ الرَّجُلِ اِمْرَأَتَهُ وَجَسُّهَا مِنَ الْمُلَامَسَةِ وَ مَنْ قَبَّلَ اِمْرَأَتَهُ اَوْجَسَّهَا بِيَدِهٖ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ. رَوَاهُ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ.

**ترجمه** : ابن عمرؓ نه روایت دے چه ده به فرمائیل : د سړی د خپلې ښځې نه بوسه (کوکئ) اخستل او هغه خپل لاس سره مسه کول دا هم ملامست دے، اوکوم سړی چه خپلې ښځې نه کوکئ (بوسه) واخسته یا ئې هغې له لاس ورووړو نو په هغه باندے اودس واجب دے ۔ (مالك، شافعي)۔

**تشریح** : دا د ابن عمرؓ فتوی ده چه په مس المرأه سره اودس ماتیږی ( رواه مالك والشافعي) لیکن امام شافعیؒ ورله صرف دا قول منلے دے او امام مالكؒ ورله نه دے منلے، ځکه چه هغه ته نور نصوص احادیث مرفوعه معلوم دی، چه په مس المرأه سره اودس نه ماتیږی ځو پورے چه څه شے خارج شوے نه وی، نو د ابن عمرؓ دا فتوی د احادیثو خلاف ده، نو دا ډیر محترم صحابیؓ دے، د امت مشر ذے لیکن دے فتوی باندے به ئے عمل نه کیږی، حجت د الله اود رسول ﷺ په خبرو کښے دے، د حدیث د وجے نه د چا خبره پریخودل عین ادب دے .

**درجة الحديث** : رواه مالك في الموطأ رقم (٦٤) وسنده صحيح، وعنه رواه الشافعي كما في البيهقي، وصححه ابن عبد البر، تعليق المشكاة : ١٠٧/١ ۔

امام زیلعی په نصب الرایه کښے دابن عبد البرؒ نه نقل کړیدی چه دا روایت د عمرؓ نه په ضعیف سند سره نقل دے اودا د محدثینو په نزد خطاء روایت دے . وجه داده چه اصل کښے دا روایت د ابن عمرؓ دے اود هغه قول دے اوبعض راویان په دے کښے خطاء شوی دی نو نسبت ئے عمر فاروقؓ ته کړیدے .

۳۲ – وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ : مِنْ قُبْلَةِ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ الْوُضُوْءُ. رَوَاهُ مَالِكٌ .

**ترجمه** : ابن مسعودؓ نه روایت دے چه ده به فرمائیل : په سړی باندے دخپلے ښځے نه بوسه آخستو سره اودس لازمیږی۔ (مالك)۔

**درجة الحديث** : رواه مالك فی الموطأ رقم (٦٥) انه بلغه ان عبد الله بن مسعود كان يقول۔ قال الألبانی في تعليق المشكاة : ۱۰۷/۱ : هذا من بلاغات مالك فكان على المؤلف ان يذكر ذلك لئلا يتوهم احد انه صحيح، نعم روى معناه البيهقى فی سننه : ۱۲٤/۱، من طريق اخرى عنه، واسناده صحيح، فالحديث ثابت۔

---

۳۳ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالَ : اِنَّ الْقُبْلَةَ مِنَ اللَّمْسِ فَتَوَضَّؤُوْا مِنْهَا .

**ترجمه** : ابن عمرؓ نه روایت دے چه جناب عمر فاروقؓ به فرمائیل : چه بوسه اخستل لمس کښے داخل دی – کوم چه په قرآن کښے ذکر دے – نو بوسه اخستونه پس اودس کوئ۔

**تشریح** : دلته چه کوم درے آثار مصنفؒ نقل کړی نو دا ددے صحابوؓ مذهب دے، او حدیث مرفوع ورسره نشته، بلکه صرف استدلال ئے کړیدے د آیت نه، کما تقدم . اودا حدیث موقوف بمنزله المرفوع هم نه دے، ځکه دلته اجتهاد دپاره مجال شته دے، چه لمس نه مراد ئے لمس بالید اخستے دے، او حدیث مرفوع صحیح صریح د عائشةؓ ددے آثارو خلاف دے، ممکنه ده چه دے صحابوؓ ته مرفوع حدیث نه وی رسیدلے، او کله چه تعارض راشی د حدیث مرفوع صحیح د موقوف حدیث سره نو ترجیح مرفوع لره وی۔

ولا حجة فی قول الصحابی عند معارضة الحديث المرفوع الصحيح، كما هو مسلم عند الكل۔

**درجة الحديث** : رواه الدارقطنی : ۵۳/۱، وقال : صحيح وفيه نظر، فان فی اسناده

محمد بن عبد الله بن عمرو بن عثمان الملقب بالدیباج وفیه ضعف من قبل حفظه، وقال ابن الترکمانی فی الجوهر النقی : ذکر ابن عبد البر فی التمهید اثر عمر ثم قال : هذا عندهم خطأ وانما هو عن ابن عمر صحیح، لا عن عمر، قال الألبانی : ویؤیده ان عاتکة بنت زید زوجة عمر بن الخطاب قبلته ثم صلی ولم یتوضأ، رواه الأثرم فی سننه (ق : ۱۹/۲/۲).

نو عمر رضی الله عنه نه ددے مخکښے روایت خلاف بل روایت هم راغلو چه هغه هم قائل دے په نه ماتیدلو د اودس په مسه کولو د ښځے سره۔

---

**۳٤ – وَعَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اَلْوُضُوْءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ ) . رَوَاهُمَا الدَّارَقُطْنِيُّ، وَقَالَ : عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ وَلَا رَآهُ وَيَزِيْدُ بْنُ خَالِدٍ وَيَزِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ مَجْهُوْلَانِ .**

---

**ترجمه** : عمر بن عبد العزیزؒ د تمیم داریؓ نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : هر بهیدونکی وینے سره اودس لازمیږی۔ دواړه روایتونه دارقطنی نقل کړی دی او وئیلی ئے دی چه عمر بن عبد العزیز، نه خو تمیم داریؓ نه آوریدلی دی او نه ئے هغه لیدلے دے، اوددے روایت دوه راویان یزید بن خالد اویزید بن محمد مجهول دی۔

### تعارف د عمر بن عبد العزیز رحمه الله :

دده نوم عمر بن عبد العزیز بن مروان بن الحکم بن ابی العاص بن امیه بن عبد شمس القرشی الأموی، ابو حفص المدنی، ثم الدمشقی أمیر المؤمنین. دده مور أم عاصم بنت عاصم بن عمر بن الخطابؓ نوم ئے لیلیٰ وه. د ولید د طرفنه د مدینے والی وو، اود سلیمان بن عبد الملک سره د وزیر پشان وو، او د هغه دمرګ نه پس په (۹۹) هـ کښے ورته خلافت اوسپارل شو. ډیر د عدل اوانصاف خلافت ئے قائم کړو۔ دا وجه ده چه داد خلفاء راشدینوؓ نه حساب دے، دا ډیر بهادر شخص وو، اوپه خپل دور خلافت کښے هم ډیر زیات زاهد اوعابد اوعفیف پاتے شو. علماء به دده مجلس ته راجمع کیدل اودیو بل نه به ئے استفاده کوله،

دده په مرګ باندې حسن بصری او فرمائیل : مات خیر الناس . موده دخلافت ئې دوه کاله پنځه میاشتې او یو څو ورځې دپاسه وو. د رجب په میاشت سنه (۱۰۱هـ) کښې د حمص مقام په دیر سمعان علاقه کښې وفات شویدې . رحمه الله۔

## تعارف د تمیم الداری رضی الله عنه :

دده کنیه ابو رقیه ده، اودا منسوب دې خپل نیکه ته، الدار بن هانئ بن خبیب، دده خپل نوم تمیم بن اوس بن خارجه الداری دې،مشهور صحابی دې، د عثمان د قتل نه پس په بیت المقدس کښې اوسیدلو . اسلام ئې په (۹) نهم کال دهجرت باندې راوړو، اودا مخکښې نصرانی وو، اودده خصوصیت داوو (۱) چه په یو رکعت کښې به ئې قرآن ختمولو . مسروق فرمائی : یوه شپه کښې ئې تهجد په یو آیت (ام حسب الذین اجترحوا السیئات) باندې اوکړل . (۲) اود تولو نه اول ده په مسجد نبوی کښې ډیوه بله کړیده . (۳) او نبی علیه السلام دده نه حدیث د دجال نقل کړیدې، دده دا لوئې فضیلت دې . اګرچه حدیث د دجال نبی ﷺ مخکښې بیان کړې وو مګر دلته تمیم داری دجال لیدلې دې نو نبی علیه السلام دا لیدلې حدیث بیان کړو. دده نه (۱۸) احادیث نقل دی. په سنه (۴۰) هـ کښې وفات شویدې.

**تشریح** : اَلْوُضُوْءُ مِنْ کُلِّ دَمٍ سَائِلٍ : په دې مقام کښې دوه قسمه مسئلې دی :

۱ - **اوله مسئله** : وینه وتلو سره اودس ماتیږی که نه ؟۔

۲ - **دویمه مسئله** : وینه نجس ده که نه ؟۔

هرچه اوله مسئله ده نو په دې کښې اختلاف دې په دوه قولونو سره :

**۱ - اول قول** : د امام شافعی، مالک او په تابعینو کښې دعطاء، طاؤس، حسن، قاسم بن محمد، اوسعید بن المسیب دې . علامه عبد الحی په التعلیق الممجد (۶۲/۱) کښې فرمائی :

وهو مذهب طاؤس ویحیی بن سعید الأنصاری وربیعة بن عبد الرحمن وابی ثور وابن عباس وابن ابی اوفی وجابر وابی هریرة وعائشة – رضی الله عنهم.

قال الألبانی فی السلسلة الصحیحة (۴۸۲/۱) : ولهذا کان مذهب اهل الحجاز ان لیس

فی الدم الوضوء وهو مذهب الفقهاء السبعة من اهل المدینة وسلفهم.

دوئ فرمائی چه په وینه وتلو سره اودس نه ماتیږی، لیکن اودس کول مستحب دی، واجب نه دی. دارنګه په قئ اوقیح وغیره سره هم اودس نه ماتیږی. لنډه دا چه هر هغه شے چه دغیر سبیلین نه خارج شی په هغے سره اودس نه ماتیږی. اودا قوی مذهب دے دوجے دلائلونه.

## دلائل ددے قول (چه په وینه اودس نه ماتیږی):

۱ - ابن حبان په خپل صحیح (۲/۲۱۲) کښې او امام بخاری (۱/۲۹) تعلیقا، ابوداود (۱/۲۹، ابن خزیمه (۱/۲٤) بیهقی (۱/۱٤۱) کښې راوړیدے:

عن جابر: خرجنا مع رسول الله ﷺ فی غزوة ذات الرقاع من نخل - الحدیث طویل وفیه - فقام الانصاری یصلی واتی الرجل فلما رأی شخصه وعرف انه ربیئة للقوم فرماه بسهم فوضعه فیه فنزعه حتی رماه بثلاثة اسهم ثم رکع وسجد، ثم أنبه صاحبه فلما عرف انهم قد نزروا به هرب فلما رأی المهاجری مابالانصاری من الدماء قال: سبحان الله! الا نبهتنی اول ما رمی قال: انی کنت فی سورة اقرؤها فلم احب ان اقطعها، حتی انفذها، فلما تابع علیّ الرمی رکعت فآذنتك، الحدیث.

**ترجمه**: جابرؓ فرمائی: مونږ د رسول الله ﷺ سره دغزوه ذات الرقاع په موقعه روان وو، حدیث اوګد دے، جابرؓ فرمائی: یو انصاری صحابی پاڅیده مونځ ئے کولو، او یو سړے د مشرکانو نه راغے او دے ئے اولیده نو پوهه شو چه دا خو ددے قوم څوکیدار دے نو په غشی باندے ئے وویشتلو، او سم ئے په کښې کیخودلو، نو دغه صحابی بیا دغه غشے را اوویستلو، تردے چه په درے غشو ئے وویشتلو بیا هغه صحابی رکوع وکړه اوسجده ئے وکړه بیا ئے خپل مهاجر ملګرے راویښ کړو، کله چه هغه مشرك ته پته ولګیده چه مسلمانان خپلو کښې سره پوهه شو په دے واقعه نو هغه وتښتیدو، کله چه مهاجر صحابی د انصاری وینے ولیدے، وئیل سبحان الله! ولے دے زه نه خبرولم کله چه دراندے اولنے غشے ولږیدلو، هغه ووئیل: ما داسے یو سورت لوستلو چه د هغے پرینبودل مے زړه اونه غوښتل، ترڅو مے چه ختم کړے نه وی، خو چه کله پرله پسے راباندے غشی لګیدل

شروع شو نو رکوع مې اوکړه اوتاته مې خبر درکړو)۔

ددې انصاري نوم عباد بن بشر او د مهاجر نوم عمار بن یاسر دې، رضی الله عنهما۔

دا حدیث صحیح سند سره ثابت دې، او صریح او واضح دلیل دې په دې خبره چه په وینه وتلو سره اودس نه ماتیږي، او وینه پاکه ده ځکه چه د انصاري جامې پرې هم لړلې شوې دي۔

**سوال** : دا خو عمل دصحابي دې او دا حجت نه دې.

**جواب** : ظاهره داده چه رسول الله ﷺ په دې واقعه خبر شو اوخاموش شو نو دا سنت تقریري شو، په دومره لویه واقعه باندې د نبي کریم ﷺ نه خبریدل ډیره بعیده ده، ځکه چه نبي ﷺ پخپله کینولي دي او بیا دهغوئ خبر نه اخستل په پیغمبر ﷺ باندې بدګماني ده۔

۳ – بله دا چه که پیغمبر ﷺ نه وې خبر نو الله به ورته ددې واقعې وحي کړې وې چه ستا صحابه غلط مونځ کوي، په نجاست کښې مونځ کوي۔

٤ – علاوه لا دا چه په بل حدیث کښې تصریح راغلې ده چه نبي ﷺ ددې واقعې نه خبر شو او دې دواړو صحابو ته ئې دعاء هم اوکړه، لکه حدیث داسې دې :

فبلغ ذلك رسول الله ﷺ فدعا لهما. (کما فی المرعاة : ۲/٤٦، والعینی : ۱/۱۲۲، بروایة سنن ابی داود، وصحیح ابن حبان، والدارقطني، والبیهقی)۔

دلته احناف په شوافعو باندې اعتراض کوي چه هرکله دې انصاري صحابي نه وینه بهیدله نو ستاسو په نیز خو اودس مات نشو لیکن وینه خو ستاسو په نزد هم نجس ده، نو په نجاست سره څنګه مونځ کوي ؟ فما هو جوابکم فهو جوابنا فی انتقاض الوضوء.

نو هغوئ بیهوده جواب ورکوي لکه امام نووي وائي چه شاید دغه وینه نیغه بهیدله په بدن نه لګیدله. لیکن دا جواب د عقل خلاف دې، چه هیڅ وینه په بدن نه وي لګیدلې۔

بله دا چه دا لفظ د ابوداود پرې دلیل دې (فلما رأى المهاجري ما بالأنصاري من الدماء) یعني مهاجري په انصاري باندې وینې اولیدلې دلیل دې چه وینو باندې ککړ شوې وو.

نو بنه جواب دادے چه د وینے په نجاست کښې هم دغه اختلاف دے، اصح داده چه نجس نه ده، کما سیأتی تفصیله۔

۲ - **جواب** : امام بخاریؒ کوی . که اومنو چه وینه نجس ده نو بیا نجاست دوه قسمه دے، یو هغه دے چه دمانځه نه خارج وی نو دا مضر دے مانځه ته. (۲) بل نجاست عارضه دے په داخل د مانځه کښې، نودا مفسد دمانځه نه دے، ځکه مشرکانو په نبی ﷺ باندے په مانځه کښې لرے اوکولے وغیره په حالت دسجده کښې اچولی وو چه هغه دهغې په وجه نشو پورته کیدلے، بیا فاطمےؓ ترے گذار کړو، نو نبی ﷺ مونځ پوره کړو او بیائے دغه کسانو ته ښیرے اوکړے - دلته نبی ﷺ مونځ پوره کړے دے، دلیل دے په دے چه نجاست عارضه مفسد نه دے۔

۲ - **دلیل** : حدیث : لا وضوء الا من حدث او ریح.

(بخاری : ۱/۲۹، مسلم، احمد، ترمذی، مشکاة (۱/۴۰، الفتح الربانی : ۲/۷۵).

دا حدیث واضح دلیل دے او الفاظ دحصرئے راؤړیدی چه اودس په وینه او قئ دغه شان په هر خارج من غیر السبیلین نه ماتیږی. اود خارج من السبیلین ناقض د اودس کیدل د نورو دلائلو نه ثابت دی۔

۳ - **دلیل** : حدیث د ابن عمرؓ دے چه ابن ابی شیبه (۱/۹۲) په صحیح سند سره او امام بخاریؒ (۱/۲۹) تعلیقا ذکر کړے :

عن ابن عمر انه عصر بثرة فی وجهه فخرج شئ من دم فحکه بین اصبعیه ثم صلی ولم یتوضأ.

(ابن عمرؓ به دخپل مخ وړے وړے دانے دگوتو ترمینځه اومښلے دهغې نه به څه وینه اووتله، بیا به ئے مونځ کولو او اودس به ئے نه کولو)۔

٤ - حدیث د عبد الله بن ابی اوفیٰؓ دے چه عبد الرزاق مصنف (۱/۱٤۸) کښې او امام بخاری (۱/۲۹) تعلیقا راوړے : انه بزق دما فی صلاته فمضی فی صلاته۔

یعنی : دهغه په خوله کښې وینه راغله او په مانځه کښې ئے دخلے نه توئے کړه او مونځ ئے جاری اوساتلو۔

٥ – حديث د ابن عمرؓ دے چه امام بخاریؒ (١/٢٩) تعليقا او امام بيهقیؒ (١/١٤٠) په صحيح سند سره ذکر کړے چه :

انه كان اذا احتجم غسل محاجمه۔

يعنې : ابن عمرؓ به چه کله ښکر اولګولو نو صرف هغه ځايونه به ئې اووينځل په کوم چه به ئې ښکر لګولے وو (اودس به ئې نه کولو)۔

٦ – حديث د ابو هريرةؓ دے چه مصنف ابن ابی شيبه او مصنف عبد الرزاق (١/١٤٥) بسند صحيح روايت کړے چه ميمون بن مهرانؒ وائی :

رأيت اباهريرة ادخل اصبعه فی انفه فخرج مخضبة دما ففته ثم صلى فلم يتوضأ۔

ترجمه : ما ابو هريرهؓ اوليدلو چه خپله ګوته ئې په پوزه کښې ننويستله، وينه ترے راووته، هغه ئې اومښله، اومونځ ئې اوکړو او اودس ئې اونه کړو۔

٧ – اثر د سعيد بن المسيبؒ دے چه موطأ امام مالك (١/٢٧) ذکر کړے :

انه كان يرعف فيخرج منه الدم حتى تختضب اصابعه من الدم ثم يصلى ولا يتوضأ.

چه د هغه د پوزے نه وينه روانه وه، د لاس تولے ګوتے ئې پرے رنګ شوے، بيا ئې مونځ اوکړو او د وينے د وتلو په وجه ئې اودس اونه کړو۔

امام زرقانیؒ فرمائی : لان وضوئه لم ينتقض. (زرقانی على الموطأ : ١/١٤٦)۔

دارنګه وينه ئې پاکه ګڼړله ځکه اودس ئې اونه کړو او لاسونه ئې ترے هم اونه وينځل۔

٨ – اثر د سالم بن عبد اللهؒ دے چه دا هم امام مالكؒ نقل کړے :

انه كان يخرج من انفه الدم حتى تختضب اصابعه ثم يفتله ثم يصلى ولا يتوضأ۔

چه د هغه د پوزے نه به وينه اووتله تر دے چه ګوتے به ئې رنګ شوے بيا به ئې اومښله او مونځ به ئې اوکړو خو اودس به ئې ترے نه کولو۔

٩ – اثر د سعيد بن جبيرؒ دے چه عبد الرزاق په المصنف (١/١٥٥) کښے راوړے، حميد الطويل فرمائی : ما د سعيد بن جبيرؒ نه تپوس اوکړو چه زما په مخ وړه دانه وه هغه ما ماته کړه او وينه ترے لاړه او په ګوتو مے بيا اومښله نو د دے څه حکم دے ؟ هغه اوفرمائيل : په دے سره اودس نه ماتيږی۔

**۱۰ – حدیث د انس بن مالكؓ دے دا فرمائی :**

احتجم رسول الله ﷺ فصلی ولم یتوضأ، ولم یزد علی غسل محاجمه۔

**یعنے : رسول الله ﷺ ښكر اولګولو بیائے مونځ اوكړو او اودس ئے اونه كړو، صرف داچه د ښكر لګولو ځایونه ئے اووینځل.**

( السنن الكبرىٰ : ۱/۲۲) رقم : (٦٦٦) و (۱٤۱).

**۱۱ – یولسم دلیل دادے چه : هیڅ صحیح حدیث په باره د ماتیدو د اوداسه كښے په وینه وغیره باندے نه دے ثابت، او اصل هم داده چه طهارت په خپل حال باقی وی. ترڅو چه صحیح دلیل ددے په نقض باندے دلالت اوكړی، كوم چه دلته نشته۔**

## اقوال العلماء فی عدم نقض الوضوء بالدم

**۱ – شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ په مجموع الفتاوی (۲۱/۲۲۸) كښے فرمائی :**

لایجب الوضوء من خروج الدم، ولكنه یستحب۔

**۲ – شیخ صالح العثیمین په خپله فتاوی (٤/۱۹۹) كښے فرمائی :**

ولیعلم ان الدم الخارج من الانسان من غیر السبیلین لا ینقض الوضوء لا قلیله ولا كثیره، كدم الرعاف ودم الجرح بل نقول : كل خارج من غیر السبیلین من بدن الانسان فانه لاینقض الوضوء،مثل الدم وماء الجروح وغیرها، لأن الأصل بقاء الطهارة حتی یقوم دلیل علی انتقاضها

**۳ – امام بخاریؒ باب تړلے :** باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین (۱/۲۸)۔

**بیائے د حسن بصریؒ نه نقل كړی دی :**

ما زال الناس یصلون فی جراحاتهم. **حافظ ابن حجرؒ فرمائی :**

وصله سعید بن منصور، بسند صحیح۔

**٤ – شیخ البانیؒ فرمائی : حقه خبره داده چه دوینے په وتلو سره داودس په وجوب باندے یو حدیث هم صحیح نشته، لهذا مذهب د اهل حجاز دادے چه په وینه تلو سره اودس نه دے لازم، اودا مذهب د فقهائے سبعه د مدینے هم دے۔**

(سلسلة الأحادیث الضعیفة : ۱/٤۸۳، وكذا فی تمام المنة۔

**۵ – امام بهاؤ الدین ابن شداد المتوفی (٦۳۲) هـ په كتاب دلائل الأحكام (۱/٦۰)**

**كښې د امام بخاريؒ د جابرؓ د حديث په فوائدو كښې داسې فرمائي :**

ومن فوائده : انه تمسك به من لم یر انتقاض الوضوء بخروج الدم من غیر السبيلين وذهب اليه من التابعين عطاء وطاؤس والحسن والقاسم بن محمد وسعيد بن المسيب وهو مذهب مالك والشافعي انتهى۔

**٦ – امام نوويؒ فرمائي :**

ومذهبنا انه لا ينقض الوضوء بخروج شئ من غير السبيلين كدم الفصد والحجامة والقئ والرعاف سواء قل او كثر. وبهذا قال ابن عمر، وابن عباس، وابن ابی اوفیٰ، وجابر، وابو هريرة، وعائشة، وابن المسيب، وسالم بن عبد الله بن عمر، والقاسم بن محمد، وطاؤس، وعطاء، ومكحول، وربيعة، ومالك، وابو ثور، وداؤد. قال البغوی : وهو قول اكثر الصحابة والتابعين – رضی الله تعالى عنهم اجمعين – انتهى. المجموع شرح المذهب : ٢/ ٦٠٠).

قال ابن حزم : لا ينقض الوضوء القئ كثر اوقل، ولا قلس و لا قيح. (المحلى : ١/ ٢٣٥)۔

**القول الثاني** : چه په وينه وتلو سره اودس ماتيږي كله چه سيلان په كښې وي، يعنې د مخرج نه اوبهيږي. او اودس كول واجب دي، يعنې هر هغه شے چه د بدن نه لاړ شي (سيوا دګرنګ، خراشكي او اوښكو نه) په هغې اودس ماتيږي – اودا قول د امام ابوحنيفةؒ، احمد بن حنبلؒ، اسحق بن راهويهؒ، اوزاعيؒ، سفيان ثوريؒ، قتادةؒ، عروه بن الزبيرؒ، شعبي ، علقمةؒ، اسودؒ اوزهريؒ دے. او په صحابو كښې د ابن مسعودؓ، زيد بن ثابتؓ، ابودرداءؓ او ثوبانؓ دے۔

## ددے قول دلائل او د هغے تجزيه

١ – ددے قول والا دپاره قوی **دليل** صرف يو حديث د فاطمه بنت ابی حبيشؓ دے (كما قال العلامة عبد الحی اللكهنوی فی حاشية شرح الوقاية : ١/ ٧٠) چه امام بخاريؒ، اصحاب السنن وغيره تولو كتابونو راوړيدے چه په هغې كښې دا الفاظ دي :

قالت : يارسول الله ! انی استحاض فلا اطهر أفادع الصلاة ؟ قال : لا، انما ذلك عرق، وليست بالحيضة، فاذا اقبلت الحيضة فدعى الصلاة واذا ادبرت فاغسلی عنك الدم وتوضئ لكل صلاة، حتى يجئ ذلك الوقت.

یعنې : کله چه حیض ختم شي نو وینه دځان نه اووینځه، اود هر مانځه دپاره اودس اوکړه الخ - نودې حدیث کښې امر شوې دې فاطمهؓ ته په اودس کولو سره دوینې د وتلو په وجه. اود (عرق) یعنې رګ ذکر کولو کښې اشاره ده دیته چه عرق تاثیر دې په نقض الطهارة کښې، کما قاله عبد الحیؒ.

**جواب** : ۱ - دا وینه د فرج نه راوتې ده نو دا په (ماخرج من السبیلین) کښې داخل ده نو ځکه اودس واجبوی، اودا وجه نه ده چه دا د بدن نه خارج ده، ځکه که د سبیلین نه طاهر شے هم خارج شي اودس ماتوی، لکه ریح وغیره. پاتې لا دا چه د حیض وینه ترے خارجه شي.

اودلته خو داسې نه دي وئیلی چه د هر عرق (رګ) نه چه خارجه شي هغه به ناقضه وی. بلکه دلته صرف دا خبره ده چه دا د رګ وینه ده نو موجب داودس ده، ځکه چه د فرج په لاره راوتې ده، لکه څنګه چه مني اوحیض د فرج په لاره راوځي نو په هغې کښې غسل دے او په دې کښې اودس دے.

باقي قیاساتو ته هیڅ ضرورت نشته، وجه داده چه که په وینه اودس ماتیدلے نو نبي ﷺ خو د بیان دپاره امت ته راغلے دے نو په یو حدیث صحیح کښې به خو ثابته شوې وې چه وینه اودس ماتوی.

۲ - **جواب** دادے : چه دا حدیث صحیح دے خو دا د مستحاضې پورې خاص دے اودا حکم تعبدی دے او په دې باندې قیاس نشي کیدے. حکم تعبدی دیته وائي چه (لا یعقل معناه) غیر معقول المعنی وی، دهغې معنی باندې عقل نه پوهیږي.

۳ - **جواب** دادے : چه په دې حدیث کښې په خپله سبب ذکر دے چه (اني امرأة استحاض فلا اطهر الخ) اودیته پته وه چه حائضه خپل پاکوالے نه پیژني مګر په ختمیدو د وینې سره، او اوس خو وینه جاري ده نو آیا زه مونځ پریدم؟ نو سبب د وضوء وینه د استحاض ده چه راوځي د فرج نه کما مر.

۲ - **دویم دلیل** : ابن ماجه رقم (۱۲۲۱) کښې د عائشهؓ مرفوع روایت دے :

قالت : قال رسول الله ﷺ : من اصابه قئ او رعاف اوقلس او مذی فلینصرف فلیتوضأ ثم

لین علی صلاته، وهو فی ذلك لا يتكلم. (قلس : توته د وينې)۔

**جواب** : دا حدث ضعيف دے، يوه وجه داده چه اسماعيل بن عياش په کښے دے. دويم ابن جريج مدلس دے اودلته ئے عنعنه کړيده (تعليق التحقيق : ۱۸۸/۱).

امام عبد الرحمن بن اسماعيل البوصيریؒ المتوفی (۸٤۰) هـ په مصباح الزجاجه فی زوائد ابن ماجه (۱۸٤) کښے فرمائی :

هذا اسناد ضعيف لأن اسماعيل بن عياش روايته عن الحجازيين ضعيفة، انتهى.

امام ترمذیؒ فرمائی : قال احمد بن حنبل : اسماعيل بن عياش اصلح بدنا من بقية، ولبقية احاديث مناكير عن الثقات و سمعت عبد الله بن عبد الرحمن يقول : سمعت زكريا بن عدى يقول : قال ابو اسحق الفزارى : خذوا عن بقية ما حدث عن الثقات ولاتأخذوا من اسماعيل بن عياش ما حدث عن الثقات ولا غير الثقات (جامع الترمذی : ۳۲/۲).

امام منذریؒ فرمائی : اسماعيل بن عياش الحمصی عالم اهل الشام قال النسائی : ضعيف، قال ابن حبان : كثير الخطاء فی حديثه فخرج عن حد الاحتجاج به، وقال علی بن المدينی : اسماعيل عندی ضعيف. وقال ابن خزيمة : لا يحتج به. وقال ابوداود : سمعت ابن معين : ثقة.

نودلته دوه خبرے دی : يوه داچه اسماعيل چه دخپل اهل بلد نه روايت اوکړی نو صحيح دے۔

دويم داچه : دحجازينو نه روايت اوکړی نو بيا ضعيف دے. اودلته ئے د حجازينو نه روايت کړيدے چه ابن جريج دے. نودا روايت ضعيف شو۔

الترغيب والترهيب : ۳۲۰/٤۔

امام بيهقیؒ په السنن الكبرى (۱٤۲/۱) کښے فرمائی :

قال الشافعی فی حديث ابن جريج عن ابن ابی مليكة عن ابيه فليست الرواية ثابتة، واما حديث ابن جريج عن ابن ابی مليكة الذی يرويه اسماعيل فليس بشئ.

امام نوویؒ په المجموع شرح المهذب (٦٨/۲) کښے فرمائی :

واما الجواب عن حديث ابن جريج من احسنها : انه ضعيف باتفاق الحفاظ، وضعفه من

وجهين. بيا ئے دغه پورتنئ دوه وجے ذکر کړی دی، اودريمه وجه ئے دا ذکر کړيده چه دا محمول دے په استحباب باندے.

نو ددے حديث نه استدلال کول بالکل صحيح نه دی، يو خو داحديث مرفوع نه دے.

او دويم مرسل دے، دريم : مرسل هم ضعيف دے. او په ضعيف مرفوع سره استدلال نه کيږی، بيا لا مرسل، او بيا لا ضعيف !

۳ - **دريم دليل** : حديث الباب د عمر بن عبد العزيز عن تميم الداری :

الوضوء من کل دم سائل۔

**جواب** : دا حديث دارقطنی ذکر کړے دے اوهغه پرے بيا جرح کړيده، چه دا حديث ددرے وجهو نه ضعيف دے (۱) يو په کښے يزيد بن خالد (۲) بل دهغه استاذ يزيد بن محمد دواړه مجهول راويان دی (۳) دريمه دا چه عمر بن عبد العزيزؒ دتميم داریؓ نه سماع اوليدل نه دی ثابت، البانی وائی : بل علت په کښے دادے چه بقيه بن الوليد په کښے عنعنه کړيده اودے مدلس دے (تعليق المشكاة : ۱۰۸/۱)۔

نو حديث ضعيف او منقطع دے، قابل استدلال نه دے، پاتے لا دا چه وجوب دے پرے ثابت شی، لکه چه دا خبره امام زيلعیؒ په نصب الرايه (۳۸/۱) کښے او شيخ البانیؒ په سلسله الضعيفه کښے ذکر کړيده۔

٤ - **څلورم دليل** : حديث دزيد بن ثابتؓ دے چه ابن عدی نقل کړے : الوضوء من کل دم سائل. (نصب الراية : ۳۷/۱).

**جواب** : دا حديث هم ضعيف جدا دے، پخپله ابن عدیؒ فرمائی :

هذا حديث لا نعرفه الا من حديث احمد بن الفرج وهو ممن لا يحتج بحديثه، ولكنه يكتب فان الناس مع ضعفه قد احتملوا حديثه. (نفس المصدر).

ليکن احمد بن الفرج حمصی چه لقب ئے الجماری دے ده باره کښے امام محمد بن عوفؒ فرمائی : كذاب، وليس عنده فی بقية اصل وهو فيها اكذب خلق الله۔

خطيب بغدادیؒ فرمائی : فاشهد عليه بالله انه كذاب، و كذلك كذبه غير واحد من العارفين به، فسقط حديثه جملة ولم يجز ان يستشهد به، فكيف يحتج به ؟

(البانی فی الضعیفة : ۱/۴۸۳، رقم : ۴۷۰، تاریخ بغداد للخطیب : ۴/۳۴۱).

نو د ابن عدی داخبره چه (ولکنه یکتب) دا تساهل دهغه دے، سره ددے نه چه پخپله وائی (وهو ممن لا یحتج بحدیثه).

او صاحب د درس ترمذی (۱/۳۱۸) چه دا خبره کړے چه دده حدیث حسن درجے ته رسیږی نو دا بے ځایه خبره ده.

**خلاصه داچه** : په وینه او قئ وغیره سره اودس نه ماتیږی اونه ددے نه پس اودس واجب دے. او ددے په باره کښے هیڅ صحیح حدیث نشته.

(سلسلة الأحادیث الضعیفة : ۱/۴۸۳، ۴۷۰، تعلیق المشکاة : ۱/۱۰۸).

اوکوم حدیث د ابو داؤد کښے چه راځی :

ان رسول الله ﷺ قاء فافطر فتوضأ، فلقیت ثوبان فی مسجد دمشق فذکرت له ذلك، فقال : صدق أنا صببت له وضوئه.

(اخرجه الترمذی : ۱/۲۷، واحمد : ۶/۴۴۳، وهو فی المشکاة : ۱/۱۷۶).

نو دهغے نه (۱) **جواب** دادے چه : دا حدیث په استحباب باندے حمل دے او اودس ئے کړے دے، دپاره د نظافت حاصلولو، اودا خو مونږ هم منو چه اودس بهتر او مستحب دے، لیکن واجب نه دے، ځکه وجوب ثابتولو دپاره قوی دلیل ضروری دے اودا په دغه حدیث کښے نشته.

دا وجه ده چه امام شاه ولی الله دهلوی ؒ فرمائی : د قئ اودم نه روسته اودس کول مستحب دی، واجب نه دی، ځکه واجب قوی دی نو قوی دلیل غواړی او هغه نشته.

(حجة الله البالغة : ۱/۱۷۷، مبحث موجبات الوضوء).

۲ - **جواب** دادے : چه دا فعل د نبی ﷺ دے او مجرد فعل دنبی ﷺ په وجوب او تحریم باندے دلالت نه کوی. لکه ابن حجر ؒ فرمائی :

وفعله المجرد لا یدل علی الوجوب، ولا التحریم. (فتح الباری : ۱/۳۶۲، و ۹/۱۴، توجیه القاری : ۸۹، فتاوی الدین الخالص : ۱/۴۳۲).

۳ - **جواب** دادے : چه (قاء فافطر فتوضأ) معنی دا هم کیدے شی چه اودس ئے د قئ

په وجه نه دے کړے، بلکه د بلے وجے نه ئے اودس کړے وی لکه دخولے د صفائی او نظافت حاصلولو دپاره، اوداسے نه ده چه قئ ناقض د اودس دے، دا خبره ورسره په حدیث کښے نشته. لکه چه دا جواب المجموع شرح المهذب (۶۸/۲) کښے امام نووی ذکرکړے فرمائی : والثالث انه یحتمل الوضوء لا بسبب القئ فلیس فیه انه توضأ من القئ.

نو دا حدیث هم صریح نه دے په دے خبره کښے چه اودس ئے د قئ په وجه کړیدے.

اولنی دوه جوابه ډیر ښه دی.

۵ - **عقلی دلیل** دادے : چه وینه نجس ده او هر نجس شے چه دبدن نه اووځی نو دا د بول وبراز پشان حکم لری نو اودس پرے ماتیږی.

**جواب** : وینه ډیر اقسام لری، مطلقا هره وینه نجس نه ده بلکه په دے کښے تفصیل دے کما سیأتی. ددے مسئلے د پوره تحقیق دپاره التحقیقات فی رد الهفوات ص (۷۰) او نصب الرایه (۳۷/۱) ته رجوع کول پکار دی.

**دویمه مسئله** : وینه نجس ده که نه ؟.

## ﴿ اقسام الدم وحكم كل قسم ﴾

وينه په يو څو قسمه ده :

**۱ - اول قسم وينه** : دحيض ده، دا نجس ده اتفاقا، او وينځل ئې فرض دي.

**دليل** : حديث اسماء في البخاري (۲٤/۱).

**۲ - دويم قسم وينه** : دهغه حيوان چه دهغه غوښه حرام وي، لكه سپے، خر، خنزير، كارغه اوداسے نور، نو دا هم نجس ده اتفاقا، اودا اتفاق علامه قرطبي (۲۲۱/۲) او امام نووي په المجموع (۵۵۷/۲) كښے ذكر كړيدے.

**۳ - دريم قسم وينه** : دماكول اللحم (پاك اوحلال حيوان) . نو دا هم دوه قسمه ده :

(أ) چه دغوښے نه ئے وينه راوځي او هغے پورے نښتي وي، نو دا خو پاكه ده . دا قول دقتادهؒ، ابو مجلزؒ اوعائشهؓ دے . كما في ابن كثير (۱۸۳/۲).

(ب) دركونو وينه. نو دے كښے اختلاف دے . يو قول دادے چه دا هم طاهر ده او نجس نه ده، اګرچه خوړل اوڅكل ئے حرام دي.

اوكه څوك د قرآن كريم آيت ﴿ او دما مسفوحا فانه رجس اوفسقا ﴾ په دليل كښے ذكر كړي نو د هغے نه جواب دادے چه (انه) ضمير راجع دے اقرب مذكور ته چه خنزير دے، لكه چه دا ابن كثير او زاد المسير والا ذكر كړي دي.

**۱ - دليل** : دا پيش كوي چه ابن مسعودؓ اوښان ذبح كړل او دهغے په وينه او خوشيانو ليت پيت شو نو اقامت دمانځه دپاره اوشو، نو بغير داودس نه ئے مونځ اوكړو.

(اخرجه عبد الرزاق في المصنف : ۱۲۵/۱، وابن شيبة : ۲۹۲/۱، والطبراني في الكبير : ۲۸٤/۹، بسند صحيح عنه).

**۲ - دليل** : د ابو موسیٰ اشعريؓ نه امام بغويؒ په جعديات (۸۸۷/۲) كښے نقل كړي دي فرمائي : ما ابالي لونحرت جزورا فتطلخت بفرثها ودمها ثم صليت ولم امس ماء. وفي سنده ضعف.

**۳ - دليل** داچه : بول د ماكول اللحم طاهر دي، نو دم ئے هم طاهر دے . څكه چه دليل د دواړو يو دے، چه هغه برائت د ذمے دے ترڅو چه ددے په نجاست باندے دليل نه وي راغلے

**قول ثاني** : دادې چه دا قسم وينه هم نجس ده۔

**۱ - دليل** : دادې چه (فانه رجس اوفسقا) کښې اصل اوظاهر د قرآن دادې چه ضمير درې وارو (الميتة، لحم الخنزير او دم) ته راجع شي، دې دپاره چه علت د ټولو دپاره ذکر شي اودا علت صرف د لحم الخنزير دپاره ذکر کول نه دنورو دپاره دترتيب بياني دقرآن نه خلاف دې۔ **۲ - دليل** : د ميته نه چه کومه وينه خارجه شي اود حيوان ماکول اللحم نه چه خارجه شي دا دواړه يو شان دې هيڅ فرق په کښې نشته، نو يو د بل نه جدا کول صحيح نه دي۔ او په دې قول کښې احتياط دې۔

**٤ - څلورم قسم وينه** : دانسان ده، په دې کښې هم اختلاف دې په دوه قوله کښې :

**اول قول** داچه : دا نجس ده۔

**دلائل** : نبي ﷺ چه کله په غزوه احد کښې زخمي شو نو فاطمې ؓ به د نبي ﷺ نه وينه وينځله او علي ؓ به په ډال باندې اوبه وراچولې۔

(صحيح بخاري : ۲/ ۵۸٤، مسلم : ۲/ ۱۰۷، عن سهل بن سعد)۔

ليکن په دې حديث باندې په نجاست د وينه د انسان ديو څو وجوهو نه استدلال صحيح نه دې :

اوله وجه : داده چه دا وينځل د نظافت حاصلولو دپاره وو، نه د طهارت شرعي دپاره۔

دويمه وجه : داده چه اوبه اچول په زخم باندې وينه اودروي، نو دا د دوائي په طور استعمال شوي دي، نه دا چه دطهارت حاصلولو په طور، چه ګنې وينه نجس ده او هغه وينځي۔

دريمه وجه : دا صرف فعل النبي ﷺ دې او مخکښې په حواله دفتح الباري (۱/ ۳٦۲) تير شو چه (الفعل المجرد لا يدل على الوجوب) زيات نه زيات وينځل مستحب دي۔

**القول الثاني** : بعض سلف فرمائي : چه دا قسم وينه طاهر ده، او وينځل ئې واجب نه دي، اومونځ ورسره جائز دې، او اودس په دې نه ماتيږي، مګر اودس کول ترې مستحب دي۔

**۱ - دليل** : حديث دجابر ؓ دې چه په هغې کښې دانصاري صحابي واقعه ده چه بدن نه

ئې دغښې لګیدو په وجه وینه روانه وه، مونځ ئې مات نه کړو، بلکه آخر ته ئې اورسولو، لکه چه مخکښې تیر شو (بخاري : ۲۹/۱، ابوداود : ۲٦/۱).

دا حدیث په حکم دمرفوع کښې دې ځکه بل روایت کښې دي چه نبي ﷺ پرې خبر شو او دعاء ورله اوغوښته. نو که وینه نجس وې نو نبي ﷺ به بیان کړې وې. اودا قول د امام بخاريؒ او د بې شماره محققینو هم دې، کما في فتاوى الدين الخالص (٤٤٦/۱).

۲ - **دلیل** : د حسن بصريؒ قول دې چه امام بخاريؒ تعلیقا ذکر کړې دې (۲۹/۱) :

مازال المسلمون يصلون في جراحاتهم.

نو زخم نه خو عام طور سره وینه راوځي، نو معلومیږي چه هغه نجس نه ده. دحسن بصريؒ قول اګرچه دلیل نه دې لیکن ده دعامو مسلمانانو حال ذکر کړیدې چه هغوئ به اودس نه کولو دوینې نه.

دا وجه ده چه دعمر فاروقؓ نه حافظ ابن حجرؒ په فتح الباري (۲۲٦/۱) کښې نقل کړې چه د هغه نه په صحیح سند سره ثابته ده چه هغه به په داسې حال کښې مونځ کولو چه د زخم نه به ئې وینه روانه وه. او امام بخاريؒ دا قول دطاؤسؒ، محمد بن عليؒ او عطاءؒ او اهل حجاز نه نقل کړې چه په وینه اودس نه ماتیږي. بیا ئې هغه آثار چه مخکښې تیر شو ذکر کړي دي.

۳ - **دلیل عقلي** : دادې چه کله دانسان یو جزء پریکړې شي نو هغه خو طاهر دې نو وینه هم یو جزء دې،دا به هم ضرور طاهر وي، اوبل طرفته د وجوب دلیل هم نشته. فتدبر

۱ - اوکوم خلق چه دا آثار (وروایة ابی هریرة فی ابن ابی شیبة) په لږه وینه باندې حمل کوي نو دا بې ځایه خبره ده، ځکه چه نجاست شرعیه لږ او ډیر تول برابر دي په وجوب د زائل کولو کښې، او مونږ وایو : دلږ او ډیر نجاست فرق په کوم نص سره ثابت دې ؟

۲ - دارنګه چاچه داخبره کړیده چه دا احوال دصحابوؓ په ضرورت حمل دي، دا هم صحیح نه ده، وجه داده چه که مونږ دا په ضرورت حمل کړو،نو بل کوم ځائې کښې داسې دلیل موجود دې چه وینه نجس ده ؟ او نبي ﷺ او صحابوؓ نه بل کوم ځائې دا نص په صحیح سند سره نقل دې چه وینه نجس ده اودس ترې کول واجب دي ؟.

۵ - **پنځم قسم وينه** : کوم حيوانات چه په اوبو کښې ژوند تيروی دهغوئ وينه هم پاکه ده. لکه ماهی وغيره.

**دليل** : ځکه ددې ميته حلاله ده، نووينه خو په طريقه اولیٰ طاهره ده، بله دا چه : يو حيوان ميته حراميږی نودا ځکه چه وينه په کښې باقی پاتې شی، لکه چه دا په حديث کښې ذکرده (ما انهر الدم و ذکر اسم الله عليه فکل).

نـو سبب دحـل دپاره دوه څيزونـه دی (۱) وينـه بهيـدل دحيـوان نه (۲) دالله نوم پرې اخستل.

نـو معلوميږی چه کوم حيوان نه وينه خارجه نشی دهغې غوښه حرام ده. او سره ددې نه دماهی ميته حلال ده، اګرچه وينه په کښې باقی وی نو وينه هم پاکه شوه.

٦ - **شپږم قسم وينه** : دحشراتو ده، لکـه ماشې، مچ، مچئ، ميګې وغيره، داهم طاهر ده، ځکه ددې ميته هم طاهر ده (اګرچه خوړل ئې حرام دی) لکه حديث د ابو هريرةؓ کښې راځی : ( اذا وقع الذباب فی اناء احدکم ... فامقلوه).

نـو نبی عليه السلام امر کړيدې په غوپه کولو دهغه مچ چه په لوښی کښې واقع شی نو که دا نجس وې نو بيا ولې په غوپه کولو باندې امر کوی ؟۔

۷ - **اووم قسم وينه** : هغه ده چه د ذبح شوی حيوان د باقی بدن نه خارجه شی لکه د زړه وينـه، تـوری، جګر وغيره وينه، نو دا هم طاهره ده. وجه داده چه صحابوؓ به غوښې نه وينـځلې او هـمداسې به ئې پخولې. عائشهؓ فرمائی : مونږ به غوښې خوړلې او وينه به ئې په کتهوئ کښې ښکاره کيدله۔

**خلاصه** : دا چه تولې وينې نجسې نه دی بلکه دې کښې تفصيل دې. فتدبر!

* * * * *

# بَابُ آدَابِ الْخَلَاءِ

**مناسبت د باب د ما قبل سره :** دادے چه مخکښے موجبات د اوداسه بیان شو، اوس د اوداسه نواقض (ماتونکی) آداب بیانوی۔

بیا آداب چه په احادیثو کښے ذکر شی نو شامل به وی فرائضو، مستحباتو، واجبو او حرامو ټولو ته، نو دا آدابْ په دے مختلفو درجاتو کښے دی، د بعضو تکمیل کول اود بعضو نه اجتناب کول ضروری دی۔

په آداب الخلاء کښے متعدد څیزونه او مسائل ذکرکیږی، اودا باب هغے لره مشتمل دے۔

**١ - اوله مسئله :** د قضاء حاجت ادب ذکر کوی، چه قبلے ته به مخ یا شاکوے نه، د قبلے احترام پکار دے۔

٢ - استعمال داحجارو ثلاثه د قضاء حاجت نه پس، دپاره د لحاظ ساتلو د صفائی۔

٣ - په قضاء حاجت کښے به عام خلقو ته ضرر نه رسوے، لکه چه دهغوئ د ونو په سورو او لارو کښے بول وبراز اوکړے شی چه هغوی ته تکلیف ملاؤ شی، یا په ولاړو اوبو کښے اوکړے شی چه خلق ترے فائده وانخلی۔

٤ - اختیار محاسن الأخلاق والعادات : یعنے ښه عادت به انسان خپلوی، نو په ښی لاس به اودس نه اوچوی، او ذکر به پرے نه رانیسی۔

٥ - د پردے کولو لحاظ به ساتی، نو قضاء حاجت دپاره به لرے ځائے ته ځی اوځان به پټوی۔

٦ - ځان به ساتی ددے نه چه بدن او جامے ته نجاست اونه رسیږی. اودیته اشاره شویده په دے قول د نبی ﷺ کښے (اذا أراد احدکم ان یبول فلیرتد لبوله)۔

٧ - ازالة الوسواس : نو په مستحم (غسل خانه) کښے به متیازے نه کویٔ چه وسوسے ئے پیدا نشی۔ . فان عامة الوسواس منه۔

## معنی الأدب والخلاء

آداب جمع دأدب دہ، ادب په لغتِ عربیٔ کښې دعوت ورکولو ته وائی، اودې آدابو ته ځکه آداب وائی چه په دې سره هم انسان ته دعوت ورکولې شی چه ځان په دې سره ښائسته کړی. اوپه **اصطلاح** کښې دأدب معنی بعضې علماء فرمائی داده (۱) : مراعاة کل شئ (یعنی دهر شئ دحدودو لحاظ کولو ته ادب وائی).

(۲) علامه ابن القیمؒ فرمائی : (هذه اللفظة مؤذنة بالاجتماع فالأدب : اجتماع خصال الخیر فی العبد) . یعنې : دا لفظ د ادب دلالت کوی په اجتماع باندې، نو ادب دیته وائی چه په انسان کښې د خیر ښیګړې تول خویونه او عادتونه راجمع شی.

(۳) د بعضو نه نقل دی چه أدب : (هو استعمال ما یحمد قولا وفعلا) . یعنې : ښه اقوال او افعال استعمالول او په هغې باندې ځان متصف کول، یعنې داسې صفات اختیارول چه دهغې انسانان مدح او صفت کوی چه فلانې شخص ډیر أدب ناك دې.

او عرب د آدابو اطلاق په هر هغه شئ باندې کوی چه هغه د یو شخص یا یو څیز سره لائق او مناسب وی، یعنې هغه څیزونه چه لائق او مناسب دی د درس او مسجد وغیره سره

(۳) د بعضو نه داسې معنی نقل ده ( ملاحظة کل شئ فی وقته ومکانه) یعنې هر شئ په خپل وخت اومکان کښې کول اود هغې لحاظ ساتلو ته ادب وائی.

(٤) امام ابن المبارك فرمائی : (معرفة النفس ورعوناتها، والاجتناب عن ذلك) .

یعنې : نفس او د هغې حظوظ او خواهشات او تقاضا ګانې پیژندلو او بیا د هغې نه ځان ساتلو ته ادب وائی . (مدارج السالکین : ۲/۳۷۷).

## اقوال الصالحین فی الأدب

۱ - یحیی بن معاذؒ فرمائی : من تأدب بأدب الله صار من اهل محبة الله.

(څوك چه د الله تعالیٰ په آدابو باندې عمل کوی هغه د الله تعالیٰ په محبوبانو کښې شمارلې شی).

۲ - ابو علی الدقاقؒ فرمائی : من صاحب الملوك بغیر أدب أسلمه الجهل الی القتل.

(څوك چه د بادشاهانو سره په بے ادبئ سره ملګرتيا كوى نو د جهالت په وجه به قتل ته اوسپارلے شى)۔ يعنے بادشاهانو سره به انسان په احتياط اوسى هسے نه چه بے ادبى ترے اوشى او ددے په وجه ئے بادشاه قتل كړى۔

۳ – عبد الله بن المباركؒ فرمائى : نحن الى قليل من الأدب احوج منا الى كثير من العلم۔ (يعنے مونږ انسانان ادب ته د علم نه هم زيات محتاج يو)۔

٤ – ابو علىؒ فرمائى : ترك الأدب يوجب الطرد، فمن أساء الأدب على البساط رد الى الباب، ومن أساء الأدب على الباب رد الى سياسة الدواب ۔

(بے ادبى كول سبب دے د شړلو، نو څوك چه په بستره بے ادبى اوكړى هغه به دروازے ته اوشړلے شى، او څوك چه دروازه كښے بے ادبى اوكړى نو بيا به غوجل ته اوشړلے شى)۔

٥ – عبد الله بن المباركؒ فرمائى : من تهاون بالأدب عوقب بحرمان السنن، ومن تهاون بالسنن عوقب بحرمان الفرائض، ومن تهاون بالفرائض عوقب بحرمان المعرفة۔

(څوك چه آداب سپك ګنړى، هغه ته د سنتو نه د محروم والى سزا وركولے شى، او څوك چه سنت سپك ګنړى هغه ته د فرضو نه د محروم والى سزا وركولے شى، او څوك چه فرض سپك ګنړى نو هغه ته د الله د معرفت او پيژندنے نه د محروم كيدلو سزا وركولے شى) نو ددين هيڅ يو عمل سپك نه دى ګنړل پكار۔

٦ – بعضے وائى : الزم الأدب ظاهراً وباطنا فما أساء أحد الأدب فى الظاهر الا عوقب ظاهراً، وما أساء أحد الأدب باطناً الا عوقب باطناً.

(ظاهرى او باطنى ټولو حالاتو كښے ادب لازم اونيسه، ځكه څوك چه ظاهر كښے بے ادبى اوكړى (اوآدابو باندے عمل اونه كړى) نو دهٔته به د ظاهر سزا وركړے شى، الله به ئے ټول كارونه خراب كړى، او څوك چه په باطن كښے آدابو باندے عمل نه كوى هغه ته به باطن كښے سزا وركولے شى، يعنے الله به ئے زړه خراب كړى)۔

۷ – سهلؒ فرمائى : من قهر نفسه بالأدب فهو يعبد اللّٰه بالاخلاص :

يعنے څوك چه خپل نفس باندے زور كوى چه ادب په كښے پيدا كړى نو دا انسان د الله عبادت په اخلاص سره كولے شى، يعنے الله تعالىٰ به ورته په خپل عبادت كښے د اخلاص

توفيق وركړي ـ

**الخلاء** : د خاء په فتحه او په مد سره، د قضاء حاجت ځائې ـ ديته خلاء ځکه وائي :

١ – چه دا د قضاء حاجت د وخت نه علاوه خالي پروت وي ـ

٢ – يا دا وجه ده چه انسان په دے کښے ځان خالي کوي. خلاء په اصل کښے خالي مکان ته وائي، ليکن علماؤ بيا استعمال کړيدے په قضاء حاجت کښے نو ځکه داسے باب تړي : باب آداب الخلاء، أي : آداب قضاء الحاجة ـ

## خلاصة آداب الخلاء

١ – د بول او براز په وخت به قبلے طرفته نه مخ کوي اونه به ورته شا کوي، دا دواړه جائز نه دي (کما في حديث ابي ايوب الأنصاري، بخاري : ٢٦/١، ومسلم : ١٣٠١).

٢ – کله چه په کاڼو باندے استنجاء کوي نو درے کاڼو نه به کم نه استعمالوي، درے کاڼي ضروري دي، اوکه په اوبو استنجاء کوي نو په هغے کښے تعيين نشته.

٣ – په هډوکو، خوشائي، طعام او ګندګئ سره به استنجاء نه کوي.

٤ – د متيازو ځاځکو نه به ځان ساتي، دا سبب د عذاب قبر دے.

٥ – د خلقو په لارو، ګودرو او سورو او هر فائده مند ځائے کښے به بول وبراز نه کوي.

٦ – په حمام او د اوداسه په ځائے کښے به بول نه کوي، ځکه ددے نه وسوسے پيدا کيږي. (فان عامة الوسواس منه).

٧ – مستحب داده چه استنجاء دپاره يو لوښے استعمال کړي او چار اندام دپاره بل لوښے (کما في حديث ابي داود : ٤/١ عن ابي هريرة : كان النبي ﷺ : اذا اتى الخلاء اتيته بماء في تور او ركوة فاستنجى ثم مسح يده على الأرض ثم أتيته باناء آخر فتوضأ).

٨ – د استنجاء کولو نه پس لاس په زمکه يا ديوال وغيره باندے راخکل سنت دي، لکه دے مخکښے حديث نه معلومه شوه.

٩ – د اوداسه نه پس پرتوګ ته په لړ شان اوبو سره چنړکاؤ کول مستحب دي.

١٠ – په ښي لاس به اودس نه اوچوي، اونه به په ښي لاس استنجاء کوي.

١١ – سوړه کښے به بول نه کوي.

۱۲ – د ضرورت په وخت په لوښي وغيره کښې بول کول جواز لري (كان للنبي ﷺ قدح من عيدان تحت سريره يبول فيه بالليل) ابوداود : ۴/۱۔

۱۳ – کله چه د بول وبراز اراده اوکړي نو خپل پرتوګ به تر هغه وخته پورې نه ښکته کوي ترڅو چه زمکې ته ښه نزدې شي۔ سلسلة الأحاديث الصحيحة : ۳/۶۰۔

۱۴ – مستحب دي چه د بول کولو دپاره ځان له نرم ځائې تيارکړي، دې دپاره چه څاڅکي ورته اونه شي۔

۱۵ – خلقو نه به ځان پټ ساتي او لرې به ځي۔

۱۶ – بيت الخلاء ته داخليدو وخت کښې به ګسه خپه مخکښې کړي۔

۱۷ – د داخليدو په وخت به (بسم الله، اللهم انى اعوذ بك من الخبث والخبائث) دعاء اووائي۔

۱۸ – د بول کولو نه پس ذکر (اندام مخصوصه) څنډل، يا غاړه تازه کول، يا مزل کول، يا اوچت ختل، يا ذکر تاوول را تاوول دا ټول کارونه مستحب نه دي، بلکه ددې نه وسوسې پيدا کيږي۔ اوکوم روايات چه دې باره کښې راغلي دي هغه ضعيف دي۔ (مسند احمد :۴/۳۴۷، الضعيفة رقم : ۱۶۲۱، ۴/۱۲۴) ۔ نو د فقه حنفي دا خبره صحيح نه شوه چه د بول کولو نه روستو دغه مذکوره کارونه مستحب دي۔

امام نووي فرمائي : ددې کار نه په زړه کښې وسوسې پيدا کيږي۔

شيخ الاسلام رحمه الله فرمائي :

الذکر کالضرع ان حلبته ذرّ، وان ترکته قرّ. (مجموع الفتاوى : ۲۱/۱۰۶).

يعنې ذکر د غلانزې پشان دې، څومره ئې چه لشې، پئ کوي، اوکه پريخودلې شي نو اودريږي۔

۱۹ – د بول کولو په وخت په سر باندې لاس کيخودل مستحب نه دي، دا چرته نه دي ثابت۔ دا د صوفياؤ ايجاد کرده مسئله ده۔ دغه شان د قضائې حاجت په وخت سر پټول هم سنت نه دي۔

۲۰ – د بول وبراز په وخت خئ خپه اودرول او په ګسه خپه باندې ځان تکيه کولو باره

کښې يو حديث راغلې خو ضعيف دے (قال سراقة بن مالك : علمنا رسول الله ﷺ في الخلاء ان نقعد على اليسرى وننصب اليمنى ۔ (بيهقي : ١٦/١، وفي سنده مجهولان). وضعفه الحافظ في التلخيص ۔ البته ددے په باره کښې يو مؤيد حديث راغلې دے :
(اذا ذهبتم الى الغائط فاتقوا المجالس على الظل والطريق، خُذُوا النُبَلَ، واستنشبوا على سوقكم، واستجمروا وتراً، كما في السلسلة الصحيحة : ٥٦٥/٦، رقم : ٢٧٤٩. وسنده حسن. په دے حديث کښې بل ادب دادے چه متيازو ته د تللو په وخت واړه واړه (مناسب) کانړی استعمالوئ، او په وخت د بول کولو کښې د زمکے نه قدمونه معمولي اوچت ساتئ، او ټول قدمونه په زمکه مه مضبوطوئ او غوټ کينئ، او تاك کانړی استعمالوئ - النهايه لابن الأثير : (٤٣٨/٢).

نو ددے نه معلوميږی چه ددے حديث دپاره اصل شته نو ان شاء الله چه دا کار به سنت وی۔ او دا خبره د ډاکټری اصولو هم برابره ده لکه دکتور طبيب محمد بن علي البار فرمائي : ډاکټری اصولو مطابق قضاء حاجت کښې د فضلات او گندگی ويستلو دپاره ښائسته (فزيالوجی) طريقه په زمکه باندے کيناستل او گسه خپه باندے تکيه کول دی او ددے وجه دا ده چه په کولمو کښې د آخيرنۍ سختے کولمے شکل مستقيم دے او په هغے کښې فضلات جمع کيږی پدے شکل (٤)، نو که انسان گس طرفته تکيه شي نو دا فضلات شکل مستقيم اختيار کړی، راخکلې شي نو د گندگۍ راوتل په آسانۍ باندے اوشی او ددے مستقيم نه شاته بله سخته کولمه ده چه هغے ته (القولون السيني) وائی ځکه چه هغه د (س) په شکل ده نو کله چه انسان په خۍ خپه باندے تکيه شي نو د هغے وضع هم مستقيمه شي او پدے طريقه گندگی په آسانۍ سره بهر شي۔ نو دا حديث د نبي ﷺ يوه علمي معجزه ده چه دنيا ورته حيرانه ده۔ توضيح الاحكام (٣٢٨/١) ۔

۲۱ – د غه شان د اودس اوچولو په کانړو ويشتلو کښې د اوړی اوژمی فرق کول څنگه چه بعضے حنفي فقهاؤ ليکلی دی، دا بے اصله خبره ده۔ انظر قاضيخان و مراقی الفلاح ۔

۲۲ – بيت الخلاء ته بے ضرورته هغه څيز نه دی داخلول پکار کوم کښې چه قرآني آيت يا د الله ذکر وغيره وی ۔

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ - اول فصل

۱ - عَنْ اَبِىْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِىِّ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اِذَا اَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوْهَا وَلٰكِنْ شَرِّقُوْا اَوْغَرِّبُوْا). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

قَالَ الشَّيْخُ الاِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا الْحَدِيْثُ فِى الصَّحْرَاءِ وَأَمَّا فِى الْبُنْيَانِ فَلَا بَأْسَ، لِمَا رُوِىَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : اِرْتَقَيْتُ فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ حَاجَتِىْ فَرَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقْضِىْ حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه** : ابو أيوب انصاري‌ؓ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کله چه تاسو بيت الخلاء (قضاء حاجت ځائے) ته ځئ نو قبلے طرفته مه مخ کوئ او مه ورته شا کوئ، بلکه مشرق يا مغرب طرفته کينئ۔ (بخاري، مسلم)۔ امام محيى السنهؒ فرمائى : داد ځنګل حکم دے، آبادئ کښے داسے کولو کښے څه حرج نشته ځکه چه عبد الله بن عمرؓ فرمائى : زه خپل څه ضرورت دپاره د (خپلے خور) بى بى حفصےؓ کور ته اوختم نو ما نبى ﷺ (بيت الخلاء) کښے قضائے حاجت باندے اوليدلو چه قبلے طرفته ئے شا او شام طرف ته ئے مخ کړے وو۔ (بخاري، مسلم)۔

### تعارف : د ابو ايوب الأنصارى ﷺ :

دده خپل نوم خالد بن زيد بن کليب بن ثعلبه الأنصارى الخزرجي النجارى دے۔ کنيه ئے ابو ايوب المدنى ده۔ دا د ابتدائى مسلمانانو نه دے، عقبه، بدر، احد اونورو تولو غزواتو ته د نبى عليه السلام سره حاضر شوے دے۔ دده لوئے فضيلت دادے چه نبى ﷺ چه کله مدينے ته هجرت اوکړو نو دده په کور کښے يو مياشت پورے اوسيدلو۔ تردے چه مسجد نبوى جوړ شو۔ نهايت ادبناك وو، دا بره اوسيدلو او نبى ﷺ لاندے چت کښے۔ حياة الصحابة (۳۲۸/۲، او کنز العمال : ۵۰/۸، او مستدرك : ۴۶۱/۳) کښے راځى چه دده خپل اهل ته د شپے اووئيل چه دا خو بے أدبى ده چه مونږ د پيغمبر ﷺ په

سرګرځو، سحرئے نبی ﷺ ته عرض اوکړو چه تاسو بره اوخیژئ۔ دے فرمائی : یو ورځ زمونږه د اوبو منګے مات شو، اوبه په زمکه تویے شوے نو زه او أم ایوب پاځیدو او یوه شړئ مو وه هغے باندے مو اوبه اوچولے، دے دپاره چه رسول الله ﷺ ته زمونږ د طرفنه تکلیف اونه رسی۔

ده د علی رضی الله عنه سره د خوارجو په جنګ کښے ملګرتیا کړیده، او مدائن ته د هغه په صحبت کښے ورغلے دے، اود علی رضی الله عنه د شهادت نه پس ډیره زمانه ژوندے وو، تردے چه په قسطنطینیه کښے په خلافت د معاویه رضی الله عنه کښے په سنه (۵۱)هـ کښے مرابط وفات شو۔ کله چه یزید بن معاویه غزا ته اووتلو نو دا هم ورسره ملګرے وو خو بیا مریض شو او مرض ئے سخت شو نوخپلو ملګرو ته ئے اووئیل : چه زه کله مړ شم نو دځان سره مے یوسئ تردے چه کله د دشمن مقابله کښے صفونه اوتړئ نوما دخپلو قدمونو نه لاندے خخ کړئ۔

امام بغوی ؒ فرمائی : دا د شپے دفن شو نو یزید بن معاویه ؒ حکم اوکړو چه اسونه مخکښے روسته اوزغلوی، نو په دے کښے دده قبر پټ شو، چاته پته اونه لګیده۔

ابن حبان ؒ فرمائی : مسلمانان د قسطنطینیه په ګیره کښے مشغول وو نو هغوئ د یو دیوال طرفته دفن کړو۔ دده نه (۱۵۰) احادیث نقل دی۔ رضی الله تعالیٰ عنه۔

## تشریح :

**اِذَا اَتَیْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوْهَا وَلٰكِنْ شَرِّقُوْا اَوْغَرِّبُوْا:**

غائط په اصل کښے هغه ښکته پراخه مکان ته وئیلے شی چه په صحراء کښے وی (المکان المطمئن من الأرض) بیائے اطلاق کیږی په هر هغه ځائے باندے چه دقضاء حاجت دپاره تیار شوے وی ځکه د انسانانو عادت دادے چه په ښکته ځائے کښے خپل حاجت پوره کوی چه هغه پټوونکے وی انسان لره۔ بیا په کښے نور تصرف اوشو تردے چه د نفس براز (ګندګئ) دپاره کوم چه دانسان نه خارجیږی استعمالیږی، ذکر دمحل او مراد ترینه حال دے۔

په دے حدیث کښے (شرقوا او غربوا) الفاظ راغلی دی یعنے : قبلے ته مه مخ کوئ او مه

ورته شاکوئ، بلکه مشرق یا مغرب ته متوجه شئ، دا حکم دهغه خلقو دپاره دے چه دهغوئ قبله مغرب طرفته نه وی، لکه مدینے والا شو۔ او د کومو خلقو قبله چه مغرب طرفته وی لکه زمونږ ملك پاکستان وغیره، نو دوئ ته د (جَنِّبُوا، شَمِّلُوا) حکم دے، یعنے دوئ به جنوب یا شمال طرفته مخ کوی اوقبلے طرفته به نه مخ کوی اونه شاکوی۔ اودا مقصود دحدیث هم دے چه د قبلے احترام اوکړئ، که ستاسو نه هر طرفته وی، اودا خطاب (په حدیث کښے) مدینے والو ته دے۔

ددے نه دا فائده معلومه شوه چه کله د رسول الله ﷺ خطاب څه خاص خلقو پورے خاص وی خو دا هله چه کله دلیل موجود وی چه دا خصوصیت د فلانی خلقو دے لکه دلته دلیل موجود دے چه د شرقوا او غربوا حکم مدینے والو پورے خاص دے۔ دلیل پرے ابتداء د حدیث ده چه : فلا تسقبلوا القبلة ولا تستدبروها) دے۔

## مسئله د استقبال او استدبار په حالت د بول وبراز کښے

اوس په دے مسئله کښے دعلماؤ اختلاف دے چه آیا قبلے ته د بول وبراز په وخت مخ کول او شاکول جائز دی که نا جائز ؟ په دے کښے يو څو اقوال دی۔ اودا اختلاف بناء دے په اختلاف درواياتو سره چه وارد دی په دے باب کښے۔

۱ - **اول قول** - چه راجح دے - دادے چه استقبال او استدبار دواړه حرام دی، برابره خبره ده چه صحراء کښے وی اوکه په آبادئ کښے، اودا قول د ابو هريره، ابن مسعود، ابو ايوب انصاری، سراقه بن مالك - رضی الله عنهم - مجاهدؒ، ابرهيم نخعیؒ، امام ابوحنيفهؒ، امام محمدؒ او علامه ابن حزم ظاهریؒ دے۔ اودا قول امام شوکانیؒ په نيل الأوطار (۱/۱۳۹)، اوشيخ مبارکفوریؒ په تحفة الأحوذی (۱/٦٥) کښے راجح کړيدے ـ

**وجه د ترجيح** : داده چه راوی ابو ايوب انصاریؓ په دے حديث باندے خپله عمل کړيدے، لکه په بخاری (باب قبلة اهل المدينة) کښے ورسره دا الفاظ دی : (فقدمنا الشام فوجدنا مراحيض بنيت قِبَلَ القبلة فننحرف عنها ونستغفر الله ـ (فتح الباری : ۱/۱۹۷، مسلم : ۱/۱۳۰)۔ او راوی په خپل مروی (روايت) باندے ښه پوهیږی، نو هغه به په بيت الخلاء کانو کښے هم قبلے ته مخ شاکرځول حرام ګڼړل۔

۲ – دويمه وجه داده : چه دا حديث قولي دے، او حديث دابن عمرؓ (کوم چه روستو راروان دے او دال بالجواز دے) فعلي دے. ـ اول خو دلته تعارض نشته په مابين درواياتينو کښے، اوکه تعارض راشي نو قولي روايت لره ترجيح وي په فعلي روايت باندے، لکه چه دا د اصول فقه قاعده ده، ځکه فعلي روايت کښے احتمال دخصوصيت يا دضرورت وي. او په قولي کښے دا نه وي.

۳ – دريمه وجه داده : چه صحراء او آبادئ کښے فرق کول صحيح نه دي، ځکه که قبلے ته دمخ کولو نه مانع ديوال وغيره وي نوزمونږ مخے ته خو بيا ډير غرونه شته دے، اګرچه مونږ په صحراء کښے يو، نو په صحراء کښے هم مانع شته دے. ليکن دا عقلي وجه ده، دے وجے نه ماته دا خوښه نه ده.

٤ – ښه وجه داده چه صحيح ابن حِبان کښے حديث دے (من تفل تجاه القبلة جاء يوم القيامة وتفلته بين عينيه). ورواه ابوداود في ابواب الأطعمة رقم : ۳۲۳۹، والمنذري في الترغيب والترهيب : ۱/۲۰۱، وكنز العمال : ۱۹۹٤۷، بسند صحيح.

هرکله چه قبلے طرفته د لاړے توکلو داحکم شو اودا عام دے که په آبادئ کښے وي اوکه په صحراء کښے، په مانځه کښے وي اوکه خارج دمانځه نه وي (بخاري کښے دمانځه باره کښے دي). نو دغه شان حکم به د بول و براز هم وي، بلکه په طريقه اولیٰ سره به دا ناروا وي، ځکه په بول کښے قبلے طرفته ډيره بے ادبي ده په نسبت دلاړو توکلو، ځکه لاړے پاکے دي او بول نجس دي.

## دلائل ددے قول دادي :

۱ – حديث د ابوايوب انصاريؓ دے چه بخاري اومسلم نقل کړيدے (حديث الباب دے) په دے کښے داستقبال او استدبار نه مطلقا نهي راغلے ده ـ دصحراء او بنيان (آبادئ) فرق په کښے نشته. او مقصود په نهي کښے حرمت او احترام د قبلے دے اودا که په صحراء کښے وي اوکه آبادئ کښے ضروري دے.

۲ – حديث ابو هريرةؓ دے چه امام احمد او مسلم (۱/۱۳۱) راوړيدے، کما في نيل الأوطار (۱/۹۳).

عـن ابـى هـريـرة رضـى الله عـنه عن رسول الله ﷺ قال : اذا جلس احدكم لحاجته، فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها۔

۳ – د حديث سلمان الفارسیؓ دے كما يأتى، واخرجه مسلم : ١/١٣٠ :
لقد نهانا النبى ﷺ ان نستقبل القبلة بغائط او بول .... الحديث ۔

ددے نه علاوه نور دلائل هم شته۔ كذا فى النيل۔

**قول ثانى** : دادے چه استقبال او استدبار په صحراء کښے ناجائز او په آبادو کښے جائز دے، اودا قـول د مـالكؒ، شافعیؒ، او يوروايت د امام احمدؒ دے، اسحق بن راهويهؒ، او شعبیؒ قـول دے، او پـه صـحـابـوؓ کښے د عبـاس بن عبد المطلبؓ اوعبد الله بن عمرؓ اوعبد الله بن العبـاسؓ قول دے، او په احنافو کښے دطحاوی مذهب دے۔ اودا قول ابن حجر (فى الفتح) او صاحب د نيل الأوطار او السندهی فى حاشيه النسائى او امام بغویؒ غوره کړيدے۔

ځکـه : (١) دلتـه لـفـظ دغـائـط راغـلے دے او غـائـط په صحراء کښے وی ځکه غائط بنکتـه مـکـان تـه وائـی (٢) پـه صـحـراء کښے دا شان ځان دقبلے نه اړولے شی خو که بيت الـخـلاء قبلے طرفته جوړه شوے وی نو دهغے نه کړيدل ګران وی، دا عقلی وجه ده۔ دا علماء کرام فرمائی چه په دے قول سره جمع راځی په مابين دټولو رواياتو کښے اودا درميانه قول دے، او اعمال په ټولو رواياتو بهتر دے داهمال نه۔

**دليل** : حديث دابن عمرؓ او عائشےؓ دے۔ حديث دابن عمرؓ امام ترمذیؒ كتاب الطهارة باب ماجاء فى الرخصة فى ذلك کښے راوړيدے :

قـال رقيـتُ يـومـا عـلـى بيت حفصة فرأيت النبى ﷺ على حاجته مستقبل الشام مستدبر الكعبة۔

مصنفؒ هم داسے ذکر کړيدے په روايت د بخاری اومسلم سره۔

نو په دے حديث کښے د نبی ﷺ عمل په ظاهر کښے مخالف شو د قول ده نه کوم چه پـه حـديـث ابـو ايـوبؓ او ابـو هريرةؓ وغيره کښے وو (لکه چه مخکښے ذکر شو)۔ نودلته په دواړو حديثونـو بـانـدے عـمـل کول بهتر دی، هغه داسے چه حديث د ابو ايوبؓ وغيره دے حـمـل کـړے شی پـه صـحـراء باندے اودا روايت د ابن عمرؓ دے دليل شی چه په آبادئ کښے

دواړه جواز لري۔

او سندهي ؒ صاحب هم په حاشيه د بخاري کښې دا راجح کوي چه فرق دے اوکړے شي، وجه دا بيانوي چه په صحراء کښې انسان د قبلې نه بل طرفته آوړيدے شي، او استدلال کوي (دأتيتم الغائط) نه چه غائط المكان المنخفض من الأرض ته وائي، او دے کښې انسان د قبلې نه بل طرفته تاويدلے شي، او آبادئ کښې بيت الخلاء په داسے طريقه جوړے وي چه انسان په کښې نشي تاويدے۔ او عبد الله بن عمرؓ به هم دا فتوئ ورکوله، لکه روسته راځي۔

**٢ - دليل :** عمل او فتوئ دابن عمر ؓ، کومه چه امام ابوداود نقل کړيده۔

عن مروا ن الأصفر قال : رأيت ابن عمر أناخ راحلته مستقبل القبلة يبول اليها، فقلت : يا أبا عبد الرحمن ! أليس قد نهي عن ذلك ؟ فقال : بلىٰ، انما نهي عن هذا في الفضاء، فاذا كان بينك وبين القبلة شئ يسترك فلا بأس۔ (صحيح ابى داود رقم : ٨، للألباني)۔

يعنې : کله چه ستا اود قبلې ترمينځه څه پټونکے شے وي نو بيا قبلې ته مخ يا شاکړل جائز دي۔

(قال الحافظ في الفتح : اخرجه ابوداود، والحاكم باسناد حسن، كذا في النيل : ١٠١/١)۔

**قول ثالث :** استقبال په آبادئ او صحراء دواړو کښې ناجائز او استدبار (شاکول) په دواړو کښې جائز او دا يو روايت د امام ابو حنيفه او امام احمد دے۔

ددے قول والاؤ دپاره **دليل** د سلمان هغه روايت دے چه مسلم کښې راغلے دے او په هغے کښې صرف نهي د استقبال نه ذکر ده۔ ليکن دا خبره باطله ده ځکه چه په صحيح احاديثو کښې د استدبار نه هم منع ثابته ده نو په هغه زيادت باندے به هم عمل کيږي، لکه دا حديث د ابوايوب انصاري شو۔

**قول رابع :** دامام ابو يوسف ؒ او يو روايت دامام ابو حنيفة ؒ دے چه استقبال په صحراء او آبادو دواړو کښې ناجائز دے او استدبار په صحراء کښې ناجائز او آبادئ کښې جائز دے۔

**دليل** دادے چه دوئ وائي په حديث د ابن عمرؓ کښې صرف مستدبر القبلة لفظ ذکر

دے، نو په بنيان کښې استدبار جائز دے ځکه نبی ﷺ په آبادئ کښې قبلے طرفته شا اړولے وه، نو دوئ عمل کړے دے په ظاهر د حديث د ابن عمرؓ باندے۔ بله دا چه قبلے ته په شا اړولو کښې بے ادبی کمه ده، اوکله چه آبادی هم وی نو بيا به بالکل ختمه شی، او دليل هم پرے موجود دے۔ پاتے شو استقبال نو په دے کښې بے ادبی ډيره ده نو که په آبادئ کښې وی نو هم نه ده پکار، او دليل ئے هم نشته۔ دا هم يوښه قول دے دظاهر داحاديثو موافق قول دے۔ دلته امام ابو يوسفؒ د نصوصو ظاهر ته کتلی دی، قياس او رائے لره ئے اعتبار نه دے ورکړے، اود علماؤ اقوال چه اکثر صحيح کيږی، نو دا په دے وجه چه د نصوصو ظاهر پسے روان شی۔

**قول خامس** : د محمد بن سيرينؒ او ابراهيم نخعیؒ دے، هغه دا چه استقبال او استدبار قبلے ته دواړه په تولو ځايونو کښې ناجائز دی، سره د بيت المقدس نه۔

**دليل** : دوئ استدلال کوی په حديث د معقل الأسدیؓ باندے:

قال : نهی رسول الله ﷺ ان نستقبل القبلتين ببول او غائط.

أخرجه ابو داود و ابن ماجة ضعيف ابی داود رقم : ۲، وضعيف سنن ابن ماجة رقم : ۳۱۹.

اود قبلتين نه مراد کعبه او بيت المقدس دے۔

ليکن : ۱ – **جواب** دادے چه دا حديث سَنَداً ضعيف دے، پدے کښې مجهول الحال راوی دے چه دهغه کنيه ابوزيد دے، اسمه الوليد مولی بن ثعلبه،کذا قاله الحافظ فی التقريب ص (۵۸۸) شيخ البانیؒ دے حديث ته په ضعيف ابی داؤد ص (۵) کښې منکر روايت وئيلے دے ـ لمخالفتها سائر الروايات الصحيحة ـ علامه شوکانیؒ په السيل الجرار (۶۹/۱) : کښې وائی : وفی اسناده ابو زيد الراوی عن معقل وهو مجهول لا تقوم به حجه۔

۲ – **جواب** : بيت المقدس هغه وخت قبله وه اوس منسوخ شويده۔ دليل په دے باندے استدلال د ابن عمرؓ دے چه بعضے خلقو بيت المقدس او کعبے ته مخ کول بد ګنړل نو ابن عمرؓ اوفرمائيل : دا صحيح نه وائی بلکه زه خپله د حفصےؓ کور باندے اوختلم او نبی ﷺ مے اوليدلو چه قبلے ته ئے شا کړے وه (شرح السنه : ۲۷۴/۱، رقم : ۱۷۶)۔

۳ – يا **جواب** دادے : که اومنو چه حديث صحيح دے نو مراد ددے نه اهل مدينه او

هر هغه ځوك دي چه د دوئ په طرف كښې واقع دي، ځكه چه مدينې وا ژ چه كله بيت المقدس ته مخ اړوي نو كعبې ته ئې شا راځي، نو په دې حديث كښې علت دادې چه استدبار كعبې ته حرام دې او استقبال بيت المقدس ته علت نه دې.

٤ - بله وجه داده : چه په دې حديث الباب كښې مستقبل الشام لفظ راغې، او بيت المقدس شام كښې دې، نو دلته خو شام طرفته مخ شوې دې.

**قول سادس** : تحريم مختص دې په اهل مدينه پورې، بهر خلقو دپاره هرطرفته مخ او شاكول قبلې ته جائز دي (وهو قول أبي عوانة صاحب المزني كذا قاله في الفتح).

ليكن دا قول هم ضعيف دې.(١) ځكه اګركه اصل په امر او خطاب كښې تعميم دې، مګر كله چه قرينه وي، لكه دلته (شرقوا، غربو) صرف دمدينې والو دپاره دې، چه د دوئ قبله مغرب طرفته نه ده، اودا معنى زمونږ دپاره نه جوړيږي. زمونږ دپاره (جنبوا اوشملو) حكم دې .

(٢) دويم داچه : عمل د ابو ايوب انصاري په دې قول باندې رد كوي ځكه هغه په شام كښې عمل كړيدې چه د قبلې نه ئې مخ او شا دواړه اړولي دي، كما مر، نو په شرقوا او غربوا باندې بهر دنيا كښې عمل نه دې شوې.

**قول سابع** : استقبال او استدبار هرځائې جائز دې، اودا حكم منسوخ دې په حديث د ابن عمر باندې، يعنې په عمل د نبي ﷺ چه هغه مستدبر الكعبه ناست وو،نو استدبار دې روايت كښې جائز شو، او استقبال روستو په روايت دجابر كښې راغې.

اودا قول د عروة بن زبير او ربيعه الرأى او داود ظاهري دې.

**دليل** : حديث دجابر دې : (نهانا النبي ﷺ ان نستقبل القبلة ونستدبرها ببول، ثم رأيته قبل ان يقبض بعام يستقبلها. رواه ابوداود والترمذي وابن ماجة رقم : ٣٢٥، صحيح ابي داود رقم : ٩، باسناد حسن.

كله چه استقبال ثابت شو نو استدبار ددې نه هم آسان دې.

٢ - دارنګه په حديث د عراك عن عائشة كښې دي :

ذكر لرسول الله ﷺ ان ناسا يكرهون ان يستقبلوا القبلة بفروجهم، فقال ﷺ : او قد

فعلوها، حولوا مقعدتي قبل القبلة . رواه الدارقطني : ١/ ٦٠، وابن عساكر : ٥/٦٦ـ

١- **جواب** : حديث د ابن عمرؓ او عائشةؓ نه جواب دادے چه په ناسخ اومنسوخ كښے د زمانے تقدم او تاخر معلومول ضرورى دى، او دلته پته نشته چه كوم متاخر دے اوكوم متقدم ؟ـ

٢- **جواب** : وهو الراجح : په دے حديث كښے عمل د نبى ﷺ دے او عمل ناسخ نه وى د قول د نبى ﷺ دپاره، كما مر۔

٣ - صحابوؓ د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو په دے حديث د ابوايوبؓ باندے عمل كړے دے، معلوميږى چه دا منسوخ نه دے۔

٤ - او حديث دعائشهؓ نه بل جواب دادے چه ابن حزمؓ په المحلى (١٩٢/١) كښے فرمائى :

دا روايت ضعيف دے ځكه په دے كښے خالد بن ابى الصلت دے اودا مجهول دے۔

وضعفه الألبانى فى ضعيف ابن ماجة رقم : ٣٢٤، والضعيفة : ٩٤٧ـ وقال الذهبى ان حديث حولوا مقعدى منكر۔ نيل الاطار (١/٩٥)۔

علامه مباركفورىؒ په تحفة الأحوذى (١٦/١) كښے فرمائى :

فهو حديث ضعيف لا يصلح للاحتجاج۔

امام احمدؒ نه صاحب المغنى (١٨٥/١) نقل كوى چه عراك دعائشةؓ آوريدل نه دى كړى۔ مگر اثرم فرمائى : ما امام احمدؒ ته اووئيل چه حماد بن سلمه روايت كوى د خالد الحذاء نه او په هغے كښے دادى چه عراك عن عائشةؓ قال : سمعتُ عائشة۔ نو په دے كښے سماع د عراك د عائشےؓ نه ثابت شوه۔ نو امام احمدؒ دا ناشنا اوګڼړله او تعجب ئے اوكړو، نو د عراك په سماع كښے د عائشے نه اختلاف واقع شو، مگر روايت كښے خالد بن ابى الصلت راوى مجهول دے، ابن حجرؒ ورته په تقريب كښے مقبول وئيلے دے، يعنے چه متابع ئے موجود شى مقبول به وى، خو دلته متابع نشته. نو روايت ضعيف شو، كما قال الدكتور عبد الغفار سليمان البندارى فى تحقيق المحلى (١٩١/١)۔

٢ - **بل جواب** دادے چه دے حديث كښے دا تاويل دے چه دلته نفس قبلے ته مخ كول

بعضے کسانو ناجائز ګنړلی اود بول براز حالت نه دے مراد، وجه داده چه دا څنګه کیدے شی چه نبی ﷺ اول منع کوی چه استقبال اواستدبار الی القبله مه کوئ اوبیا په خپله فرمائی چه زما د ناستے ځائے قبلے ته واړوئ۔ معلومیږی چه دا حالت د بول نه دے مراد بلکه د نبی ﷺ مقصد دادے چه نفس قبلے ته مخ کول حرام نه دی۔ لکه چه بعضے خلقو دا حرام ګنړلی وو چه هسے به قبلے ته مخامخ نه کینے۔ والله اعلم۔

**اتم قول** : هم شوکانی ذکر کړیدے چه نهی د تنزیه دپاره ده نو قبلے ته مخ او شا راړول په حالت د بول کښے صرف مکروه دی او حرام ندی۔ او دا یو روایت د ابو حنیفهؒ امام احمدؒ ابو ثورؒ، او ابوایوب انصاری رضی الله عنه دے۔ وهو قول النخعیؒ ایضا۔

دوئ وائی چه حدیث د ابن عمر او حدیث د جابر او حدیث د عائشے نهی د تحریم نه نقل کړه تنزیه ته۔

په دے اقوالو کښے اولنے **قول راجح** دے، اګرچه احتیاط او سختی په کښے ده، اوقول ثانی او رابع کښے آسانی ده۔ نو په دے باقی اقوالو کښے به فائده دا شی چه اولنی قول کښے به حرمت رابشکته کړی ترك استحباب ته، اودا نور روایات به ضرورت باندے حمل شی که ضرورت وی نو استقبال او استدبار به په بنیان وغیره کښِے جائز وی۔ اوکه ضرورت نه وی نو بیا به ناجائز وی۔ اودا د اتم قول والا دپاره هم دلیل دے چه دا نهی د تنزیه (خلاف اولیٰ) دپاره ده۔ وهو اختیار مراد شکری فی المنخلة النونیة ص ۱۲، بتحقیق انیق۔

بعضے علماء د**حدیث** دابن عمرؓ نه **جوابونه** کوی :

۱ - **اول جواب** دا چه : د رسول الله ﷺ بول وبراز پاك دی،نو په دے سره بے ادبی د قبلے نه راځی ۔ لکه دا خبره شیخ زکریا صاحب په فضائل اعمال کښے ذکر کړیده۔ دوئ استدلال کوی په وینه د نبی کریم ﷺ باندے چه یو صحابی عبد الله بن زبیرؓ او سفینهؓ هغه څکلے وه۔ لیکن د دوئ دا استدلال صحیح نه دے، ځکه چه وینه کښے هم اختلاف تیر شویدے، کما فی حکایة الصحابة (۳۲٦/۲) وفتاوی الدین الخالص (۲۹/۲)، چه د انسان وینه پاکه ده علیٰ قولٍ۔

بله دا چه نبی کریم ﷺ د امت سره په احکامو کښے شریك دے ترڅو چه دلیل

دخصوصیت رانشی، اوډلیل نشته په دے خبره چه دهغه بول وبراز پاك دی، بلکه نبی ﷺ به استنجاء کوله د بوڼ و براز نه او د نجاست نه به ئے جامے وینځلے۔

۲ - **جواب** : دا کوی چه عبد الله بن عمرؓ خطاء شویدے ځکه نبی ﷺ قبلے ته شا نه وه کړے لیکن بول والا ته انسان فطرةً پوره طریقے سره نشی کتلے خصوصا نبی ﷺ ته، نو ده دا گمان اوکړو چه نبی ﷺ شاکړیده، حالانکه شا خوبل طرفته وه۔

لیکن دا جواب هم صحیح نه دے، وجه داده چه دا تخطئه الثقات ده اودا د شیعه گانو مذهب دے، خصوصا چه صحابی وی، ځکه صحابه کرامؓ دومره بے احتیاطه خلق نه وو چه یو کارئے نه وی لیدلے او په گمان سره خبره کوی ۔ بلکه هغه (رأیت) لفظ صراحةً استعمالوی۔ ددے جواب سره په صحابه کرامؓ باندے بدگمانی پیدا کیږی په باب د دین کښے ۔

بله وجه داده چه عبد الله بن عمرؓ به روستو د وفات د نبی ﷺ نه فتوٰی ورکوله په دے لیدلو باندے۔

۳ -**څلورم** جواب کوی چه دا خصوصیت د نبی ﷺ دے، کما قال الشاه ولی الله الدهلویؒ ۔دا احتمال هم کیدے شی چه دا کار دے دهغه پورے خاص وی، او مونږ ته ئے حکم کړیدے چه (اذا أتیتم الغائط فلا تستقبلوها ولا تستدبروها ) نو مونږ به په امر باندے عمل کوو۔ دا ښه جواب دے چه (فعل النبی ﷺ لا یعارض القول الخاص بنا) لکه چه دا د نیل الأوطار په حواله مونږ مخکښے نقل کړو ۔ ددے وجه داده چه که بیان غرض وے نو بیان یا په قول سره کیږی او یا په فعل سره، نه دا چه په پټ ځائے کښے متیازو ته کینی چه عام خلق ئے نه وینی او هر چه ابن عمر دے نو هغه خو ناګهانی لیدلے دے۔

٤ - **څلورم جواب** دا کوی : چه داکار نبی ﷺ بیانا للجواز کړیدے اگرچه افضله نه ده، او نبی ﷺ دپاره یو غیر افضل کار افضل وی، ځکه هغه داعی دے او داعی دپاره یو غیر افضله او جائزه مسئله بیانول هم افضل وی ۔

بناء په دے جوابونو سره د قول ثانی اورابع جوابونه هم اوشو کومو چه په حدیث د ابن عمرؓ استدلال کړے وو۔

**تنبیه** : په دې تهولو اقوالو کښې اول قول کښې احتیاط هم دې او سختی هم ده، اودویم قول کښې آسانی ده، نو ددې اختلاف نه معلومه شوه چه انسان به په دې باب کښې سختـه منع نه کوی، بلکه داسې وئیل پکار دی چه اول قول غوره دې او مطلقًا قبلې ته مخ کول او شاکول نه دی پکار، خو که چا په آبادئ کښې مخ او شا قبلې ته اوګرځوله نو هغه ته به داسې نه وائې چه تا حرام کار اوکړو، بلکه دا به یو نامناسب کار ګڼړلې شی، ځکه د هغوئ سره هم حدیث د ابن عمرؓ شته دې، او خاصکر د ضرورت په وخت کښې پرې عمل کول بالکل صحیح دی۔

فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ :

## تعارف : د حفصه رضی الله عنها :

ذاد عبد الله بن عمرؓ خور ده، أم المؤمنین، دنبی ﷺ زوجه ده، د عمر بن خطابؓ لور بی بی ده، د نبی ﷺ د نبوت نه پنځه کاله مخکښې پیدا شویده، ابتداء کښې خُنَيْس بن حُذَافَة السهمی په نکاح کښې وه، دهغه سره ئې هجرت اوکړو، او هغه ترې دغزوه بدر نه روستو وفات شو، بیا عمر فاروقؓ په ابو بکر صدیقؓ باندې پیش کړه، هغه هیڅ جواب ورنه کړو، او عثمانؓ ته ئې پیش کړه هغه هم قبوله نه کړه، تردې چه نبی ﷺ ورته د نکاح پیغام اولیګلو نو هغه ته ئې په نکاح ورکړه، په دریم کال دهجرت باندې، په شعبان (٤٥) هـ۔ د (٦٠) کالو په عمر وفات شویده ۔ او (٦٠) احادیث ترې نقل دی ۔ رضی الله تعالیٰ عنها ۔

---

٣ – وَعَنْ سَلْمَانَ ﷺ قَالَ : نَهَانَا – يَعْنِىْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ – اَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ اَوْ بَوْلٍ، اَوْاَنْ نَسْتَنْجِىَ بِالْيَمِيْنِ، اَوْ اَنْ نَسْتَنْجِىَ بِاَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ اَحْجَارٍ، اَوْ اَنْ نَسْتَنْجِىَ بِرَجِيْعٍ اَوْ بِعَظْمٍ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ .

**ترجمه** : جناب سلمانؓ فرمائی : رسول الله ﷺ مونږ ددې نه منع کړی یو چه مونږ د لویو یا وړو بولو په وخت قبلې طرفته مخ کړو، اوددې نه چه مونږ ددرې کاڼړو نه کم سره استنجاء اوکړو، اوددې نه چه مونږ خوشائی یا هډوکی سره استنجاء اوکړو ۔ (مسلم) ۔

## تعارف : د سلمان رضی الله عنه :

دده نوم سلمان الفارسی، کنیت ئے ابو عبد الله، ابن الاسلام دے، دده لقب سلمان الخیر دے، اصل ئے داصبهان دے، بعضے وائی د (رامُهُرمُز) دے، نبی ﷺ چه کله مدینے ته راغلو نو ده اسلام قبول کړو، اوله غزوه خندق ته حاضر شویدے. علامه ابن عبد البرّ د بعضو علماؤ نه نقل دی کړی دی چه بدر کښے هم شریك شویدے. دخپل کلی نه ئے د دین طلب کولو دپاره سفر اوکړو، زړه کښے ورته الله ددین جذبه واچوله، نو یوه ورځ پلار قولپے ته اودرولو، نو سلمان ترے پټ شو او اوتښتیدلو او یوے ګیرجے ته لاړو، اول ئے نصرانیت دین قبول کړو او کتابونه ئے اولوستل اوپه دے کښے ئے مسلسل مشقتونه برداشت کړل، د یو استاذ نه به نقل کیدو بل ته آخر کښے اراده ئے اوکړه چه مدینے ته ځمن یو پیغمبر راروان دے نو د عربو یو قوم اونیولو او غلام ئے ترے جوړ کړو او په یهودیانو باندے ئے خرڅ کړو، سلمان دهغوئ سره مکاتبت اوکړو او نبی ﷺ ورسره په کتابت کښے امداد اوکړو، اهل تاریخ لیکی چه اولس (۱۷) سیدان مالکان ئے بدل کړی دی. تردے چه نبی ﷺ ته راورسیدو، کله چه هغه مدینے ته راغے نو نبی ﷺ دده باره کښے اوفرمائیل : سلمان منا اهل البیت. اوداد هغه کسانو نه دے چه جنت ورته شوق لرلو، ډیر عمر والا وو، بعضے وائی (۲۵۰) او ځینے وائی (۳۵۰) سوه کاله عمر ئے تیر کړیدے، اول قول اصح دے . دخپل لاس دکسب نه به ئے خوراك کولو. اوصدقه به ئے ورکوله. مدائن علاقه کښے په سنه (۳۵) هـ یا (۳۳) هـ کښے وفات شویدے. ټول (۶۰) احادیث ترے نقل دی . رضی الله تعالیٰ عنه

**نَهَانَا** :دا **جواب** د سوال دے، سلمانؓ ته یو مشرك (بطور استهزاء اوتحقیر) اووئیل : ستاسو پیغمبر تاسو ته هرڅه خودلی دی، هر څه کښے ئے ګوتے وهلے، تردے چه د اودس ماتی طریقه ئے هم درخودلے ده . سلمانؓ ورته جواب اوکړو (اجل، نهانا) حاصل د جواب دادے چه په دے کښے څه عیب دے چه دا مونږ ته را اوخائی، بلکه دا خو ډیر ښه آداب دی، انسان پرے انسان جوړیږی، ځکه ئے مونږ ته راخودلی دی .

**اَوْاَنْ نَسْتَنْجِیَ** : استنجاء په لغت کښے ازالة النجو (ګندګئ لرے کولو) ته وائی او ددے ختمول په اوبو یا په کاڼرو باندے .

په دې مقام کښې څو مباحث او مسائل دی۔

## ۱ - اوله مسئله : د استنجاء اقسام :

استنجاء درې قسمه ده (۱) استنجاء بالماء فقط : چه صرف اوبه استعمال کړی، اوکانړی استعمال نه کړی (۲) استنجاء بالأحجار فقط : چه صرف کانړی استعمال کړی (۳) استنجاء بالأحجار والماء جميعا : چه دواړه استعمال کړی۔

اولنی دوه قسمونه په صحيح احاديثو سره ثابت دی، اودا قسم استنجاء په يمين (ښی لاس) سره کول جائز نه دی۔

بيا که په اوبو سره استنجاء کوی نو درې کانړی استعمالول ضروری نه دی، که يو کانړے يا دوه کانړی استعمال کړی اوباقی اوبه استعمال کړی نو هم جائز دی ۔ خو چه صرف کانړی استعمالوی او اوبه روستو نه استعمالوی نو بيا به درې کانړی استعمالول ضروری وی لکه دے حديث کښې دی (نهانا ان نستنجی باقل من ثلاثة احجار) يعنې مونږ نبی علیه السلام ددې نه منع کړی يو چه د درې کانړو نه په کم باندې استنجاء اوکړو نو درې کانړی استعمالول ضروری دی۔

بيا په کانړو سره استنجاء کښې کوم خاص کيفيت په احاديثو کښې نشته کوم چه صاحب د نور الايضاح وغيره ذکر کړيدې، چه څه کانړی به مخې ته ګذاری او څه روستو، دغه شان د ژمی او اوړی فرق به په کښې کوی ۔ دا څه اسلامی آداب نه دی، بلکه دا يوه تجربه ده۔ ددې په ځائې نور آداب راغلی دی په مجمع الزوائد (۱/۲۱۱) کښې د سهل بن سعدؓ روايت مرفوعا نقل دے چه (حجرين للصفحتين وحجر للمسربة) يعنې درې کانړی به داسې طريقې سره استعمالوی چه دوه کانړی به د دُبر د غاړو پاکولو دپاره استعمال کړی او يو به د دُبر دمينځ دپاره ۔ واسناده حسن ۔ وفی الصحيحه رقم (۲۷۴۹)۔

بل حديث کښې راغلی دی (اذا ذهبتم الی الغائط فاتقوا المجالس علی الظل والطريق، خُذُوا النَّبلَ، واستنشبوا علی سوقكم، واستجمروا وتراً، كما فی السلسلة الصحيحة : ٥٦٥/٦، رقم : ۲۷۴۹ ۔ وسنده حسن۔ په دې حديث کښې بل ادب دادې چه متيازو ته د تللو په وخت واړه واړه (مناسب) کانړی استعمالوئ، او په وخت د بول کولو کښې د زمکې

نه قدمونه معمولي اوچت ساتئ، او ټول قدمونه په زمکه مه مضبوطوئ او غوږ کينئ، او تاك، کانړي استعمالوئ - النهاية لابن الأثير : (٤٣٨/٢)۔

هرچه دريم قسم استنجاء ده نو په دے کښے اختلاف دے (۱) احناف وائي دا سنت او ادب دے، کما فی شرح الوقايه ۔ ليکن دے باره کښے صحيح او صريح حديث نشته چه په هغے کښے دکانړو او اوبو جمع راغلي وي ۔ نو کومو علماؤ چه ورته مستحب وئيلي دي دا صحيح نه ده بلکه دا صرف د جواز او مباح درجه ده، لکه چه ابن قدامه په المغنی (۱۸٤/۱) کښے د امام احمدؒ نه نقل کړيدی :

ولم ينقل عن النبی ﷺ انه استعمل التراب مع الماء فی الاستنجاء ولا أمر به .

وكذا قال الأمير الصنعانی فی سبل السلام (۱۲٦/۱) : ولم نجد عنه ﷺ انه جمع بينهما، آه۔ قال النووی فی المجموع شرح المهذب : المعروف فی طرق الحديث انهم كانوا يستنجون بالماء وليس فيه انهم كانوا يجمعون بين الماء والأحجار .سبل السلام : ۱۲٥/۱ ۔

يعنے : د نبی ﷺ نه په استنجاء کښے د اوبو او کانړو جمع کول نه دی نقل، اونه نبی ﷺ په دے باندے حکم کړے دے۔

اوکوم حديث کښے چه داخبره ده چه اهل قباء به کانړي او اوبه جمع کولے، او بيا ددوئ باره کښے دا آيت نازل شو (فيه رجال يحبون ان يتطهروا) نو دا حديث ضعيف الاسناد دے۔ امام نوویؒ، حافظ ابن حجرؒ، ابن کثيرؒ (فی سورة التوبة : ۳۹۰/۲) او البانیؒ ورته ضعيف وئيلے دے ۔ کما فی تمام المنه ص (٦٥)۔ حافظ ابن حجر فرمائی : ددے په سند کښے محمد بن عبد العزيز دے ضعفه ابو حاتم فقال : ليس له ولا لاخويه عمران وعبد الله حديث مستقيم۔ تلخيص الحبير : ۱۱۲/۱، سبل السلام : ۱۲٥/۱)۔

او تمام المنه کښے ئے جمع بين الأحجار والماء ته غلو فی الدين وئيلے ده، ليکن مونږ وايو چه غُلوّ نه ده خو مستحب هم نه ده، بلکه صرف جواز لري، ځکه چه رواياتِ مجمله کښے احتمال ددغه معنیٰ شته دے، البته که څوك ئے قوی سنت ګڼړي نو بيا به غلو فی الدين جوړيږی ۔

او ابن کثيرؒ دا روايت په خپل تفسير کښے دمسند البزار په حواله راوړے، او ضعيف ئے

ورتـه وئيلـې. اګرچـه دا حـديث دې په اهل قباء والا کښې نو صحيح دې ليکن دې کښې د (حجاره) ذکر نشته. ولذلك اورده ابوداود (۱/۷) رقم (٤٤) في باب الاستنجاء بالماء. وله شواهد كثيرة ليس في شئ منها ذكر الحجارة.

او وجـه د فـضيلـت دا هـل قبـاء والا صـحـابـه کـرامـوؓ داوه چـه عام صحابوؓ بـه کانړې استـعـمـالـول، او مسـجـد قبـاء والـو بـه ددې بـرعـکـس اوبه استعمالولې، د زيات طهارت حاصلولو دپاره. نوځکه د دوئ په باره کښې آيت نازل شو.

او په دې باب کښې حديث دعلي رضي الله عنه نه هم نقل دې (فاتبغوا الحجارة الماء) ليـکـن هغـه د مـوقـوف کيـدو سره ضعيف هم دې. ځکه دا منقطع دې د عبد الملك او علي بن ابي طالبؓ ترمينځه. اودا مدلس هم دې، او په سماع باندې ئې تصريح نه ده کړې. (كـذا اخـرجـه البيهـقـي : ۱/۱۰۰). وذكره عبد الحي في حواشي الهداية، كذا في فتاوى الدين الخالص : ۱/۳۹۱).

## ۲ - دويمه مسئله : الاختلاف في عدد الأحجار :

مـخـکښې تير شو چه څوك صرف په کانړو استنجاء کوي نو درې کانړې ضروري دي، اګرچه پاکي ئې په يو يا دوه کانړو هم راشي، خو دې کښې اختلاف دې.

(۱) احنـاف وائي : درې کـانـړې استعمالول مستحب دي، اوکه ددې نه په کمو باندې نـظـافـت حـاصـل شـي نـو بيـا د درې کانړو استعمالول واجب نه دي، بلکه مستحب دي. واجب مـحل صفا کول دي، که په يو کانړې سره وي اوکه په دوو يا دريو سره وي. خو غالبًا صفائي په درې ؤ سره راځي، اودا قول دامام مالكؒ او صاحبينوؒ هم دې.

(۲) دويـم قـول د جـمـهـورو امام شافعيؒ، احمدؒ، اسحق بن راهويهؒ او ابو ثورؒ دې، دوئ فـرمـائي : اِيتـار (تاك) او درې کـانـړې استعمالول واجب دي اګرکه صفائي ددې نه په کمو سره هم راشي، اودا قول حق دې.

## دلائل الجمهور :

۱ - يو داحـديـث د سـلـمـانؓ دې چه په دې کښې نهي د رسول الله ﷺ ذکر ده، او نهي دتـحـريـم دپاره وي، اود نهـي پـه ارتکاب سره استنجاء نه کيږي. نو د درې کانړو نه په کمو

سنره استنجاء كول حرام شو، اودرے واجب شو ـ داحديث مسلم (١/١٣٠)، او ترمذى (١/٩) راوړے۔

**٢ - دويم دليل** : فصل ثانى كښې حديث د ابو هريرةؓ دے په روايت دابو داود (١/٦) ابن ماجه (١/٥٧) او دارمى (١/١٣٨) نقل دے : (وأمر بثلاثة احجار)، وسنده صحيح ـ او امر د نبى ﷺ د وجوب او فرضيت دپاره وى۔

**٣ - دريم دليل** : حديث دعائشةؓ : (اذا ذهب احدكم الى الغائط فليذهب معه بثلاثة احجار، يستطيب بهن فانها تجزئ عنه ).

(ابوداود : ١/٦، نسائى : ١/١٦، دارمى : ١/١٣٧، احمد : ٦/١٠٨، باسناد صحيح)۔

**٤ - ځلورم دليل** : حديث دخزيمه بن ثابتؓ دے : (فى الاستنجاء ثلاثة احجار ليس فيها رجيع)۔ يعنى استنجاء كښې به درے كاڼړى استعمالولے شى چه ګندګى به پكښې نه وى۔

(ابوداود، رقم : ٣١، ابن ماجة : ١/٧٥، باسناد صحيح)۔

**٥ - پنځم دليل** : حديث د سلمانؓ دے په مسلم (١/١٣٠) كښې :

(لا يستنجى احدكم بدون ثلثة احجار). وفى رواية مسلم و ابن ماجة رقم : ٣١٦، عن سلمان : ولا نكتفى بدون ثلثة احجار، بسند صحيح)۔

دا احاديث صريح دى په وجوب الايتار والتثليث كښې، چه ددے نه عدول كول جائز نه دى، بغير ددے نه استنجاء نه كيږى۔

**دلائل الأحناف :**

**١ - دليل** : حديث د ابو هريرةؓ دے چه ابوداود (١/٦) او ابن ماجه راوړے :

من استجمر فليوتر، فمن فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج ـ لكه روستو را روان دے۔

نو وتر (طاق) يو حجر هم كيدے شى، او فلا حرج دليل دے په دے چه تثليث واجب نه دے بلكه مستحب دے ـ

**جواب** : دا حديث سندا ضعيف دے، په دے كښې دوه مجهول رويان دى : الحصين الحبرانى الحمصى، او ابو سعيد ـ كذا فى نيل الأوطار (١/١١٦) والدين الخالص :

١/٤٩٣)۔ وضعفه الألباني في الضعيفة رقم : ١٠٢٨، وصحيح ابن ماجة : ٣٣٧، وضعيف ابی داود : ٨۔

**تنبیه** : حافظ ابن حجرؒ په دې مقام کښې په فتح الباري (١/٢٠٦) کښې خطاء شويدې چه دې روايت ته ئې حسنه الاسناد وئيلې دې، وجه دخطائي داده چه ده خپله په تقريب (١٧١) کښې دې دواړو راويانو ته مجهول وئيلې دی، نو په مجهول راويانو سره روايت څنګه حسن شو؟ بلکه ضعيف دې ـ

٢ – دارنګه بيا هغه ددې روايت يو تاويل هم کړيدې چه : (فليوتر) نه مراد په دې حديث کښې ايتار په مافوق الثلاثه کښې دې ـ يعنې درې خو ضروري دی، ليکن کله چه په دريو هم صفائي رانشي نو بيا به زيات استعمالوی او په دې مافوق الثلاثه کښې ايتار واجب نه دې ـ اوهرچه ثلاثه دی نو هغه خو په دې نورو احاديثو آمره اوناهيه ؤ سره واجب دی ـ او په دې توجيه سره ددې روايت تطبيق د صحيح رواياتو سره راځي ـ

٢ – **دليل** : بخاري بشرح فتح الباري (١/٢٠٦) کښې حديث دعبد الله بن مسعودؓ دې چه ده ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل : درې کانړی راوړه، نو ابن مسعودؓ ورته دوه کانړی او يو روثه (خوشائی) راوړو : (فاخذ الحجرين وألقى الروثة، وقال : انها ركس)۔

نو نبي ﷺ په حجرينو (دوه کانړو) باندې استنجاء اوکړه او دريم ئې طلب نه کړو ـ معلوميږی چه درې کانړی واجب نه دی ـ لکه چه دا استدلال امام طحاویؒ کړيدې ـ

١ – **جواب** : جمهور جواب کوی چه نه منو داخبره چه نبي ﷺ صرف په دوه کانړو باندې استنجاء کړيده او دريم ئې نه دې غوښتلې، بلکه په روايت د مسند احمد کښې داسې الفاظ راغلي دی : وكذا في الدراية : ١/٧٨ :

(فالقى الروثة وقال : انها ركس، ايتني بحجر)۔

يعنې خوشائی ګوزار کړو او وې وئيل : ما ته بل (دريم) کانړې راوړه !۔ دينه معلوميږی چه نبي عليه السلام هيچرې اکتفاء په دوه کانړو نه ده کړې۔

او دې روايت ته بعضو منقطع وئيلې دې د ابو اسحق سماع د علقمه نه نه دې ثابت، ليکن علامه کرابيسي دده سماع ثابت کړيده، ليکن حافظ ابن حجرؒ فرمائي : (وجدته

موصولا عند احمد والدارقطني من وجه آخر - الدراية : ۷۸)، ورجاله ثقات اثبات. او بیائې دهغې سند ذکرکړیدے۔

او حافظ فرمائي : ددے روایت نه امام طحاویؒ غافل دے ۔ انتهی۔

او دغه شان روایت په دارقطنی : ۵۵/۱، کښې هم ذکر دے۔ چه په هغې کښې داسې الفاظ دي : (انها رکس، فأتني بغيرها) اودا روایت صحیح دے، علامه عظیم آبادیؒ په تعلیق الدارقطني کښې ددے د کلام نه سکوت کړیدے، او علامه مبارکفوریؒ په تحفه الأحوذي : ۸۹/۱، کښې په عیني باندے سخت تکونه کړی دی چه هغه د طحاوی پۍ ځایه پله کړیده، د هغې کتل هم پکار دی۔

۲ - **دویم جواب** : ابن مسعودؓ چه روښه راوړیده نو هغه ته دا معلومه ده چه درے عدد ضروری دے ۔ ځکه که دهغه په نیز ددرے ؤ عدد ضروری نه وے نو نبی ﷺ ته به ئې دوه کانړی راوړی وے، دخوشائی راوړلو څه معنیٰ وه ؟ خوشائی ئې ځکه ورسره راوړو چه تثلیث (درے عدد) پوره شي ۔ نو دا صحیح حدیث الټه داحنافو په خلاف دلیل دے ۔

۳ - حافظ ابن حجرؒ دا **جواب** هم کوی چه نبی ﷺ ابتداء کښې ددرے کانړو په راوړلو امر اوکړو نو کله چه روښه ئې ګذار کړه، نو دوباره امرئې اونه کړو ځکه چه اکتفاء ئې اوکړه په ابتدائي امر باندے اودا دوه کانړی ئې داسې استعمال کړل چه ددریم کانړی کارئې د دویم کانړی د یو طرف استعمالولو نه واخستلو ۔اودا مقام دضرورت وو، چه ابن مسعودؓ ګرځیدلے دے خو بیا هم ورته دریم کانړے نه دے ملاؤ شوے۔ دا جواب تسلیمی دے۔

٤ - ښه **جواب** دا هم دے چه درے کانړو باندے امر چه کوم احادیثو کښې راغلے دے هغه قولی احادیث دی، اودا حدیث د ابن مسعودؓ فعلی دے، او عند التعارض ترجیح قولی حدیث ته ورکولے شي په فعلي حدیث باندے، لکه چه دا قاعده مسلم عند الخصم هم ده ۔اول خو تعارض نشته، خو که تعارض راهم شي نو داقاعده به جاری کیږی ۔

تقی عثمانی صاحب په درس ترمذی (۲۰۹/۱) کښې وائی چه دا حنافو په مستدل حدیث ابن مسعودؓ باندے دا اعتراض هم کیږی چه که د (ائتني بحجر) زیادت والا روایت ثابت نه وی، نو هم دا احتمال شته چه نبی ﷺ خوشائی ګوذارولو نه پس دریم کانړے

پخپله را اوچت کړي وي، یا ئې د ابن مسعودؓ نه طلب کړي وي، ځکه عدم ذکر مستلزم نه دے عدم الشئ لره، واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال۔

بیا وائی : دا اعتراض بلا شبه وزني دے۔ شیخ الهند په الورد الشذی کښې هم تسلیم کړیدے۔

۵ - **جواب** : که اومنو چه دریم کاڼړے ئې نه دے طلب کړے، نو عدم طلب دحجر ثالث دلالت نه کوي په عدم وجوب د ثلاثه باندے، بلکه وجوب د درے کاڼړو په نورو احادیثو سره ثابت دے، کما ذکرناها۔

**خلاصه** : داچه د احنافو سره هیڅ صریح صحیح حدیث نشته، صرف احتمالات دي۔ او د جمهورو علماؤ قول قوي او حق دے، د وجے ددے دلائلو نه چه ستا دماغ پرے خلاص شول ۔

**الفائدة البدیعة** : د بول (تشو متیازو) او چولو دپاره درے کاڼړي استعمالول ضروري نه دي، بلکه مقصود په دے کښې صرف اودس اوچول دي، که په یو کاڼړي سره وي اوکه په دوه یا دریؤ وغیره سره وي، تول جواز لري ۔البته امام نوویؒ په شرح د مسلم (۱۳۱/۱) کښې لیکي چه شپږ کاڼړي به استعمالوي، درے د وړو بولو او درے د غټو بولو دپاره۔ خوددے دپاره حدیث کښې دلیل نشته ۔

دا وجه ده چه احادیثو کښې په درے کاڼړو باندے امر دغټو بولو دپاره راغلے دے، نه د وړو بولو دپاره، فتدبر واحفظه فانه جدید ۔

۳ - **فائده** : که یو کاڼړے درے **طرفونه** لري نو آیا دا د درے کاڼړو حکم لري که نه ؟۔

نو دا هم اختلافي مسئله ده په مابین د علماؤ کښې :

۱ - امام شافعيؒ، اسحقؒ، ابو ثورؒ او یو روایت د احمدؒ نه دا دے چه لوئې کاڼړے چه درے طرفونه لري او په دے سره صفائي راځي نو ددے حکم د درے کاڼړو دے۔

**دلیل** : دا دے چه مقصود په حدیث کښې درے کرته مسح کول د دُبر دي، دپاره ددے چه ښه صفائي راشي، اودا کار په مذکوره کاڼړي کښې هم کیدے شي سره د لحاظ د عدد (درے والي) نه او حدیث کښې بیل بیل کاڼړے استعمالول نه دي مراد، لکه ددے مثال په

عربئ ژبه کښې دادې چه عرب وائي : ضربته ثلاثه اسواط اى ثلاث ضربات بسوط۔ یعني ما دا سړي په درې چابکو اووهلو، یعني درې ګوزارونه مې پرې په چابك سره اوکړل، نو چابك یو دې خو ګوذارونه پرې درې شویدي۔ نو دلته هم کانړې یو دې خو درې ځل پرې مسح شویده۔ دا وجه ده دا علماء وائي : چه که تعیین د کانړو اوشي نو بیا پکار ده چه په لوټه، لرګي یا ټوټه باندې استنجاء اونشي۔ او حال دا چه په هغې باندې هم استنجاء کول جائز دي۔

۲ – بل طرفته د ابن المنذر مذهب دادې چه د درې کانړو نه په کمو سره استنجاء نه صحیح کیږي، اودا یو قول د امام احمدؒ هم دې۔ دلیل دادې چه نبي ﷺ فرمائیلي دي چه ددرې کانړو نه په کم باندې استنجاء نه کیږي ( لایکفي احدکم دون ثلاثة احجار) نو که یو انسان په کانړو استنجاء کوي نو خامخا به درې استعمالوي، نه کم۔ ځکه نبي کریم ﷺ عدد متعین کړې دې۔ او په دې سره صفائي هم راځي، نو د دوارو لحاظ به کولې شي۔ کذا في المغني : ۱/۱۸۱۔

**۳ - دریمه مسئله : حکم الاستنجاء :**

۱ – دجمهورو علماؤ په نیز استنجاء فرض ده، په اوبو وي اوکه په کانړو۔

دلائل دا مخکښي احادیث دي چه امر اونهي په کښې راغلي دي، لړ بول او ډیر بول دواړه په نجاست کښې یو شان دي۔

۲ – داحنافو په نیز استنجاء کښې اقسام دي، اصل استنجاء د دوئ په نیز سنت ده (هدایه، شرح وقایه). هدایه فصل في الاستنجاء (۱/۷۸) کښې دي :

الاستنجاء سنة، لان النبي واظب علیه ۔ نکته کښې عبد الحی صاحب لیکي : (مع الترك) ۔ یعني نبي ﷺ کله پریخې ده، ځکه چه سنت همدې ته وائي چه نبي ﷺ همیشه کړې وي خو کله نا کله ئې پریخې هم وي۔ خودا هله سنت ده د دوئ په نیز چه کله مقعد یو درهم په اندازه ګنده وي، اوکه چرې د قدر الدهم نه زیات ګنده شي (مقعد نه ئې تجاوز کړې وي) نو بیا د دوئ په نیز واجب ده ۔

لیکن په دې تقسیم باندې هیڅ دلیل نشته، دا په دین کښې بدعت دې ۔ ځوك چه

استنجاء ته سنت وائي او بيا د سنت دا تعريف كوي چه دا هغه شے دے چه نبي ﷺ يو كرت دوه كرت پريخے وي، نو آيا داسے چرته كيدے شي چه نبي ﷺ بول وبراز كړے وي او بيا بغير د استنجاء نه په اوږو يا په كانړو دغسے راپاڅيدلے وي - دا خو د هر ذي عقل د عقل او د فطرت او طبيعت خلاف خبره ده، چه همداسے گنده راپاڅي، پاتے لا داچه شريعت دے په دے كښے اجازت وركړي !۔

كه د احنافو دا مسئله عوامو ته اوكړے شي نو د احنافو نه به ډير نفرت اوكړي۔ دا صرف د متاخرينو خبرے دي، او په تقليد باندے بناء دي، تقليد انسان كوم ځائے ته رسوي ؟ په بدعاتو كښے ئے واقع كوي۔ په دے كښے څه نقصان دے چه سره د وجود د دلائلو د فرضيت د استنجاء نه استنجاء ته فرض اووئيلے شي ؟۔

بيا ددے ځائے نه ئے دقدر الدرهم مسئله مستنبطه كړيده چه ستا په جامه باندے د يو درهم په اندازه گندگي موجوده وي او ته قصدا هم هغه اونه وينځے او مونځ ورسره اوكړے نو دا مونځ اوشو، ځكه وائي چه په مقعد كښے شريعت دا اجازت وركړيدے چه كه ته هغه اونه وينځے نو جائز ده، (شرح وقايه : ١٣٩/١ : كښے دي : وقدر الدرهم من نجس غليظ كبول ودم ..... عفو، وانظر حواشي شرح الوقاية۔ دا استدلال من المقعد دے۔

(قال في الهداية : ٧٤/١) : وقدرناه بقدر الدرهم اخذا من موضع الاستنجاء۔

دا مسئله د دوئ **غلطه** ده، ځكه اول خو دانه منو چه د مقعد استنجاء كښے معافي شته دے، بلكه هغه هم شريعت فرض كړيده، كما هو قول الجمهور۔

٢ - دويم دا چه كه بالفرض مقعد كښے معافي هم اوشي نو بيا قياس ته ضرورت نشته ځكه هلته ضرورت دے او په بل ځائے كښے ضرورت نشته دے۔ د جامے وينځل فرض دي، الله فرمائي : ﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴾۔ جامے د هر قسم گندگئ نه صفا كړه لږه گندگي وي او كه ډيره، د درهم په اندازه وي او كه كمه۔ ئ

**بله** د تعجب خبره دا ده چه احناف وائي تقييد د كتاب الله په خبر واحد سره جائز ندے نو دلته قرآن ﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴾ مطلق دے۔ نو دوئ دا څنګه مقيد كوي په قياس باندے ؟ او بيا هغه قياس هم څه په نص باندے نه دے بلكه په دُبر باندے دے۔ فتدبر !

### ٤ – څلورمه مسئله : استنجاء په څه شی سره کیږی ؟

آیا استنجاء صرف په کانړو متعین ده اوکه توته، کاغذ وغیره استعمالول هم جواز لری ؟- په دے مسئله کښے اختلاف دے :

۱ – اهل ظواهر وائی : استنجاء صرف په کانړو کیږی، وجه داده چه نبی ﷺ تصریح په کانړو باندے کړیده، نود کانړو نه سیوا باندے استنجاء ناجائز ده، اومفهوم مخالف نه معلومیږی چه دکانړو نه علاوه په بل څه کاغذ وغیره باندے استنجاء جواز نه لری ۔

۲ – جمهور علماء وائی چه حجر متعین نه دے بلکه دکانړو په ځائے توته، کاغذ، لرګے وغیره هم قائمیدے شی ۔

امام نوویؒ فرمائی : ددے حدیث مفهوم مخالف لره اعتبار نشته ۔

★ وجه داده چه داداسے دے لکه ﴿ وَلَا تَقْتُلُوا اَوْلَادَكُمْ مِنْ اِمْلَاقٍ ﴾ که دلته مفهوم معتبر شی نو مقصود به خراب شی چه اولاد دلوږے د ویرے په وجه مه قتلوئ او ددے نه سیوا د بل څه د وجے نه ئے قتلول جواز لری ! اودا صحیح نه ده ۔

★ بله وجه داده چه حجر کښے څکه تعین نشته چه نبی ﷺ د استنجاء بالعظم والروث والبعر والرجیع او فحم (سکاره) نه منع فرمائیلے ده، که صرف حجر متعین وے نو بیا به نبی ﷺ مطلقا منع کړے وے او صرف دا څیزونه به ئے په منع پورے نه خاص کولے ۔ والتفصیل فی نیل الأوطار (۱۱٦/۱) و شرح السنه۔

### ٥ – پنځمه مسئله : په منع شوو څیزونو باندے د استنجاء کولو حکم

۱ – دجمهورو علماؤ : شافعیؒ، احمدؒ، اسحقؒ، سفیان الثوریؒ، اهل ظواهرؒ او امام مالکؒ مذهب دادے چه استنجاء بالعظام (په هډوکو) او روث اوطعام باندے حرام او ناجائز ده، اودا استنجاء نه کیږی ۔

**دلیل** : حدیث د سلمانؓ دے چه په هغے کښے دی :

(وان نستنجی برجیع او بعظم) او په دے باب کښے ګڼر احادیث صاحب المغنی (۱۷۹/۱) ذکر کړیدی، هغے ته رجوع پکار ده۔

لکه په روایت د ترمذی (۲۹/۱، بتحقیق احمد شاکر بسند صحیح) کښے د ابن

مسعودؓ نه مرفوعا نقل دی :

لا تستنجوا بالروث ولا بالعظام، فانها زاد اخوانكم من الجن ـ

دارقطني نه ئې حديث نقل كړيدے مرفوعا : (ان النبي ﷺ نهى ان نستنجي بروث او عظم، وقال : انهما لا يطهران). وقال اسناده صحيح ـ

٢ – د امام ابو حنيفهؒ اوبعض بغدادينو قول دادے چه په هډوكو او خوشيانوباندے استنجاء جائز مع الكراهه ده، يعنے صرف مكروه قدرے ده۔

★ **دليل** : دا وائي چه دا څيزونه نجاست اوچوی او محل پاكوی نو دا دكانړی پشان شو ـ نو مقصود پرے حاصليږی چه انقاء المحل يعنی ځائے پاكول دی (هدايه : ٧٩/١)۔

**صحيح** خبره داده چه كه يو انسان په دے ممنوع څيزونو استنجاء اوكړی نو دده استنجاء نه ده شوے ځكه شرعی استنجاء هغه ده چه محل پاك كړے شی په هغه څيزونو چه شريعت هغه جائز ګنړلی دی دپاره د پاكوالی، او مطلق پاكوالی ته استنجاء شرعی نه وائي۔

بِرَجِيْعٍ : د هر څيز ګندګئ ته وائي كه انسان وی اوكه دحيوان ـ په دے سره استنجاء ځكه حرام ده چه دا طهارت نه راولی ـ

اَوْ بِعَظْمٍ : په هډوكی سره استنجاء ځكه حرام ده چه (١) فانها زاد اخوانكم من الجن : يعنے دا د پيريانو خوراك دے ـ (٢) دويم دا چه : دے سره انسان زخمی كيږی غالبا ـ

(٣) دريمه وجه : املس يعنی ښوئے دے نجاست پرے نه زائل كيږی، بلكه نور انسان ګنده كوی ـ

---

٤ – وَعَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ يَقُوْلُ : ( اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِکَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : انسؓ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه كله بيت الخلاء ته داخليدلو نو دا دعاء به ئے لوستله : اَللّٰهُمَّ الخ (ترجمه) اے الله ! زه پنا پورے د نارينه اوزنانه د خبيث (او ناپاك) شيطانانو نه پناه غواړم ـ (متفق عليه)۔

**تشريح** : اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِکَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِث :

١ – خبث په ضمه دخاء او سکون دباء سره دے په معنیٰ د نجاست او پلیتئ او ناکاره شئ سره دے ـ اوخبائث نه مراد معاصی او افعال ذمیمه دی، داقول دابو عبیده دے ـ یعنی زه پناه غواړم د پلیتئ او خبیثو کارونو (گناهونو) نه ـ

٢ – امام خطابیؒ په معالم السنن (١٦/١) کښے لیکی : چه صحیح قرأت دادے چه خبُث په ضمه دخاء اوباء سره شی او سکون د باء غلط دے ـ او دا جمع د خبیث ده، نو د خبث معنیٰ به داوی چه مذکر شیطانانو نه هم پناه غواړم، او خبائث جمع دخبیثه ده، یعنے دمؤنث شیطانانو نه هم پناه غواړم (وکذا فی التحفه : ١٥/١)ـ

داولنی قول دلیل دادے چه خبث په وزن د فعُل دے لکه کتب او په دے کښے دعربو عادت دادے چه تخفیف کوی په سکون دعینَ کلمه سره لکه کتب او رُسُل وائی ـ

بیا په روایت د ترمذی کښے په دے دعاء کښے راوی داسے شك کړیدے چه کله (اللهم انی اعوذ بك من الخبث والخبیث وائی، اوکله الخبث والخبائث وائی ـ لیکن علامه مبارکفوریؒ صاحب وائی چه صحیح خبره داده چه الخبث والخبائث اووئیلے شی، وجه داده چه په روایت دصحیح البخاری او عام روایاتو کښے همدا الفاظ راغلی دی، نو همدا قوی دی ـ

**علة الاستعاذة** : د قضاء حاجت په وخت کښے داستعاذے طلب کولو وجه داده چه بیت الخلاء اوگنده ځایونه دشیطانانو مراکز وی او د قضاء حاجت په وخت کښے انسانانو ته تکلیف رسوی، بعضے روایاتو نه معلومیږی چه شیطانان د قضاء حاجت په وخت دانسانانو دکناتو سره لوبے کوی (فان الشیطان یلعب بمقاعد بنی آدم) رواه ابوداود وابن ماجة وفی سنده مجهولان، وسیأتی بعد ـ

نو کله چه بسم الله اودا دعاء اولوستلے شی نو هغه شیطانان انسان ته تکلیف نشی ورکولے ـ او دهغوئ په سترگو باندے الله تعالیٰ پرده واچوی چه انسان ته نشی کتلے ـ

په المطالب العالیه (١٨/١) کښے ذکر دی چه د سعد بن عبادةؓ د قتل وجه هم داوه چه هغه په حمام کښے په ولاړه متیازے کولے نو پیریانو قتل کړو، اودا شعرئے اووئیلو :

قتلنا سید الخزرج سعد بن عبادة رمیناه بسهمین فلم نخط فؤاده ۔

بیا په دے کښے اختلاف دے چه دا دعاء به په کوم وخت کښے وائی :

(۱) د جمهور علماؤ قول دادے چه که انسان په کور کښے وی، نو لږ مخکښے به دا دعاء لولی، اوکه په صحراء کښے وی نو دعورت ښکاره کولو نه مخکښے به ئے لولی ۔ اوکه بیت الخلاء ته داخل شو او دعاء اونه لوستله نو بیا به ئے په ژبه سره نه لولی، بلکه په زړه کښے به ئے صرف تیره کړی ۔

(۲) امام مالكؒ په نیز د عورت ښکاره کولو نه مخکښے اود بیت الخلاء ته د داخلیدو نه پس به دا ذکر کوی ۔او استدلال کوی په حدیث الباب باندے چه ( اِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ ) الفاظ په کښے ذکر دی، نو د دخول نه پس به ئے وائی ۔ خاصکر زمونږ د زمانے بیت الخلاء صفا وی د ننه لوستل هم جواز لری ۔

دجمهورو په نیز د (اِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ) نه مراد (اذا أراد ان یدخل الخلاء) دے،اوددے تاویل دلیل دادے چه امام بخاریؒ همدغه حدیث په الأدب المفرد ص (۱۹۰، رقم: ۷۱۳) کښے په دے الفاظو سره روایت کړیدے:

عن انس رضی اللّٰه عنه قال : کان النبی ﷺ اذا أراد ان یدخل الخلاء قال : اللهم انی اعوذ بك الخ ۔ بلکه صحیح البخاری (۲٦/۱) کښے هم شته ۔

**فائده نادره** : په (اِذَا) لفظ کښے یو قانون واوره ! کله چه یوه مامور به د (اِذَا) سره متعلق کړے شی نو په دے کښے درے صورتونه دی :

(۱) اول صورت : مامور به به د (اِذَا ) دمدخول نه مخکښے اداء کول واجب وی، لکه ﴿ اذا قمتم الی الصلاة فاغسلوا وجوهکم ﴾ ۔ نو غسل الأعضاء (اودس کول) به د قیام الی الصلاه نه مخکښے واجب وی۔

(۲) دویم صورت : دمامور به اداء کول به د(اِذَا ) دمدخول سره سره واجب وی، لکه ﴿اِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا ﴾ ۔ اذا قَرَأْتَ فَتَرَسَّلْ ۔ استماع او ترسل به د قرأت سره یو ځائے واجب وی۔

(۳) دریم صورت : اوکله به دمامور به اداء کول د (اِذَا) دمدخول نه روستو وی، لکه : ﴿

اذا حللتم فاصطادوا ﴾۔ ښکار به د احرام نه د فارغيدو نه پس جائز وی۔

امام مالكؒ دلته دريمه معنى اخلى، ليکن جمهور اولنۍ معانى اخلى، او وجه د ترجيح هم داده، چه بيت الخلاء دګندګۍ ځائے دے نو هلته ذکر اودعاء اواستعاذه کول د ادب خلاف دی۔

ليکن مونږ وايو چه که د انسان نه هيره شى نوفلش کښے دننه هم وئيلے شى، اوخصوصا دے زمانه کښے فلشونه هم صفا وى، نودننه وئيلو کښے هم څه باك نشته، خو ددے دعاء سره به ابتداء کښے بسم الله ملګرے کوى، کما تقدم۔

---

٥ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ : مَرَّ النَّبِيُّ ﷺ بِقَبْرَيْنِ، فَقَالَ : اِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرٍ ، اَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ : لَا يَسْتَنْزِهُ مِنَ الْبَوْلِ. وَاَمَّا الْآخَرُ فَكَانَ يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ ثُمَّ اَخَذَ جَرِيْدَةً رَطْبَةً فَشَقَّهَا بِنِصْفَيْنِ، ثُمَّ غَرَزَ فِيْ كُلِّ قَبْرٍ وَاحِدَةً، قَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ، لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا ؟ فَقَالَ : لَعَلَّهُ اَنْ يُخَفَّفَ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابن عباسؓ نه روايت دے دا فرمائى : نبى کريم ﷺ په دوه قبرونو باندے ور تير شو نو وے فرمائيل : دے دواړو له عذاب ورکولے شى، او په څه غټ څيز کښے دوئ له عذاب نه ورکولے کيږى (چه دهغے نه بچ کيدل ګران وى) په دے دواړو کښے يو خو د متيازو نه نه بچ کيدلو، د مسلم ديو روايت الفاظ دا دى : چه متيازو نه ئے ځان نه ساتلو، اودويم کس چغل خور وو۔ بيا نبى کريم ﷺ د قجورے يو لونده څانګه واخسته، هغه ئے په مينځ دوه حصے کړه او په دواړو قبرونو ئے يوه يوه حصه ښخه کړه۔ دے ليدو سره صحابوؓ تپوس اوکړو : يا رسول الله ! تاسو داسے ولے اوکړل ؟ نبى کريم ﷺ اوفرمائيل : کيدے شى چه د دوئ په عذاب کښے (هغه وخته پورے) څه تخفيف اوشى، څو پورے چه دا څانګے نه وى اوچے شوى ۔ (بخارى، مسلم)۔

**تشريح** : مَرَّ النَّبِيُّ ﷺ بِقَبْرَيْنِ :

**فوائد الحديث :**

۱ - نبي كريم ﷺ ته ددې عذاب څنګه پته اولګيده ؟ ددې جواب دادې چه دايا كشف وو، چه نبي ﷺ ته معجزه شوې وو، اودا كشف غير نبي ته هم كيدې شي (كَرَامَةً لَهٗ)، چه دهغه اعزاز په كښې مقصد وي، ليكن په شريعت كښې ورله هيڅ اعتبار نشته چه بدعتيان په كشفونو سره احكام ثابتوي. دا يو قانون او علم نه دې چه كشف پرې انسان حاصل كړي.

۲ - **فائده** : داخبره ثابته شوه چه په دې قبر محسوس كښې عذاب شته دې، بيا په روايت دبخاري كښې ورسره داسې الفاظ راغلي دي : (وانه لكبير) نوسوال دادې چه په نفي او اثبات كښې څه فائده ده ؟ چه اول ئې (مَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْر) اووئيلو، اوبيا (وانه لكبير) وائي - يعنې لوئي كار نه دې اويقينا لوئي كاردې.

ددې يو څو جوابونه دي : (۱) **اول جواب** دادې چه د(وما يعذبان في كبير) نه مراد ګران كار او امرِ شاقه دې چه دهغې نه احتراز كول او ځان ساتل دومره ګران نه دي، كه انسان اراده اوكړي يعنې دوئ له دا عذاب پداسې كار كښې نه وركړې كيږي چه د هغې نه ځان ساتل ګران وو. ځان ساتل ترې آسان وو خو دوئ ځان نه ساتلو. او د (انه لكبير) نه مراد دادې چه لويه ګناه ده ځكه مونځ پرې فاسديږي، اود انسان عمل بربادوي، ځكه حديث كښې دي (لا يدخل الجنة قتات او نمام) اود بول باره كښې حديث دې : (فان عامة عذاب القبر منه) .

۲ - **جواب** : وَمَا يُعَذَّبَانِ فِيْ كَبِيْرٍ :اى أكبر الكبائر، يعنې اكبر الكبائر (شرك او كفرؔ كښې ورله عذاب نشته بلكه په كبيره ګناه كښې ورته عذاب ملاويږي ځكه نماميت او د بول نه ځان نه ساتل كفر او شرك نه دې بلكه كبيره ګناه ده.

۳ - **جواب** : دا دواړه ګناهونه في نفسه كبيره نه وو ليكن بار بار كولو سره او عادت جوړولو سره كبيره ګناهونه شو، ځكه اصرار على الصغائر سره كبيره ګناه جوړيږي .

٤ - **جواب** : داهم شويدې چه مايعذبان في كبير نه مراد دادې چه دا ګناهونه دوئ ته واړه ښكاره كيدل د دوئ په ګمان كښې واړه وو او (انه لكبير) نه مراد دادې چه دا عملونه

لوئی ګناه هونه دی او عذاب ئې کبیر دې یعنې په ظاهره انسان ته دا اعمال واړه ښکاری لیکن عذاب ئې سخت دې ـ بناء په دې توجیه د (انه لکبیر) ضمیر راجع دې عذاب ته، یعنې ان عذابه لکبیر، وان کان الذنب لیس بکبیر فی زعمهما، او په دې باندې دلیل روایت دابن حبان دې عن ابی هریره (یعذبان عذابا شدیدا)۔

بیا په دې کښې اختلاف دې چه ددې:

## قبرونو والا کافر وو که مسلمانان ؟۔

۱ – نو ابو موسیٰ المدینیؒ وغیره دا غوره کړیده چه دا دواړه کافر وو، ځکه چه په بعضې روایاتو کښې ورسره راغلی دی چه دا قبرونه زاړه دجاهلیت د زمانې خخ شوی وو، لهذا کافر وو ـ کما فی روایة جابر، مرعلی قبرین من بنی النجار هلکا فی الجاهلیة وفی اسناده ابن لهیعة، کذا فی النیل (۱/۱۱۳)۔

۲–لیکن حافظ ابن حجرؒ فرمائی : الظاهر من مجموع طرق الحدیث : ان المقبورین کانا مسلمین ـ یعنې دا مسلمانان وو، وجه داده چه په روایت دابن ماجه (۱/۶۱، رقم: ۲۷۷) کښې ورسره دا الفاظ دی :

(مر النبی ﷺ بقبرین حدیدین) ـ ددې نه معلومیږی چه دا دمسلمانانو قبرونه وو ـ

★ دغه شان که دا کافر وې نو نبی ﷺ به ورله دعاء نه کولې او په (لعل) کلمه سره به ئې ورله امید نه ساتلې ـ (کذا فی حاشیة البخاری و نیل الاوطار : ۱/۱۱۳)۔

**اَمَّا اَحَدُهُمَا فَکَانَ لَا یَسْتَتِرُ مِنَ الْبُوْلِ :**

البول نه مراد (بَوْلِهٖ) دې یعنې دخپلو متیازو نه به ئې ځان نه ساتلو، لکه دا په بل روایت کښې راغلی دی، یعنې دبول نه به همداسې پاڅیدو لکه بعضې خلق دخوب یا دکارو بار په جامو کښې د بول کولو نه همداسې پاځی، بغیر داودس اوچولو نه نوداکار هم غلط دې ـ

## مسئلة : نجاسة الأبوال وطهارتها - کوم بول نجس دی ؟۔

نو اول دا خبره زده کړه چه بول په دوه قسمه دی :

۱ – **بول الانسان** : دا نجس دی او اجتناب ترې واجب دې اودا اجماعی فتویٰ ده، ځکه دا سبب دعذاب قبر دې ـ سیوا د بول دهغه ماشوم (رضیع) نه چه پئ خوری، او د

روټئ وغيره خوراك ئے لانه وی شروع کړے، كما سيأتي حكمه ـ

**٢ - بول الحيوان** : دا په دوه قسمه دی :

الف - بول او روث او بعرات (پچے) وغیره دحیوان غیر ماکول اللحم (چه غوښه ئے نشی خوړلے) لکه بغل، حمار، کلب، خنزیر وغیره، نو دا هم نجس دی، اودلیل دطهارت ئے نشته، اوروث (خوشائی) ته نبی ﷺ (انهار کس) وئیلی دی، لکه چه مخکښے روایت دابن مسعودؓ کښے تیر شو ـ اودارنګ دا قسم ابوال حمل اوقیاس دی په بول الانسان باندے ـ ځکه علت مشترکه په کښے عدم اکل اللحم دے، کذا فی النیل (٦٢/١) ګویاکه دا هم اتفاقی ده ـ

(ب) بول او روث او بعرات دحیوان ماکول اللحم : لکه بول الابل والغنم والبقر والدجاجه وغیرها ـ نو په دے کښے اختلاف دے چه نجس دی که طاهر ؟ـ

١ - اول قول د امام ابو حنیفةؒ، شافعیؒ او ابو ثورؒ دے چه دا نجس دی، لا يجوز استعمالها للدواء ولا لغيره ـ هرقسمه استعمال ئے منع دے ـ

**دلائل : ١ - اول دلیل** : دا حدیث الباب دے چه (لا يستتر من البول) کښے الف لام جنسی دی ، یعنی که د انسان بول وی اوکه د بل حیوان ـ

**٢ - دلیل** : حدیث د دارقطنی او حاکم دے چه امام منذری په الترغیب (١٣٩/١) کښے راوړے :

استنزهوا من البول فان عامة عذاب القبر منه .(رواه الدارقطنى) بلوغ المرام : ٢٨٣/١، بشرح توضيح الأحكام.

وفى رواية : اكثر عذاب القبر من البول (رواه الحاكم، صحيح على شرط الشيخين)ـ

**٣ - دلیل** : حدیث د ابن مسعودؓ دے كما فى البخارى (٢٠٦/١) بشرح الفتح واحمد ، کوم چه مخکښے تیر شو :

(فأتيته بحجرين وروثة فألقى الروثة وقال : انها ركس). أى : نجس ـ

(٢) دویم قول د امام ابو یوسفؒ دے : چه دا قسم بول نجس دی، لیکن ددوائی دپاره ئے استعمالول مطلقا جائز دی ـ (لان الضرورات تبيح المحظورات )ـ

(۳) دریم قول : دامام مالك، احمد، زهري، محمد، زفر، ابراهیم نخعي، امام اوزاعي، عطاء او بعضې نورو سلفو او دشوافعو نه دابن المنذر، ابن خزیمة، ابن حبان، وغیره دے۔ هغه داچه دا ابوال طاهر دي، خو مستقذر دي، یعنې طبیعت ترې کرکه کوي، بدئې ګنړي۔

ددے جمهورو علماؤ دپاره شپاړس (۱٦) **دلائل** دي، چه تفصیل سره په فتاویٰ الدین الخالص کنبے ذکر شوي دي (۴۱۷/۱)۔

لیکن اول دوئ جوابونه کوي روستو دلائل ذکر کوي ۔

## د اول قول والا د اول او ثاني دلیل نه جواب :

۱ – د ( لایستتر من البول) او (استنزهوا من البول) نه جواب دادے چه الف لام کنبے اصل او حقیقت عهد خارجي دي، باقي مجازي دي ۔ الا اذا جاء دلیل صارف یصرفه عن حقیقته ۔ نو مراد د (البول) نه بول الانسان دي ۔ لکه چه دا په یل روایت د بخاري کنبے راغلی دی (کان لا یستتر من بوله) دا دلیل د الف لام عهدي هم دے ۔

قال البخاري : ولم یذکر سوی بول الناس، فالتعریف في البول للعهد، قال ابن بطال : اراد البخاري ان المراد بقوله : کان لا یستتر من البول : بول الانسان، لا بول سائر الحیوان، فلا یکون فیه حجة لمن حمله علی العموم في بول جمیع الحیوان ، الخ. کذا في النیل (۶۱/۱)۔

اوکه چرے الف لام عهدي وانخلو نو دا نور روایات ضائع کیږي (کوم چه راروان دی)۔

۲ – او د حدیث د ابن مسعود (انها رکس) نه شیخ الاسلام ابن تیمیة په مجموع الفتاویٰ (۵۷۸/۲۱) کنبے (۱) داسے جواب کوي چه : رکس په معنیٰ د مرکوس دے یعنې مردود شے دے، او نجس نه دے، اوډیر اشیاء مردود مرکوس دي، لیکن نجس نه دي، لکه هډوکے، د لیکلو کاغذ، توته وغیره پدے استنجاء نه کیږي سره ددے چه نجس ندي۔

(۲) یا داچه دا یقین نشته چه دا روثه د ماکول اللحم وه که د غیر ماکول اللحم ؟ (واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال) اود لفظ رکس نه معلومیږي چه دا د غیر ماکول اللحم روثه ده، نو ددے حکم د رجیع (ګندګۍ) پشان دے چه استنجاء پرے نه کیږي، یا ددے وجے نه چه دا ګیاه دجناتو دچارپایانو ده، هرکله چه یقین رانغلو نو روثه د ماکول اللحم ته نجس وئیل

صحیح نشو ۔

۳ - **بل جواب** : شوکانيؒ ذکر کړې چه روثه اگرچه د اس، قچر او خر ټولو خاشنو ته شامل ده لیکن دلته ددې روثې نه مراد روثه دحمار ده، لکه امام ابن خزیمه په خپل صحیح کښې ددې روایت سره دا لفظ زیاتي کړیدې چه (انها روثة حمار) ۔نو بناء په دې دا دغیر ماکول اللحم روثه شوه چه اتفاقي حرامه او نجس ده، فلا تعارض فی الأحادیث ۔

**د جمهورو دلائل :**

۱ - **اول دلیل** : حدیث العرنیین دې (بخاری : ۳۶/۱)، چه دا یو قوم وو، چه د عرفات نه شاته اوسیدل، مدینې طیبې ته راغلل خو دهغې آب وهوا ورسره موافقه رانغله، خیټې ئې خرابې شوې، رنګونه ئې زیړ شو، نو نبی ﷺ ورته حکم اوکړو چه دبیت المال اوښانو ته لاړ شئ (اشربوا من ابوالها والبانها) اود هغې پئ او تشې متیازې څکئ نو ښه به شئ! هغوی چه لاړل دا ئې اوڅکل، ښه شو نو دا اوښانو شپونکي ئې قتل کړو الی آخر القصه۔

نو داحدیث دلیل دې په دې چه بول د ماکول اللحم طاهر دی، ولې که نجس وې نو نبی ﷺ به دهغې په څکلو باندې ورته حکم نه کولو، څکه چه دصحیح مسلم په حدیث کښې دی : (ان الله لم یجعل شفائکم فیما حرم علیکم )۔

که نجس وې نو بیا خو په نجس شئ کښې شفاء نشته دې، نو دوئ ته څنګه حکم کوی چه تاسو دا اوڅکئ ښه به شیء۔ دغه شان که دا خصوصیت دهغوئ وې نو نبی ﷺ به بیان کړې وې چه دا ستاسو خصوصیت دې، اود باقي امت دپاره دا څکل جائز نه دی، که څوك ئې دهغوئ پورې خاص کوی نو بیا هره خبره دصحابوؓ پورې خاص کولو دعویٰ کیدلې شي، نه ! بلکه تخصیص دلیل غواړي او هغه دلته نشته ۔

۲ - **دلیل** : حدیث د جابرؓ نمبر (۵) دې چه په باب مایوجب الوضوء کښې تیر شو :

قال : اصلی فی مرابض الغنم ؟ قال : نعم ! قال : أصلی فی مبارك الابل ؟ قال : لا .رواه مسلم ۔ دغه شان روایت دابو هریرةؓ نه امام ترمذيؒ نقل کړې (۸۱/۱) :

قال رسول الله ﷺ : صلوا فی مرابض الغنم، ولاتصلوا فی أعطان الابل ۔

**طریقه استدلال** : هرکله چه نبی ﷺ په غوژل دګډو بزو کښې مونځ کول جائز کړل اودا حکم ئې ورته اونه کړو چه څه څادر، بزکې، چټائی وغیره پرې واچوئ چه د نجاست نه محفوظ شئ! نو دا دلیل دې چه بول الغنم او بعرات دهغې پاك دی، اودارنګ داوښانو هم، لیکن نهی دمانځه نه په اعطان الابل کښې ددې وجې نه نه ده شوې چه ګنې دانجس دی بلکه ددې وجې نه اوشوه چه اوښان شیطانان دی اود انسان نه ډیرنفرت کوی، نو په انسان باندې مونځ ګډوډ کوی، دغه شان انسان هم ترې ویره کوی. یا نهی پدې وجه شویده چه هلته کښې شیطانان موجود وی.

۳ - **دلیل** : حدیث د انس مالك رض رواه البخاری (۶۱/۱) ابو التیاح فرمائی : ما انس بن مالك رض نه واوریدل چه فرمائیلې :

کان النبی ﷺ یصلی فی مرابض الغنم قبل ان یبنی المسجد . (أی النبوی).

دا هم صریح دلیل دې چه نبی ﷺ دصحابو رض سره په داسې مقام کښې مونځ کړیدې، چه ګډې بزې به په کښې تړلې شوې او دا هم نه دی نقل چه دوئ ددې دپاسه څه شې خور کړې وی .

٤ - **دلیل** : امام بخاری رح په : باب ابوال الابل والدواب والغنم ومرابضها، کښې د ابو موسیٰ اشعری رض اثر تعلیقا نقل کړې چه ابو موسیٰ په خوشیانو وغیره باندې دپاسه اودریدو او مونځ ئې اوکړو، چا ورته اووئیل چه اخوا دیخوا پاك ځائې کښې دې ولې مونځ اونه کړو چه دې غوژل کښې اودریدې ؟ ابو موسی اشعری رض ورته جواب ورکړو : (ههنا وثم سواء) دا ځائې اودغه بل ځائې دواړه برابر دی په پاکوالی کښې (۳۶/۱).

حافظ ابن حجر رح فرمائی : دا حدیث ابن نعیم (چه د بخاری شیخ دې) او سفیان الثوری رح په خپل مسند کښې متصل ذکر کړې دې (فتح الباری : ۲۶۷/۱).

۵ - **پنځم دلیل** : حدیث دابن مسعود رض (کوم چه راتلونکې) دې :

قال : قال رسول الله ﷺ : لا تستنجوا بالروث ولا بالعظام، فانها زاد اخوانکم من الجن . رواه الترمذی : ۱۱/۱، والنسائی : ۱۶/۱.

**طریقه داستدلال** : داده چه نبی ﷺ مونږ په پچو او خاشنو باندې داستنجاء کولو

نـه منـع كړو، او وجه ئې دا اوخودله چه دا د پيريانو د چارپايانو خوراكه ده، كه استنجاء پرې اوشي نـو نـجس گـرځي. نو كه دا چرته پخپله نجس وې نو بيا خو دهغه روث او بعره په كـوم چـه استنجاء شوې وي اوپه كوم چه نه وي شوي هيڅ فرق نشته، نو بيا هركله چه د استـنجاء كـولـو نه مخكښې دا پليت شو، نو نبي ﷺ بيا ولې مونږ د استنجاء كولو نه په دې څيزونو باندې منع كړو ؟۔

۲ - بلـه دا چه كـه روث او بـعـر ( خاشـنـه او پـچـې) وغيره نجس شي نو بيا خوددې په خوراك سره د حيوان نه جلاله جوړيږي، نو دهغه حيوان خوراك خو د جناتو دپاره هم حرام دې ۔ نو بيا څنګه نبي ﷺ مسلمانانو پيريانو ته د نجس شي په خوړلوامركوي ؟

**٦ - دلیل** : نبي ﷺ مسجد حرام ته په اوښه باندې سور ننوتلو اوطواف ئې اوكړو، دغـه شان ام سلمـةؓ تـه ئې اجازت وركړې وو چه په سورلئ باندې طواف اوكړي (كما في البخاري : ۲۲۱/۱، ومسلم : ۴۱۳/۱)۔

د دې نـه مـعـلـوميږي چه كه بول د اوښانو نجس وې نو نبي ﷺ به مسجد حرام پاكې زمـكې تـه نه داخلولې، ځكه چه چارپايانو سره خودا عقل نشته چه دا پاك ځائې دې بول په كښې نـه دې پكار، بلكه هغوئ له چه كله بول ورشي كوي ئې، نوكه بول او بعرنجس شي نـو بيا سوال دادې چه نبي ﷺ ولې پاك مسجد حرام ته دا حيوان داخلوي چه دمتيازو كولو خطره ئې ده ؟

دارنـګـه پـه دې داخلولو كښې څه ضرورت هم نه وو، بلكه امت ته دا ښودل وو چه بول ددې قسـم حيـوانـاتـو پـاك دي او طواف په حال الركوب كښې جائز دې ۔ نو په اشاره النص سره ثابته شوه چه دا قسم بول او خاشنه وغيره پاك دي۔

**۷ - اووم دلیل** : شيـخ الاسـلام ابـن تيـمـيةؒ فرمائي : عام امت په درمندونو كښې په غـوايانو باندې غوبل كوي، او دا حيوانات خامخا بول كوي، اوڅوك ئې حفاظت نه كوي۔ معلوميږي چه د دوئ بول نجس نه دي، باجماع الأمه ۔

**۸ - اتم دلیل** : عـام صـحـابهؓ او تابعينؒ چارپايان ساتل، اود دوئ نه دا نقل نه دي چه ابـوال او ارواث او ابـعـار د ماكول اللحم نجس دي، لكه عبد الله بن مغفلؓ به مونځ كولو او

په قدمونو پورې به ئې دخوشيانو اثر وو، دارنګه قول د ابو موسیٰ اشعریؓ تیر شو، عبید بن عمیرؒ نه نقل دی دا فرمائی : زما ګډې بزې دی اومسجد کښې پچې کوی (اوزه ورته نجس نه وایم)، ابراهیم نخعیؒ دهغه شخص باره کښې فرمائی چه خوشیان ورپورې لګیدلی وی اومونځ کوی : چه په دې کښې هیڅ باك نشته ۔ابو جعفرؒ الباقر او نافعؒ مولی ابن عمرؓ نه نقل دی چه پټکی ته د اوښ پچه اورسی هیڅ باك نشته ۔

اوکومو بعضو صحابوؓ او تابعینوؒ نه چه وینځل نقل دی نو دا دلیل د نجاست نه دې بلکه دا د نظافت پطور دی، زمونږ خبره په طهارت کښې ده، نه په نظافت کښې، مونږ هم وایو چه نظافت ښه شے دے، خوکه چا په کښې مونځ اوکړو، مونځ ئې کیږی ځکه طاهر دی، وینځل ئې واجب نه دی، اګرچه نظافت مستحب عمل دے، خودلته خبره دفتویٰ په درجه کښې ده چه څوك په داسې حالت کښې مونځ اوکړی نو آیا اعاده به کوی که نه ؟ نوعام علماء وائی چه اعاده نشته، فلا استدلال للمبتدعة ۔

**۹ – دلیل** : دا بلویٰ عامه ده، که دا څیزونه نجس وے نو نبی ﷺ به ددې بیان کړے وے، ځکه هغه د بیان دپاره راغلے وو، بلکه حدیث کښې دی : (وما سکت عنه فهو مما عفی عنه). وفی روایة : وسکت عن اشیاء رحمه لکم . (رواه ابوداود فی الأطعمة موقوفا علی ابن عباس وقد هذان الحدیثان فی باب الاعتصام بالکتاب من المجلد الأول ص (٦١)).

اوکوم حدیث دجابرؓ کښې چه راغلی دی : (ما اکل لحمه فلا بأس ببوله – البیهقی : ۱/۲۵۲، الدارقطنی : ۱/۱۰٤) څوك ورته موقوف وائی، څوك ورته مرفوع نو دا حدیث ضعیف دے، قابل استدلال نه دے ۔ وسیأتی فی الکتاب ۔

**۱۰ – دلیل** : صلی ابن مسعود وعلی بطنه فرث ودم من جزر نحرها، ولم یتوضأ . وفی روایة : ثم اقیمت الصلاة فصلی ولم یتوضأ (ابن ابی شیبة : ۱/۳۹۲، عبد الرزاق رقم : ٤٥۹، الطبرانی فی الکبیر : ۹/۲۸٤، تمام المنة ص : ٥۲، بسند صحیح).

یعنے : یحییٰ بن الجزارؒ فرمائی : ابن مسعودؓ په داسې حال کښې مونځ اوکړو چه په خیټه ئې خوشیان او وینه داوښانو وه کوم چه ئې ذبح کړی وو، اوددې نه ئې اودس اونه کړو ۔

باقی دلائل په فتاویٰ الدین الخالص (۱/٤۱۹) او مجموع الفتاویٰ (۲۱/٥٤٤) کښې

تفصيلا اوګورئ۔

يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ : نميمه ماخوذ دے د نَمْنَمَ نه چه په اصل کښے دڅادر نقش اوښائسته کولو ته وائی، چغل خور انسان هم خبره ښائسته کوی۔ نميمه په اصطلاح کښے (نقل کلام الغير علی وجه الفساد) (يعنے چغلی کول)۔ ديو نه خبره بل چا ته ددے دپاره ورل چه فساد او ورانے راشی ۔ داکار ګناه کبيره ده، حديث کښے دی : ( لايدخل الجنة نمام، وفی رواية : قتات) متفق عليه۔ بل حديث کښے دی : (من کان ذا وجهين فی الدنيا کان له يوم القيامة لسان من نار)، اودا لوئے سبب دعذاب قبر دے ۔

ثُمَّ اَخَذَ جَرِيْدَةً رَطْبَةً : جريده د کجورے څانګے اوچُکے ته وائی، نبی ﷺ دا ولے په دے قبرونو باندے اودروله، ددے څه حکمت دے ؟۔

**جواب** : ددے حکمت بعضے علماؤ دا بيان کړے چه نبی ﷺ داالله نه د دوئ دپاره د تخفيف العذاب سوال اوکړونو الله ورله شفاعت قبول کړو ترهغه وخته پورے چه دا څوکه نه وی اوچه شوی، لکه دا په حديث دجابرؓ فی آخر مسلم (۲۳۵/۸) کښے دی۔ (انی مررت بقبرين يعذبان فاحببت بشفاعتی ان يرفه عنهما مادام الغصنان رطبين)۔

ليکن داخبره هله صحيح ده کله چه دواړه حديثونو کښے يوه واقعه وی، ليکن که واقعه جدا شی نو بيا هم دا احتمال قوی شته چه دا شفاعت د نبی ﷺ دے ۔ وصوّبه الألبانی فی تعليق المشکاة واحکام الجنائز۔

۲ – بله وجه داده (ببرکة يدهِ) چه دا د نبی ﷺ د لاس په برکت سره دے چه تر دغه وخته پورے ترے عذاب سپک شو اودا مطلب نه دے چه په لوندوالی د څانګه کښے اثر دے چه د دے نه بيا مبتدعين استدلال کوی چه څانګه چه لونده وی نو ذکرکوی، نو قبرونو باندے ذکراو تلاوت مستحب دے، لکه چه صاحب د تنظيم الأشتات (۱۴۳/۱) دا فاسده خبره کريده۔ وکذا فی حاشية المشکوة : واستحب العلماء تلاوة القرآن عند القبر لهذا الحديث اذ تلاوة القرآن اولیٰ بالتخفيف من تسبيح الجريد ۔

ددے **جواب** دادے : چه دا بناء الفاسد علی الفاسد دے ځکه چه تلاوت او ذکر عبادت دے، او عبادت په قياسونو باندے نه ثابتيږی، ددے دپاره نقل ضروری دے۔ که په مقبره

کښې د قبرونو خواته تلاوت جائز او مستحب وے نو نبی ﷺ به امت ته ددے بیان کړے وے هغه خو بیان دپاره راغلے وو، ضرور به ئے دا فرمائیلیٰ وے چه قبرونو خواته تلات کوئ ځکه مړو ته فائده رسی، لیکن کله چه هغوئ نه دا ثابته نه ده نو بیا دا کار بدعت دے۔

۲ – دویمه دا چه حدیث کښې خو دا خبره نشته چه دا ښاخګه تسبیح وائی ځکه عذاب کښې تخفیف راځی، بلکه حدیث د مسلم نه معلومه شوه چه نبی ﷺ سفارش کړیدے اودا د ښاخګے داوچیدو پورے قبول شو۔ که چرے نفس تسبیح وئیل سبب دتخفیف عذاب وے نو بیا خو د قبر خاورے اوجنه دمړی، دا ټول څیزونه تسبیح وائی، نودے ښاخګے نالولو ته څه ضرورت وو؟ هر شے د الله ذکر کوی، کما فی القرآن : ﴿ وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ﴾ اسراء۔

دلته مقیس علیه صحیح نه دے نو مقیس هم باطل شو۔

۳ – دریمه وجه داده : چه د جمهورو علماؤ په مذهب کښې په مقبره کښې تلاوت القرآن مکروه دے، امام ابو حنیفة ؒ فرمائی : په مقبره کښې تلاوت کول مکروه دی، امام احمد ؒ نه مشهور روایت دادے چه مکروه دے، اوهمدا د امام شافعی ؒ مذهب هم دے۔ صرف امام محمد ؒ په کښې ګنجائش ورکړے۔

انظر تفصيل المسئلة فی مقدمة رياض الصالحين للألبانی، واقتضاء الصراط المستقيم لشيخ الاسلام . ص (۱۸۲)۔

شیخ الاسلام رحمه الله فرمائی :

ولا يحفظ عن الشافعی فی هذه المسألة كلام، وذلك لان ذلك كان عنده بدعة، وقال مالك : ما علمت احدا يفعل ذلك، فعلم ان الصحابة والتابعين ما كانوا يفعلونه (اقتضاء)۔

یعنے د امام شافعی ؒ نه په دے مسئله کښې د جواز هیڅ قول محفوظ نه دے، اودا ځکه چه دا کار د هغه په نیز بدعت وو، امام مالك فرمائی : ماته هیڅوك معلوم نه دے چه دا کار ئے کړے وی۔ دے نه معلومه شوه چه صحابهؓ او تابعینوؒ به دا کار نه کولو۔

(وانظر الاختيارات العلمية لشيخ الاسلام ص : ٥٤، آپ کے مسائل اور انکا حل للشيخ مبشر احمد ربانی)۔

**مسئله بديعه : په قبر باندې څه شي نالول (اودرول) څنګه دي ؟**

**جواب** : دې کښې ډير څيزونه دي : (۱) شمع، ګنبدونه، غلافونه، منارې اودرول په قبر باندې ټول حرام او باطل کار دې، هيڅ دليل په شريعت کښې دجواز نشته۔

فقهائې احنافو هم ددې څيزونو ترديد کړيدې ۔ تنظيم الأشتات ص (۲۶۹) کښې ليکي چه د مذاهب اربعهٔ په دې اتفاق دې چه دا کارونه حرام دي ۔

۲ – دويم ګياه، لرګې وغيره اودرول، نو په دې کښې د علماؤ درې قوله نقل دي :

۱ – **اول قول** : دادې چه دا کار د نبي ﷺ پورې خاص وو، داد هغه دلاس برکت دې، نور امت به په دې سره نشي قياس کولې، اودا د نبي ﷺ عادت نه وو چه په قبرونو به ئې څه شي نالولو، داوجه ده چه صحابو ؓ څکه تپوس کړيدې چه (لم صنعت هذا يا رسول الله ؟) دا کار دې ولې اوکړو امې د الله رسوله !، فهذه واقعة حال لاعموم لها ۔او په نبي ﷺ باندې غير نبي نشي قياس کولې ۔ څکه چه د پيغمبر ﷺ په دې کار سره په مړي تخفيف راغلو ليکن د نورو خلقو په چوکه اودرولو باندې پته نه لګيږي ۔

۲- **دويم قول** : دادې چه دا خصوصيت د نبي ﷺ نه دې بلکه عام دې، دليل ددې خبرې دادې چه بخاري (۱۸۱/۱) کښې دي چه بريده بن الحصيبؓ اودارنګه ابو برزه الأسلميؓ وصيت کړې وو چه زمونږ د مرګ نه پس زمونږ په قبر باندې دوه ښانګې نالې کړئ، نوکه دا عمل صرف د نبي ﷺ پورې خاص وې نو دې صحابه کرامؓ ولې وصيت کولو ؟ ليکن قول اول والا جواب کوي چه دا ددې دوه صحابوؓ اجتهادي عمل دې، استدلال ئې ددې حديث نه کړيدې او بل صريح دليل ورسره نشته ۔

۳ – **دريم قول** : دادې چه دا قسم اعمال نبي ﷺ عموما نه دي کړي، بلکه دا يو کرت صرف ثابت شو، نوکه يو انسان د نبي ﷺ د اقتداء په نيت يو څل دوه څله دا عمل اوکړي نودا به ان شاء الله جائز وي۔ خو دائمي عملِ به ترې نه جوړوي ۔ دارنګه ددې نه به نور محرمات نه ثابتوي چه شمع ګنبدونه وغيره د قبرونو دپاسه جوړوي ۔ اوددې قول تائيد دادې چه عام صحابوؓ چرته داسې وصيت نه دې کړې، سيوا ددې دوه صحابوؓ نه، نو په دې قول کښې تطبيق ددې دواړو قولونو هم دې ۔

**مناسبة الحديث :**

۱ – من آداب الخلاء : الاستنجاء بالأحجار او بالماء۔

۲ – د بول نه به ځان ساتے همداسے به دګندګئ نه نه پاڅے، ورنه په عذاب قبر کښے به مبتلا شے۔

---

٦ – وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اِتَّقُوْا اللَّاعِنَیْنِ، قَالُوْا : وَمَا اللَّاعِنَانِ یَا رَسُوْلَ اللهِ، قَالَ : اَلَّذِیْ یَتَخَلّٰی فِیْ طَرِیْقِ النَّاسِ اَوْ فِیْ ظِلِّهِمْ ) . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ابو هريرة ؓ نه روايت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمايه : تاسو ځان بچ کرئ دهغه دوه څيزونو نه چه سبب د لعنت جوړيږی، صحابوؓ عرض اوکړو : يا رسول الله ! دوه لعنتی څيزونه کوم کوم دی ؟ وے فرمائيل : يوخو دادے چه يو سړے د خلقو په لاره کښے لوئی بول اوکړی، دويم دا چه يو سړے د خلقو د سوری لاندے لوئی بول اوکړی ۔ (مسلم)۔

**تشريح** : اِتَّقُوْا اللَّاعِنَيْنِ الخ : يعنے ځان اوساتئ دهغه دوه څيزونو نه چه سبب د لعنت دی، او لعنت راکاږی، د لاعنين نه مراد الأمرين الجالبين للعنة دی، يعنے انسان په لعنت کښے واقع کوی۔

**لعنت ويونکی څوک دی ؟**

۱ – نو ياخو الله تعالیٰ دے، الله تعالیٰ پرے لعنت وائی، ځکه دا خلقو ته ضرر رسوی ۔ ۲ – يا لعنت ويونکی خلق دی، لکه يو سړے په داسے ځائے کښے متيازے اووينی نو دهغه دخولے نه د لعنت الفاظ راوځی وائی په دے متيازے کونکی دے لعنت وی داسے ځائے ئے خراب کړيدے، ظاهره داده چه دواړه لعنت کونکی مراد دی، الله اود هغه مخلوق ۔ يعنے ددے کارونو په کولو سره انسان د الله تعالیٰ په لعنت اود انسانانو په لعنت کښے اخته کيږی ۔

۲ – يا لاعن کلمه په معنیٰ د ملعون راغی او نائب فاعل محذوف دے ای الملعون

فعلهما او فاعلهما۔ یعنې د هغه دوه کارونو نه ځان اوساتئ چه د هغې په کولو یا کونکې باندې لعنت وئیلې شي۔

رسول الله ﷺ اول داخبره اجمالًا ذکرکړه دپاره ددې چه صحابهٔ متوجه شي اوهغه ئې مجبور کړل تپوس کولو ته، ځکه چه دتپوس کولو نه پس جواب ته انسان ښه متوجه وي۔ بیا په دې حدیث کښې د لعنت دوه سببه ذکر شو (١) یو بول کول په لارو دخلقو کښې (٢) او بل په سورو کښې۔ اونورو احادیثو کښې نور اسباب هم ذکر دي، ځکه چه دا قاعده ده چه (التنصیص بالشئ لا ینفي ما عداه) یعنې په یو شئ باندې چه تصریح اوشي نودا نفي د ما سیوا نکوي، نو ددې حدیث دامعنیٰ نه ده چه ددې دوه ځایونو نه ما سیوا کښې بول براز کول جائز دي، بلکه روستو حدیث کښې درې ځایونه ذکر دي :

اتقوا الملاعن الثلاثة البراز في الموارد وقارعة الطريقة والظل ۔گودر هم ورسره ذکر شو بیا که ددې سره علت مشترکه ملګرې کړې چه په دې کارکښې مقصد خلقو ته ضرر رسول کیږي، نو خبره به ډیره عامه شي، یعنې هر هغه ځائې کښې چه هلته بول کولو سره انسانانو ته ضرر رسي نو بول وبراز په کښې کول حرام دي اود لعنت سبب دې، ددې حدیث د علت نه وچې نه یا د نورو دلائلو شرعیه ؤنه معلومیږي چه : لا ضرر ولا ضرار في الاسلام ... الحدیث ( جامع العلوم والحکم : ١/٤٠٤، لابن رجب، و الصحیحة رقم : ٢٥٠، بسند صحیح بمجموع الطرق)۔ او ضرري شیز به د لارې نه لرې کولې شي۔ نوددې په حکم کښې هر چمن، لاره او نمر ته د خلقو د ناستې ځائې، اجتماع ګاه اوهر هغه ځایونه دي چه خلق ترې فائده اخلي نو دلته به بول وبراز کول ناجائز وي۔

**اَلَّذِیْ یَتَخَلّٰی** : دلته مضاف حذف دې، ای تخلّي الذي يتخلى، يا عمل الذي يتخلى ۔ یعنې سبب د لعنت د هغه سړي عمل دې چه الخ ۔ دامضاف ځکه مقدر کوو چه حمل د (الذي) په اللاعنان باندې صحیح شي، ځکه د لاعنان نه مراد امرین دي، کما مر ۔اوکه د (اللاعنان) نه مراد ملعونین شي، لکه کله لاعن په معنیٰ د ملعون سره هم راځي نو بیا تقدیر ته ضرورت نشته ۔ اومراد د تخلي نه بول او براز کول دي، یعنې ځان خالي کول دورو او غټو بولو نه ۔

اَوْ فِيْ ظِلِّهِمْ : أي الذي يتخلى في ظل الناس ـ دظل نه مراد هغه سوري دي چه په هغې سره خلق فائده اخلي، انسانان دهغې لاندې اوده كيږي، كيني، جرگې كوي، گډې بزې ترې لاندې اودروي. او مطلق ظل (سورے) نـه دے مراد، ځکـه چـه نبي ﷺ بـه دکهجورې دسورې لاندې قضاء حاجت کولو، خو هغه به شاړ سوري وو چابه ترې فائده نه اخستله ـ

---

٧ – وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ ﵁ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِذَا شَرِبَ اَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْاِنَاءِ، وَاِذَا اَتَى الْخَلَاءَ فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِيْنِهٖ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابو قتادة نه روايت دے دا فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي : كله چه په تاسو كښې څوك اوبه څكي نو (د اوبو څكلو) لوښي كښې دې ساه نه آخلي، او هركله چه بيت الخلاء ته لاړ شي نو خپل ذكر (خاص اندام) له دې خپل ښي لاس نه وروړي ـ (بخاري، مسلم).

## تعارف : د ابو قتاده ﵁ :

انصاري، سُلمي مشهور صحابي دے، د نبي ﷺ لوئي شهسوار دے، په نوم كښې ئې اختلاف دے حارث بن ربعي دے يا عمرو يا نعمان دے، په كنيه ډير مشهور دے، غزوه احد او مابعد ټولو غزواتو ته حاضر شويدے. دا په صحابوؓ كښې ښكاري وو، واقعات ئې مشهور دي. په كوفه كښې په سنه (٥٤) كښې د (٧٠) كالو په عمر وفات شويدے ـ (١٧٠) احاديث ئې امت ته رانقل كړي دي ـ رضي الله عنه ـ

**تشريح** : فَلَا يَتَنَفَّسْ : په دې جملو كښې مناسبت دادے چه په دے كښې داوبو څكلو اوبيا دهغې د بولو په لاره خارجولو طريقه ښائي نو ځكه ئې دواړه په يو حديث كښې جمع كړيدي.

په اوبو كښې د ساه نه اخستلو **حكمت** دادے :

١ – چه ددې نه په جگر كښې شرقه بيماري پيدا كيږي ـ ٢ – دويم : كيدے شي چه د پوزې نه ئې څه خارج شي نو اوبه به دريانده خرابې كړي، يا به بل دپاره خرابې شي ـ ٣ – يا په دې سره داوبو يخوالې ختميږي، ځكه دانسان ساه گرمه ده ـ

۲ - **فائده** : اوبه په يو ساه باندے څکل هم جائز دی، کله چه لږے څکی، او په درے هم جائز ده کله چه ډیرے څکی، اوپه دوه هم جائز ده۔ خو چه کله ډیرے څکی نو بیا به په یو ځل څکلو کښے ساه په مینځ کښے نه اخلی ۔ اوکه ساه په کښے نه اخلی نو هم جواز لری ۔ **دليل** : (ترمذی : ۲/۱۱، باب ما جاء فی الشرب بنفسين، مشكاة : ۲/۳۷۱، حديث ابی سعيد کښے ذکر دی)۔ او د حديث الباب د (فلا يتنفس فی الاناء) کښے صرف د تنفس نه نهی راغلے ده نو دا صورتونه په کښے جائز دی، کله چه تنفس نه وی، او د بل حديث د درے ځله سکلو نه معلومیږی۔

**فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ** : **سوال** : دے مسئلے ته څه ضرورت دے چه وائی ښے لاس ذکر له مه وړئ ؟ **جواب** : وجه داده چه د بعضے خلقو متیازے بغیر ددے نه نه کیږی چه ذکر له گوتے ور نه وړی، یا ئے د خصیتینو نه جدا کړے نه وی، نو نبی ﷺ ورته ادب بیانوی چه که دا کار کوے نو په ښی لاس ئے مه کوه بلکه گس لاس استعمال کړه ۔

**مسئله بديعه** : په عام اوقاتو کښے **ذکر په ښی لاس نیول** جواز لری اوکه نه ؟۔

په دے کښے دوه قوله دی : (۱) اول قول دادے چه مس الذکر صرف په وخت دبول او استنجاء کښے ناجائز دے، دليل دادے چه په دے روايت کښے د وخت د بول پورے خاص دے، اودغه شان بل روايت کښے دی (اذا بال احدکم فلا يمس ذکره بيمينه ولا يستنج بيمينه)، صحيح ابن ماجه رقم : ۲۵۰، وصحيح ابی داود : ۲۳، فتح الباری : ۱/۲۰٤۔

نو دا قسم رواياتو کښے نهی د مس الذکر نه مقيده ده په حالت د بول پورے، او په عام حالاتو کښے ذکر له ښے لاس وروړل جواز لری ۔ اوکوم رواياتو کښے چه مطلقًا نهی راغلے ده د مس الذکر نه، نو هغه به حمل وی په دے مقيد باندے، ځکه علت یو دے وهو الحرمه۔

۲ - **قول ثانی** : دادے چه مس الذکر باليمين مطلقًا ناجائز دے، که حالت د بول کښے وی اوکه بغیر د حالت د بول نه وی، وجه داده چه هرکله حالت د بول کښے د نیولو نه منع اوشوه، سره ددے نه چه ضرورت هم په دغه حالت کښے شته، نو په عام حالت کښے خو په طريقه اولیٰ سره به منع وی۔ ولے چه حاجت هم نشته ۔

د قول اول (جواز) دپاره بل دليل دا هم دے چه حديث د طلق بن علی کښے دی (انما هو

بضعة منك) نو دا دلالت کوی په جواز باندے په هر حال کښے، او حالت د بول په دے حدیث الباب سره خارج شو، نو باقی حالاتو کښے جواز پاتے شو۔

او په حالت د بولو کښے په ښی لاس نیولو نه په دے وجه منع راغلے ده چه هرکله استنجاء بالیمین منع شوه نو د مس الآله نه هم منع راغله ځکه چه دواړه د یو بل سره مجاور دی، نو یو مجاور لره حکم د بل ورکولے شی ۔ او د ښی لاس په متیازو باندے د پلیت کیدو احتمال هم په کښے شته نو ځکه منع اوشوه، وهو الراجح۔

---

۸ – وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم : ( مَنْ تَوَضَّأَ فَلْیَسْتَنْثِرْ ، وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْیُوْتِرْ ). مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ .

**ترجمه** : ابو هریرة رضی الله عنه نه روایت دے فرمائی : رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل : کوم سړے چه اودس کوی هغه له پکار دی چه هغه پوزه هم سونړ کړی، اوکوم سړے چه په کاڼړو سره استنجاء کوی، هغه له پکار دی چه طاق کاڼړی استعمال کړی ۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْیُوْتِرْ : د استجمار دوه معانی دی (۱) اوله معنی استنجاء بالجمره، یعنے کاڼړی باندے استنجاء کول (۲) دویمه معنیٰ : خوشبوئ استعمالول ۔ لیکن دلته اوله معنی مراد ده ۔

فَلْیُوْتِرْ : دا لفظ په یو کاڼړی سره استنجاء کولو ته هم شامل دے، لیکن دلته به دا مطلق حمل وی په مقید باندے کوم چه په نورو روایاتو سابقه ؤ کښے راغلے دے، چه درے کاڼړی استعمالول واجب دی۔ او د فلیوتر نه به مراد داوی چه (فلیوتر بثلاث، أوخمس، أوسبع أوغیر ذلك) نو مازاد علی الثلاثه د (ومن لا فلا حرج) دوجے نه جائز دی، او درے واجب او فرض دی، د هغه نورو روایاتو د وجے نه ۔ او پوزه سونړل هم واجب دی، لکه تفصیل روستو را روان دے، دا حدیث به په کښے پیش کیږی۔

۹ – وَعَنْ اَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ : کَانَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم یَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَاَحْمِلُ اَنَا وَغُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَعَنَزَةً یَسْتَنْجِیْ بِالْمَآءِ ). متفق علیه .

**ترجمه** : أنس ؓ نه روایت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ به چه کله بیت الخلاء ته ننوتلو نو ما اویو بل هلك به داویو یوه مشکیزه اویوه وړه نیزه واخسته۔ نبی کریم ﷺ به اویو سره استنجاء کوله ۔(بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : فَاَحْمِلُ اَنَا وَغُلَامٌ :انس ؓ فرمائی : ما اویوغلام به د نبی ﷺ داسے خدمت کولو چه اوبه وغیره به مو نبی ﷺ دپاره حاضرولے، ددے غلام نه مراد یا جابر بن عبد الله ، یا ابو هریره، یا ابن مسعودؓ دے، خو د غلام اطلاق پرے مجازا شویدے۔ والظاهر انه ابن مسعود۔ یا یو یهودی غلام وو، ځکه د نبی ﷺ ډیر خادمان وو، نودا دلیل دے چه خدمت د مشرانو مستحب عمل دے ۔

إِدَاوَةً : بکسر الهمزة، مشکیزے ته وائی، چه د څرمنے نه جوړه شوے وی او اوبه وغیره په کښے راوړے شی ۔

وَعَنَزَةً : بفتح العین والنون والزاء، هغه چوکے (لرګی) ته وائی چه په سر کښے ئے اوسپنه وی، دا به رسول الله ﷺ ددے دپاره ګرځوله چه ستره ترے جوړه کړی، ځکه نبی ﷺ به د اوداسه نه پس دوه رکعاته مونځ کولو، او ددے همسانه به ئے ستره جوړه کړه، مخے ته به ئے اودرله، ځکه رسول الله ﷺ بغیر دُسترے نه چرے مونځ نه دے کړے ۔ سیوا د طواف د حالت نه چه په هغے کښے یو ضعیف روایت دے لکه چه دابه په باب السترہ کښے راشی ان شاء الله، بغیر دسترے نه مونځ کول ګناه ده۔ نبی ﷺ فرمائی :

(لا تصل الا الی سترة .... الحدیث ) اخرجه ابن خزیمة : ۲/۹، وابن حبان : ٤/٤٥، والحاکم : ۱/۲٥۱، والبیهقی : ۲/۲٦۸، بسند صحیح۔

ددے مسئلے نه ډیر عوام څه چه طلباء او علماء هم ناخبره دی ۔ او په مسجد کښے په غیر د سُترے نه ولاړ وی مونځ کوی ۔

---

## الفصل الثانی : دویم فصل

۱۰ – عَنْ اَنَسٍ ؓ قَالَ :کَانَ النَّبِیُّ ﷺ اِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ نَزَعَ خَاتَمَهٗ . رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ وَالنَّسَائِیُّ وَالتِّرْمِذِیُّ وَقَالَ : هٰذَا حَدِیْثٌ حَسَنٌ صَحِیْحٌ غَرِیْبٌ، قَالَ

اَبُوْدَاوٗدَ : هٰذَا حَدِيْثٌ مُنْكَرٌ، وَفِيْ رِوَايَتِهٖ : وَضَعَ بَدَلَ : نَزَعَ .

**ترجمه** : أنسؓ فرمائی : نبی کریم ﷺ به چه کله بیت الخلاء ته ننوتلو نو خپله ګوتمه به ئې اوویستله ۔ (ابوداود، نسائی، ترمذی) او ترمذی وئیلی دی : دا حدیث حسن صحیح غریب دے، او أبوداود وائی : دا حدیث منکر دے، اود هغویٔ روایت د لفظ (نزع) په ځائې (وضع) دے ۔

**تشريح** : نَزَعَ خَاتَمَهٗ: یعنے کله چه به بیت الخلاء ته داخلیدو نو خاتم (ګوتمه) به ئې اوویسته، وجه داده چه په هغې باندے (مُحمد رسول الله) الفاظ لیکلی وو، الله بره، بیا رسول، بیا محمد ۔ په داسے شکل : الله رسول محمد

اودا خاتم ئې په هغه وخت کښے جوړ کړے وو کله چه ئې کفارو ته دخطونو لیږلو اراده اوکړه، چا ورته اووئیل چه یا رسول الله ! کفار خطونه ترهغه وخته پورے نه قبلوی ترڅو پورے چه په هغې باندے مهر نه وی لګیدلے ۔ نو نبی ﷺ خاتم جوړ کړو، نو صحابوؓ هم جوړ کړو دپاره د تابعدارئ د رسول الله ﷺ ۔ رسول الله ﷺ اول ګوتمه د سرو زرو جوړه کړے وه بیا ئې هغه لرے کړه اود سپینو زرو نه ئې جوړه کړه، صحابوؓ هم د سپینو زرو نه جوړه کړه ۔ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل : ګوتے خو مو جوړے کړے خو تاسو به پرے زما الفاظ نه لیکئ، ځکه بیا پته نه لګی ۔ نو کله چه به بیت الخلاء ته داخلیدو نو دا خاتم به ئې اوویستو، احترامًا لذکر الله ۔

نوددے نه دا **معلومه** شوه چه د چا په جیب کښے قرآن وی، یا ددین بل کتاب وی او بیت الخلاء ته داخلیږی نودابه دادب او احترام دوجے نه جیب نه لرے کوی ۔ لیکن دا اهل علمو داسے فتویٰ هم شته چه یو انسان دے دهغه سره په جیب کښے قرآن دے یا یو بل دینی کتاب دے، او بیت الخلاء ته داخلیدو اراده لری، نوکه قرآن اوکتاب بهر پریدی نو یره ده چه څوك به ئې ترے غلا کړی، اوکه ځان سره ئې دننه کوی نوبے ادبی ده ۔ نو ضرورت دے، د مال ضائع کول دین کښے نشته، نوده لره جائز دی چه قرآن یا کتاب جیب کښے یا څادر وغیره کښے پټ کړی، یا بیت الخلاء کښے دے په طاق یا دیوال کښے کیدی، نو د سخت ضرورت په وخت به داکار جائز وی ۔

قال شيخ الاسلام : الدراهم اذا كتب عليها لا اله الا الله و كانت في منديل او خريطة يجوز ان يدخل بها الخلاء ـ شيخ بسام فرمائی : وهذا مبني على قاعدة : ان الكراهة تزول مع الحاجة ـ يعنې کله چه ضرورت راشي نو کراهت زائله کيږي ـ (توضيح الأحكام : ۱۵۹/۱)ـ ددې نه **حرمت د تعويذ** جوړولو معلوم شو ځکه چه هغې کښې هم د الله د کتاب بې ادبي راځي ـ

**فائده** : خاتم : حلقة ذات فص من غيرها، فان لم يكن فهي فتخة.

يعنې : خاتم هغه ګوتمې، حلقې ته وائي چه غمې په کښې وي، که غمې په کښې نه وي هغې ته بيا فتخه وائي ـ (كذا في المصباح، توضيح الأحكام : ۲۵۸/۱)ـ

**قَالَ اَبُوْدَاوُدَ : هٰذَا حَدِيْثٌ مُنْكَرٌ :**

**درجة الحديث** : دې حديث کښې اختلاف دې چه صحيح دې که ضعيف، حافظ ابن حجرؒ په موافقت د ترمذيؒ سره په تلخيص الحبير ص (۱۰۸) کښې دې حديث ته حسن صحيح وئيلې دې، دغه شان ابن حبان، المنذريؒ، ابو الفتح القشيريؒ، موسى بن هارونؒ ورته صحيح وئيلي، او همدا خبره حقه ده (عون المعبود) او امام ابو داودؒ ورته منکر وئيلې دې، نوويؒ او نسائيؒ هم ورته غير محفوظ وئيلې دې ـ

امام ابوداودؒ دې حديث ته منکر وئيلي، ليکن دې ته شاذ وئيل پکار دي، نودا اصطلاح دامام ابوداودؒ چه شاذ ته منکر وائي هم شاذه اصطلاح ده، ځکه منکر خو ديته وائي چه (مارواه الضعيف مخالفا للثقة) اوشاذ ديته وائي (مارواه الثقة مخالفا للأوثق) اودلته همدا کار شويدې ځکه ديته شاذ وئيلې شي ـ ليکن مونږ دلته ګورو چه آيا ثقه راوی واقعي خلاف کړې دې اوکه نه ؟ اوس وجه د نکارت دامام ابوداودؒ په نيز داده چه مدار دسند دلته همام دې، چه ده نورو شاګردانو دابن جريج نه خلاف کړيدې، ځکه نور شاګردان داسې حديث نقل کوي :

ابن جريج عن زياد بن سعد عن الزهري، عن انس قال : ان النبي ﷺ اتخذ خاتما من ورق ثم القاه او همام همدې حديث کښې خطاء او په وهم کښې واقع شو اوداسې الفاظ ئې اووئيل : ( كان النبي ﷺ اذا دخل الخلاء نزع خاتمه ) ـ

نو په همام باندې قلب راغلو، او الفاظ ئې بدل کړل۔

لیکن ددې شذوذ نه **جواب** دادې چه همام درجال دصحیح البخاری نه دې، دهغه پښان کښې داڅنګه وئیلې شي چه ده نه بالکل هغه مخکښې الفاظ دحدیث هیر شو او نور (روستنی) الفاظ ئې دهغې په ځائې ذکر کړل، بیا به دا د بخاری درجالو نه نه وي چه دومره غلطی کوی ۔بلکه صحیح خبره داده چه دلته دوه حدیثونه دی، اودواړه جدا جدا سندونه دی، څکه اول حدیث د ابن جریج عن زیاد بن سعد عن الزهری دې، نو ابن جریج د زهری نه په واسطه د زیاد آوریدلې دې، اودویم حدیث ئې بلا واسطه آوریدلې دې، اودواړه حدیثونه ابن حبان صحیح کړی دي۔ اودا خبره موسیٰ بن هارونؒ هم کړیده چه دوه حدیثونه دی ۔

دارنګه ماردینیؒ په الجوهر النقی کښې وائی : الحدیثان مختلفان متنا وسندا ۔

۲ – دویمه وجه داده : چه همام صرف په دې روایت متفرد نه دې، بلکه دهمام متابعین موجود دی ۔ (۱) یو یحیی بن الضریس البجلی (۲) بل یحیی بن المتوکل البصری دې، چه ددواړو حدیثونو تخریج حاکم ، دارقطنی او بیهقی کړیدې، او ابن الضریس ثقه دې ۔ نومعلومه شوه چه د امام ترمذیؒ خبره صحیح ده چه (هذا حدیث حسن صحیح) او د امام ابوداودؒ خبره بې ځایه ده (هذا کله فی عون المعبود : ۱/۸، ۹، والتلخیص الحبیر ص (۱۰۸) والمرعاة : ۱/۰٤٥)۔

وقال البسام فی توضیح الأحکام : ۱/۲٥۸ : وسنده حسن۔

---

۱۱ – وَعَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا اَرَادَ الْبَرَازَ اِنْطَلَقَ حَتّٰى لَا يَرَاهُ اَحَدٌ . رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : او د جابرؓ نه روایت دې دا فرمائی : نبی ﷺ به چه کله د قضائې حاجت اراده اوکړه نو دومره لرې به ئې تشریف یوړلو چه چابه نه لیدلو ۔ (ابوداود)۔

**تشریح** : د نبی کریم ﷺ دا عادت مبارك وو چه کله به قضاء حاجت دپاره تلو نو لرې به تلو دې دپاره چه خلقو ته ښکاره نشي، دوجې د زیاتې حیاء د هغه نه، نو دا سنت طریقه ده چه انسان قضاء حاجت په پټ ځائې کښې اوکړي او د بې حیاء خلقو د عادت نه ځان

اوساتې چه د خلقو مخامخ قضائې حاجت کوي، خاصکر بعضې زنانه، ځکه دا کار حرام دې، نو دې حدیث کښې د قضائې حاجت دا ادب ذکر دې۔ او دا مناسبت دې د باب سره۔

اَلْبَرَازَ : دا لفظ په فتحه د باء دې او کسره په کښې قلیله ده، اصل کښې د زمکې کهلاؤ میدان ته وائي، بیا کنایه کرځیدلې ده د قضاء حاجت (غائط) کولو نه، ځکه خلق به د غټو بولو دپاره دغسې کهلاؤ صحراء، میدان ته تلل۔

**درجة الحديث** : قال الألباني في تعليق المشكاة : ۱/۱۱۲ : اسناده ضعيف لكن له شواهد بعضها صحيح، ولهذا أوردته في صحيح ابى داود رقم : ۲۔ فالحديث صحيح۔

---

۱۲ - وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى ﷺ قَالَ : كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ ذَاتَ يَوْمٍ فَاَرَادَ اَنْ يَبُوْلَ فَاَتٰى دَمِثًا فِيْ أَصْلِ جِدَارٍ، فَبَالَ. ثُمَّ قَالَ : ( إِذَا اَرَادَ اَحَدُكُمْ اَنْ يَبُوْلَ فَلْيَرْتَدْ لِبَوْلِهِ ).رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : أبو موسىٰ ؓ نه روایت دې دا فرمائي : یوه ورځ زه د نبي کریم ﷺ سره ملګرې ووم، نبي کریم ﷺ د تشو متیازو کولو اراده اوکړه، نو د یو دیوال جرړ کښې (یعنې هغې ته قریب) نرمې زمکې ته راغې او واړه بول ئې اوکړل، بیا (فارغیدو سره) ئې اوفرمائیل : هرکله چه تاسو کښې څوك د وړو بولو اراده اوکړي نو هغه له پکار دي چه وړو بولو دپاره نرمه زمکه تلاش کړي (چه څاڅکي ورته نه کیږي) ابوداود۔

**تشریح** : فَاَتٰى دَمِثًا : بفتح الدال وكسر الميم، دمث هغه نرم مکان او زمکې ته وائي چه متیازې جذب کوي او بول کونکي ته څاڅکي نه کوي ـ

فَلْيَرْتَدْ : دا د باب افتعال نه د امر غائب صيغه ده، مفعول ئې حذف دې : اى فليطلب مكانا لينا سهلا، ارتیاد په معنىٰ دطلب کولو سره راځي یعنې طلب دې کړي ځان لره داسې ځائې چه نرم وي، دې دپاره چه څاڅکي ورته اونشي ـ

**لطیفه** : خلق په مثال کښې وائي چه کم عقلان په درې قسمه دي (۱) یو دلړ ساعت کم عقل چه متیازې اوچت ځائې ته کوي، چه دا ترې لاندې وي،متیازې پرې راروانې وي، نودا ترې ځان جُدا جدا کوي، کله ئې لمن ګنده شي اوکله خپې (۲) دکال کم عقل هغه دې

چه داسې ځپلئ، چپل، بوټان واخلي چه تنګ وي، اوهر وخت دهغې نه پريشانه وي، نه ئې ګذارولې شي اونه ئې استعمالولې شي (٣) دعمرکم عقل هغه دې چه ناکاره ښځه اوکړي چه هميشه په جګړو اخته شي، نودې درې وارو کارونو کښې احتياط پکار دے۔ نو نبي ﷺ سيد العقلاء مونږ دکم عقلو دکارونو نه منع کوي ۔ اود عقلمندو خويونه را ازده کوي ۔

بيا دلته دا **سوال** پيدا کيږي چه نبي ﷺ دې پردي ديوال بيخ ته متيازې ولې اوکړې ځکه چه متيازو کښې خودا اثر دے چه ديوالونه نړوي ؟۔

**جواب** : ١ – دلته خو يا اذن دلالةً موجود دے او هغه دا چه نبي عليه السلام سيد القوم دے، دده په بول باندې مالك نه خفه کيږي، بلکه که خبر شي نو لابه سعادت اوګڼي۔ ٢ – يا داهسې شاړ کنډر دے، دچا په ملکيت کښې نه دے، او په بول کولو سره ورته څه ضرر نه رسي۔

**درجة الحديث** : رواه احمد (٣٩٦/٤) وابوداود (٣) باسناد فيه رجل مجهول، وضعفه النووي أيضا ۔ دا حديث اګرچه ضعيف دے ليکن معنیٰ ئې د نورو صحيح احاديثو نه ثابته ده چه تنزه من البول باندې أمر راغلے دے۔

---

١٣ – وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ :كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا أَرَادَ الْحَاجَةَ لَمْ يَرْفَعْ ثَوْبَهُ حَتّٰى يَدْنُوَ مِنَ الْاَرْضِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَاَبُوْدَاوٗدَ وَالدَّارِمِيُّ .

**ترجمه** : جناب أنس رضي الله عنه فرمائي : نبي کريم ﷺ به چه کله د قضائے حاجت کولو اراده اوکړه نو هغه وخته پورې به ئې خپله جامه نه اوچتوله څو پورې به چه زمکې ته نه وو نزدې شوے ۔ (ترمذي، أبوداود، دارمي)۔

**تشريح** : دې حديث کښې بل أدب دقضاء حاجت دا ذکر دے چه کله انسان قضاء حاجت کوي، نو د مخکښې نه به لنګ، پرتوګ نه کوزوي، بلکه کله چه قضاء حاجت ته کيني أوزمکې ته نزدې شي نو بيا به دضرورت مطابق عورت ښکاره کيږي۔

او ددې نه دا قاعده مستنبطه ده چه ما ابيح للضرورة يتقدر بقدر الضرورة ۔ يعنې کوم شے

چه د ضرورت په وجه جائز شي نو هغه به د ضرورت په اندازه مقرر وي، زيادت به په کښې نشي کولے۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود عن انس معلقا وضعفه، ورواه عن ابن عمر موصولا وفيه رجل لم يسم، لكن سماه البيهقي : القاسم بن محمد، وهو ثقة حجة، أشهر من ان يذكر، فالسند صحيح ولله الحمد، تعليق المشكاة : ١/١١٢، وهو في الصحيحة رقم : ١٠٧١)۔

---

**١٤ – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِنَّمَا اَنَا لَكُمْ مِثْلُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهٖ، أُعَلِّمُكُمْ، اِذَا اَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوْهَا، وَأَمَرَ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ وَنَهٰى عَنِ الرَّوْثِ وَالرِّمَّةِ، وَنَهٰى اَنْ يَسْتَطِيْبَ الرَّجُلُ بِيَمِيْنِهٖ ). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِيُّ .**

**ترجمه** : جناب أبو هريرةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي : زه تاسو دپاره (په أدب درکولو کښې) داسې يم لکه څنګه چه پلار دخپل بچي دپاره وي، تاسو له تعليم درکوم (هغه دا چه) کله چه تاسو اودس ماتی دپاره راشئ نو مه قبلې طرفته مخ کوئ او مه ورته شا ګرځوئ۔ او رسول الله ﷺ په درې کاڼو باندې حکم فرمائيلي دې، او منع ئې کړيده د ( استنجاء کولو ته په) خوشائي او هډوکي سره، اودې نه ئې هم منع کړې ده چه يو سړې په خپل ښي لاس سره اِستنجاء اوکړي ۔ (ابن ماجه، دارمي)۔

**تشريح** : اِنَّمَا اَنَا لَكُمْ مِثْلُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهٖ : يعنې زه تاسو باندې داسې شفقت کوم لکه چه پلار په بچو باندې څنګه شفقت کوي۔ نو بچې چه څه ته محتاج وي هغه ورته پلار ښائي، اود هغې په ذکر کولو کښې حياء نه کوي۔ نو زه هم تاسو ته د آداب الخلاء په درښولو کښې حياء او شرم نه کووم۔ په دې کښې تمهيد دې روستو آدابو ذکر کولو ته ځکه چه انسان ډير کرت ددې په ذکر کولو کښې شرم محسوسوي، خاصکر کله چه مشران غټان خلق موجود وي۔

**٢ - فائده** : پلرونو باندې واجب دي چه بچو ته به تربيت ورکوي، او هغوی ته به

تعلیم د دینی کارونو ورکوی. او په بچو باندے دهغے منل واجب دی. دا د اشاره النص نه معلومیږی. چه نبی علیه السلام ځان د والد سره مشابه کړو.

وَأَمَرَ بِثَلاثَةِ أَحْجَارٍ : دا صریح دلیل دے په دے چه د استنجاء کولو په وخت درے کاڼړی استعمالول واجب دی، ددے نه په کمو باندے استنجاء نه کیږی. درے ځکه مقرر شو چه په دے سره انقاء المحل (پاکوالے) هم راځی او ایتار (تاك والے) هم. اودا دواړه شریعت کښے مطلوب دی.

وَنَهٰى عَنِ الرَّوْثِ وَالرِّمَّةِ : یعنے دخوشائی اوزوړ هډوکی داستعمالولو نه ئے منع فرمائیلے ده۔ (روث) : خوشائی ته وائی، دلته ترے عامه ګندګی دحیواناتو اوانسانانو مراد ده. یا خاص خوشائی مراد دے، اود انسانانو وغیره رجیع ئے ذکر نه کړو ځکه چه هرکله په خوشائی باندے استنجاء نه کیږی چه دے کښے لا دومره نجاست نشته نود انسان وغیره ګندګی په طریق اولیٰ سره په استنجاء کښے استعمالول ممنوع دی.

الرِّمَّةِ : بکسر الراء وتشدید المیم، زاړه هډوکی ته وائی، دلته ترے مراد مطلق هډوکی دے، اویازاړه مراد دی او دائے ځکه ذکر کړل چه دے نه لا فائده هم نشی اخستے نو کوم نه چه فائده اخستے شی هغه به په طریقه اولیٰ ممنوع وی.

**فائده** : نهی صرف ددے دوه ځیزونو داستعمال نه راغله، نو دا تخصیص دلالت کوی چه په هر هغه ځیز به استنجاء کول جائز وی چه د کاڼړو په ځائے قائم مقام وی په پاکوالی کښے، او محترم نه وی، لکه لوټه، لرګے، خاوره، شړه، ټوټه، ټکرے۔ کذا قال البغویؒ فی شرح السنة (۲۷٦/۱). وقد تقدم قریبا۔

**فائده** : فقه کښے وائی چه شیشه، اوسپنه، اومحترمه ټوټه باندے استنجاء جائز نه ده، او حال دا چه دا خبرے حدیث کښے نشته، نو بعضے بے عقله وائی : حدیث ناقص دے او فقه کامله ده۔ نو جواب دادے چه دلته دوه دلیلونه واوره چه هغه جامع او پوره دی :

**اول** : النهی عن الاسراف۔ **دویم** : لا ضرر ولا ضرار فی الاسلام۔الحدیث وقد تقدم تخریجه۔

اسراف منع دے، او ځان ته یا بل چاته ضرر ورکول منع دی ۔ نو په دے کښے هر شے

داخل شو، کوم چه فقه کښې ليکلے دے۔ څکه په دغه څيزونو کښې يا بل ته ضرر دے يا ځان ته۔ نو ددے استعمال هم منع شو۔

**درجة الحديث** : رواه ابن ماجة (۳۱۳) والدارمي (۱/۱۷۲، ۱۷۳) وكذا رواه ابوداود (۸) والنسائي (۱/۳۸) في أوائل الطهارة والشافعي في الام (۱/۲۲) وابو عوانة في صحيحه وهو حديث صحيح. وصححه الألباني في صحيح ابي داود رقم : ٦، وقال في صحيح النسائي رقم : ۳۹ : حسن صحيح۔

---

**۱۵ - وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَتْ يَدُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ الْيُمْنٰى لِطُهُوْرِهٖ وَطَعَامِهٖ، وَكَانَتْ يَدُهُ الْيُسْرٰى لِخَلَائِهٖ وَمَا كَانَ مِنْ أَذًى . رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ .**

**ترجمه** : بی بی عائشهؓ نه روايت دے دا فرمائي : د رسول الله ﷺ ښے لاس د پاکئ او خوراك (څکاك) دپاره وو، او ګس لاس ئے د قضائے حاجت او هر کرکجن څيز دپاره وو. (أبوداود) ۔

**تشريح : كَانَتْ يَدُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ:**

**فائده جليله** : ددے حديث نه يوه لويه قاعده معلومه شوه او هغه داچه هر هغه کار چه د نيکئ دقبيلے نه وي او په يو لاس يا يوه خپه باندے کيږي نو په ښي لاس اوښئ خپه به کولے شي، لکه جامه اغوستل، مسجد ته داخليدل (كما في حديث المستدرك عن أنس) ، چپل اچول چاله څه ورکول، اخستل كما في حديث مسلم) ، خوراك څكاك (كما في حديث البخاري)۔

(رياض الصالحين باب المصافحة، عون المعبود : ٤/١١٨، تحفة الأحوذي : ١/٢١٦، فتح الباري : ١/، شرح مسلم : ١/١٣٢، رد المحتار : ١/٢٨) .

امام نووي فرمائي : هذه قاعدة مستمرة في الشرع وهي ان ما كان من باب التكريم والتشريف كلبس الثوب والسراويل والخف ودخول المسجد والسواك والاكتحال وتقليم الاظفار وقص الشارب وترجيل الشعر ونتف الابط وحلق الرأس والسلام من الصلاة وغسل اعضاء الطهارة والخروج من الخلاء والاكل والشرب والمصافحة واستلام الحجر الاسود

وغير ذلك مما هو في معناه يستحب التيامن فيه. واما ما كان بضده كدخول الخلاء والخروج من المسجد والامتخاط والاستنجاء وخلع الثوب والسراويل والخف وما اشبه ذلك فيستحب التياسر فيه وذلك كله لكرامة اليمين وشرفها. والله اعلم انتهى.

**مصافحه** به هم صرف په ښي لاس سره وي، كما صرح به الأئمة الأربعة. او دا حديث پرے دليل دے اودا قاعده ورله دليل دے نو **مصافحه** په دواړو لاسونو سره كول خلاف سنت ده ---- اوددے په خلاف دمسجد نه وتلو كښے به ګسه خپه مخكښے كوی (كما في الحديث) او استنجاء كولو. دغه شان چپل ويستلو كښے ګسه خپه مخكښے كوی، لكه حديث كښے دی : كله چه تاسو چپل څپلۍ اغوندئ نو په ښۍ خپه باندے شروع كوئ (فابدؤا بميانكم، لتكن اليمنى اولهما تنعل وآخرهما تنزع). اود بيت الخلاء نه وتلو او پوزے سونړلو او ترخ نه ويختہ ويستلو باره كښے اګرچه نص صريح نشته ليكن دغه مذكوره قاعده په كښے جاری كيږی۔

لود **مسواك** په وهلو كښے دوه قوله دی۔

۱ - شيخ الاسلام ابن تيميهؒ فرمائی : دا به په ګس لاس سره وهی، ځكه چه دا د قبيلے د ازالة المستقذرات نه دے، او تول ګنده ګارونو ته به ګس لاس مخكښے كوی۔

۲ - او عام علماؤ رائے داده چه ښی لاس باندے مسواك كول پكار دی. اود علامه ابن تيميهؒ قول ضعيف دے وجه داده چه حديث د ابوداود (۲/۲۱۷، رقم (۴۱۴۰) كتاب اللباس باب الانتعال كښے دی (كان يحب التيامن في كل شئ في تنعله وترجله وطهوره - وسواكه)۔

دے قاعده باندے عمل كول ځكه ضروری دی چه په دے سره دكفارو مخالفت راځی اودا د ايمان يو ركن دے---- مرقات (۱/۳۵۵) كښے ملا علی قاریؒ يوه ګيله كړيده چه په دے حديث باندے ډير طالبان د علم عمل نه كوی، فرمائی : (وكثيرا ما رأينا طلبة العلم ياخذون الكتاب باليسار والنعال باليمين امام لجهلهم واما لغفلتهم).

چه څپلۍ ئے په ښی لاس كښے نيولی وی او كتاب به ئے په ګس لاس كښے دا خو يا جاهلان دی يا غافلان۔ چه دے احاديثو ته او اسلامی آدابو ته نظر اوكړے شی او بيا زمونږ

معاشرے ته، نو انسان به افسوس اوکړي چه مسلمانان د غير دين خلقو په قدمونو باندے چلن کوي، په ګس لاس به خوراك څکاك کوي، د کفارو په طريقه به په ګس طرف روان وي، روډونه، سرکونه په ګس طرف، سرونه به ګس اړخ ته اړوي، ورکړه راکړه په ګس لاس، سر خرئيل وروکے کولو کښے په ګس اړخ شروع. الغرض اسلامی آداب پائمال شوی دی ځکه داسے حيوانی تنګ ژوند کښے مبتلا دی، هر طرفته پريشانی ده. فالی الله المشتکیٰ.

**درجة الحديث** : رواه ابوداود باسناد فيه انقطاع بين ابراهيم النخعي وعائشة. ليکن داسے حديث متفق عليه راروان دے. في آخر الفصل الأول من سنن الوضوء.

---

۱۶ – وَعَنْهَا قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اِذَا ذَهَبَ أَحَدُكُمْ اِلَى الْغَائِطِ فَلْيَذْهَبْ مَعَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ يَسْتَطِيْبُ بِهِنَّ فَاِنَّهَا تُجْزِئُ عَنْهُ) . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** : بی بی عائشهؓ نه روايت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلے دے : کله چه په تاسو کښے څوك قضائے حاجت دپاره ځي نو ځان سره دے درے کانړی يوسی چه استنجاء پرے اوکړي، ځکه چه دا دده دپاره کافی کيږی (يعنی د اوبو استعمالولو ضرورت نه پاتے کيږی) . (أبوداود، نسائی، دارمی).

**تشريح** : دا حديث هم دليل چه درے کانړی استعمالول ضروری دی او کافی دی د اوبو د استعمالولو نه، او د دريو نه کم استعمالول کافی ندی، ځکه چه اِجزاء (کافی کيدل) غالبا په وجوب کښے استعماليږی.

بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ : کښے باء د تعديت ده، يعنے ځان سره دِے يوسی.

يَسْتَطِيْبُ : دا مرفوع دے کلام مستانف دے، او علت د امر دے، يعنے ددے کانړو ځان سره وړلو غرض څه دے، ځان پرے صفا کول. يا حال دے يعنے په داسے حال کښے چه ځان به پرے پاك کړي. استطابه، استجمار، استنجاء (او استنقاض) په يوه معنی استعماليږی.

تُجْزِئُ : د باب افعال اِجزاء نه دے، په معنیٰ د تَکْفِيْ او تُغْنِيْ سره دے، (عنه) کښے

ضميريا خو مستنجي (استنجاء كونكى) ته راجع دے، يا هغه اوبو ته راجع دے چه د مقام نه معلوميږي، يعنے كانړى استعمالول د اوبو په ځائے كافي دي، اوكم ددريےؤ نه نه دي كافي. دا حديث دليل دے چه په استنجاء كښے اوبه استعمالول ضروري ندي بلكه كانړى هم ددے په ځائے كار وركوي.

**درجة الحديث** : رواه أحمد (۱۰۸/٦) (۱۱۳۳) وأبوداود (٤۰) والنسائي (٤۱/۱) والدارقطني (٥٤/۱) رقم (٤) وقال : اسناده صحيح. وقال الشيخ الألباني في تعليق المشكاة (۱۱۳/۱) وفي سنده : جهالة، وحسنه الدارقطني، وله شاهد من حديث أبي أيوب الأنصاري ولذلك أوردته في صحيح أبي داود رقم (۳۰) وقال المحقق رمضان بن أحمد في تعليق المشكاة (۱۷۲/۱) واسناده حسن. فالحديث صحيح. والحمد لله.

---

۱۷ – وَعَنْ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَا تَسْتَنْجُوْا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ، فَإِنَّهَا زَادُ اِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ : زَادُ اِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ.

**ترجمه** : جناب ابن مسعودؓ فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : په خاشنو او هډوكو باندے استنجاء مه كوئ ځكه دا ستاسو د پيريانو ورونو خوراك دے - (ترمذي، نسائي) البته نسائي (ستاسو د پيريانو ورونو خوراك دے) نه دے ذكر كړے.

**تشريح : لَا تَسْتَنْجُوْا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ :**

**الفوائد الحديثية** : ۱ – استنجاء په روث (خوشائي) خوناجائز ده، او پخپله پاك دے، كه دجامے څپلۍ وغيره نه اولگي. ځكه مقصود په استنجاء كښے صفائي كول دي او هغه په خوشائي سره پوره طور سره نه حاصليږي ځكه دا تلويث پيدا كوي.

۲ – جناتو ته اخوان (ورونه) وئيلے شوي دي، دا اسلامي اخوّت دے، هغوي كښے هم مسلمانان شته دے.

۳ – فانها زاد : كښے ضمير راجع دے عظام ته، او روث د هغے تابع گرځول شويدے، لكه د ﴿واذا رأوا تجارة او لهوا انفضوا اليها﴾ پشان.

ابن حجر مکی دلته دانکته بیان کړیده چه ضمیر صرف عظام ته راجع دے، اود روث نه ئے سکوت کړیدے ځکه چه (روث) د جناتو خوراك نه دے بلکه دا دجناتو دحیواناتو خوراك دے او (عظام) د دوئ خپله خوراك دے۔ لکه چه دا په بل حدیث کښے راغلی دی چه : جناتو د نبی ﷺ نه زاد (خوراك) طلب کړو، نبی ﷺ ورته اوفرمائیل : (لکم کل عظم ذکر اسم الله علیه یقع فی أیدیکم أوفر ما یکون لحما، و کل بعرة علف لدوابکم، فقال رسول الله ﷺ : فلا تستنجوا بهما فانهما طعام الجن). (رواه مسلم واحمد)۔

یعنی هر هډوکے چه ستاسو لاسونو ته اورسی او بسم الله پرے وئیلے شوی وی نو دا به ستاسو دپاره د مخکښے پشان د غوښے نه ډك شي او هره پچه ستاسو د حیواناتو دپاره گیاه ده۔ نو نبی علیه السلام ځکه پدے سره د استنجاء نه منع اوکړه چه د پیرانو او د هغوی د حیواناتو خوراك خراب او نجس نشی۔

٤ – کوم شے چه حیواناتو له نافع وی دهغے استعمالول په استنجاء کښے جائز نه دی، ځکه چه د پیریانو دحیواناتو دپاره چه فائده مند وی هغه استعمالول حرام نود انسانانو دحیواناتو دپاره چه فائده مند وی هغه استعمالول به په طریقه اولیٰ سره په استنجاء کښے منع وی۔

٥ – تخصیص دروث او عظام او بعره وغیره چه نورو احادیثو کښے راغلے دی دلیل دے چه ما سوی ددے نه په استنجاء کښے استعمالول جواز لری، لکه توته، تکرے، ټائلیټ پیپر، خاورے، ایره وغیره۔ صرف ضروری او اسراف والا شیانو باندے استنجاء ناجائز ده۔

**درجة الحديث** : أخرجه الترمذی (١٨) والنسائی (١ /٣٧) وسنده صحیح، وان اعله الترمذی بالارسال فقد وصله ثقتان، اخرجه من طریق احدهما الترمذی بتحقیق احمد شاکر (١ /٢٩) ومسلم (٢ /٣٦) من طریق آخر وللحدیث طریق آخر بمعناه وسنده صحیح وسیأتی . تعلیق المشکاة للشیخ الألبانی (١ /١١٣)، والمحقق رمضان۔

---

١٨ – وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ ﷺ قَالَ : قَالَ لِیْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : یَا رُوَیْفِعُ ! لَعَلَّ الْحَیَاةَ سَتَطُوْلُ بِکَ بَعْدِیْ فَأَخْبِرِ النَّاسَ أَنَّ مَنْ عَقَدَ لِحْیَتَهُ اَوْتَقَلَّدَ وَتَرًا اَوِ

اَسْتَنْجَى بِرَجِيْعِ دَابَةٍ اَوْ عَظْمٍ فَإِنَّ مُحَمَّدًا بَرِيْءٌ مِنْهُ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ .

**ترجمه** : جناب رويفع بن ثابت نه روايت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل : اے رويفعه ! کيدے شی چه مانه پس ستا عمر اوګد شی، نو خلقو ته دا خبر ورکړه چه چا خپله ګیره غوټه کړه، یائے غاړه کښے د ژئ هار (ليندے تار) واچولو، یائے د څناورو خاشنو (يا سوټو) او هډوکی سره استنجاء اوکړه نو محمد (ﷺ) دهغه نه بيزاره دے - (أبوداود).

## تعارف : د رويفع بن ثابت رضي الله عنه :

انصاری مدنی صحابی دے، په مصر کښے اوسيدو، معاويه رضی الله عنه په طرابلس علاقه باندے ګورنر مقرر کړے وو، په سنه (٤٦) هـ کښے نو افريقيه سره ئے جنګ اوکړو، دهغے نه پس د افريقے په برقه علاقه باندے أمير وو، تردے چه په دغه علاقه کښے په سنه (٥٦) کښے وفات شو، او هلته دفن شو . ټول (٨) احاديث ترے نقل دی- رضی الله تعالی عنه -

**تشريح** : أَنَّ مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ : ١ - د عربو عادت وو چه کله به جنګ ته تلل نو ګيرو لره به ئے غوټے ورکړے د تکبر په وجه .

٢ - د چا به چه څو مره ښځے وے هغومره غوټے به ئے ورکولے، نو دے کښے به د ښځو عدد ته اشاره وه . ففيه رد الرسم والرواج .

٣ - دارنګه بعض خلق د ګيرے د پټولو او کمے ښکاره کولو د پاره غوټے ورکوی يا د ښځو سره د مشابهت دوجے نه . دا ټول کارونه حرام دی .

٤ - بعضے خلق ګيرے دے د پاره تاووی چه کوړئ شی او ښائسته ښکاره شی- نو دے نه منع ځکه اوشوه چه سنت ګيره ګومنزول دی نه تاو ول نو دا د سنت مخالفت دے-

٥ - بعض وائی دا د عجمو عادت دے چه ګيرے تاووی او دا تغير خلق الله کښے داخل دے ځکه منع اوشوه- دا ټول مصداق صحيح کيدے شی-

اَوْتَقَلَّدَ وَتَرًا : چا چه د ليندے ژئ واچوله . وتر د ليندے مزی (ربړ) ته وائی . بعضے خلقو به خپل ځان او خپل اولاد او اسونو ته دم شوی تارونه تړل (يعنی بندونه) دے د پاره

چه مصيبتونو او سترګو لګيدو نه ځان بچ کړي، نو داکار کول حرام دي (مرقات)۔

۲ – يا هغه تار مراد دے چه خلقو به اسونو ته غاړو کښے دے دپاره اچولو چه ګونګرې وغيره ورته زوړند کړي، نو دا هم منع دي، په دے وجه چه د اسونه د منډے په وقت کښے ساه خفه کيږي نو نهي دپاره د دفع دضرر دوجے اوشوه، يا ذ دفع درسم او رواج۔

ددے حديث نه معلومه شوه چه د کافرانو داسے واړه واړه رسمونه اختيارول چه په ګناه کبيره کښے هم شامل نه وي، د رسول الله ﷺ د بيزارئ او نارضګئ سبب دے، نو د کافرانو، شيعه ګانو او هندوانو هغه غټ غټ رسمونه او رواجونه چه د بد قسمتئ نه مسلمانان نن صبا په هغے کښے مبتلا دي چه هغه په ګناه کبيره اوشرکونو کښے شمارلے شي، په دے سره به د نبي ﷺ څومره زيات نفرت کيږي، او ددے رسمونو والو به د الله په دربار کښے څه انجام وي ! والله المستعان۔

**درجة الحديث** : أخرجه أبوداود (٣٦) وفي سنده جهالة، لكن رواه من حديث عبد الله بن عمرو به، وسنده صحيح. وكذا رواه النسائي (٢/٢٧٧) واسناده صحيح، والأولىٰ للمصنف أن يعزوه إليه، قاله الألباني في التعليق والشيخ رمضان.

---

۱۹ – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوْتِرْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوْتِرْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ، وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، وَمَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ فَلْيَلْفِظْ وَمَالَاكَ بِلِسَانِهٖ فَلْيَبْتَلِعْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، وَمَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ، وَمَنْ لَمْ يَجِدْ اِلَّا اَنْ يَجْمَعَ كَثِيْبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ، فَاِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِيْ آدَمَ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِيُّ .

**ترجمه** : جناب أبو هريرةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوك چه رانجه پورے كوي هغه له پكار دي چه طاق ئے پورے كړي، چاچه دا كار اوكړو نو بيشكه چه ښه ئے اوكړل، او چاچه اونه كړو نو څه حرج نشته۔ او څوك چه په كاڼو سره استنجاء كوي

هغه له پکار دی چه طاق (پنځه یا اووه وغیره) کانړی استعمال کړی، څوك چه دا کار اوکړی هغه ښه اوکړل، اوچا چه اونه کړو نو په دے کښے هم څه باك نشته ـ اوڅوك چه څه اوخوری نوکوم څیز چه د غاښونو ترمینځه راوځی نو پکار دی چه هغه اوغورځوی، او څه چه ژبے سره راوکاږی نو هغه دے تیر کړی، څوك چه دا کار اوکړی نو ښه ئے اوکړل او څوك ئے چه اونه کړی نو په دے کښے څه باك نشته۔ او څوك چه قضائے حاجت دپاره لاړ شی نو هغه له پکار دی چه ځان پټ کړی، نو چه څه ورته ملاؤ نشو مګر دا چه د شګو یوه ډیره کئ راجمع کړی نو د هغے شاته دے کینی، ځکه چه شیطانّ د انسانانو کناتو سره لوبے کوی۔ څوك چه دا کار اوکړی نو ښه ئے اوکړل او که چا اونه کړو نو په دے کښے هم څه حرج نشته ـ (ابوداود، ابن ماجه، دارمی)۔

**تشریح** : مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوْتِرْ : حدیث دشمائل الترمذی کښے داکتحال کیفیت ذکر دے۔ ابن عباسؓ نه مرفوعا یا موقوفا نقل دی چه د نبی ﷺ دپاره یوه نجرومه وه چه دهغے نه به ئے هره شپه درے سلائی په یوه سترګه اودرے په بله سترګه کښے اچول . کذا یأتی فی المشکاه (٣٨٣/٢).

او په روایت دانسؓ کښے مرفوعا داسے دی (کان یکتحل فی عینه الیمنی ثلاث مرات، والیسری مرتین) نو داهم وترشو۔ هذا حدیث صحیح لشواهده، رواه الطبرانی فی الکبیر (١٩٩/٣، ومجمع الزوائد : ٩٦/٥، وفی الصحیحه : ٢/ ٢١٤، و كذا فی الدین الخالص :١/ ٥٨٨)۔ بیا دا **طریقه** په کښے **نشته** چه اول به ښئ سترګه کښے یوځل واچوی او بیا به دوه ځله ګسه سترګه کښے، داد ځانه صوفیانو جوړه کړے طریقه ده، دغه شان نورے طریقے هم۔ دارنګه دجُمعے شپه خاص کول د رنجو پورے کولو دپاره، دا هم بدعت دے، بلکه هره شپه او ورځ کښے استعمالول جواز لری . دارنګه د شیعه ګانو په خلاف د عاشوراء ورځ د رنجو پورے کولو دپاره خاص کول دا هم بدعت دے۔

وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوْتِرْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ : ددے جواب مخکښے تیر شویدے (١) چه دلته دایتار داستحباب نه مراد په مافوق الثلاثه کښے دایتار استحباب دے، یعنے درے کانړی استعمالول واجب او ددرے نه زیاتو کښے ایتار واجب نه دے . بلکه ایتار مستحب او

غیر ایثار جائز. (٢) یا ددرے کانړو والا حدیثونه صحیح دی اودا حدیث متکلم فیه دے.

**فَمَا تَخَلَّلَ فَلْيَلْفِظْ** : یعنے کوم خوراك چه دده په غاښونو کښې نختے وی او په لرګی یا په ګوته ئے راوباسی نودا دے ګوذار کړی ځکه انسان په دے بدے ښکاری، یا داچه په غاښونو کښے چه کوم خوراك نختے وی نو هغه متغیر شوے وی نو دهغے خوړل مناسب نه دی.

**وَمَالَاكَ** : یعنے کوم خوراك چه په ژبه تاوولو سره دغاښ نه راؤباسی نو هغه دے تیر کړی ځکه هغه بهر دخولے نه نه دے راوتلے.

**فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِيْ آدَمَ** : ددے دوه معانی دی : (١) یو داچه مقاعد جمع دمقعده ده، ځائے دناستے ته وائی، اسم ظرف دے، مراد تردے تشئ ده، یعنے په داسے ځایونو کښے شیطان انسان ته حاضریږی. او ضرر اوفساد کښے ئے اخته کوی. ګندګی، بے ستری، غلط سوچونو او فکرونو کښے ئے مبتلا کوی، او عورت ته ئے ګوری.

٢ - یا مقعده په معنی داسفل البدن (کناتی) سره دے، نو شیطان دانسان په کناتو لوبے کوی، خلق ورته متوجه کوی، لکه دا په مشاهده کښے راځی چه څوك په متیازو ناست وی نو دخلقو نظر پرے زر لګی.

**وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ** : **استتار** په وخت دقضاء حاجت کښے د واجباتو نه دے، نو دلته څنګه وائی چه چا دا کار اونه کړو نو هغه باندے حرج نشته؟.

**جواب** : دا حدیث (١) محمول دے په هغه صورت باندے چه یو انسان په خیټه درد وی نو هغه قضاء حاجت ته لاړ شی خو دډیرکۍ جوړولو فرصت ورته ملاؤ نشی اوهمداسے په میدان کښے کینی، نو ده باندے څه ګناه نشته، ځکه چه دا غریب مجبور دے، خلقو دپاره ده ته کتل حرام دی.

٢ - یا د (من لا فلا حرج) نه مراد هغه څوك دے چه صحراء کښے قضاء حاجت کوی اوهلته خلق نه وی. فتدبر!

**درجة الحديث** : سنده ضعيف، فيه مجهولان : حصين الحبرانی وشيخه أبو سعيد الحبرانی الحمصی التابعی (تعليق المشكاة ١/١١٤) وأخرجه الدارمی (١/١٦٩) وابن ماجة

(۳۳۷) واسناده فيه مجهول.

و رواه ابوداود والحاكم وابن حبان، وفيه حصين الحبراني عن أبى سعيد الحبراني الحمصي، و كلاهما مجهول، قاله الحافظ. قال الذهبي : الأول لا يعرف، وقال ابوزرعة : ابو سعيد لا يعرف، وذكرهما ابن حبان في الثقات. وقال ابوزرعة : حصين الحبراني شيخ . وقال الحافظ في الفتح في حديث أبى هريرة هذا : حسن الاسناد.

ليکن د ابن حجرؒ خبره صحيح نه ده. په خبره کښې ئې تعارض دے.

---

۲۰ – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَا يَبُوْلَنَّ أَحَدُكُمْ فِيْ مُسْتَحَمِّهٖ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ اَوْ يَتَوَضَّأُ فِيْهِ، فَإِنَّ عَامَةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا : ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ أَوْ يَتَوَضَّأُ فِيْهِ .

**ترجمه:** عبد الله بن مغفلؓ نه روايت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلے دے : په تاسو کښې دے څوك په خپله غسل خانه کښې واړه بول نه کوی، چه بيا په کښې غسل يا اودس هم کوی، ولے چه عامے وسوسے دهمدے نه پيدا کيږی ۔ (ابوداود، ترمذی، نسائی)۔ ترمذی اونسائی (بيا په کښې غسل يا اودس کوی) الفاظ نه دی ذکر کړی۔

## تعارف د عبد الله بن مغفل ﷺ :

کنيه ئې ابوعبد الرحمن المزنی ده، صحابی دے او بيعه الرضوان کښې شريك شويدے، د مدينے اوسيدونکے دے، بيا مصر ته نقل شو . حسن بصریؒ فرمائی : داد هغه لس کسانو نه وو چه عمر رضی الله عنه مونږ ته د دين د ازده کولو دپاره راليږلی وو، اودا په خپل ملګرو کښې نقيب او مشر وو . دا اولنے هغه شخص دے چه تستر علاقے ته کله چه هغه فتحه شوه د تولو نه اول داخل شو ۔ په سنه (۵۷) هـ کښې وفات شويدے . تول (۴۳) احاديث ترے منقول دی . د بدعاتو سره ئې ډيره دشمنی لرله.

فِيْ مُسْتَحَمِّهٖ : مستحم غسل خانے ته وائی . اصل کښې هغه ځائی ته وائی چه هلته خلق غسل کوی په ګرمو اوبو سره . دحميم معنی په کښې پرته ده، غسل خانه کښې

متيازې كول صحيح نه دي، مګر كه د متيازو ځائې جدا وي اود غسل ځائې جدا وي، نو خير دے باك نه لري۔

امام ابن ماجه د خپل استاذ علي بن محمد نه نقل كوي چه دا نهى په هغه غسل خانو كښې ده چه دخاورو يا د شګو نه جوړے وي چه بول په كښې پاتے كيږي، او هرچه نن صبا زمانه ده نو په دے كښې غسل خانے دچونے، سمينټو وغيره نه جوړے وي، نو كه په دے اوبه واچوى نه ايساريږي، نو په دے كښې بول كول باك نه لري.

اودا خبره دعبد الله بن المباركؒ نه هم نقل ده، لكه فرمائي :

قد وسع في البول في المغتسل اذا جرى فيه الماء. نقله الترمذي .

ليكن علامه عبد الرحمن المباركفوري صاحبؒ په تحفة الأحوذي : ۳۳/۱، كښې فرمائي : ظاهر دحديث دا تقاضا كوى چه په دغسې مقاماتو كښې هم د بول كولو نه احتراز اوكړے شي ځكه چه حديث كښې ورسره هيڅ قيد نشته . او بله دا چه وسوسے لكه څنګه چه د نرم مكان نه پيدا كيږي نو دغه شان د سخت مكان نه هم پيدا كيږي۔

**ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ** : دا ثم د استبعاد دپاره دے، يعنے دا ډيره بعيده ده د عاقل نه چه په يو ځائے كښې بول هم كوى او بيا په كښې غسل هم كوى ! نو ددے نه دا معلومه شوه چه كه يو سړے يو ځائے كښې بول اوكړى خو بيا په دغه ځائے كښې غسل نه كوى نودا كار حرام نه دے۔

**درجة الحديث** : أخرجه أبوداود (۲۷) والترمذي (۲۱) والنسائي (۱/۳٤) وابن ماجة (۳۰٤) واسناده صحيح، وقد ضعفه الألباني في ضعيف ابن ماجة (٦۲) والراجح : أنه صحيح، راجع كلام ابن القطان في بيان الوهم والإيهام من كتاب الأحكام (۲/۵۷۳)۔ تعليق المشكاة للمحقق رمضان (۲/۱۷۳)، وقد قال الشيخ الألباني ما حاصله : أن هذا الحديث مؤلف من قسمين الأول، لا يبولن أحدكم في مستحمه، ثم يغتسل فيه . وهو صحيح كما في صحيح أبي داود رقم (۲۲)، وصحيح الجامع الصغير رقم (۷۵۹۷). و الثاني : لا يبولن أحدكم في مستحمه ثم يتوضأ فيه، فإن عامة الوسواس منه. وهوضعيف كما في ضعيف الجامع الصغير (٦۳۲۵) وصحيح أبي داود (۲۲)، فالحديث في المشكاة صحيح، دون قوله

(فإن عامة الوسواس منه)، وقد جعل صاحب المشكاة الحديثين حديثاً واحداً فتدبر. والحال أن أبا داؤد ذكرهما بسندين.

---

۲۱ – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَا يَبُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ فِيْ جُحْرٍ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسائِيُّ.

**ترجمه** : جناب عبد الله بن سرجس رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي : په تاسو کښې دې څوك په سوړه کښې متيازې نه کوي - (أبو داود، نسائي).

**تعارف : د عبد الله بن سرجس رضی الله عنه :**

داد مزينه قبيلې مشهور صحابي دې، بصره کښې سکونت پذير وو . د نبي ﷺ سره ئې درې خلور کاله تيرکړي دي. ټول (۱۷) احاديث ترې منقول دي.

**تشريح** : فِيْ جُحْرٍ : يعنې سوړه کښې بول کول منع دي، وجه دمنع داده چه :

۱ – داد پيريانو وغيره کورونه دي، هغوئ ته به په دې سره تکليف ملاويږي .

۲ – دويم حکمت په کښې دادې چه په دې کښې د مارانو، لړمانانو وغيره د ضرر ورکولو خطره ده، څکه هغه به په سوړه کښې تنګ شي، رابهر به شي او اوبه ئې چيچي، يا به دهغې نه منده کړي پرتوګ به ئې ګنده شي، اويا به ئې خلقو ته عورت ښکاره شي، يادا چه پيريان به وربانده کيني. دشريعت په دې کښې نور حکمتونه هم شته چه هغه مونږ ته معلوم نه دي.

ددې باره کښې يوه **واقعه** د سعد بن عبادة رضی الله عنه مشهوره ده چه ده په شام کښې په يوه سوړه کښې متيازې اوکړې نو اولتيه پريوتو او مړ شو (ثم استلقى ميتا) دا حديث اګرچه سند لحاظ سره صحيح نه دې مګر ابن عبد البر رحمه الله په الاستيعاب : ۳۷/۲، کښې ليکي (ولم يختلفوا انه وجد ميتا في مغتسله وقد اخضر جسده) .يعنې علماؤ کښې مشهوره ده چه سعد په خپل حمام (غسل خانه) کښې مړ اوموندې شو او بدن ئې شين شوې وو، آهـ. نو کيدې شي چه غسل خانه کښې ئې په سوړه کښې بول کړې وي. قال الألباني : اخرجه ابن عساكر : ۶۳/۷/، عن ابن سيرين مرسلا ورجاله ثقات، ارواء الغليل : ۱/ ۹۵، رقم : ۵۶.

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (۲۹) والنسائي (۱/۳۳) وفي سنده قتادة وهو مدلس (التلخيص الحبير) ثم ذكروا أنه لم يصح له سماع من عبد الله بن سرجس كما قال الألباني في إرواء الغليل رقم (۵۵) والحافظ،و باقي رجاله ثقات ولكنه ضعيف من هذه العلة الخفية وإن صححه الحاكم ولكن الشيخ الألباني قد رد قوله من ثلثة وجوه في الإرواء ـ راجع اليه . لكن يشهد له بول سعد في جحر وموته، كما في الارواء : ۱/۵٦، رقم : ۹٤ .وقال الشوكاني في السيل الجرار : ۱/٦٦ : رواه الحاكم وابوداود والنسائي واسناده صحيح، وكل رجاله ثقات، وقال في نيل الأوطار : ۱/۱۰۳ : وقيل : ان قتادة لم يسمع من عبد اللّٰه بن سرجس واثبت سماعه منه علي بن المديني وصححه ابن خزيمه وابن السكن، انتهى.

---

**۲۲ – وَعَنْ مُعَاذٍ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلَاثَةَ : الْبَرَازَ فِي الْمَوَارِدِ، وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ وَالظِّلِّ ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه .**

**ترجمه** : جناب معاذ نه روايت دے دا فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمايه : ځان ددرے لعنتي کارونو نه بچ کړئ : (۱) په ګودرونو کښے د غټ بول کولو نه (۲) دلارے په مينځ کښے (۳) او په سورو کښے (د غټ بول کولو نه)۔ (ابوداود، ابن ماجه)۔

**تشريح** : اِتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلَاثَةَ : يعنے د لعنت ددرے ځايونو نه ځان اوساتئ، ملاعن جمع دملعن ده، يا خو اسم مکان دے ځائے د لعنت اويا مصدر ميمي دے، په معنی د لعنت سره، او مراد به اسباب دلعنت وی . يعني د درے اسباب د لعنتونو نه ځان بچ کړئ !۔

الْبَرَازَ فِي الْمَوَارِدِ : متيازے کول په ګودرونو دخلقو کښے۔ براز نه مراد تغوط کول دی، او موارد جمع دمورد ده، هغه ځائے چه خلق ورته داوبو څکلو يا اودس کولو دپاره راځي، يعنے ګودر وغيره .

وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ : يعنے مينځ دلارے۔ دا اضافت دصفت دے موصوف ته، أی الطريق المقروعة بأرجل الناس۔ يعنے هغه لار چه خلقو په خپوباندے تکولے ده،خلق پرے ځي راځي . په دے ځايونو کښے د بول وبراز کولو نه منع ځکه اوشوه چه ددے نه انسانان فائده اخلي نو دلته بول وبراز کول دوئ ته تکليف رسوی . وقد تقدم تشريحه .

**درجة الحديث** : أخرجه أبوداود (٢٦) وابن ماجة (٣٢٨) وفي الإسناد جهالة وانقطاع، كما ذكر الحافظ في التلخيص، لأن أبا سعيد الحميري لم يسمع من معاذ وأبو سعيد هذا مجهول. لكن ذكر الألباني في الإرواء (٦٢) شواهد ، بها يتقوى الحديث ويحسن على أقل الأحوال .ولكنه صحيح لشواهد كثيرة ولذا صححه ابن السكن والحاكم (تعليق المشكاة لرمضان والمرعاة ٦٣/٢).

---

**٢٣ - وَعَنْ اَبِىْ سَعِيْدٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( لَا يَخْرُجُ الرَّجُلَانِ يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ كَاشِفَيْنِ عَنْ عَوْرَتِهِمَا يَتَحَدَّثَانِ فَإِنَّ اللهَ يَمْقُتُ عَلٰى ذٰلِكَ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَةَ .**

**ترجمه** : جناب ابو سعيدؓ فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي : يو ځائے دے دوه سړي ډکو متيازو دپاره داسې نه کيني چه خپل عورتونه ئے ښکاره کړي وي اوخپلو کښې خبرې کوي، ځکه چه دې سره الله تعالىٰ غصه کيږي ـ (أبوداود، ابن ماجه).

**تشريح** : يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ : دضرب الأرض نه مراد په كلام عربيْ كښې قضاء حاجت ته تلل دي، يعنې متيازې كول، او ضرب في الأرض نه مراد سفر كول دي، بناء په دې باندې الغائط منصوب بنزع الخافض دے، أي يضربان للغائط . اى يذهبان للغائط.

٢ - مختصر النهايه كښې ليكي چه : يضرب الغائط والخلاء والأرض ټول په معنىٰ د قضاء حاجت ته د تللو دپاره استعماليږي. بناء په دې باندې دا منصوب دې په يضربان سره، مفعول له دے . مطلب دحديث دادے چه دوه كسان متيازې كوي او عورتونه ئے ښكاره كړي وي اوخپل مينځ كښې خبرې اترې كوي لكه داد زنانو عادت دے، نودا كار حرام دے، دالله تعالىٰ ډير بدې شي، نو أدب دادے چه انسان به په حالت دبول وبراز كښې كپ شپ او خبرې نه كوي.

يَمْقُتُ عَلٰى ذٰلِكَ : ذلك اشاره ده (١) يو بل ته عورت ښكاره كولو ته (٢) يا دقضائے حاجت په وخت يو بل سره خبرې اترې كولو ته .

٢ - **فائده** : دا حديث دليل دې په وجوب دستر العوره باندې.

٣ – د بول وبراز په وخت خبرې اترې كول هم منع دي، وجه داده چه ناخبيث كار دے او په قلتِ حياء باندے دليل دے ـ دغه شان ملائك به ستا خبرے لكى نو هغوئ ته په دے حالت كښے تكليف ملاويږي.

**درجة الحديث** : أخرجه أحمد (٢٦/٤) وأبوداود (١٥) وابن ماجة (٣٤٢) والحاكم (١٥٧/١) والإسناد فيه جهالة واضطراب، كما بينه الألباني في ضعيف سنن أبي داود رقم (٣) وله شاهد عند أحمد برواية جابر مرفوعاً (اذا تغوط الرجلان فليتوار كل واحد منهما من صاحبه، و لا يتحدثان فإن الله يمقت على ذلك. وهو حديث حسن، قال العلامة المباركفوري في المرعات : وصححه ايضاً ابن السكن وابن القطان. وقال الشوكاني : لا وجه لتضعيفه، قال الحافظ: وهو معلول. فهذا الحديث وان كان بهذا السند ضعيفاً لاجل الجهالة في عياض بن هلال، لكن له شاهد بسند حسن برواية جابر يقويه فالحديث حسن لغيره ولله الحمد كما في توضيح الأحكام شرح بلوغ المرام : ٢٦٨/١، ونيل المرام للشيخ النورستاني : ٧٨/١.

---

**٢٤ – وَعَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِنَّ هٰذِهِ الْحُشُوْشَ مُحْتَضَرَةٌ ، فَاِذَا اَتٰى اَحَدُكُمُ الْخَلاءَ فَلْيَقُلْ : اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او زيد بن أرقمؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائي : بيشكه چه ځيئ ګانے (د شيطانانو او پيريانو) دحاضريدو ځايونو دي ، نو كله چه په تاسو كښے څوك بيت الخلاء ته لاړ شي نو هغه لـه دا دعاء وئيل پكار دي : أعوذ بالله من الخبث والخبائث (يعنے : زه دناپاك نارينه اوزنانه پيريانو نه په الله پورے پناه غواړم)۔ (أبوداود، ابن ماجه)۔

## تعارف : د زيد بن ارقم ﷺ :

انصاري خزرجي مشهور صحابي دے، اولنئ غزوه ئے غزوه خندق ده په دے كښے شريك شويدے، اود نبي ﷺ سره ئے (١٧) غزوات كريدي، اودده يو فضيلت دا هم دے چه دده تصديق الله تعالى په سورت المنافقون كښے راليږلے دے.كوفه كښے اوسيدلو او هلته

په سنه (٦٦) هـ کښې د (٨٥) کالو په عمر وفات شوېدې. دعلي رضی الله تعالی عنه خاص ملګرې وو. جنګ صفين کښې هم ورسره شريك شوې وو. ټول (٩١) احاديث ئې امت ته نقل کړې دي. رضی الله تعالی عنه.

**تشریح** : اِنَّ هٰذِهِ الْحُشُوْشَ : جمع د حش بفتح الحاء وضمها۔ دا په اصل کښې دکجورو ګڼرې وڼې وې چه دوئ به په کورونو کښې د بيت الخلاء جوړولو نه مخکښې په کښې قضاء حاجت کولو، بيا په کښې فراخي اوشوه او مطلق د قضائے حاجت ځائے ترې مراد کېږي، يعنې تښتې ګانې، ليټرونونه.

مُحْتَضَرَةٌ : ديته حاضريدل کيدې شي. يعنې جنات اوشيطانان ورته دفساد او ضرر دپاره حاضريږي ځکه دلته انسان د الله تعالی د ذکر نه غافل وی نو شيطان پرې قوی وی.

اَعُوْذُ بِاللهِ : د بخاری مسلم په روايت کښې (اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِکَ) الفاظ راغلی دی او په دې روايت کښې (اَعُوْذُ بِاللهِ) لفظ راغلے۔ نودا راوی روايت بالمعنیٰ کړې، اګرچه دا هم صحيح حديث دې، خو هغه راجح دې. او امام ترمذیؒ چه فرمائيلی دی چه : حديث زيد بن ارقم في اسناده اضطراب (٧/١)، نو ددې اضطراب دفع شيخ مبارکفوریؒ په تحفه الأحوذی شرح الترمذی (١٥/١) کښې ډير په ښه انداز سره کړيدې، هغې ته رجوع اوکړه۔

**درجة الحديث** : اخرجه احمد (٣٦٩/٤) وابو داود (٦) وابن ماجه (٢٩٦) وصححه ابن حبان واورده الهيثمي في موارد الظمآن (١٢٦) (١٢٧) قال الألباني في تعليق المشكاة : ١١٦/١ : واسناده صحيح، وكما في صحيح ابي داود رقم : ٤ ـ

نو دواړه الفاظ لوستل جواز لري، ليکن اولنی الفاظ د بخاری او مسلم دي، نو هغې لره به ترجيح وی په حديث د باقی کتبو باندې۔

---

**۲۵** ـ وَعَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (سِتْرُ مَا بَيْنَ اَعْيُنِ الْجِنِّ وَعَوْرَاتِ بَنِیْ آدَمَ اِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ اَنْ يَقُوْلَ : بِسْمِ اللهِ). رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ وَقَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَاِسْنَادُهُ لَيْسَ بِقَوِیٍّ.

**ترجمه** : علي رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې : د پيريانو

د ستر گو او د انسانانو د عورتونو ترمینځه پرده - کله چه انسان بیت الخلاء ته ننوځي - بسم الله وئیل دي. (دا حدیث ترمذي روایت کړے او وئیلي ئے دي : دا حدیث غریب دے او سند ئے قوي نه دے).

**درجة الحديث** : أخرجه ابن ماجه (٢٩٦) وابوداود (٦) وأورده الهيثمي في موارد الظمآن (١٢٦) واخرجه الترمذي وقال : هذا حديث غريب واسناده ليس بذاك - اى ليس بالقوى - لأن فيه محمد بن حميد الرازي شيخ الترمذي، وهو ضعيف، قال البخاري : فيه نظر.

لیکن صحیح خبره داده چه دا حدیث حسن دے، ځکه ترمذي په ډیرو ځایونو کښے د محمد بن حمید الرازي حدیث حسن کړیدے. دے وجے نه شیخ البانی په السلسلة الصحیحة (١٠٧٠) کښے ورته صحیح وئیلي دي. وله شواهد ذكرها في الارواء (٥٠) فالحديث صحيح بمجموع الطرق.

---

٢٦ - وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : (كَانَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ :غُفْرَانَكَ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِيُّ .

**ترجمه** : بي بي عائشة فرمائي : نبي كريم ﷺ به چه څه وخت د بيت الخلاء نه را اووتلو نو دا دعاء به ئے اوکړه : غفرانك (اے الله ! ستا بخښنه غواړم). (ترمذي، ابن ماجه، دارمي).

**تشريح** : غُفْرَانَكَ : يعنے نبي ﷺ چه به کله دبیت الخلاء نه را بهر شو نو دا دعاء به ئے کوله چه (غُفْرَانَكَ) اے الله ! زه تانه ستا خاص بخښنه غواړم کومه چه ستا د شان سره مناسب ده. یا هغه بخښنه غواړم دکومے چه زه مستحق نه یم، بلکه خاص ستا په فضل سره کیږي، دا ځکه وایو چه دا سوال پیدا نشي چه دمغفرت اضافت ئے الله تعالی ته ولے کړیدے. دے کښے څه فائده ده ځکه چه د بل چانه مغفرت غوښتل خو دلته نه جوړیږي، نو جواب اوشو چه دے نه مراد خاص مغفرت دے. فتدبر !

بیا غُفْرَانَكَ مفعول به دے دا طلبُ او أسئل فعل دپاره، یا مفعول مطلق دے. أي : اغفر غفرانك اللائق بك. اومصدر چه کله خپل فاعل ته بلا واسطه د حرف جر مضاف

وی نو عامل ئے حذف کیږی۔

## د مغفرت طلب کولو وجه او حکمت :

نو ددے ډیر وجوهات کیدے شی (۱) یو دا چه نبی ﷺ به همیشه ذکر کولو (کان رسول الله ﷺ یذکر الله علی کل أحیانه) فترك الذکر فی هذه اللحظات. نو بیت الخلاء کښے یو څو منټه ذکر بند شو، نو دالله نه بخنه غواړی (۲) دویمه وجه داده چه انسان د بولو په وجه دګندګئ او مصیبت نه خلاص شی، نو دا یو لوئے نعمت دے چه شکرئے نشی اداء کیدے، نو ځکه دخپل تقصیر مغفرت طلب کوی. (نعمة عظیمة لا یؤدی شکرها فیستغفر) کما نقل عن علی فی کشف النقاب ۔ ولے که د انسان متیازے بندے شی نو انسان تق چوی۔

**قیصه** : تاریخ الخلفاء کښے یوه قیصه نقل شویده چه دیو بادشاه متیازے بندے شوے وے، نو ملاتك یا یو حکیم سرے راغے او ورته ئے اوویل : زه به درلره متیازے کهلاؤ کړم خو څه به راکوے ! نیمه بادشاهی به راکړے ! هغه ورته اوویل : آو، خو چه زه کهلاؤ شم، نو هغه ورله دعاء اوکړه، کهلاؤ شو، خوداسے کهلاؤ شو چه بیائے متیازے نه بندیدلے، ډیر علاجونه ئے اوکړو خو روغ نشو، دغه شخص ورته بیا راغلو او ورته ئے اوویل : زه به دے بند کړم خو نیمه بادشاهی به راکوے ! هغه ورته اوویل : صحیح ده. نو دهغه په دعاء سره ئے متیازے اودریدلے، او توله بادشاهی ئے ترے واخسته. اوبیرته ئے ورته حواله کړه چه په دے مونږ څه کوو. په هغه بادشاهی باندے ثوك څه کوی چه دی و ځاځکی متیازو مقابله پرے نشی کیدے۔ نودا ډیر لوئے نعمت دے چه دانسان متیازے آزادے کیږی که توله دنیا یو سړی له ورکړے اومتیازے ئے بندے شی نو څه به پرے اوکړی !۔

۳ – دریمه وجه داده : چه کله د انسان یا د نبی ﷺ ذهن دبول او براز په حالت کښے الله طرفته لاړو، لکه د مؤمنانو ذهن کله دے طرفته هم ځی، ځکه د الله لوئی والے ئے زړه کښے وی، نو دا یو نوع بے احترامی ده،غیر اختیاری نو مغفرت غواړی، چه اے الله! ته مغفرت اوکړے ځکه زمونږ قضاء حاجت ضرورت دے کله رانه ستا بے احترامی کیږی ۔

٤– څلورمه وجه داده: چه (غُفْرَانَکَ) لفظ متضمن دے شکر لره، امام سیبویهؒ په

خپل کتاب کښې ليکلي دي چه د عربو دا محاوره مشهوره ده (غُفْرَانَکَ ، لَا کُفْرَانَکَ) په دې محاوره کښې د (غُفْرَانَ) لفظ د شکر په معنیٰ راغلي دې، لکه د (لَا کُفْرَانَکَ) د تقابل نه معلوميږي، نو که دلته هم دا معنیٰ مراد کړې شي نو خبره واضحه کيږي۔ او ددې وجې تائيد په روايت د ابن ماجه کښې راغلي دې (٢٦ : باب ما يقول اذا دخل الخلاء) د انسؓ روايت دې، او نسائي کښې د ابوذرؓ روايت دې چه نبي ﷺ به کله د بيت الخلاء نه راً اووتلو نو داسې به ئې لوستل: (الحمد لله الذى اذهب عنى الأذى وعافانى) دلته ئې حمد وئيلې دې، وسنده حسن بمجموع الطرق۔ يعنى نشكرك على هذه النعمة العظيمة۔

٥- پنځمه وجه خطيب شربيني ذکر کړيده (وقيل انه لما خلص من النحو المثقل للبدن سأل التخليص مما يثقل القلب وهو الذنب لتكمل الراحة) ۔ مغنى المحتاج (٧٥/١) چه کله بنده د هغه ګندګئ نه خلاص شو کومه چه په بدن باندې بوج وو نو د زړه د بوج لرې کولو سوال هم کوي چه هغه ګناه ده دې دپاره چه پوره راحت ورته ملاؤ شي ځکه چه پوره راحت دا دې چه د انسان بدن د ظاهري او باطني ګندګونه پاك شي۔

نور وجوهات هم کيدې شي۔ د الله او رسول ﷺ په خبرو کښې ډير حکمتونه وي چه هغوئ ته معلوم وي۔

**درجة الحديث** : أخرجه الترمذى (٧) وأبوداود (٣٠) وأحمد (١٥٥/٦) والدارمى (١٧٤/١) وقال الترمذى : هذا حديث حسن غريب، وقال الحاكم فى المستدرك (١٥٨/١) : هذا حديث صحيح وأقره الذهبى. وقال الألبانى : واسناده صحيح. صحيح أبى داود رقم (٢٢). وقال النووى : حديث عائشة حديث حسن صحيح، مرعاة (٦٦/٢).

---

٢٧ – وَعَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: (كَانَ النَّبِىُّ ﷺ اِذَا اَتَى الْخَلَاءَ اَتَيْتُهُ بِمَاءٍ فِىْ تَوْرٍ اَوْ رَكْوَةٍ فَاسْتَنْجٰى ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلَى الْاَرْضِ ثُمَّ اَتَيْتُهُ بِاِنَاءٍ آخَرَ فَتَوَضَّأَ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَالدَّارِمِىُّ وَالنَّسَائِىُّ مَعْنَاهُ .

**ترجمه** : ابو هريرةؓ نه روايت دې فرمائي : نبي کريم ﷺ به چه کله بيت الخلاء ته لاړو نو ما به ورله پياله يا د څرمنې بتکي کښې اوبه راوړلې، نبي کريم ﷺ به هغې سره

استنجاء كوله، بيا به مې ورله بل لوښي راوړو او په هغې به ئې اودس اوكړو ـ (ابواود، دارمي، نسائي)۔

**تشريح** : اَتَيْتُهُ بِمَاءٍ فِيْ تَوْرٍ : تور بفتح التاء وسكون الواو د زيړو يا دكانړو نه جوړ لوښي دې چه خلق پرې اودس كوي او خوراك څكاك په كښې هم كولے شي.

اَوْ رَكْوَةٍ : بفتح الراء وسكون الكاف : دڅرمنې وړوكے لوښي چه خلق په كښې اوبه څكي او اودس هم ترې كوي۔ د بگے، اوبتكے۔ دلته (او) يا خو شك د راوي دې، يا د تنويع دپاره دې، يعني ابو هريرةؓ به نبي ﷺ ته كله يو لوښي راوړو اوكله بل۔

**فوائد الحديث** : ۱ – په اوداسه كښې دبل چانه خدمت اخستل جواز لري، البته استعانت نه دې جائز چه د هغې تفصيل به روستو باب الاستعانه كښې راشي درې طريقې دي۔ ۲ – اوبو باندې استنجاء كول ترې معلوم شو چه دا يوه طريقه داستنجاء ده.

۳ – داستنجاء دپاره جدا لوښي استعمالول اوداوداسه دپاره جدا لوښي استعمالول بهتر دي، اگرچه جواز ددې هم شته چه ديوې كوزې لوټې نه استنجاء او اودس دواړه اوكړي.

٤ – بيا دې حديث كښې دا مسئله ناشنا ده چه داستنجاء نه روستو به د نبي ﷺ عادت مبارك دا وو چه لاس به ئې په زمكه يا ديوال باندې راخكلو، چه په ديوال كښې دډير لاس راخكلو په وجه كنده شوې وه۔ ددې حكمت دادې چه كله دا كار اونه كړې شي نو دلاس نه بد بوئي نه ختميږي، او پس د وينځلو نه به هم لاس بوئي كوي كه څوك تجربه اوكړي، خو كله چه خاوره وغيره باندې لاس راكاږي نو بدبوئي ختم شي ـ نو داستنجاء نه روستو لاس په ديوال، خاوره وغيره باندې راخكل سنت دي۔ دا خبره هم د فقهاؤ په مشهورو كتابونو كښې په باب د سنن الوضوء كښې نشته۔ معلومه شوه چه ټول دين د فقه په كتابونو كښې هم نه دې راگير، دا دليل دې چه احاديثو كښې كمال دې ـ په حديث كښې هر څه ذكر وي۔

**فائده نادره** : د استنجاء نه مخكښې يا روستو بسم الله وئيل په هيڅ حديث كښې نه دي ثابت، نو فقه كښې چه دا خبره مشهوره ده چه ويسمي قبل الاستنجاء وبعده۔ نو دا سنت طريقه نده۔

**درجة الحديث** : أخرجه الدارمي (١/١٧٣) وأبوداود (٤٥) والنسائي (١/٤٥) وابن ماجة (٣٥٨) وسنده حسن، وكذا في صحيح أبي داود رقم (٣٥) .

---

**٢٨ – وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ سُفْيَانَ ﷺ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا بَالَ تَوَضَّأَ وَنَضَحَ فَرْجَهُ**. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ .

**ترجمه** : حكم بن سفيانؓ فرمائي : نبي كريم ﷺ به چه كله واړه بول اوكړل نو اودس به ئې اوكړو او خپل عورت ته به ئې اوبه ورچنړكاؤ كړې - (ابواود، نسائي)-

**تعارف : د حكم بن سفيان ﷺ :**

دده په نوم كښې اختلاف دې بعضې وائي : دا حكم بن سفيان دې، بعضې وائي : سفيان بن الحكم دې، بعضې وائي : ابو الحكم بن سفيان دې، لس أقوال په كښې دي- حافظ ابن حجرؒ ذكر كړيدي- كما في تهذيب التهذيب (٢/٤٢٥) . امام بخاريؒ او ابن المدينيؒ فرمائي : صحيح داده چه دا حكم بن سفيان دې، هريو چه وي خو مشهور قول دادې چه دا صحابي دې، كما قال به الحافظ وابن عبد البر وابو زرعه- او جهالت (نامعلوم والې) د صحابي حديث ته ضرر نه رسوي-

**تشريح** : وَنَضَحَ فَرْجَهُ : ددې خلق دوه مطلبه بيانوي : يو غلط بل صحيح، غلط مطلب دادې چه استنجاء به ئې په اوبو سره اوكړه، پس د بول كولو نه- وجه د غلط والي داده چه روستو فصل ثالث كښې د حديث الفاظ داسې راغلي دي : (فلما فرغ من الوضوء أخذ غرفة من الماء فنضح بها فرجه)، يعنې : د اوداسه نه پس ئې دا كار كړيدې-

صحيح مطلب دادې چه د نبي ﷺ عادت مبارك داوو چه كله به ئې متيازې اوكړې او بيا به ئې اودس اوكړو نو د اوداسه نه روستو به ئې دپرتوګ يا لنګ خختګ ته اوبه چنړكاؤ كړې- دې كښې ډير حكمتونه دي، بعضې دادي (١) چه دا شك او وسوسې ختموي، كله كله په انسان پرتوګ يخ اولګي نو داګمان اوكړي چه مانه څه خارج شو، خاصكر داپه ژمي كښې ډير كرتې كيږي، نو كله چه تا مخكښې نه اوبه اچولي وي نو شيطان ته به وائې چه ورك شه دا خو ما اوبه اچولي دي د هغې يخوالې دې- نو د هغه وسوسه به ختمه شي-

(۲) بله فائده داده چه کله تا اوبه واچولے نودا ځائے یخ شی نو بیا د بول قطره بنده شی، هغه نه راوځی، نودا کار هم سنت عمل دے۔ ددے په باره کښے یو قولی حدیث دے اوبل فعلی۔ قولی حدیث روستو راروان دے چه جبرئیل علیه السلام أمر وکړو : (اذا توضأت فانتضح) اے پیغمبر ! کله چه ته اودس اوکړے نو روستو داوبو چنړکاؤ اوکړه۔ دا روایت ضعیف دے۔ اوفعلی حدیث ثابت دے، ولے که قولی حدیث ثابت شی نو بیا به دا چنړکاؤ کول واجب وے۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (١٦٦) والنسائى (١/٨٦) وابن ماجة (٤٦١) وأحمد (٤١/٣)؛ واسناده ضعيف، لاضطرابه الشديد، كما فى التدريب : ٩٥، وعلل ابن ابى حاتم : ٤٦/١٠، كذا فى المرعات، ولكن الحديث صحيح لشواهده منها ما يأتى فى (٣٦٦) وبعضها فى صحيح سنن ابى داود رقم : ١٥٩، قاله الألبانى فى تعليق المشكاة، والشيخ رمضان فى تعليقه.

---

٢٩ - وَعَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ قَالَتْ :(كَانَ لِلنَّبِيِّ ﷺ قَدَحٌ مِنْ عَيْدَانٍ تَحْتَ سَرِيْرِهٖ يَبُوْلُ فِيْهِ بِاللَّيْلِ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ .

**ترجمه** : بی بی أمیمه بنت رقیقة فرمائی : نبی کریم ﷺ دپاره د لرګی یو پیاله وه چه د کټ لاندے به پرته وه۔ نبی کریم ﷺ به هغے کښے د شپے تشے متیازے کولے۔ (أبوداود، نسائی)۔

**تعارف : د امیمه بنت رقیقه رضی الله عنها :**

صحابیه ده دپلار نوم ئے عبد الله بن بجاد التیمی دے، دخدیجه رضی الله عنها خور زه ده۔ د فاطمه رضی الله عنها د خاله (ترور) لور ده، یوه بله امیمه بنت رقیقه هم شته، هغه تابعیه ده۔

**تشریح** : كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدَحٌ : یعنی د نبی کریم ﷺ یوه کاسه وه د لرګی چه د شپے به ئے په کښے بول کول ځکه دا هغه زمانه وه چه دخوف د وجے نه به رسول الله ﷺ بهر نشو راوتلے ، د دشمنانو نه به ویریدلو۔ دا حکم اوس هم دے چه یو

انسان داسې ځائې کښې وی چه بهر نشی راوتلې یره وی د دشمنانو یا درندګانو یا د غلو نه نو په یو لوښی کښې بول کولې شی چه بیا به ئې صبا له توئی کوی ۔

عَيْدَانٍ : دا که په فتحه د عین شی نو جمع د عیدانة ده اوږدو کجورو ته وائی او جمع شویدې په اعتبار د اجزاؤ د کجورو یا جمع حمل ده په جنس باندې او که په کسره د عین شی نو جمع د عُوُدٌ ده لرګی ته وائی دلته دواړه جائز دی مګر اول ظاهر دې۔

يَبُوْلُ فِيْهِ بِاللَّيْل : **سوال** دادې چه بل حدیث دطبرانی فی الأوسط باسناد جید کښې دعبد الله بن یزید نه مرفوعا نقل دی (فان الملائکة لا تدخل بیتا فیه بول منتقع) یعنې کوم کور کښې چه بول ساتل شوی وی هغې ته ملائك نه داخلیږی۔ اودلته نبی ﷺ به دبولو کاسه دکټ لاندې کیښودله، دا خو ظاهرا تعارض ښکاری ؟۔

**جواب** دادې چه : یو هغه کاسه ده چه متیازې په کښې اوکړې شی او ګذار کړې شی نو هغه ساتل جواز لری ۔ اوبله هغه کاسه ده چه متیازې په کښې اوکړې شی او بیا په کښې پرتې ساتلې شوې وی نو هغه نا روا دی۔ او د نبی ﷺ اول قسم کاسه وه ۔ اودا تطبیق د لفظ د (بول منتقع) نه معلومیږی یعنې ډیر وخت بول ساتل منع دی چه بد بوئی اوکړی

۲ – ملائك هغه کور ته نه داخلیږی چه بول په کښې ډیره موده پراته وی، اوچه کله لږ وخت دپاره پرتې وی لکه یوه شپه وغیره، نو بیا داحرام کار نه دې، بلکه جائز دې، اود نبی ﷺ بول به هم سَحر ګذارلې شو۔

۳ – علامه مغلطائی یو بل جواب هم کړیدې چه ملائك هغه کور ته نه راځی کوم کښې چه ډیر زیات نجاست وی او تول ځایونه پلیت وی، اوکله چه پیاله، کاسه وغیره کښې بول وی په دې سره هغه هیڅ ځائې پلیت نه وی، نو ددې ساتل جواز لری ۔ ځکه هلته ملائك نه بندیږی ۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداو (۲٤) والنسائی (۱/۳۱) وفی الاسناد حکیمة بنت أمیمة، قال عنها الذهبی فی المیزان : تفرد عنها ابن جریج وهذا یدل علی أنها مجهولة العین. وقال الحافظ فی التقریب : لا تعرف. ولا اعتداد بذکر ابن حبان لها فی الثقات : ٤/١٩٥. وقال الألبانی فی تعلیق المشکاة : ١/١١٧، رقم : ٣٦٢ : اسناده حسن او محتمل للتحسین

وقد صححه جماعة، وله شاهد عند النسائي نحوه بسند صحيح عن عائشة، انظر صحيح النسائي رقم : ۳۲، وقال هناك : حسن صحيح. وكذا في صحيح أبي داود رقم : ۱۹، وقد رد الشيخ رمضان في تعليقه على المشكاة : ۱۷٦/۲، على الشيخ الألباني في تصحيحه لهذا الحديث ولكنه ردّ بدون أي دليلٍ فلا يعتبر . وقال في عون المعبود : والحديث وان كان فيه مقال لكنه يؤيده حديث عائشة الذي أخرجه النسائي . فهذا الحديث صحيح .

---

۳۰ – وَعَنْ عُمَرَ ﷺ قَالَ : رَآنِي النَّبِيُّ ﷺ وَاَنَا اَبُوْلُ قَائِمًا فَقَالَ : يَا عُمَرُ، لَا تَبُلْ قَائِمًا، فَمَا بُلْتُ قَائِمًا بَعْدُ). رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه، قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : قَدْ صَحَّ عَنْ حُذَيْفَةَ ﷺ قَالَ : أَتَى النَّبِيُّ ﷺ سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَائِمًا . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ . قِيْلَ : كَانَ ذٰلِكَ لِعُذْرٍ.

**ترجمه** : جناب عمر فاروقؓ فرمائي : نبي ﷺ زه په داسې حالت کښې اوليدم چه ما په ولاړه واړه بول کول، وې فرمائيل : اې عمر! په ولاړه بول مه کوه. عمر فاروقؓ فرمائي : دې نه پس ما په ولاړه متيازې اونه کړې . (ترمذي، ابن ماجه). امام محي السنةؒ فرمائي : د حذيفهؓ نه منقول دي چه نبي کريم ﷺ د يو قوم ډيران ته راغې، او په ولاړه ئې بول اوکړل . (متفق عليه). وئيلې شوي دي چه نبي ﷺ دا کار د څه عذر په وجه کړې وو.

**تشريح** : فَمَا بُلْتُ قَائِمًا بَعْدُ : پدې مقام کښې دوه قسمه حديثونه راغلل چه بعضو کښې په ولاړه بول کولو ته حرام وئيلې شويدي او بعضو کښې ددې جواز ثابت شويدې. نو اوس ددې تطبيق څنګه کيدې شي ؟

**مسئله : په ولاړه بول څه حکم لري ؟**

په دې کښې اختلاف دې :

۱ – احناف وائي : په ولاړه متيازې کول مکروه دي، الا من عذر.

۲ – د امام مالکؒ قول دادې چه که د بول نه څاڅکي نه اوچتيږي نو جائز دي، اوکه دا خطره وي نو مکروه دي .

۳ – بعضې أهل ظواهروائي : بول قائما مطلقًا حرام دی ـ دا قول خو صحیح نه دے۔

٤ – دامام احمد بن حنبلؒ، عام محدثینوؒ، سعید بن المسیبؒ، عروه بن الزبیرؒ، ابن سیرینؒ، شعبیؒ، او په صحابو کښې د عمر بن الخطابؓ، زید بن ثابتؓ، ابو هریرةؓ، ابن عمرؓ، او سهل بن سعدؓ مذهب دادے چه بول قائما مطلقا جائز دی، غالبا به ئے په ناسته کوی، اوکله کله په ولاړه هم جواز لری ـ (کما فی الموطأ : ٥٠ ونیل الاوطار ۱۰۹/۱)۔

ددے قول **دلائل** دا دی :

۱ – **اول دلیل** : عن حذیفة قال : کنت مع النبی ﷺ فانتهی الی سباطة قوم فبال قائما فتنحیت فقال : ادنه، فدنوت حتی قمت عند عقبیه فتوضأ فمسح علی خفیه.

(البخاری : ۳٦/۱، ومسلم : ۱۳۲/۱)۔

۲ – روایت د حذیفه فی البخاری بشرح الفتح (۲٦۳/۱) ابو موسی اشعریؓ به په ولاړه بول کولو کښې تشدد کولو چه په دے سره انسان ته څاڅکی کیږی او ځان سره به ئے یو بوتل ګرځولو په هغې کښې به ئے متیازے کولے او د بنی اسرائیلو قیصه به ئے ذکر کوله ـ کذا فی مسلم (۱۳۳/۱) والعینی (۱۳۸/۲)ـ نو حذیفةؓ پرے رد اوکړو چه دا کار په دین کښې نشته، دا تکلف دے، رسول الله ﷺ په ولاړه بول کړی دی او ته په کښې تشدد کوے ! بوتل ګرځوے۔

غرض ئے دادے چه په ولاړه بول کښې انسان ته څاڅکی ضرور کیږی، رشاش ورته راځی او ته دومره ځان ساتے چه بوتل ګرځوے دا په دین کښې تکلفات دی، اوته د رسول الله ﷺ صحابی ئے، ټول امت به ستا تابعداری کوی، خلق به په حرج کښې واچوے !۔

۲ – دویم دلیل : روستو راروان دے په هغې کښې قصه داعرابی ده (فقام یبول فی المسجد) دا حدیث دلیل دے په جواز البول قائما باندے ځکه دا مقام د بیان دے اونبی ﷺ د بول قائمًا (په ولاړه بول کولو) نه منع نه کړو۔

۳ – موطأ (۵۰/۱) کښې د عبد الله بن دینارؒ نه نقل دی فرمائی چه ما عبد الله بن عمرؓ اولیدلو چه په ولاړه ئے بول کول۔ واسناده صحیح۔

٤ – امام نوویؒ په شرح د مسلم (۱۳۳/۱) کښې د ابن المنذرؒ نه نقل کوی : (انه قال

فی الإشراف : اختلفوا فی البول قائما، فثبت عن عمر بن الخطاب وزید بن ثابت وابن عمر وسهل بن سعد : انهم بالوا قیاما، قال : وروی ذلك عن انس وعلی وابی هریرة وفعل ذلك ابن سیرین وعروة بن الزبیر.

حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری (۱۶۳/۱) کښې فرمائی : چه هیڅ صحیح حدیث په باره د نهی دبول قائما کښې دنبی ﷺ نه نه دے ثابت. دغه شان امام ابن ماجه د بعض استاذانو نه نقل کړی دی چه دعربو عادت دا وو چه په ولاړه به ئې بول کول، اوځوك چه به کیناستلو نو هغه پورې به ئې خندا او تعجب کولو، لکه ددے دلیل دا یو حدیث د ابن ماجه او نسائی او ابوداود (۵/۱) بسند صحیح دے : (انظروا الیه یبول کما تبول المرأة) روستو راځی.

په روایت د عبد الرحمن بن حسنه کښې دی (بال رسول الله ﷺ جالسا فقلنا انظروا الیه یبول کما تبول المرأة) اخرجه النسائی وابن ماجة وغیرهما وسنده صحیح وصححه الداقطنی کذا قال الحافظ فی الفتح.

اوپه حدیث د حذیفةؓ کښې دی : (فقام کما یقوم أحدکم) نو دا دلیل دے چه نبی ﷺ به دهغوئ خلاف کولو او کیناستلو به په عام حالتونو کښې ځکه چه په دے کښې پرده ډیره ده. (کذا فی النیل : ۱۰۹/۱).

اوکوم علماء - لکه صاحب مشکات وغیره - چه په حدیث دحذیفةؓ کښې تاویل کوی چه ځکه ئې په ولاړه بول اوکړو چه دده په زنګون باندے درد وو او په ولاړه بول کولو سره شفاء حاصلیږی. اوددے په باره کښې روایت د ابو هریرةؓ ذکر کوی چه (انما بال قائما من جرح کان بمأبضه) أخرجه البیهقی والدارقطنی والخطابی فی معالم السنن (۲۹/۱) والحاکم (۱۸۲/۱)، ضعفه البیهقی والدارقطنی.

نوددے (۱) جواب دادے چه دا حدیث ضعیف دے. تفرد به حماد بن غسان وهو ضعیف. کما قال الذهبی فی تخلیص المستدرك (۱۸۲/۱)، تعلیق المشکاة، شرح السنة (۲۹۰/۱)، کذا فی فتاوی الدین الخالص (۳۹۷/۱).

(۲) دویم جواب دادے چه که دا په عذر حمل وے نو پکار ده چه نبی علیه السلام بار بار

دا کار کولے ترڅو چه ددے نه نه وے جوړ شوے، اومونږ ته به رانقل شوی وے، او حال داچه د نبی ﷺ نه همیشه دا نه دی نقل بلکه کله ناکله نقل دی، بغیر دحالت دعذر نه، لکه مخکښے روایت دحذیفهؓ وغیره تیر شو۔

د **مقلدینو** دا عادت دے چه هغوئ د خپل مذهب د مدافعت دپاره د نبی ﷺ اعمال په عذر حمل کوی، هغه ئے بیمار کړیدے، په جلسه الاستراحه کښے وائی چه پیغمبر ﷺ بوډا شو زنګنونو ئے کار نه کولو، ځکه ئے جلسه استراحت کوله۔ د تورك په مسئله کښے وائی چه د نبی ﷺ په طرف باندے درد وو په سجده کښے مخکښے لاسونو کیخودلو باره کښے وائی چه زنګنونه ئے خوږیدل، دا غلط وائی۔ بلکه د نبی ﷺ هرحالت چه وی نو دا دین دے په هغے باندے عمل اتباع ده، عذرونه چه الله او رسول ﷺ نه دی بیان کړی، نو هغه عذر نه وی فتدبر!

**دلائل الحنفية** : اول دلیل د ابن مسعودؓ قول دے چه امام ترمذی (۹/۱) تعلیقا راوړیدے (ان الجفاء أن تبول قائما) دا حدیث صحیح موقوف دے اومرفوع نه دے، کما فی (۲/۴۵۴) البیهقی : ۲/۲۸۵، وابن ابی شیبة : ۱/۱۳۴، والبخاری فی التاریخ : ۲/۴۵۴۔

اود هغے الفاظ داسے دی : (اربع من الجفاء ... ان یبول قائما)۔

**جواب** : ۱ - یو خودا حدیث موقوف دے اوحدیث موقوف چه کله مخالف راشی د مرفوع روایاتو سره نو دا حجت نه وی۔

۲ - **جواب**: په دے کښے دجفاء لفظ دے، اوجفاء لفظ په تحریم دلالت نه کوی، صرف داچه همیشه دپاره په ولاړه کول د ادب خلاف دی۔

۲ - **دلیل** : دا حدیث (الباب) د عمر فاروقؓ دے چه نبی ﷺ زه په ولاړه بول کولو باندے اولیدم، وے فرمائیل : (یا عمر لا تبل قائما، فما بلت قائما)۔

**جواب** : دا حدیث ضعیف دے، فیه عبد الكريم بن أبی المخارق وهو ضعیف باجماع المحدثین. کما قال الترمذی (۹/۱) والبیهقی فی السنن الکبری (۱/۱۰۲)۔

او بل روایت د عمر فاروقؓ نه امام ترمذیؒ ذکر کوی : (ما بلت قائما منذ اسلمت) دا صحیح روایت دے خو محمول دے په غالب اوقاتو باندے ځکه چه ابن حجرؒ په الفتح

کښې د عمرؓ، زيد بن ثابتؓ، سهل بن سعدؓ نه نقل کړيدي چه (انهم بالوا قائما) ـ دوئ په ولاړه بول کړيدي۔

۳ - **دريم دليل** : حديث د عائشهؓ دے : (من حدثكم أن النبي ﷺ كان يبول قائما فلا تصدقوه، ما كان يبول الا قاعدا) اخرجه النسائي والترمذي وسنده صحيح على شرط مسلم، كما في السلسلة الصحيحة : ۱/ ۳٤٥، رقم : ۲۰)۔

**جواب** : دا حديث معارض نه دے د مخکنو رواياتو سره (۱) وجه داده : چه دا قول دعائشےؓ دخپل علم مطابق دے، چه هغے نبي ﷺ په داسے حالت کښے نه دے ليدلے، اود عائشےؓ نه ماسوا حذيفهؓ ليدلے دے چه (كان يبول قائما) نو عام حالت کښے د نبي ﷺ نه ناسته نقل ده، اوکله کله په ولاړه هم ثابت دی (بياناً للجواز)۔

لکه دا خبره ابن القيمؒ په زاد المعاد (۱/ ۱٦٥) کښے اوحافظ په فتح الباری (۱/ ۲٦۳) کړيده۔ اوعائشهؓ دلته عادت د نبي ﷺ ذکر کوی چه په دے باندے دليل دحديث الفاظ دی (ما كان يبول قائما) نو تعارض ختم شو۔

۲ - دويمه وجه داده : چه که تعارض صورت شي نوعائشهؓ نفي کوی او حذيفهؓ اثبات کوی اوقاعده داده (دا قاعده عقلي هم ده او شرعي هم ده) چه کله تعارض په مابين د نافي او مثبت کښے راشي نو ترجيح به مثبت لره وی، ځکه دده علم زيات وی ځکه ده ليدلے دے او نافي نه دے ليدلے، خصوصا عائشهؓ دنبي ﷺ سره په سفر کښے نه ګرځيدله، او غالبا بهر هم نه ګرځيدله، نوکه دے نه وی ليدلے نو ددے دشان نه دا څه بعيده نه ده، دغه شان ديکښے دنسخ احتمال هم نشته، وجه داده چه حافظ ابن حجرؒ په الفتح کښے (۱/ ۲٦۳) ليکی چه حذيفهؓ نبي عليه السلام په مدينه کښے ليدلے دے۔ نو قول دحذيفهؓ راجح شو۔

**خلاصه داچه** : بغير د ضرورت او عذر نه کله کله په ولاړه بول کول جائز دی، هرکله چه د څاڅکو لګيدلو خطره نه وی، او مستحب طريقه داده چه په ناسته بول اوکړے شي لکه داخبره المغني (۱/ ۸۷) کښے هم ذکر ده۔ اونبي عليه السلام هم په ولاړه باندے دے دپاره کړيدی چه امت ته اوښائی چه په دے کښے دومره سختي نشته، بلکه جواز لری۔ او په نهي کښے چه څومره احاديث راغلي دی هغه ټول ضعيف دی، کما قال الحافظ

(۱۶۵/۱) لکه چه تا اوپيژندل۔

او کوم علماؤ چه دا خبره کړيده (لکه درس ترمذی : ۱۹۹/۱ کښې) چه دا شِعار دغير مسلم دے نو ځکه ناجائز دی، نو دا خبره خطاء ده۔ ځکه چه شعار به هله وي چه کله زمونږ دين کښې نه وي راغلي او انسان دهغوئ پشان عمل کولے نو هله به ناجائز وه۔ اوهرکله چه ددے شرعا نقل راغې نودا بيا دغير مسلم شعار پاتې نشو ۔ ددے وجې نه صاحب د السنن والمبتدعات ص (۱۹) کښې ليکي چه څوك په ولاړه متيازے کونکې ته بد ګورى نو داغبی او بدعتی او باطل پرست دے۔ د هغه الفاظ دادی :

فصل : فمن الغباوة والجهالة انكار كثير من الناس على من يبول قائما ويرمونه مرة كاليهود، ومرة يقولون : انه يرفع رجله ويبول كالكلب ويحتقرونه وينقصون بعد ذلك مع انه على الحق وهم على الباطل، وهو على السنة وهم على البدعة والجهالة۔

بيا روسته ليکي : نعم يجب على البائل من قيام ان يستر عورته من عيون الناس وان يختار مكانا رخوا لئلا يصيبه الرشاش، وان لا يستقبل القبلة وان لا يقابل الريح، فان فعل ذلك واصروا على الانكار عليه فليبل عليهم۔ يعنى که څوك په ولاړه بول کونکې باندے سخت انکار او اعتراض کوی نو بول کونکی له پکار دی چه په هغه باندے بول اوکړی۔

**درجه** د حديث : مخکښې په ضمن د مسئله کښې بيان شوه۔

---

## الفصل الثالث - دريم فصل

**۳۲ – عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : ( مَنْ حَدَّثَكُمْ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَبُوْلُ قَائِمًا فَلَا تُصَدِّقُوْهُ، مَاكَانَ يَبُوْلُ اِلَّا قَاعِدًا ) رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَالتِّرْمِذِيُّ .**

**ترجمه** : أم المؤمنين عائشة رضی الله عنها فرمائی : چاچه تاسو ته دا خبره اوکړه چه نبی ﷺ به په ولاړه واړه بول کول نو ددے تصديق مه کوئ، بلکه هغوئ به صرف په ناسته واړه بول کول ۔ (أحمد، ترمذی، نسائی)۔

**تشريح** : مَاكَانَ يَبُوْلُ اِلَّا قَاعِدًا : دا نفی دعائشے رضی الله عنها دخپل علم مطابق ده اوهر شخص په خپل علم باندے محجوج دے، اويا دلته عائشة رضی الله عنها د نبی عليه السلام هَدْيِ

(سيرت) ذكر كوى په بول كښې چه عادت به ئې په ناسته بول كول وو، نو معنىٰ دعبارت به داوى : (ما كان يعتاد البول الا قاعدا) او هرچه حديث دحذيفهؓ دے نو هغې كښې خلاف عادت قائما بول هم راغلى دى، نو هغه هم جائز شو، بغير دعذر نه هم۔ نو دا دواړه حديثونه صحيح دى او هيڅ تعارض په كښې نشته۔

وكذا قال ابن القيم في زاد المعاد (١/١٦٥)۔

**درجة الحديث** : رواه احمد والترمذى وقال : حديث عائشه أحسن شئ فى هذا الباب وأصح آهـ۔ ليكن په دے روايت كښې شريك بن عبد الله النخعى قاضى الكوفه راوى متكلم فيه دے، په وخت د قضاوت كښې دده حافظه خرابه شوے وه، دا وجه ده چه حافظ ابن حجرؒ فرمائى : په نهى عن البول قائما كښې هيڅ صحيح روايت نشته، نو بناء په دے باندے د ترمذى دخبرے مطلب دادے چه په حديث دعائشه كښې ضعف كم دے او راجح دے په نسبت د نورو احاديثو باندے كوم چه په دے باب كښې وارد دى، لهذا د (أصح شئ) معنىٰ شوه (اقل ضعفا) يعنے نور احاديث ډير ضعيف دى او دا كم ضعيف دے، داسے دے لكه ديوے سترگے خاوند په ړندو كښې۔

لكن الحديث صحيح لان الحاكم وابا عوانة والبيهقى (١/١٠١، واحمد : ٦/١٣٦، ٢١٣) نقلوه من طريق سفيان الثورى، لا من هذا الطريق واعتذر الألبانى من تضعيفه نفسه فى الأحاديث الصحيحة (١/٣٤٦) رقم (٢٠١) وانظر صحيح النسائى (٨) وصحيح ابن ماجة (٣٠٧) نو د شريك متابع موجود دے چه هغه سفيان ثورىؓ دے۔ ومثله فى المرعاة (٢/٦٩)۔

---

٣٣ - وَعَنْ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ (اَنَّ جِبْرِيْلَ اَتَاهُ فِيْ اَوَّلِ مَا اُوْحِيَ اِلَيْهِ فَعَلَّمَهُ الْوُضُوْءَ وَالصَّلَاةَ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْوُضُوْءِ اَخَذَ غَرْفَةً مِنَ الْمَاءِ فَنَضَحَ بِهَا فَرْجَهُ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِقُطْنِيُّ.

**ترجمه** : جناب زيد بن حارثهؓ د نبى ﷺ نه روايت كوى چه جبرئيل عليه السلام د ټولو نه د وړومبنى وحى په موقع نبى ﷺ ته راغے، نو نبى ﷺ ته ئې اودس اوښودلو بيا ئې ورته مونځ اوخودلو بيا چه اودس نه فارغ شو نو يو چونگ اوبه ئې واخستے او هغه ئې

خپل عورت باندے چنړکاؤ کړے ۔ (أحمد، دارقطني)۔

## تعارف : د زيد بن حارثه ﷺ :

د نيکه نوم ئے شراحيل الکلبي دے، د نبي عليه السلام محبوب اوآزاد کړے شوے غلام وو، ابو اسامه ئے کنيه ده، د مور نوم ئے سعدى بنت ثعلبه د بنو معن قبيلے نه ده، د جاهليت په زمانه کښے ئے مور د خپل قوم ملاقات له روانه وه چه په لاره کښے ورته ډاکوان د بني القين بن جسر را اووتل او زيد چه (٨) آته کلن ماشوم وو د مور نه اوتښتولو اود عکاظ په ميله کښے ئے خرڅ کړو۔ نو حکيم بن حزامؓ دخپلے چاچي خديجه الکبرىٰ دپاره په څلور سوه درهمه واخستو، بيا چه کله خديجهؓ د نبي ﷺ په نکاح کښے راغله نو هغه ته ئے زيد هبه کړو ۔ بيا ئے کورته خبر اورسيدو چه د نبي کريم ﷺ سره دے، نو پلار (حارثه) او تره ئے راغلل چه را آزاد ئے کړي، نو نبي کريم ﷺ زيد ته اختيار ورکړو چه پلار او تره سره ځے اوکه ما سره پاتے کيږے آزاد به دے کړم ! زيدؓ دخپل عقل نه کار واخستلو اود نبي کريم ﷺ سره پاتے کيدل ئے دپلار او تره سره د تللو نه غوره کړل، نو نبي کريم ﷺ حجر اسود خواته راوستلو اواعلان ئے اوکړو چه زيد زما ځوئي دے او مانه به ميراث وړي۔ بيا چه کله اسلامي دور راغلو نو الله تعالىٰ آيت نازل کړو ﴿ ادعوهم لآبائهم هو اقسط عند الله ﴾ نو بيا به ورته زيد بن حارثه وئيل کيدو ۔

د علي بن ابي طالب رضي الله عنه نه پس په نارينه ؤ کښے دا اولنے مسلمان دے، أونبي کريم ﷺ نه لس يا شل کاله کشر دے۔ نبي کريم ﷺ ورته ابتداء کښے خپله مولاګئ (وينزه) أم أيمن په نکاح ورکړه نو اسامه ترے پيدا شو،بيا ئے ورته زينب بنت جحش په نکاح کړه، کما هو معروف ۔ دده يو خصوصي فضيلت دادے چه په ټولو صحابو کښے صرف دده نوم الله تعالىٰ په قرآن کريم کښے ذکر کړيدے۔ په غزوه موته کښے د سپه سالار او أمير په حيثيت په سنه (٨) هـ کښے د (٥٥) کالو په عمر شهيد شوے دے۔ ټول (٤) څلور احاديث ترے نقل دي ۔ نبي اکرم ﷺ چه کله دده د وفات خبر واوريدو نو د سترګونه ئے اوښکے لاړے ۔ ﷺ

**تشريح** : اَنَّ جِبْرِيْلَ اَتَاهُ : **فائده جليله** : جبرئيل عليه السلام د مانځه اوداسه د تعليم

دپاره دوه کرتے راغلے دے (۱) يو کله چه ورته ابتدائي وحي اوشوه په غار حراء کښے، اودس او مونځ ئے ورته اوخودلو، سَحر او مازيګر۔ (۲) دويم په دولسم کال دنبوت کله چه دمعراج نه واپس شو، دوه ورځے امامتي ئے ورته اوکړه۔ ابتداء کښے دوه مونځونه فرض وو اود اسراء او معراج نه پس پنځه مونځونه فرض شو، نو هريو مونځ ورته په خپل خپل وخت کښے اوخودلو، او شروع ئے د ماسپخين نه اوکړه لکه چه دا به په باب المواقيت کښے راشي ان شاء الله۔ غرفة : بفتح الغين وجاء ضمها۔

**فَنَضَحَ بِهَا فَرْجَهُ** : په خختک باندے اوبه اوچول پس د اودس کولو نه په هر اودس کښے جائز دي يعني که په اوبو سره استنجاء شوے وي اوکه په کانړو سره، او جبرئيل عليه السلام دا کار د تعليم دامت دپاره کړيدے چه د وسوسو نه په دے طريقه سره بچ شي۔ (۲) يا دپاره ددے چه بول منقطع شي ځکه يخے اوبو سره بول اودريږي۔ اوتشريح ئے مخکښے تيره شويده۔

بيا دا عمل به کوی برابره خبره ده که په هر څه ئے استنجاء کړے وي، داوبو قيد په کښے نشته، نو دحاشيه والا داخبره صحيح نه ده چه وائي (والظاهر ان النضح مختص بمن استنجى بالماء) دا خبره ظاهره نه ده د ظهور دليل نشته بلکه عموم ظاهر دے۔

**درجة الحديث** : رواه أحمد والدارقطني وسنده حسن كما قال الألباني في تعليق مشكاة المصابيح (١١٨/١) قال : ورواه ابن ماجة ايضا رقم : ٤٦٢۔ وهو من شواهد حديث الحكم بن سفيان المتقدم۔

---

**٣٤ - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : ( جَآءَنِيْ جِبْرِيْلُ فَقَالَ : يَا مُحَمَّدُ، اِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَضِحْ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا - يَعْنِي الْبُخَارِيَّ - يَقُوْلُ : الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْهَاشِمِيُّ الرَّاوِيُّ مُنْكِرُ الْحَدِيْثِ .**

**ترجمه** : جناب ابو هريرةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلے دے : ماته جبرئيل

راغے او راته ئے اوفرمائيل : اے محمد ! کله چه ته اودس اوکړے نو (خپل عورت ته) اوبه چنړکاؤ کړه ـ (دا حديث امام ترمذی روايت کړے دے او وئيلی ئے دی : دا حديث غريب دے، او ما د امام بخاریؒ نه واوريدل چه فرمائيل ئے : حسن بن علی الهاشمی راوی منکر الحديث دے)۔

**تشريح** : مخکښے تير شوی دی چه د دے چنړکاؤ متعلق دوه قسمه حديثونه راغلی دی : قولی، اوفعلی۔ قولی دا حديث دے او دا ضعيف جدا دے۔ اوفعلی حديث صحيح دے، لکه چه مخکښے هم تير شو او روستو به هم راشی نو کوم حديثونو کښے چه امر بالانتضاح راغلے دے هغه ټول ضعيف دی او کوم کښے چه امر نشته هغه صحيح دی۔

رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ وَقَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا – يَعْنِی الْبُخَارِیَّ – يَقُوْلُ : الحَسَنُ بْنُ عَلِیِّ الْهَاشِمِیُّ الرَّاوِیُّ مُنْكِرُ الْحَدِيْثِ :

او ا د امام بخاری لويه فتویٰ ده په راوی کښے څکه هغه نه نقل دی چه (اذا قلت فی الراوی : فلان منکر الحديث فلا تحل الروايه عنه) نودا ضعيف جدا حديث دے، قابل داستدلال نه دے۔

---

۳۵ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ :بَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَقَامَ عُمَرُ خَلْفَهٗ بِكُوْزٍ مِنْ مَآءٍ، فَقَالَ : مَا هٰذَا يَا عُمَرُ، فَقَالَ : مَاءٌ تَتَوَضَّأُ بِهٖ. قَالَ : مَا اُمِرْتُ كُلَّمَا بُلْتُ اَنْ اَتَوَضَّأَ، وَلَوْ فَعَلْتُ لَكَانَتْ سُنَّةً ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ وَابْنُ مَاجه .

**ترجمه** : بی بی عائشهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ واړه بول اوکړل او عمرؓ د نبی ﷺ شا ته د اوبو کوزه نيولے ولاړ وو، رسول الله ﷺ (چه کله دبولو نه فارغ شو نو وے) فرمائيل : دا څه دی اے عمر ؟ هغه وئيل : دا اوبه دی چه ته پرے اودس اوکړے ـ نبی ﷺ ورته اوفرمائيل : ماته داحکم نه دے شوے چه هر وارے زه بول اوکړم نو اودس دے کوم، اوکه چرے زه دا کار اوکړم نو زما دا کار به سنت شوے وو ـ (ابوداود، ابن ماجه)۔

**تشريح** : **مَا اُمِرْتُ كُلَّمَا بُلْتُ اَنْ اَتَوَضَّأَ**: مطلب دحديث دادے چه يو ځائے کښے نبي ﷺ متيازے اوکړے نوعمر فاروقؓ د اوبو کوزه ورورہ او د هغه شاته اودريدلو، نبي ﷺ چه فارغ شو، عمر فاروقؓ ته ئے اوفرمائيل : څه دی ؟ هغه وئيل : اوبه مے راوړيدی چه اودس پرے اوکړے ! نبي کريم ﷺ دده نظريه جوړه کړه اوداۓ ورته اوفرمائيل : د بول کولو نه پس ماته داحکم نه دے شوے چه زه به خامخا اودس کوم، اوس که رسول الله ﷺ دا کوزه اخستے وے، نو د عمر فاروقؓ په ذهن کښے به دا خبره ضروری ښکاره شوے وے چه د متيازو کولو نه پس به سمدستی اودس کول فرض او ضروری وی، اود بے اودسۍ په حالت کښے گرځيدل به جائز نه وی، اوبيا به ئے پرے خلق وهلے، او هغه شے به ئے په خلقو فرض کړے وے چه شريعت نه دے فرض کړے، نو څکه نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل : چه دا کار څه ضروری نه دے، هسے نه چه فرض ئے اوګنړے، نبي کريم ﷺ ډير زيات حکيم وو، د اعمالو مرتبے به ئے خلقو ته خودلے او د ملګرو ذهن سازی به ئے کوله، چه په غلو کښے واقع نشی۔ نو مطلب دا شو چه د متيازو وغيره نه فورا پس اودس کول مستحب دی، فرض او سنت مؤکد نه دی۔

٢ – بعضے وائی د (وضوء) نه مراد وضوء لغوی دے يعنے لاسونه وينځل پس د بول کولو نه ضروری نه دی، ليکن داخبره ظاهره نه ده۔

٣ – يا ددے مطلب دادے چه دبول کولو نه روستو ماته داحکم نه دے شوے چه زه دے خامخا استنجاء په اوبو سره اوکړم، بلکه په کانړو وغيره سره استنجاء کول هم جائز دی۔ ليکن اول مطلب ظاهر دحديث دے، کما قاله ولي الدين العراقي۔

**وَلَوْ فَعَلْتُ لَكَانَتْ سُنَّةً** : ١ – يعني که زه دا کار اوکړم چه دبول نه فورا پس خامخا اودس کوم نو دابه سنت يعنی واجبه طريقه شی زما په امت باندے، ياکه زه استنجاء په اوبو اوکړم نودابه په امت باندے لازمه طريقه شی، او رخصت به ختم شی، داپه نيز دهغه چا چه فعل دنبي ﷺ اومواظبت دهغه دليل دوجوب گنړی۔

٢ – دويم مطلب دادے چه دسنت نه مراد سنت مؤکده دے (أی : لو فعلت هذه الفعلة لكانت فعلتي سنة مؤكدة لازمة) يعنی که زه بول نه روستو اودس اوکړم هميشه دپاره نو دا

به سنت مؤکد شي په امت باندې، اوحال دا چه دا خو سنت مؤکد نه دې بلکه مستحب دې، او زما په همیش ړالی به مؤکد ګرځیدلې وې۔

**فائده** : ددې حدیث نه معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ هره خبره یا عمل کوی نو دا د الله تعالی په حکم کوی ۔ ۲ – دغه شان دا خبره هم معلومیږی چه د نبی کریم ﷺ سنت هم مامور بها دی، یعنی د نبی ﷺ په سنت باندې دعمل کولو حکم کړې شویدې، اګرچه هغه فرضی نه وی۔ ۳ – دغه شان نبی ﷺ به أدنیٰ څیزونه دخپل امت دآسانئ په خاطر پریخودل، دې دپاره چه هغه په امت باندې فرض نشی لکه په جَمع تراویح ئې پریخودلې، یا لکه دلته ئې دبول کولو نه فورا روسته اودس کول پریخودل ۔ وغیره۔

**درجة الحدیث** : رواه ابوداود وابن ماجة وسنده ضعیف، فیه عبد الله بن یحیی بن التوأم قال الحافظ : ضعیف، کما فی تعلیق المشکاة، والمرعاة، وضعیف سنن ابن ماجة (۷۰)۔ لیکن ددې پشان بل روایت د ابن عباس ابوداود رقم : ۳۷۶۰، کتاب الأطعمه کښې دی : (ان رسول الله ﷺ خرج من الخلاء فقدم الیه طعام فقالوا : الا نأتیك بوضوء ؟ فقال : انما امرت بالوضوء اذا قمت الی الصلاة) وسنده علی شرط البخاری ۔

نو دا حدیث شاهد جوړېږی ددې حدیث په دې معنیٰ چه اودس د بول او طعام نه روستو ضروری نه دې، بلکه د اودس حکم صرف د مانځه په وخت دې، فمعنی الحدیث صحیح، والله اعلم۔

---

۳۶ – وَعَنْ أَبِىْ أَيُّوْبَ وَجَابِرٍ وَأَنَسٍ : اَنَّ هٰذِهِ الْآيَةَ لَمَّا نَزَلَتْ : ﴿ فِيْهِ رِجَالٌ يُحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ ﴾، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : يَا مَعْشَرَ الْاَنْصَارِ، اِنَّ اللّٰهَ قَدْ اَثْنٰى عَلَيْكُمْ فِى الطُّهُوْرِ فَمَا طُهُوْرُكُمْ ؟ قَالُوْا : نَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ وَنَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَنَسْتَنْجِىْ بِالْمَاءِ. قَالَ : فَهُوَ ذٰلِکَ فَعَلَيْكُمُوْهُ ). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه .

---

**ترجمه** : جناب أبو أیوبؓ، جابرؓ او أنسؓ نه روایت دې دوئ فرمائی چه کله دا آیت

نازل شو ﴿ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ ﴾ (ترجمه : په دے مسجد قباء کښے داسے خلق دی چه دوئ ددے سره مینه لری چه ځان ښه پاك کړی، او الله هم د پاکی خوښونکو سره مینه کوی)، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اے دانصارو ټولګیه ! بیشکه الله تعالیٰ په پاکیٔ کولو سره ستاسو صفت کړیدے نو ستاسو هغه پاکی څه ده ؟ هغوئ اووئیل : مونږ مانځه دپاره اودس کوو، اود جنابت نه غسل کوو، او په اوبو باندے استنجاء کوو۔ نبی ﷺ اوفرمائیل : هان ! هغه داده نو دا لازم اونیسئ ۔ (ابن ماجه)۔

**تشریح** : فَعَلَيْكُمُوْهُ : یعنی لازم اونیسئ داکارونه، دا امر مشترك دے د وجوب اوندب ترمینځه۔ دوه څیزونه الوضوء للصلوة (۲) والغسل من الجنابة فرض دی، او استنجاء بالماء مندوب ده۔

**فائده** : په دے روایت کښے صرف دا خبره راغله چه اهل قباء به صرف په استنجاء کښے اوبه استعمالولے اوجمع بین الماء والأحجار په کښے نشته۔ اودا روایت دخپلو شواهدو د وجے نه صحیح دے، نور سندونه ئے صحیح دی ۔ او کوم روایت د بزار کښے چه دا الفاظ دی (انا نتبع الحجارة الماء) نودا روایت ضعیف دے۔ فیه محمد بن عبد العزیز وقد ضعفه البخاری والنسائی وغیرهما وایضا فیه عبد الله بن شبیب وهو ضعیف ۔ مرعاة (۲/۷۲) تفسیر ابن کثیر (۲/۳۹۰)۔

**فائده:** ۱ – نبی کریم ﷺ عالم الغیب نه دے څکه تپوس کوی۔

۲ – صحابه کرامو دا عمل دخپل ځانه کړیدے لیکن د الله تعالی خوښ شویدے، او نبی کریم ﷺ د دین عمل تحسین اوکړو نو دین شو ۔

۳ – بعضے اهل علم لکه امام مالك، حذیفه بن الیمان او ابن عمر او ابن الزبیر نه نقل دي چه استنجاء په اوبو باندے صحیح نه ده، امام مالك فرمائی : نبی ﷺ په اوبو استنجاء نه ده کړے، مالکیه دلیل وائی : څکه چه دا طعام دے۔ لیکن ددے علماؤ او صحابو عمل بناء دے په اجتهاد او عام عادت باندے چه کاڼړی به ئے استعمالول، مګر د رسول الله ﷺ نه عملاً، تقریراً او قولاً په اوبو باندے استنجاء ثابت ده۔ عملی حدیث امام بخاری باب الاستنجاء بالماء (۱/۲۷) کښے د انس په روایت راوړیدے (کان النبی ﷺ اذا

خرج لحاجته أجئ انا وغلام معنا اداوة من ماء) يعنى يستنجى به۔

**دارنګه امام ترمذی بشرح التحفه (۳۱/۱) کښې راوړيدې :** عن عائشة قالت مرن ازواجكن ان يستطيبوا بالماء فانى استحييهم فان رسول الله ﷺ كان يفعله.

**او قولی حدیث دا حدیث الباب شو۔ وتفصیله فی التحفه (۳۲/۱)۔**

**درجة الحديث :** رواه ابن ماجة . قال الحاكم : هذا حديث صحيح الاسناد وأقره الذهبى لكن قال الحافظ ابن حجر فى التلخيص (۱۱۳/۱) : اسناده ضعيف، وكذا قال الألبانى : سنده ضعيف، ولكن له شواهد ذكر الشيخ بعضها فى صحيح أبى داود ، كذا فى تعليق المشكاة : ۱۱۸/۱. وبعض الشواهد فى ابن كثير (۳۸۹/۲) . وقد روى الحاكم من حديث مجاهد عن ابن عباس اصل هذا الحديث وليس فيه الا ذكر الاستنجاء بالماء حسب . مرعاة (۷۳/۲) والتلخيص (۱۱۲/۱). فالحديث صحيح۔

---

**۳۷ – وَعَنْ سَلْمَانَ ﷺ قَالَ : قَالَ بَعْضُ الْمُشْرِكِيْنَ وَهُوَ يَسْتَهْزِئُ : اِنِّى لَارٰى صَاحِبَكُمْ يُعَلِّمُكُمْ حَتّٰى الْخِرَائَةَ. ( قُلْتُ : أَجَلْ. اَمَرَنَا اَنْ لا نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ وَلَانَسْتَنْجِىَ بِاَيْمَانِنَا وَلَا نَكْتَفِىَ بِدُوْنِ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ لَيْسَ فِيْهَا رَجِيْعٌ وَلَا عَظْمٌ ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَأَحْمَدُ وَاللَّفْظُ لَهُ .**

**ترجمه :** جناب سلمانؓ فرمائی : ځینې مشرکانو د توقو اوخندا په طور دا اووئیل چه زه ستاسو سردار (یعنی رسول الله ﷺ) وینم چه هغه تاسو ته هر څیز ښائی تردې چه د قضائې حاجت ته د ناستې طریقه هم درښائی ما ورته اووئیل : هاؤ ! مونږ ته ئې حکم فرمائیلې دې چه قبلې طرفته به نه مخ کوو، اونه به په ښی لاسونو باندې استنجاء کوو، اوددرې کانړو نه به په کمو باندې اکتفاء هم نه کوو، چه په دې درېؤ کښې به خوشائی او هډوکی هم نه وی۔ (مسلم، احمد)۔

**تشریح :** حَتّٰى الْخِرَائَةَ :۱ – بول ته وائی۔ ۲ – یا کیفیت او هیئت دبول ته وائی،بکسر الخاء او بفتحها۔

۱ – سلمانؓ باندے یو مشرك اعتراض اوکړو چه ستاسو پیغمبر ﷺ په هر څه کښې ګوتے وهی هرڅه درته ښائی، تردے چه دمتیازو طریقه هم درښائی، دائے ورپورے مسخرے کولے۔نو سلمانؓ ورته د جواب ورکولو سره دعوت هم ورکړو۔

أَجَلْ : حاصل دجواب د سلمانؓ دادے چه په دے کارونو کښې کومه خبره قابل د اعتراض ده ! حال دا چه دے کښې څه شر او ضرر نشته اونه دڅه عیب خبره ده، بلکه ټول ښائسته آداب دی ، ټول خیر خیر دے۔

---

۳۸ – وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حَسَنَةَ ﷺ قَالَ : خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَفِيْ يَدِهِ الدَّرَقَةُ فَوَضَعَهَا ثُمَّ جَلَسَ فَبَالَ اِلَيْهَا فَقَالَ بَعْضُهُمْ : اُنْظُرُوْا اِلَيْهِ يَبُوْلُ كَمَا تَبُوْلُ الْمَرْأَةُ ؟، فَسَمِعَهُ النَّبِيُّ ﷺ فَقَالَ : وَيْحَكَ أَمَا عَلِمْتَ مَا اَصَابَ صَاحِبَ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ كَانُوْا اِذَا اَصَابَهُمُ الْبَوْلُ قَرَضُوْهُ بِالْمَقَارِيْضِ فَنَهَاهُمْ فَعُذِّبَ فِيْ قَبْرِهِ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه

۳۹– وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْهُ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى .

**ترجمه** : جناب عبد الرحمن بن حسنهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ مونږ ته په داسے حالت کښے را اووتلو چه په لاس کښے ئے ډهال وو، هغه ئے کیخودلو او بیا کیناستلو او هغه ډهال طرفته ئے واړه بول اوکړل۔ (دے لیدو سره) یو مشرك اووئیل : ده ته اوګورئ داسے واړه بول کوی څنګه چه ښځه واړه بول کوی ۔ دا خبره نبی ﷺ واوریده او وے فرمائیل : په تا افسوس دے آیا ته هغه څیزونه پیژنے چه د بنی اسرائیلو ملګری ته اورسیدل (یعنے عذاب)، بنی اسرائیلو چه به متیازے کولے او دهغوئ جسم یا کپړے ته به متیازے اولګیدلے نو هغه به ئے قینچی سره پریکولو۔ نو بنی اسرائیلو ته یو سړی (دے حکم منلو نه) خلق منع کړل نو هغه د قبر عذاب کښے مبتلا کړے شو ۔ (أبوداود، ابن ماجه)۔ اونسائی دا حدیث عبد الرحمن نه اوهغه دابو موسی نه روایت کړے دے۔

## تعارف : د عبد الرحمن بن حسنه ﷺ :

دا د شرحبیل بن حسنه ورور دے، صحابی دے، صرف دا یو حدیث ترے نقل دے، او حسنه ئے د والدے نوم دے، دپلار نوم ئے المطاع بن عبد الله دے۔

**تشریح** : **الدَّرَقَةُ** : دڅرمنے ډهال ته وائی اودا به ئے ددے دپاره دځان سره ګرځولو چه په حالت د بول کښے دا مخکښے اودروی، دپاره دپردے کولو، اوددے دپاره هم چه دمانځه دپاره ستره شی۔اودا کار ضروری دے۔

**اُنظُرُوا اِلَيهِ يَبُولُ كَمَا تَبُولُ الْمَرأَةُ** : (داسے متیازے کوی لکه د ښځو پشان) تشبیه په دوه شیانو کښے ده (۱) یو په قعود (ناسته) کښے (۲) دویم په تستر (پرده) کښے، ځکه دجاهلیت په دور کښے به عربو پرده نه کوله۔ ددے نه معلومیږی چه دے معترض تردے وخته پورے عام خلق په بول کښے په ولاړه لیدلی دی ځکه تعجب کوی۔ لیکن نبی کریم ﷺ چه ورته قیصه د بنی اسرائیلو ذکرکړه، ددے مطلب دادے چه ستا د خندا مطلب دادے چه ته خلق منع کړے دمعروف کار نه لکه چه صاحب د بنی اسرائیلو چه به خلق دښه کارونو نه منع کول، نو زما کیناستل بولو دپاره ښه کار دے نو ته ولے ددے ښه کار نه خلق منع کوے۔

**أَمَا عَلِمْتَ مَا اَصَابَ صَاحِبَ بَنِیْ اِسْرَائِيلَ** : أما کښے (ما) نافیه ده، اوما أصاب کښے ما موصوله ده، مراد ترینه عذاب دے، یعنی ته نه ئے خبر په هغه عذاب چه یو بنی اسرائیلی ته رسیدلے دے؟ هغه دا چه په هغوئ کښے دا حکم وو چه کله به بول دهغوئ جامے ته اورسیدل نو هغه به په وینځلو نه پاکیدل بلکه هغه به ئے پریکوله، نو دے شخص به د هغه معروف کار نه منع کوله، چه جامے ولے پریکوئ؟ نو الله تعالیٰ ورته عذابِ قبر ورکړو۔ نو د (اصابهم) نه مراد (اصاب ثوبهم) دے لکه دا په بل روایت کښے ذکر دے۔ رواه ابوداود: ۱۲/۱۔

**قَرَضُوهُ بِالْمَقَارِيضِ** : یعنے ګنده ځائے به ئے په قینچیانو سره پریکولو دا هغه اِصر أو أغلال دی چه په بنی اسرائیلو باندے وو، دا ګران احکام وو، دے امت ته أسانی شوه چه جامه وغیره ئے د نجاست نه په اوبو سره پاکیږی۔ بل حکم دا وو چه د بنی اسرائیلو مونځونه بغیر دمسجد نه نه کیدل، لکه دا د حدیث نه معلومیږی (وجعلت لی الأرض

كلها مسجدا وطهورا).

**درجة الحديث** : رواه ابوداود وابن ماجة رقم: ٣٤٦، وسنده صحيح، انظر صحيح النسائي ص : ٩.

---

٤٠ – وَعَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ قَالَ :( رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ اَنَاخَ رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ ثُمَّ جَلَسَ يَبُوْلُ اِلَيْهَا، فَقُلْتُ : يَا اَبَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ؟ اَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هٰذَا ؟ قَالَ : بَلْ اِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذٰلِكَ فِي الْفَضَاءِ فَاِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْئٌ يَسْتُرُكَ فَلَا بَأْسَ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ .

**ترجمه** : جناب مروان الأصفرؒ فرمائي : ما ابن عمرؓ اوليدلو چه قبلې طرفته ئې خپله سورلئ کينوله، بيا هغه کيناست او سورلئ ته ئې واړه بول اوکړل ـ (دے ليدو سره) ما عرض اوکړو : ابو عبدالرحمن (دا، د ابن عمرؓ کنيت دے) ! آيا داسے قبلې طرفته مخ کولو سره بول کولو نه منع نه ده راغلې ؟ وے فرمائيل : بيابان کښے دے نه منع فرمائيلې شويده، ليکن کله چه ستا او د قبلې ترمينځه څه څيز حائل وی نو بيا څه حرج نشته ـ (أبوداود).

**تعارف : د مروان الأصفر رحمه الله :**

دپلار نوم ئې خاقان، يا سالم دے، کنيه ئې ابو خليفه البصری ده، ثقه تابعی دے ـ

**تشريح** : فَلَا بَأْسَ : دا رائے د ابن عمرؓ ده، دا احتمال هم شته چه د نبی کريم ﷺ د عمل نه ئې فهم کړے وی ، کله چه ئې د حفصةؓ دکور دپاسه نبی کريم ﷺ اوليدلو مستدبر القبله، نو ده دا استدلال اوکړو چه نهی مختص ده په بنيان پورے، اوده سره مرفوع قولی حديث نشته، نفس احتمال حجت نه دے، ليکن د ضرورت په بناء په دے باندے هم عمل کول جواز لری ـ ددے حديث پوره تشريح ابتداء د باب کښې تيره شويده.

**درجة الحديث** : اسناده حسن وصححه جماعة كما بينته فى صحيح السنن رقم (١٨١) قاله الألبانى. وقال المباكفورى فى المرعاة (٢/٧٥) وذكر فى الفتح (١/١٢٠) انه اخرجه ابوداود والحاكم باسناد حسن.

---

۴۱ – وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنِّيْ الْاَذٰى وَعَافَانِيْ ). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه .

**ترجمه** : جناب أنس ؓ فرمائي: نبي كريم ﷺ به چه كله د بيت الخلاء نه رابهر شو نو دا دعاء به ئې كوله : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنِّيْ الْاَذٰى وَعَافَانِيْ (ترجمه : هغه ذات لره ثناء ده چه مانه ئې تكليف ده شي لرې كړو او ماله ئې عافيت راكړو). (ابن ماجه).

**تشريح** : اَلْاَذٰى : په معنى د مُؤْذِيْ (ضررناك) شئ سره دے، شامل دے بول وبراز ته هم، اونورو ضررى شيانو ته هم، باقي تشريح ئې مخكښې تيره شويده.

**درجة الحديث** : رواه ابن ماجة : دا روايت ضعيف دے فيه اسماعيل بن مسلم المكي وهو متفق على تضعيفه، قاله الألباني في التعليق (۱/ ۱۲۰) . ليكن سيوطي په رموز د سعيد بن منصور كښې دے حديث ته د(ص) علامه وركړيده، يعني دا روايت صحيح دے، دا كتاب سيوطي سره موجود وو، نن صبا سنن سعيد بن منصور نه ملاويږي .

او دے روايت ته حافظ په الفتوحات الربانيه (۱/ ۴۰۵) كښې حسن حديث وئيلے دے د وجې د كثرت الطرق نه چه هغې نه معلوميږي چه دا روايت په مجموع الطرق سره حسن درجې ته رسيږي چه هغه طرق په كشف النقاب : ۱/۲۳۸، او درس ترمذي: ۱/۱۸۱، كښې هم ذكر شوي دي. چه د هغې نه معلوميږي چه ان شاء الله دا حديث به د نبي عليه السلام وينا وي. او شيخ الباني دے روايت ته بمجموع الطرق ضعيف وائي، انظر الضعيفة جلد (۹) وكذا ابن السني رقم (۲۲، ۲۵، والارواء رقم : ۵۳).

---

۴۲ – وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ؓ قَالَ : لَمَّا قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ قَالُوْا : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! اِنْهَ أُمَّتَكَ اَنْ يَسْتَنْجُوْا بِعَظْمٍ اَوْرَوْثَةٍ اَوْحُمَمَةٍ، فَاِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ لَنَا فِيْهَا رِزْقًا، فَنَهَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَنْ ذٰلِكَ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : جناب ابن مسعود ؓ فرمائي : كله چه د جناتو (پيريانو) وفد نبي كريم ﷺ ته راغے نو هغوئ اووئيل : يا رسول الله ! خپل امت ددے نه منع كړه چه په هډوكي يا

خوشائي اويا سكرو باندې استنجاء اوكړي (اودس اوچ كړي)، ځكه چه الله تعالى مونږ دپاره په دې كښې رزق مقرر كړيدې. نو رسول الله ﷺ مونږ ددې څيزونو نه منع كړو. (أبوداود).

**تشريح** : اِنْهَ : دا صيغه دأمر ده د باب نهى ينهىٰ نه، يعنى امت دې منع كړه د استنجاء كولو نه په دې شيانو باندې.

اَوْ حُمَمَةٍ : بضم الحاء وفتح الميم : هغه لرګى اوهډوكې چه اوسوزى او سكاره شى.

دې حديث كښې په درې څيزونو باندې داستنجاء كولو نه منع راغلې ده خو ددې سره دهر موذى شى اوګندګى څيز باندې د استنجاء كولو نه منع راغلې ده. ځكه علت په دې كښې (١) ياخو دادې چه صفائى نه راولى (٢) دويم : بعضې ددې نه دجناتو او دهغوئ دحيواناتو خوراكه ده، نو هغوى ته پرې ضرر ملاويږى. او هرچه سكاره دى نو په دې سره خو صفائى نه راځى يا داچه ددې نه جنات وغيره فائده اخلى چه اور پرې بلوى نو داد هغوئ درزق سبب شمار شويدې نو ځكه ترې منع راغله.

**درجة الحديث** : رواه ابوداود وسنده صحيح كما في صحيح أبي داود رقم (٣٩).

* * * * * * *

# باب السواک

## د مسواک وهلو بیان

دا باب ئے مستقل راوړو: ١ - ځکه چه احکام اومسائل ئے ډیر دی.

٢ - دویمه وجه داده چه مسواك دخصوصیاتو داوداسه نه نه دے، بلکه ډیرو مقاماتو کښے استعمالیږی. دے وجے نه ئے مستقل باب کښے راوړو.

**مناسبت** : د قضاء حاجت نه چه انسان فارغ شی نو بیا اودس کول پکار وی چه طهارت حاصل شی، اود اودس په ابتداء کښے مسواك وهل سنت عمل دے نو هغه ذکر کوی.

### د مسواک او سِواک لغوی معنیٰ :

١ - دا لفظ د سَاك يسُوك سُوگا نه راوتے دے چه ددے معنیٰ ده مږل، رگړول.

٢ - بعضے وائی: دا د تَسَاوَكَ الإِبِلُ نه ماخوذ دے چه ددے معنیٰ ده: داوښانو اخوا دیخوا طرفته مائل کیدل. مناسبت ئے ظاهر دے چه مسواك هم مږلے کیږی او اخوا دیخوا مائل کولے شی. (النهاية لابن الأثير : ٢/٤٢٥).

او مسواك اوسِوَاك په دوه معنو کښے استعمالیږی: ١- یو هغه لرگے چه په هغے باندے مسواك کیږی. ٢ - دویم: استعمال العود، یعنی نفسِ فعل (مسواك کولو) ته وائی، اودا په کسره د سین سره دے، کما قاله الجزری وحکاه النووی عن أهل اللغة. اودا دواړه معنے په باب السواك کښے اخستے شی، خو بناء په اوله معنیٰ به مضاف حذف وی. ای استعمال السواك (العود).

دلته یو بل لفظ هم استعمالیږی چه هغه استنان دے، دا د باب استفعال نه دے اود سَنّ نه مشتق دے په معنیٰ د مسواك مږلو سره، لیکن ددے لفظ اطلاق صرف په غاښونو

مړلو سره کیږی، برابره خبره ده چه په مسواك سره وی (لکه استن بالسواك) اوکه بغیر دمسواك نه وی (لکه استاك، واستن بالأصابع). دا خو لغوی تحقیق وو.

## د مسواك متعلق لس (١٠) مسائل :

### ١ - اوله مسئله : د مسواك شرعاً مقدار څه دے ؟

نو په دے خبره ځان پوهه کړه چه د مسواك دپاره څه حد شرعی نشته دے ځکه چه دے باره کښې صریح نصِ نه دے راغلے. اوکومو علماؤ چه یو لیشت شرط کړیدے نو په دے باندے هیڅ صحیح دلیل نشته، هسے عقلیات دی۔

د ټولو علماؤ او فقهاؤ په دے اتفاق دے چه شرعی مقادیر او اندازے په قیاسونو سره نه ثابتیږی، بلکه ددے بیان شریعت ته سپارل شویدے. لکه داخبره ملاعلی القاری په المرقات : ١٩٦/٨) کښې هم ذکر کړیده.

نو هر هغه لرګے مسواك جوړیدے شی چه د ژبے آخر سرته رسیږی او غاښونه اوخله پاکوی، لکه حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ به په ژبه باندے مسواك مړلو تردے چه اع اع به ئے اوکړل.

اود یو لیشت خبره ځکه خطاء ده چه روستو حدیث د ابو سلمهؓ راځی چه دصحابو مسواکونه به دومره وو چه غوږونو باندے به ئے کیخودل نو هغه خو غټ نشی کیدے چه انسان ورسره مونځ اوکړے شی. لکه دا کار به زید بن خالدؓ کولو :

وسواكه على أذنه موضع القلم من أذن الكاتب . واسناده صحيح. أخرجه ايضا ابو داود : ١١/١، والترمذی : ٩/١، واحمد : ١١٦/٤.

### ٢ - دویمه مسئله : کوم لرګے به استعمالوی ؟

نو مسواك په هر لرګی جائز دے مګر عود الأراك (دکیکروُنے لرګے) استعمالول مستحب دی، دلیل داستحباب : حدیث دعبد الله بن مسعودؓ دے (انه كان يجتنى سواكا من اراك للنبی ﷺ .... الحديث . أخرجه ابو داود الطيالسی برقم : ٢٥٥، واحمد : ٤٢/١، ابو نعيم فی الحلية : ١٢٧/١، والهيثمی فی المجمع : ٢٨٩/٩، والحاكم : ٣٢٧/٣، كما

فى الارواء : ١٠٤/١، رقم : ٦٥، واسناده : حسن۔

نودا افضل دے۔ اونور لرگی استعمالول هم جواز لری ۔

**دليل دجواز** : حديث دمعاذ بن جبل دے مرفوعا : (نعم السواك الزيتون من شجرة مباركة يطيب الفم ويذهب الحفر، وهو سواكى وسواك الأنبياء قبلى ۔

أخرجه الطبرانى فى الأوسط باسناد فيه احمد بن محمد بن محيض كما فى تلخيص الحبير : ٧٢/١، ومجمع الزوائد : ١٠٥/٢ ۔ حفر : دغاښونو زيړ والے۔

٢ - دويم : حديث د عائشةؓ دے فرمائى چه عبد الرحمن بن أبى بكرؓ ته نبى كريم ﷺ اوفرمائيل : مسواك درسره شته ؟ نو هغه سر اوخوزولو، نبى كريم ﷺ هغه استعمال كړو (وانه من جريده رطبه) أخرجه البخاري ۔ اودا ديوے لمدے څانگے نه جوړ وو۔

٣ - تلخيص الحبير (٧٢/١) كښے حافظ فرمائى : معرفه الصحابه كښے ابو نعيم په ترجمه دابو زيد الغافقى كښے وائى :

الأسوكة ثلاثة : اراك فان لم يكن اراك فعنم او بطم۔ او عنم زيتون، او بطم شنئ ته وائى ۔ يعنى كيكر، زيتون او شنئ نه جوړول جائز دى۔

٣ - **دريمه مسئله** : مسواك نارينه اوزنانه دواړو دپاره سنت دے، په دے كښے د دواړو هيڅ فرق نشته، څكه نبى كريم ﷺ نارينه او زنانه دواړو ته را ليږل شويدے۔ حديث كښے دى : (لولا أن اشق على امتى لأمرتهم بالسواك .... الحديث) كښے امت دواړو ته شامل دے ۔ او احاديثو كښے د زنانو دپاره هم مسواك كول راغلى دى، لكه مجمع الزوائد : ١٠٠/٢، كښے دى : يزيد بن الأصم (دميمونےؓ خورئے) فرمائى : ميمونے رضى الله عنها به مسواك هميشه دپاره وهلو مگر كله چه به ئے څه كار كولو نو كيبه ئے خودلو، بيا به چه فارغه شوه نو را وابه ئے خستو۔

المطالب العاليه : ٢٣/١، كښے دى : كان أصحاب رسول الله ﷺ يوثقون مساويكهم فى ذوائب سيوفهم والنساء فى خمرهن ۔

نو كومو علماؤ (لكه ابن عابدين فى رد المحتار : ٧٨/١، او صاحب الهدايه : ٢٢١/١، فى الصوم) چه دا خبره كړيده چه زنانه به ژاوله ژوى څكه دا قائم مقام دمسواك

ده په حق ددوئ کښې. نو **اول** خو په دے خبره څه شرعي دليل نشته، **دويم** دا چه : د نبی کريم ﷺ د نيمائی نه زيات امت (زنانه) دمسواك د فضائلو نه محروم ول دی. لهذا د دوئ دا خبره غلطه او په بے تحقيقئ باندے بناء ده.

٤ - **څلورمه مسئله** : د هرچا مسواك استعمالول جائز دی، کله چه اجازت وی، زنانه، سړی او ماشومان ټول په دے کښې مره برابر دی. اوپه دے کښې رد دے په هغه حنفی فقهاؤ باندے چه هغوئ وائی : چاچه د بل چا مسواك اووهلو نو غټ گنهگار شو او مونځ ئے نه کيږی. او په عوامو کښے دا خبره هم مشهوره ده چه چا د بل چا مسواك اووهلو نو گويا که د هغه ذکرئے په خله کښے اووهلو. دا بے بنياده خبره ده.

**دليل** په جواز باندے : ١- حديث دعائشة دے. قالت : كان للنبي ﷺ سواك يستاك فيعطيني السواك لأغسله فأبدأ به فاستاك، ثم أغسله وأدفعه اليه. رواه ابوداود : ١٣/١.

دلته نبی ﷺ او عائشة دواړو يو مسواك وهلے دے. او مخکښے د عبد الرحمن بن ابی بکر روايت تير شو (من جريده).

٥ - **پنځمه مسئله** : په روژه کښے صبا اوبيگاه مسواك استعمالول جائز دی. په دے کښے رد دے په قول د امام شافعی باندے څکه هغه وائی : مازيگر کښے به ئے نه وهی. دليل دا وائی چه حديث کښے راغی (لخلوف فم الصائم أطيب عند الله من ريح المسك) نو کوم شے چه الله خوښوی د هغے زائل کول مناسب نه دی.

وجه درد داده چه دا استدلال ډير بعيد دے، څکه چه (خلوف) بد بوئی د معدے نه خارجيږی نه دخولے نه.

**خلوف** : د خلے د بوئی هغه تغير ته وائی چه د معدے د خالی کيدو په وجه د روژه دار دخلے نه خيژی.

او دليل دجواز دادے چه أمر بالسواك باره کښے چه کوم احاديث راغلی دی هغه مطلق دی، وقت دون وقت پورے خاص نه دی، نو تخصيص دمسواك وهلو په يو وخت پورے صحيح نه دے، مگر په دليل سره اودليل دلته نشته. بلکه دليل ددے په خلاف موجود دے هغه دا چه :

عبد الرحمن بن غنم فرمائي : ما دمعاذ بن جبل" نه تپوس اُوکړو: اتسوك وأنا صائم ؟ قال : نعم ! قلت :أی النهار، قال : غدوة وعشية. قلت : ان الناس يكرهونه عشية ويقولون : ان رسول الله ﷺ قال : لخلوف فم الصائم الخ، قال : سبحان الله ! لقد أمرهم بالسواك وما كان بالذی يأمرهم ان ينتنوا أفواههم عمدا ما فی ذلك من الخير شئ بل فيه شر.

(كذا فی تلخيص الحبير ص :۱۱۳، والارواء ۱/۱۰٦، واسناده جيد).

يعني د روژه په وخت مسواك نه وهلو کښې خير نشته بلکه پدے کښې شر دے۔

۲ - دارنګ امام بخاری" باب منعقد کړيدے : باب السواك الرطب واليابس للصائم، وذكر عن عامر بن ربيعة قال : رأيت رسول الله ﷺ يستاك وهو صائم مالا أحصى أو أعد (بخاری : ۱/۱۵۹). عامر بن ربيعه فرمائي : نبی ﷺ د روژے په حالت کښې دومره ډير کرتے مسواك اووهلو چه شمارئے نه وو.

قال الحافظ : فی التلخيص : ۱/٦۲ : واسناده حسن.

اوکومه منع چه د علی او ابو هريره - رضی الله عنهما - نه په البيهقی : ٤/۲۷٤، او الدارقطنی : ۲/۲۰۳، کښې نقل ده نو دهغې سند ضعيف دے، او موقوف هم دے. انظر فتاوی الدين الخالص : ۱/٥۲٦.

## ٦ - شپږمه مسئله : آيا ګوتے نه د مسواك کار اخستے شی که نه ؟

نو سنت طريقه داده چه لرګے استعمال کړے شی، ليکن د ضرورت په بناء که لرګے ميسر نشی نو ګوته وهل هم جائز دی. او په دے باره کښې پنځه روايات راغلی دی او ټول ضعيف دی . نو صحيح خبره داده چه په ضرورت باندے محمول دی، يعنے کله چه مسواك نه وی نو غاښونه په ګوته صفا کول پکار دی خو د مسواك والا سنت پرے نه اداء کيږی .

اول روايت دهغه رواياتو نه دادے : (۱) طبرانی په الأوسط كما فی مجمع الزوائد ۲/۱۰۰، کښې دعائشة" نه روايت نقل کوی : قالت : قلت : يا رسول الله ! الرجل يذهب فوه أيستاك ؟ قال : نعم ! قلت : كيف يصنع ؟ قال : يدخل اصبعه فی فيه فيدلكه.

دا حديث ضعيف دے سند کښې ئے عيسی بن عبد الله الأنصاری دے وهو ضعيف.

التلخیص : ۱/ ۷۰۔

۲ – دویم روایت : عن أنس عن النبی ﷺ قال : یجزئ من السواك الأصابع.

(أخرجه البیهقی : ۱/ ۴۰، وفیه عبد الحکم القلمی قال البخاری : منکر الحدیث۔

۳ – روایت : علی بن ابی طالبؓ اودس کولو (فأدخل بعض اصابعه فی فیه ... (وفیه) هذا وضوء رسول الله ﷺ۔

یو خو په دے کښې نفی دمسواك نشته۔ دویم : ددے په سند کښې ابو مطر دے اودا مجهول دے (میزان الاعتدال : ۴/ ۵۷۴، وموسوعة رجال الکتب التسعة : ۴/ ۴۵۴).

۴ – روایت : عن کثیر بن عبد الله عن أبیه عن جده قال : قال رسول الله ﷺ : الأصابع تجزئ مجزی السواك اذا لم یکن سواك. وفیه کثیر وهوضعیف جدا ومتهم. اخرجه الطبرانی فی الأوسط ایضا.

۵ – روایت : عن عثمان انه کان اذا توضأ یسوك فاه بأصبعه. کذا فی التلخیص، ولم یذکر سنده (۱/ ۷۰)۔

اودا رنگ دا حمل دے په جواز باندے۔ نو معلومیږی چه ګوته دمسواك په ځائے نه ده قائم، صرف داچه دا جائز ده۔ او په فقه السنه (۱/ ۴۳، اورد المحتار : ۱/ ۷۸) کښې ئے چه ورته سنت وئیلے ده (چه دچا غاښونه نه وی نو ګوته وهل سنت دی) او استدلال ئے کړیدے په حدیث دعائشةؓ باندے کوم چه مخکښې تیر شو، نو دا خبره هم خطاء شوه ځکه چه حدیث دعائشةؓ ضعیف دے لکه چه تا اوپیژندلو۔ نو سنیت په ضعیف حدیث سره نه ثابتیږی --- امام نوویؒ په المجموع (۱/ ۲۸۲) کښې لیکی : چه کله مسواك موجود وی یا نه وی نو د مسواك سنیت په ګوته استعمالولو سره نه حاصلیږی۔

## ۷ - اوومه مسئله : فوائد السواك :

د مسواك ډیرے فائدے په احادیثو او اقوالو د علماؤ کښې راغلی دی، بعضے دهغے نه دادی : ۱ – السواك مطهرة للفم : خوله پاکوی۔ ۲– ومرضاة للرب : الله پرے رضا کیږی۔ (حدیث)۔ ۳ – په دے کښې امتثال او عمل کول دی په أمر د نبی کریم ﷺ۔

۴ – علی رضی الله عنه فرمائی : ان أفواهکم طرق للقرآن فاطهروها بالسواك (رواه ابن

ماجه وابونعیم باسناد ضعیف)۔
۵ – ابن عباسؓ فرمائی : فی السواك عشر خصال : مرضاة للرب ۔ رب خوشحالوی۔ ۶ – ومسخطة للشیطان – شیطان خفه کوی۔ ۷ – ومفرحة للملائکة : ملائك خوشحالوی۔ ۸ – جید للثة : اوریٔ مضبوطوی. ۹ – ویذهب الحفر : د غاښونو زیړ والے ختموی. ۱۰ – ویجلو البصر : نظر روښانه کوی. ۱۱ – ویطیب الفم : د خولے خوند مزیدار کوی۔ ۱۲ – یقلل البلغم : بلغم کموی. ۱۳ – وهو من السنة . ۱۴ – ویزید فی الحسنات : دیے سره نیکیٔ ډیریږی. (الدارقطنی :۱/ ۵۸، وسنده ضعیف فیه معلی بن میمون وهو ضعیف متروك)۔ سند اګرچه ضعیف دیے خو دا فوائد مسواك کښیے شته دیے۔
تلخیص الحبیر (۱/ ۷۱) کښیے نور فوائد ذکر دی، قشیری بلا سنده دأبو الدرداءؓ قول راوړیدیے چه په مسواك کښیے (۲۴) ګڼړ فوائد دی، غیر مذکور په کښیے دادی :
۱۵ – یرفع الصلاة الی سبعین درجة : مونځ ورسره اویا درجو ته رسی. ۱۶ – په رزق او مالداریٔ کښیے فراخی پیدا کوی. ۱۷ – دخلے بوئی لرے کوی. ۱۸ – صداع یعنی سردرد ورسره ښه کیږی. ۱۹ – دغاښونو درد ښه کوی. ۲۰ – دمخ درنړا اود غاښونو د پرق په وجه ورسره ملائك مصافحه کوی۔
رد المحتار (۱/ ۷۸) کښیے نور **فوائد** ذکر دی ۔ لکه : ۲۱ – یبطیٔ بالشیب : ویښته ورسره ډیر وخت پس سپینیږی. ۲۲ – یحد البصر : دید تیزوی. ۲۲ – شفاء لما دون الموت : مرګ نه علاوه د هریے بیماریٔ شفا ده ۔ ۲۳ – انه یسرع فی المشی علی الصراط : پل صراط باندیے انسان په جلتیٔ سره تیروی. ۲۴ – ویبیض الأسنان : غاښونه سپینوی. ۲۵ – ویهضم الطعام : خوراك هضم کوی. ۲۶ – ویزید فی الفصاحة : فصاحت زیاتوی. ۲۷ – ویقوی المعدة : معده مضبوطوی. ۲۸ – ویقطع المرة : ترخې اوبه ختموی. ۲۹ – ویسکن عروق الرأس : د سر رګونو ته آرام رسوی. ۳۰ – ویسهل خروج الروح : روح ورسره آسان اوځی. ۳۱ – اماطة الأذی : ضرر دفع کوی.
۳۲ – وأعلاها تذکیر الشهادة عند الموت : غټه فائده په کښیے داده چه د مرګ په وخت به ورته کلمه شهادت نصیب شی۔

مرقات (۳/۲) کښې ملا علي القاري فرمائي : په مسواك کښې (۷۰) اويا فوائد دي لکه څنګه چه په افيون کښې اويا (۷۰) ضررونه دي۔

## ۸ - اتمه مسئله : د مسواک وهلو څه طريقه ده ؟

نو کيفيت ئې په غابښونو کښې دادے چه مسواك به عرضا (په پلنو) وهي نه طولا (په اوږدو)، لکه په السنن الکبرٰی (۱/ ٤٠) والتلخيص (۱/ ٦٥) کښې روايات راوړيدي خو هغه ضعيف دي۔

۲ - او په ژبه باندے چه وهي نو کيفيت ئې دادے چه طولا به ئې وهي او د ژبے آخر سرته به ئې رسوی لکه مخکښې حديث تير شويدے چه نبي کريم ﷺ به پرے اُع اُع کولو۔

او په روايت د بخاری (۳۸/۱) او مسلم (۱۲۸/۱) کښې دی : ابو موسی فرمائي : اتيت النبی ﷺ يستن بسواك بيده يقول : اع اع، والسواك فی فيه کأنه يتهوع. وفی رواية مسلم : وطرف السواك علی لسانه. وفی لفظ احمد : وطرف السواك علی لسانه يستن الی فوق. قال الراوی : کأنه يستن طولا۔

اوګوتونيولو کښې چه کوم کيفيت رد المحتار (۷۸/۱) ذکر کړيدے او حواله ئې په ابن مسعودؓ ورکړيده نودا حديث مونږ چرته نه دے موندلے۔

## ۹ - نهمه مسئله : اوقات السواک کوم کوم دی ؟۔

د مسواك وهل په ډير اوقاتو کښې په احاديثو کښې ثابت دی، لکه :

۱ - دمضمضه په وخت۔ ۲ - مانځه ته اودريدو په وخت، ۳ - کورته داخليدلو په وخت، لکه روستو حديث راروان دے۔ ٤ - تهجد ته د پاڅيدو په وخت د اوداسه نه مخکښې (اذا قام للتهجد يشوص فاه بالسواك) . ٥ - عند النوم۔ : د اوده کيدو په وخت، لکه په حديث د ابو نعيم فی معرفه الصحابه کښې دی : ان رسول اللّٰه ﷺ ما نام ليلة حتی استن (يعنے رسول اللّٰه ﷺ به چه کله اوده کيدو نو خامخا به ئې مسواك کولو.

۹ - السواك لکل صلاة : هر مانځه ته اودريدو په وخت. ۱۰ - السواك بعد فراغه من کل شغل وعمل : د هرقسم کارنه فارغيدو په وخت . کما فی حديث ميمونة۔ ۱۱ - د خلے د بدبوئي په وخت. لکه ابن ابی شيبه کښې دی چه نبی ﷺ د يو سړی نه دخلے بدبوئي

محسوس کړه، ورته ئے اووفرمائیل : أما تستاك ؟ يعنے مسواك ولے نه وهے ؟۔

۱۲ – خوب نه را پاسیدو په وخت۔

## ۱۰ - لسمه مسئله : په کوم لاس مسواک وهل سُنت دی ؟۔

نودامسئله مخکښې په حدیث د عائشه باب آداب الخلاء کښې تیره شوه چه دوه قوله دی په کښې۔ ۱ – شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ وائی : دا د قبیلے د ازالة المستقذرات نه دے نو ګس لاس سره وهل ئے بهتر دی.

۲ – دویم قول دادے چه مسواك وهل سنت دی، او سنت طاعت د الله تعالی دے او قربت دے اوقربات او طاعات په ښی لاس سره کیږی ۔ اویل دلیل روایت دابوداود (۲۱۷/۲ ، کتاب اللباس باب الانتعال) دے کما مر عن عائشة وفيه : كان رسول الله ﷺ يحب التيمن ما استطاع فی شانه کله فی طهوره وترجله وتنعله قال مسلم : وسواکه واسناده صحیح۔

۳ – قول ثالث والا تفصيل کوی چه که مسواك د تطهير الفم دپاره وی لکه دخوب نه پاخی یا استنجاء نه پس نوګس لاس سره وهل بهتر دی، اوکه د تحصیل السنة ( د سنت عملی کولو) دپاره وی نو دا بیا مجرد قربت دے نو په ښی لاس سره وهل ئے بهتر دی ۔

**تنبیه** : برش وغیره استعمالولو هم هغه حکم دے کوم چه په ګوته کښے دے، چه په دے سره هم جائز دے لیکن سنت ورسره نه اداء کیږی، یعنے دا د مسواك پشان حکم نه لری، بلکه صرف کفایت په کښے دے، اوبه د مسواك فائدے په دے سره حاصلیږی۔ دارنګه دے سره دا شرط هم یادلرل پکار دی چه دا به دخنزیر دڅرمن نه نه وی جوړ ۔

---

## الفصل الأول - اولنے فصل

۱ – عَنْ أَبِی هُرَیْرَةَ ؓ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلٰی أُمَّتِیْ لَأَمَرْتُهُمْ بِتَأْخِیْرِ الْعِشَاءِ وَبِالسِّوَاکِ عِنْدَ کُلِّ صَلَاةٍ ). مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

**ترجمه** : جناب أبو هريرةؓ فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلی دے : که ما په خپل امت باندے دا خبره مشکله نه ګڼړلے نو مابه دوئ ته دا حکم ورکړے وو چه

ماسخوتن مونځ تاخیر سره کوئ، او هرمونځ دپاره مسواك کوئ۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلٰی أُمَّتِی لَأَمَرْتُهُم :

**فوائد** : ۱ – په دے حدیث کښے د نبی علیه السلام شفقت ته اوګوره په امت باندے چه فرمائی : زما په امت باندے دا ګرانیږی چه هر مانځه ته مسواك وهل پرے فرض کړم۔

۲ – هر حدیث دنبی کریم ﷺ وحی منزل نه ده، ځکه که وحی وے نو ځان ته نسبت کول صحیح نه وو، په (أَنْ أَشُقَّ) سره۔ او په دے معنی ورته وحی وئیلے کیږی چه د نبی کریم ﷺ په دے عمل باندے الله تعالیٰ رد نه دے کړے بلکه په دے باندے خوشحاله دے۔

۳ – الأمر للوجوب، اودا قاعده شرعیه ده، دے دپاره نور هم قرآنی او حدیثی دلائل شته دے، چه په خپل ځائے کښے به راشی۔

**سوال** : نبی کریم ﷺ خو سونړ ته په ډیرو ځایونو کښے دمسواك کولو امر کړیدے نو دلته څنګه فرمائی چه (لأمرتهم بالسواك) مابه ورته دمسواك امر کړے وے ؟۔

**جواب** : هلته کښے أمر للاستحباب دے، او په دے حدیث کښے معنیٰ داده چه (لأمرتهم وجوبًا ولزومًا) یعنی ما به ورته د فرض کیدو امر کړے وے۔ لکه چه دا د یو حدیث نه معلومیږی۔ نو دا دلیل دے چه امر دوجوب دپاره دے۔

۴ – دماسخوتن مونځ موخر کول عند الجمهور مستحب دی۔ اود امام شافعیؒ په نیز تقدیم ئے مستحب دے، لیکن قول اول راجح دے، وجه درجحان داده چه حدیث کښے منع د سمر بعد العشاء نه راغلے ده، نوکه مونځ وختی اوشی نوخوب به زر نه کوی نوقیصے به کوی، نو په دے ممنوع کار کښے به واقع شی۔ باقی اختلاف به روستو راځی۔

عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ : مسواك عند الوضوء کښے خو اتفاق دے چه سنت عمل دے، لیکن مانځه ته د اودریدو په وخت مسواك وهلو کښے اختلاف دے۔ (۱) عند الجمهور مانځه ته داودریدو په وخت کښے هم سنت عمل دے، او ظاهر ددے حدیث پرے دلیل دے، تاویلاتو ته ضرورت نشته دخپل مذهب ثابتولو دپاره۔ دغه شان عمل دصحابوؓ دلیل دے چه هغوئ به عند القیام الی الصلاة مسواك وهلو، دزید بن خالد الجهنی رضی الله عنه نه روایت مخکښے تیر شو، چه دده مسواك به همیشه دپاره په غوږ باندے پروت وو، دمانځه په

وخت کښې به ئې وهلو ۔ دغه شان بخاري (۱۲۲/۱) باب الجمعه کښې (مَعَ كُلِّ صَلَاةٍ) لفظ راغلے دے، چه دا دلالت کوی په اتحاد زماناً او مكاناً باندے، نو بناء په دے داحنافو تاویل باطل شو چه دلته مضاف حذف کوی ای عند وضوء كل صلاة، فتدبر !۔

۳ - دلیل : محققین متقدمین احناف هم وائی چه مسواك عند القيام الى الصلاة مستحب دے، لکه صاحب د بذل المجهود (٦١) کښې دتاتارخانیه نه دا نقل کړیدی چه : ويستحب السواك عندنا عند كل صلاة ووضوء۔

امام ابن الهمام په فتح القدير شرح الهدايه (۳۲/۱) کښې ليکی :

ويستحب في خمسة مواضع : اصفرار السن، وتغير الرائحة، والقيام من النوم والقيام الى الصلاة وعند الوضوء واول ما يدخل البيت، انتهىٰ.

وقال العلامة عبد الحي في عمدة الرعاية حاشية شرح الوقاية : ۶۳/۱ : ويستحب ايضا عند كل صلاة۔

او مسواك عند الصلاة کښې نکته داده چه دا حال د تقرب الى الله او مناجات دے نو پکار ده چه انسان په کمال نظافت سره الله تعالیٰ ته اودریږی او اهتمام دعبادت اوکړی۔

۲ - دویم قول : د متأخرینو احنافو دے، دوئ دا سنت نه منی، بلکه مکروه ورته وائی،

۱ - اوله وجه دا بیانوی چه په دے کښې خطره ده د راوتلو د وینې دخولے نه او اورئ زخمی کوی، او وینه راوتل خو ناقض للوضوء دے د دوئ په نیز نو د سنیت نه به په دے کار سره حرمت ته نقل شی ۔

لیکن ددے (۱) **جواب** دادے چه دا قیاس دے په مقابله د نص صریح کښې ۔اودا باطل دے، په دے باندے هیڅ دلیل نشته سوی د مذهبی حمایت نه ۔

(۲) دارنګ وینه راوتل عند الجمهور ناقض نه ده کما مر، دارنګه که لاړے غالبے وی په وینه باندے نو داحنافو په نیز هم اودس نه ماتیږی، نو بیا په صحیح حدیث باندے دعمل نه کولو دپاره ولے خامخا بهانے ګوری !۔

(۳) بلـه دا چه په آرام سره دے مسواك مږی چه اورئ نه وینه نه راوځی، نو دا بهانه به ئے هم ختمه شی۔

٢ - دويمه وجه دا بيانوي چه دے کښے ازاله دګندګئ ده نومسجد کښے دا کار نه دے پکار. ددے جواب شيخ محمد طاهر الفتني الحنفي په مجمع البحار (١،٥٨/٢) کښے ورکړيدے (كما في المرعاة: ٧٨/٢) چه مسواك عند الصلاة عبادت دے نو مسجد کښے کول پکار دی، اوکه ته وائې چه ګندګی راوځی نو جواب دادے چه په داسے طريقه ئے استعمال کړه چه لاړے وغيره ورسره اونه توکلے شی په نرم انداز سره ئے استعمال کړ اهـ.

٢ - دويم دليل : پدے حديث کښے تاويل کوی چه دلته مسواك عند وضوء کل صلاة مراد دے، دليل دا پيش کوی چه ابن خزيمه (٧٣/١) حاکم (٤٦/١) بخاری تعليقا (لأمرتهم بالسواك عند كل وضوء، ولمسلم : عند كل طهور) روايت کړيدے نو دلته مضاف حذف کوی. يعنی د هر مانځه په اوداسه کښے مسواك سنت دے.

ددے جواب دادے چه دلته دوه قسمه احاديث دی (١) يو عند كل وضوء ( د هراودس په ابتداء کښے) (٢) دويم : عند كل صلاةٍ ( هر مانځه ته اودريدو وخت کښے). اودا دواړه جدا جدا احاديث دی، په دواړو باندے جدا جدا عمل پکار دے يو په بل کښے داخلول او تاويل کول مناسب نه دیٌ، کله کله په دے بل حديث هم عمل کول پکار دی، خو الله دے دمقلدينو انصاف روزی کړی چه تاويل په حديث کښے يا آيت کښے اونه کړی نو ساعت پرے نه تيريږی، خامخا به حديث د خپل مذهب سره په زوره برابروی، داسے نه کوی چه حديث ته خپل مذهب ورواړوی اود خپل امام خبره هم عملی کړی چه : اذا صح الحديث فهو مذهبي. فيا للتقليد ! كم من عاقل ألقاه في ورطة الهلاك !.

نو که انسان ئے هميشه نه وهی نو کله کله خو په دے باندے عمل کول پکار دی چه دا احاديث ضائع نشی، خاصکر کله چه انسان د اودس نه پس خبرے اترے کړے وی. بله فائده داده چه مسواك سرو ښځو دواړو دپاره دے، لفظ د امت پرے دليل دے.

---

٢ - وَعَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ رضي الله عنه قَالَ : سَأَلْتُ عَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَبْدَأُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ قَالَتْ : بِالسِّوَاكِ ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : شريح بن هانئؒ فرمائی : ما د بی بی عائشهؓ نه تپوس اوکړو چه رسول الله

به چه کله کور ته داخل شو نو په څه شی به ئے شروع کوله ؟ هغے اوفرمائیل : په مسواك وهلو باندے ـ (مسلم)ـ

**تعارف د شریح بن هانئ** رحمه الله :

کنیه ئے ابو المقدام الکوفی ده، اود علی رضی الله عنه ملگرے دے، ډیرو غزواتو کښے ورسره حاضر شویدے، ثقه تابعی دے په سجستان کښے د عبید الله بن أبی بکره سره شریك قتل شویدے په سنه (٧٨) هـ کښے ـ

**تشريح** : دا حدیث دلیل دے چه نبی ﷺ په عام اوقاتو کښے مسواك وهلے دے تردے چه کور ته به ننوتو هم مسواك به ئے وهلو، نو مسواك وهل مستقل عبادت دے، داوداسه پورے خاص نه دے ـ

٢- ددے نه معلومه شوه چه د نبی علیه السلام د مسواك سره ډیره مینه وه هر وقت به ئے مسواك وهلو ـ ٣- د پردئ زنانه آواز عورت نه دے ـ ٤- د پردئ زنانه نه تعلیم زده کول یا د یوے مسئلے تپوس کول جواز لری کله چه فتنه ترے نه پیدا کیږی مثلا د هغے کیسټ اوری یا لاوډ سپیکر نه غائبانه د هغے آواز اوری ـ جائز دی ـ

---

٣ - وَعَنْ حُذَيْفَةَ ﷺ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا قَامَ لِلتَّهَجُّدِ مِنَ اللَّيْلِ يَشُوْصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : جناب حذیفهؓ فرمائی : نبی کریم ﷺ به چه کله د شپے تهجدو دپاره پاڅیدلو نو په خله به ئے مسواك مږلو ـ (متفق علیه)ـ

**تشريح** : يَشُوْصُ فَاهُ : شاص یشوص او ماص یموص په یوه معنیٰ سره دی یعنی مږل، ای یدلك اسنانه ـ ددے دوه معانی دی (١) یشوص فاه فی الوضوء : یعنے د اودس په وخت به ئے مسواك وهلو، دا معنیٰ کمزورے ده ځکه بیا د تهجدو ذکر کول بے فائدے کیږی، والتاسیس أفضل من التاکید، فتدبر ! (٢) دویمه معنیٰ : لکه چه د نورو حدیثونو نه معلومه ده چه نبی کریم ﷺ به دبالښت لاندے مسواك کیخودلو کله چه به دخوب نه

رابیدار شو نو مسواك به ئے وهلو، بیا به ئے (ان فی خلق السموات والأرض الخ آخری آیتونه دسورت آل عمران اولوستل، بیا به ئے اودس شروع کولو.

---

٤ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ : قَصُّ الشَّارِبِ وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ وَالسِّوَاكُ وَاسْتِنْشَاقُ الْمَاءِ وَقَصُّ الْاَظْفَارِ وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ وَنَتْفُ الْإِبْطِ وَحَلْقُ الْعَانَةِ وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ – يَعْنِي الْإِسْتِنْجَاءَ – قَالَ الرَّاوِيْ : وَنَسِيْتُ الْعَاشِرَةَ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ الْمَضْمَضَةَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِيْ رِوَايَةٍ :الْخِتَانُ بَدَلَ اِعْفَاءِ اللِّحْيَةِ، لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيْحَيْنِ، وَلَا فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ. وَلٰكِنْ ذَكَرَهَا صَاحِبُ الْجَامِعِ، وَكَذَا الْخَطَّابِيُّ فِيْ مَعَالِمِ السُّنَنِ عَنْ أَبِيْ دَاوُدَ بِرِوَايَةِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ .

**ترجمه** : بی بی عائشةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلی دے : لس څیزونه د فطرت نه دی (یعنے ددین خبرے دی) : (١) بریت واړه کول (٢) ږیره اوږدول (٣) مسواك کول (٤) پوزه کښے اوبه اچول (٥) نوکونه پریکول (٦) دجوړونو ځائے وینځل (٧) د ترخ وینښته ویستل (٨) د نامه لاندے وینښته خرئیل (٩) اوبو سره استنجاء کول (١٠) راوی وائی لسم څیز مانه هیر شو، ممکنه ده چه هغه خله کنګالول وی . (مسلم) . او یو روایت کښے (دویم څیز) ږیره اوږدولو په ځائے ختنه (سنت) کول دی . او صاحب مشکوه فرمائی : ما دا روایت نه په صحیحینو (بخاری، مسلم) کښے بیاموندے دے اونه په کتاب الحمیدی کښے (چه دصحیحینو جامع دے)، البته دا روایت صاحب د جامع الأصول (په خپل کتاب کښے) ذکر کړے دے دغه شان خطابی په معالم السنن کښے د أبوداود په حواله د عمار بن یاسر روایت سره نقل کړے دے .

**تشریح** : عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ : د فطرت درے معانی دی، باب القدر کښے تیرے شوی دی، دلته یا سنه الأنبیاء مراد دے، یعنی دا سنت، الله تعالیٰ انبیاؤ دپاره غوره کړیدے، او مونږ ته ئے د هغوئ د اقتداء حکم کړیدے، نو ګویا چه دا د هغوئ جبلی اوفطری أمر وو،

چه دوئ پرے پیدا شوی وو ځکه ورته فطرت وائی۔ (۲) یا مراد طبع الانسان ده، یعنی دهر انسان طبیعت دا کارونه ښه ګنړی، د طبیعت د انسان سره موافق دی۔

**وَاِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ :**

## ﴿ ازالة الخفاء عن مسئلة اعفاء اللحیٰ ﴾

د ټول امتِ مُسلمه په دے خبره اتفاق دے چه ګیره د قبضے نه کمول ګناه ده، صرف د علامه مودودی صاحبؒ اود بعضے دکتورانو تحقیق دادے چه دګیرے حد نشته، لیکن مونږ وایو چه احادیثو کښے اعفوا اللحیٰ، ارخوا اللحیٰ الفاظ راغلی دی نو دائے شرعی حد دے، چه ګوتے مه وروړه۔ دارنګ نور دلائل روسته راځی۔

البته د قبضے نه چه زیاته وی دهغے وهل څنګه دی؟ په دے کښے اختلاف دے :

۱ - یو قول دادے (وهو قول الجمهور) چه د قبضے نه زیات ویښته وهل مستحب دی، دوه دلیلونه بیانوی (۱) یو عقلی : چه انسان په ډیره اوګده ګیرے سره بدنما معلومیږی او ثوبِ شهرت کښے داخلیږی (۲) نقلی دلیل : څلور موقوف روایات دی چه نصب الرایه (۴۵۷/۲) کښے ذکر دی، اګرچه مرفوع روایات هم شته لیکن هغه ضعیف دی، موقوف روایاتو کښے : ۱ - یو د عمر فاروقؓ نه دے (کما فی تحفة الأحوذی :۱/٤، نقلا عن ابن جریر الطبری : أنه فعل ذلك برجل ۔ چه هغه دا کار د یو سړی سره کړے وو۔

۲ - دویم د ابن عمرؓ نه دے چه ده به په حج او عمره کښے دګیرے دقبضے نه زیات ویښته اخستل (اخرجه البخاری : ۸۷۵/۲، وابوداود : ۳۲۸/۱، باب القول عند الافطار، والنسائی فی کتاب الصوم والحاکم : ٤٢٢/١، والدارقطنی، و کما فی نصب الراية : ٤٥٧/٢). وكلا الحديثين فی ابن أبی شيبة (۳۷۳/۸)۔

۳ - دریم دجابر بن عبد اللهؓ روایت دے (أخرجه ابوداود : ۲۲۵/۲) قال : کنا نعفی السبال - أی اللحیٰ - الا فی حج وعمرة. وسنده ضعیف. حسنه فی التحفة :١١/٤، وضعفه الألبانی فی ضعيف أبی داود رقم : (٤٢٥١) باب فی اخذ الشارب۔

٤ - روایت د ابو هریرةؓ دے چه ده به د قبضے نه زائد ویښته اخستل (أخرجه ابن ابی شيبة : ۳۷۳/۸، وكذا فی نصب الراية۔

۲ – دويم قول : د شيخ البانی ؒ دے، دده رائے داده چه د قبضے نه زيات ويښته اخستل واجب دی، دليل دا وائی چه : عبد الله بن عمرؓ د رسول الله ﷺ شديد الاتباع وو، نو ده به ضرور نبی کريم ﷺ ليدلے وی، ځکه دده د شدت الاتباع تقاضا داده چه دا کار به نبی کريم ﷺ کړے وی، اومرفوع ضعيف روايات هم په دے باب کښے شته دے۔

۳ – ليکن علامه مبارکفوریؒ صاحب د تحفة الأحوذی ليکی : چه نه وهل ئے افضل دی او وهل ئے جواز لری، وجه د افضيلت داده چه احاديث په نه وهلو کښے مطلق راغلی دی (ارخوا، اعفوا اللحی) او هر چه عمل ددے صحابوؓ دے نو دا چه کله دمرفوع صحيح مقابله کښے راشی نو متروك به وی، او عمل او أمر د نبی کريم ﷺ به اخستل ضروری وی۔ اودا په کښے أسلم الأقوال دے، اوهمدا رائے د شيخ صالح العثيمينؒ هم ده۔ اوزمونږ رائے هم داده۔

۴ – خو ، ښه جواب دادے چه د صحابوؓ نه دا وهل په حج اوعمره کښے ثابت دی تتميما للحلق، الا من ابن عمرؓ۔ اودليل په دے باندے قول د جابر بن عبد اللهؓ دے : (کنا نعفی السبال الا فی حج) حسنه فی التحفة : ٤/١١، وضعفه الألبانی فی ضعيف أبی داود (٤٢٠١)۔

نو ښه طريقه هم دا شوه چه دحج او عمرے نه ما سوی اوقاتو کښے په (اعفوا) باندے عمل دے او په حج او عمره کښے په قصّ باندے عمل دے، اودا زائد علی القبضه وهل صرف مونږ جائز قدرے ګنړو، د وجے د احترام د اجتهاد ددے صحابه کرامو ؓ۔

ليکن سلسلة الأحاديث الصحيحة : ٣/٢٤٩، او مجمع الزوائد :٥/١٣١ ، کښے يو حديث دے : چه صحابوؓ نبی کريم ﷺ ته عرض اوکړو : (ان اليهود يقصون عثانينهم و يوفرون سبالهم) نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل : (وفروا عثانينکم وقصروا سبالکم) واسناده حسن — عثانين جمع د عثنون ده ګيرے ته وائی اوسبال جمع د سبله ده، بريتو ته وائی، کله کله ګيرے ته هم وائی۔

دا حديث مطلق دے په ګيره پريخودلو کښے ځکه دا أمر په مقابله ديهودو کښے شويدے اوهغوئ به ګيرے لنډولے، څومره مقدار به ئے لنډولے ؟ نو ددے معلومات خو

نشتـه ! نو دلته نبي كريم ﷺ تعيين او تحديد اونه كړو چه څومره اندازه ئے اوگده كړئ، اويهودو بـه وړه كـولـه، نـو نبـي ﷺ دهغوئ په مقابله كښے امر په (وفروا) سره اوكړو چه اوگدے ئے كړئ. نـو پـه دے روايت سره د مودودي صاحب خبره هم غلطه شوه، او د شيخ الباني صاحب د وجوب قول هم كمزورے شو، تدبر !.

لِحْيَة : اصـل كښے د ژامے هډوكي ته وائي يعنے هغه ويښته چه په اننگو او ژامه او زنه بـاندے راختـلي وي . نـو د مـخ نه ويښته اخستل يا د مخ خرئيل هيڅ روايت كښے نه دي نـقـل. پـاتے شـوه د فتـاويه شاميه (٥/٢٦١) دا خبره چه دمخ نه ويختـه اخستل او د گيرے طـرفـونـه اخستـل جـواز لري نو دا خطاء خبره ده، وجه دخطائي داده چه د لحيه تعريف دے تولو ته شامل دے. (مجموعه الفتاوى : ٢١/١٢٠، لشيخ الاسلام).

**الفائدة الفائقة** : اوس دلته د **بدن د ويختو اقسام** بيانيږي :

١ – يـو قسم هغه دي چه دهغے اخستل واجب دي، لكه حلق العانه (زير ناف ويښته) نتف الابط وقص الشارب ( د ترخونو او بريتو ويښته).

٢ – بـل هـغـه دي چه دهغے اخستـل حرام دي ، لـكـه حلق اللحيه والحاجب للمرأه والرجل. گيره، او د سرې او ښځے وروځے.

٣ – دريم هغه دي چه ترك ئے افضل دي او اخستـل ئے جائز دي، وهو حلق الرأس . سر خرئيل. ٤ – بل هغه دي چه اخستل او ترك دواړه على السويه وي، لكه دعام بدن ويښته اخستـل مـا سوى دمـذكـوره مواضعو نه. دا په اباحت عامه كښے داخل دي. لكه دپوزے دننه ويښته، دپنډوا ويښته، ماتحت الخصيتين وغيره ددے اخستل جائز دي.

دليل په دے باندے دا حديث دے (وما سكت عنه فهو مما عفا عنه). رواه ابوداود . په دے باندے ډير مسائل حل كيږي .

وَقَصُّ الْاَظْفَار : نـوكـونـه پـريـكـول .ددے پـريـكـولو آخري موده څلويښت ورځے ده (كـمـا فـي الـحديث : ان لا نترك أكثر من أربعين ليلة – مسلم : ١/١٢٩) اوهره هفته يا دوه هفتے پس اخستـل ئے افضـل دي. او د اخستـلـو پـه كيفيت كښے څـه خاص طريقـه د پـريـكـولـو مسنون نه ده، په دے باره كښے هيڅ صحيح حديث نه دے وارد. او كوم كيفيت

چه بعض خلقو ذکر کړيدے يا لکه شيخ عبد القادر جيلانیؒ په غنية الطالبين (١/١٥) کښے ذکر کړيدے چه اول به د خنصر گوتے نوکان د ښی لاس پريکوی بيا به د وسطیٰ، بيا به د ابهام، بيا به د بنصر بيابه د گس لاس نه د ابهام، وسطیٰ، خنصر، سبابه، بنصر پريکوی - نو ددے کيفيت هيڅ وجود په احاديثو کښے نشته - بعضے خلق دے باره کښے ضعيف او موضوع حديث پيش کوی چه (من قص أظفاره مخالفا - کما مر - لم ير فی عينيه رمدا) چاچه په دغه مذکوره طريقه خپل نوکونه پريکړل نو سترگے به ئے چخنے نشی - قال السخاوی : لم اجده (موضوعات الکبری للقاری ص : ٧٤، وقال ابن القيم فی المنار المنيف ص : ١٤٠ : من اقبح الموضوعات. وفی المختارات الجلية ص : ٢٣).

دا روايت موضوع دے نو ځکه پرے استحباب نه ثابتيږی، دا د صوفياؤ طريقے دی - ملا علی قاری په کښے وائی : فانه انفع لرمد العينين - نودا حديث ضعيف دے - بلکه احاديثو کښے داخبره ده چه اول به د ښی لاس او ښی طرفنه شروع اوکړی بيا به د گس لاس، ځکه (کان رسول الله ﷺ يعجبه التيمن فی کل شئ).

**وَنَتْفُ الْإِبْطِ** : ١ - يعنے په گوتو سره د ترخ ويښته ويستل، او په دے سره دا ويښته ضعيف کيږی نود بدن نه بخارات اوبد بوئی کميږی - خو آيا خرئيل ئے او نوره - يو قسم چونه - وغيره استعمالول جائز دی که نه ؟ په دے کښے اختلاف دے -

١ - يو قول دادے چه مقصود په نتف الابط کښے نظافت دے نودا په هره ذريعه سره حاصلولے شی، او غالباً ويستل گران دی نو خرئيل ئے هم جائز دی -

٢ - قول ثانی دادے چه نبی کريم ﷺ نتف (ويستل) لفظ وئيلے دے نودا ضروری دے، او ابتداء کښے ويستل گران وی خو چه کله انسان ورسره عادت شی بيا تکليف نه وی، او په نتف کښے فوائد دی کوم چه په حلق (خرئيلو) وغيره کښے نشته، کما مر - خو چاته چه په نتف کښے تکليف وی نو حلق ورلره جواز لری - تفسير قرطبی (٢/١٠٥) کښے دی چه د ترخ ويښته خرئيل جائز دی اگرچه افضل نه دی ځکه مقصود په نتف (ويستلو) کښے نظافت حاصلول دی او دا په خرئيلو سره هم حاصليږی - امام شافعیؒ وائی : زه پرے قوی نه يم -

وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ : د ګوتې بندونو دپاره په عربئ کښې ډير الفاظ استعماليږي براجم، اشاجع ، رواجب ، انامل دا ټول مفاصل ته وائي خو فرق دادے چه بَرَاجِم جمع دبَرْجَمَةٌ ده دګوتې هغه بندونو ته وائي چه تلي سره نزدے دي، د هغې نه بره رَوَاجِب، د هغې نه بره اَشَاجِع، دهغې نه بره اَنَامِل يعنې د ګوتو سرونه دي (حاشية المتنبي ص : ۷۹)، بعضې انسانان خاصکر د زميندار دګوتو بندونه زر نه لمديږي نو په دے وجه ئے دا جدا ذکر کړو۔

امام نووی شرح مسلم: ۱۲۹/۱، کښې وائي : د غسل البراجم په حکم کښې هغه خيرې چه په نوکونو او پوزه کښې او د بدن په بل ځائے کښې جمع وي داخل دي۔

وَحَلْقُ الْعَانَةِ : عانه زير ناف ويښتو ته وائي، د نارينه وي که دزنانه۔ ابو العباس بن سريج لغوی وائي : دا هغه ويښتو ته وائي چه د دبر د حلقې نه ګير چاپيره وي، امام نووی وائي : بناء په دواړو تفسيرونو د قبل او دبر ويښته خرئيل مستحب دي (شرح مسلم : ۱۲۸/۱) ليکن ظاهره داده چه اول تفسير د جمهور اهل لغتو دے، نو صرف د عانه خرئيل ضروري دي، او د دبر نه ګير چاپيره ويښته خرئيل مباح درجه کښې دي، که اخلې اوکه نه لکه مخکښې د ويښتو تقسيم کښې تير شو۔ بيا ددے په لرې کولو کښې درے طريقې جائز دي، سنت په کښې حلق (خرئيل) دي، اودوه طريقې جائز دي (۱) يو ويستل اودا شهوت کښې نقصان پيدا کوي (۲) دويم نوره – يو قسم چونه – وغيره استعمالول، ليکن دا بدن توروي ـ(۳) خرئيل : اودا شهوت کښې زيادت پيدا کوي ـ دليل دادے چه يو صحابي نبي کريم ﷺ ته د زيات شهوت فرياد اوکړو، نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل : وفر شعر جسدك ... الحديث. أخرجه ابو داود بسند ضعيف۔

يعنې د بدن ويښته زيات کړه، شهوت به دے کم شي،اودا کارے واده زنانو له پکار دے چه ويښته اوياسي يا دوائي کريم وغيره استعمال کړي، دے دپاره چه شهوت ئے کمزورے شي ـ بيا ددے کمه موده مقرره نه ده، او زياته موده ئے څلويښت ورځے ده، ددے نه ئے اړول نه دي پکار، لکه مسلم (۱۲۹/۱) کښې حديث د انس ؓ دے (وُقِّتَ لنا في قص الشارب وتقليم الأظفار ونتف الابط وحلق العانة : ان لا نترك اكثر من اربعين ليلة)۔

امام نووی وائي : د حديث معنیٰ داده چه څلويښت ورځونه به ئے نه اړوي او دا مطلب

نه دے چه څلوېښت ورځو نه مخکښې به ئے نه پريکوی۔

**وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ :** ۱ – اضافت دمصدر دے فاعل ته، او مفعول حذف دے، أی انتقاص البول بالماء، يعنی چه انسان ذکر په اوبو سره اووينځی نو يخوالے به اثر اوکړی نو بول به اودريږی اولگ لگ به نه خارجيږی، نو مراد ترينه استنجاء شوه ۔

۲ – بعضے وائی چه د انتقاص نه مراد انتفاض دے يعنے چړکاؤ د اوبو چه دا معنیٰ د نضح او انتضاح هم ده کما مر فی حديث جبرئيل۔ يعنی داودس نه پس خختگ ته اوبه اچول د وسوسے ددفع کولو دپاره۔ اومرعات (۸۱/۲) کښے دا توجيه غوره کړيده۔ دليل دادے چه حديث دعمارؓ کښے دانتقاص په ځائے دانتضاح لفظ ذکر دے، کما فی أبی داود وابن ماجه ۔

**يَعْنِي الْاِسْتِنْجَاءَ:** دا تفسير د وکيع راوی دے، لکه په روايت د مسلم (۱۲۸/۱) کښے قتيبه بيان کړيدے۔

**الْخِتَانُ :** **﴿ توجيه الكسلان الى مسئلة الختان ﴾**

دخِتان معنیٰ ختنه کول (سُنتول) يعنی دذکر دحشفے نه چه کومه څرمن تاؤ وی هغه پريکول دومره حد پورے چه زورنده غوښه پاتے نشی او يا دومره چه ټوله حشفه راښکاره شی۔ دا ختنه به دهغه چا کولے شی چه قلفه لری، اوکه همداسے مختون پيدا شوے وی نو سنتول ئے نشته، لکه بناء په يو قول باندے نبی کريم ﷺ مختون پيدا شويدے ۔ اګرچه دا قول ضعيف دے، شرعه الاسلام ۔ زاد المعاد : ۸۰/۱ ۔ وتحفة المودود۔

## د ختنے څه حکم دے ؟

نوددے په حکم کښے اختلاف دے : ۱ – جمهور علماء ددے قائل دی چه ختنه د نارينه دپاره واجب ده، او ابن عباسؓ به په دے باره کښے ډيره سختی کوله اودا به ئے وئيل چه د بے ختنے شخص حج او مونځ مقبول نه دے ترڅو چه ختنه اونه کړی، کذا فی المغنی (۱۳۹/۱)۔ وتحفة المودود ص (۱۲۹) وهو قول الشعبی وربيعة والاوزاعی ويحيى بن سعيد الانصاری والشافعی ۔

۱– **دليل د وجوب :** نبی کريم ﷺ ته يو شخص راغے او ورته ئے عرض اوکړو : ما

اسلام قبول كړو، نبي كريم ﷺ ورته اوفرمائيل : الق عنك شعر الكفر، واختتن۔ أخرجه ابوداود : ١/٥٧، واحمد : ٣/٤١٥، كذا في التلخيص : ٤/٨٢، باسناد صحيح ۔

٢ - **دليل** : بخاري رقم (٦٠) كښې دي (اختتن ابراهيم خليل الرحمن بعد ما أتت عليه ثمانون سنة، واختتن بالقدوم) هركله چه ابراهيم عليه السلام د اتيا كالو په عمر ختنه كوي نودا سنت ابراهيمي دے اومونږ ته ددے د اتباع او اقتداء حكم شويدے ﴿ ثم اوحينا اليك ان اتبع ملة ابراهيم حنيفا ﴾ ﴿ فبهداهم اقتده ﴾۔

٣ - **دليل** : دا د شعائرو دمسلمانانو نه دے لكه چه نور بعضے شعائر واجب دي دا هم واجب دے، او په دے سره فرق راځي دمسلم او نصراني ترمينځه۔ لكه داد ابن عباسؓ دسختئ دليل دے ۔ قاله الحافظ في الفتح (١/٢٨١)۔

٤ - **اويو عقلي** دليل دا هم دے چه په ختنه كښې عورت ښكاره كول دي،او عورت ښكاره كول حرام دي، اوهركله چه دختنې حكم اوشو نو دا دليل دے چه ارتكاب دحرام د تحصيل د واجبو دپاره كيږي، نه دسنتو دپاره ۔

١ - بيا د امام شافعيؒ رائے او يو روايت دامام احمدؒ نه دادے چه دنارينه اوزنانه دواړو دپاره دا حكم د وجوب يو شان دے ۔

٢- او د احنافو او حسن بصريؒ په نيز د سړو او ښځو دواړو دپاره دا حكم سنت دے، واجب نه دے۔ كذا في المرقات (٨/٢٩، والمجموع : ١/٣٠٠، شرح مسلم : ١/١٢٨، نيل الأوطار : ١/١٣٨، قاضي خان۔ او فقه حنبلي كښې دي چه (انه واجب على الرجال ومكرمة للنساء، كذا في المغني) ۔ ٣ - اود امام مالكؒ په نيز د سړو دپاره مسنون اود ماشومانو جينكو دپاره مندوب دے۔

او حديث كښې دي : اذا التقى الختانان وجب الغسل - متفق عليه۔

دواړو ته ئے ختانان وئيلي دي۔

د احنافو دليل مسند احمد، والطبراني كښې د والد د ابو المليح اود ابن عباسؓ روايت دے : الختان سنة للرجال ومكرمة للنساء۔

جواب : سنت نه مراد طريقه قديمه ده، چه وجوب ته هم شامل ده، لكه حافظ ابن

القیم فرمائی : چه د سنت معنی دا ده چه سنه رسول الله وامر به فیکون واجبا۔ یعنی سنت معنی دا ده چه رسول الله ﷺ مشروع کړیدی او امر ئے پرے کړیدے نو دا واجب ته هم شامل دے او بیا وائی چه سنت د صحابو په دور کښے عام وو ( هی الطریقة المتبعة وجوبًا واستحبابًا ) یعنی سنت نفس هغه طریقے ته وائی چه د هغے تابعداری کیدے شی مشروع وی په دین کښے مستحب وی او که واجب او سنت پدے اصطلاحی معنی باندے چه د فرض نه خکته او د مندوب نه بره – د صحابو په دور کښے دا اصطلاح نه وه بلکه دا اصطلاح حادث ده ۔او دلیل باندے دا دے چه حدیث د صحیحینو کښے راځی (فمن رغب عن سنتی فلیس منی ) دلته د سنت نه منهج او طریقه مراد ده ۔ ابن القیم بل جواب دا ورکړے چه دا روایت د ابن عباس ضعیف دے ۔

والمحفوظ انه موقوف۔ تحفة المودود (۱۲۹) ۔

نو صحیح داده چه سړو دپاره واجب او فرض او زنانو دپاره سنت او مستحب دے۔ دلیل : حدیث مرفوع دے : الختان سنة للرجال ومکرمة للنساء، رواه احمد بسند حسن عن والد ابی الملیح والطبرانی عن شداد بن اوس کذا فی المرقاة (۸/۲۸۹، ۳۱۱) وفتاوی الدین الخالص (۱/۵٦۳) ۔ او د زنانه دپاره په ختنه کولو کښے حدیث کښے دوه فائدے ذکر دی ۔

انه أحظیٰ للمرأة وأحصن للفرج ۔

او په الصحیحة (۲/۳۵۷) کښے د عثمان بن ابی العاص ؓ حدیث دے چه دا د ختان الجاریه د روتئ نه پاخیدلو اودا ئے اوویل : چه دا د پیغمبر ﷺ په زمانه کښے نه وو (اخرجه احمد : ٤/۲۱۷، والطبرانی فی الکبیر : ۳/۷، واسناده حسن) ۔ یعنے دا دعوت طعام مستحب کار نه دے اګرچه مباح دے ۔ معلومیږی چه ختان الجاریة شته خو روتئ ورکول پرے غیر مناسب دی ۔

په تحفة المودود (۱۳۰) کښے ابن قیم ؒ دلائل او وجوهات ذکر کړی دی، هغه په دے موضوع باندے احاطه کړیده ۔ وکذا فی تمام المنة ص (٦۹) وفتاوی الدین الخالص : ۱/۵۸۵۔

په مشکاة (۲/) بروایة ابی داود : ۲/۳٦۸، وسنده صحیح ، کښے به راشی چه مدینه

کښې ام عطيه نومې يوه زنانه وه چه هغې به ختنه کوله، نو نبي ﷺ طريقه ور اوخودله چه (لَا تَنْهَكِيْ) يعنې مبالغه مه کوه په پريکولو ددغه خاصه غوښه دماشومې کښې (فانه احظیٰ للمرأة وأحب الى البعل) ځکه په دې کښې د زنانه برخه ده هسې نه چه ډيرئې واخلې چرته شهوت ئې ختم نشي نو برخه به ئې هم ختمه شي، او خاوند ته ډير محبوب کار دې ځکه زنانه چه شهوت والا وي نو سړي ته محبوبه وي. الأدب المفرد رقم (١٢٤٥) کښې دا روايت هم دې چه عثمانؓ ته د بهر ملکونو نه وينځې راغلې نو هغه حکم اوکړو چه دا سنت کړئ (فخفضوهما وطهروهما). يعنې ختنه وژله اوکړئ او صفائي کړئ.

**تنبيه** : د وړو جينکو په ختنه کښې به دفرج نه زياتي غوښه پريکوی کومه چه دعرفه الديك يعنې د چرګ د ځړئ پشان وي چه هغې ته عربئ کښې بظر وائي. اودا به ډيره لږه پريکوي، ځکه که زياته پريکړې شي نود شهوت د ختميدو خطره په کښې ده .او فائده ئې داده چه زنانه کښې حياء پيدا کيږي، او خاوند ته په کښې لذت پيدا کيږي . اوکومه جينئ چه ناسنته وي هغه سړو ته ډيره ګوري (کل امرأة قلفیٰ تتطلع الى الرجال أكثر). اودا خبره هم ياد لرل پکار دي چه دا ختنه دجينکو به په بوډئ ګانو زنانو کولې شي لکه چه پخوا بوډئ ګانو کولو، او د چاچه تجربه نه وي نو احتراز ترې پکار دې ورنه بله مسئله به ترې جوړه شي .

**خلاصه** : داچه دا مسئله په څلورو مذهبونو کښې ثابته ده، خو حکم کښې ئې اختلاف دې. بعضې مذهبي قمقل وائي : دا کار اهل حديث کوی، حال داچه دا د ټولو مذ هب دې. اوس زمانه کښې مصر، سوډان کښې دا کار کيږي.

لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيْحَيْنِ : د دې روايت نه مراد هغه روايت دې چه ختان په کښې ذکر دې او په مصابيح کښې امام بغويؒ ذکر کړيدې، نودا روايت په بخاري اومسلم کښې نشته، بلکه دا دابو داود روايت دې . نو مصنف وائي چه صاحب المصابيح له دا روايت د فصل اول په ځائې ذکر کول مناسب نه دي.

## الفصل الثانی - دویم فصل

٦ - عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اَلسِّوَاکُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ، مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ). رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ وَالنَّسَائِيُّ. وَرَوَى الْبُخَارِيُّ فِيْ صَحِيْحِهٖ بَلَا اِسْنَادٍ.

**ترجمه** : بی بی عائشة" نه روایت دے فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلے دے : مسواك کول د خلے پاکوالے او د الله تعالیٰ د رضا سبب دے ـ (شافعی، أحمد، دارمی) او امام بخاریؒ دا حدیث خپل صحیح (جامع بخاری) کښے بغیر سند نه نقل کړے دے ـ

**تشریح** : اَلسِّوَاکُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ : په دے حدیث کښے دوه فائدے د مسواك ذکر دی (۱) یو دا چه په دے سره خله پاکیږی. ۲ - دویم دا سبب د رضا دالله دے.

مطهره : دے کښے کسره او فتح دمیم دواړه جائز دی، لیکن فتح افصح ده، او کسره مشهوره ده ـ دا هر هغه آله ته وائی چه په هغے سره پاکی حاصلیږی یعنی مسواك آله ده دپاره دپاکولو دخلے، او دا یقینی خبره ده چه دمسواك پشان بل داسے شے نشته چه په هغے سره د مسواك غوندے صفائی راشی، او د خلے خوند هم برابر شی او طبیعت هم تازه شی، او اوریٔ هم مضبوط شی.

۲ - اوکه مطهرة په فتحه دمیم سره شی نو بیا دا مصدر میمی دے په معنیٰ داسم فاعل سره، ای مُطَهِّرٌ للفم (خله پاکونکے دے). (۳) او یا مصدر په خپله معنیٰ دے، او معنیٰ داده چه دا سبب دپاکوالی دخلے دے ـ

مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ : په فتح دمیم سره دے (۱) یا صیغه د مصدر بمعنیٰ اسم الفاعل، ای مُرْضٍ للرَّب (الله لره رضا کونکے دے) (۲) یا مصدر په خپله معنیٰ دے یعنے سبب درضا درب دے ـ

**درجة الحدیث** : وسنده صحیح اخرجه البخاری تعلیقا فی کتاب الصوم باب السواك الرطب بصیغة الجزم والشافعی فی الام (۱/ ۲۳) واحمد (٦/ ٤٧ - ٦٢ - ١٢٤) والدارمی (١/ ١٧٤) والنسائی (١/ ١٠) صححه ابن حبان (١٠٦٧ - الاحسان).

۷ – وَعَنْ أَبِی أَيُّوبَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اَرْبَعَةٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِيْنَ : اَلْحَيَاءُ وَيُرْوَى الْخِتَانُ وَالتَّعَطُّرُ وَالسِّوَاکُ وَالنِّکَاحُ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ .

**ترجمه** : جناب أبو أيوبؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څلور خيزونه د پيغمبرانو د سنتونو نه دی : (۱) حياء کول، او په يو روايت کښې د حياء په ځائے (ختان يعنی سنتول) ذکر دی (۲) خوشبوئی لږول (۳) مسواك کول (٤) نکاح کول ۔ (ترمذی)۔

**تشريح** : اَرْبَعَةٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِيْنَ : يعنے څلور کارونه د پيغمبرانو طريقے اوسنت دی، يعنے دا څلور درته زه بيانوم نور هم شته نو حصر مقصود نه دے چه صرف همدا څلور کارونه دپيغمبرانو سنت دے بلکه دا صرف په دے موقعه کښې بيان شويدی ۔

بيا ددے رسولانو نه اکثر رسولان مراد دی، نه ټول ۔ ځکه بعضے انبياء داسے هم شته چه په هغوئ کښې بعض کارونه نه وو، لکه يحيیٰ او عيسیٰ عليهما السلام نکاح نه وه کړے، او نوح عليه السلام نه دے ختنه شوے، نو ددے نه مراد به هغه رسولان وی چه د ابراهيم عليه السلام د زمانے نه پس وی ځکه د هغه د زمانے نه روستو د عامو رسولانو دا طريقے دی ۔ او دا قضيه مهمله ده په قوت د جزئيه کښې ده۔ يعنی بعض رسولان۔ من لدن ابراهيم عليه السلام۔

اَلْحَيَاءُ : دلته دحياء نه مراد دادے چه بنده خپل نفس د بدو کارونو نه جدا کړی اود بدو خبرو نه ځان اوساتی، دا حياء ممدوح ده چه انسان بے حيائی، زنا، غلا، فواحش، عورت ښکاره کولو او بے مروته کارونو نه ځان اوساتی، اودا شرعی حياء ده۔ اويو بله مذمومه حياء ده چه انسان دحق خبرے په بيانولو کښې شرميږی دا جبلی اوطبعی حياء ده خو دے ته رُعب وائی، دا حياء نه ده، لکه تفصيل اول جلد کښې تير شويدے۔

وَالتَّعَطُّرُ : يعنے عطر او خوشبوئی لګول انبياؤ ته او خصوصا زمونږ پيغمبر ﷺ ته ډير محبوب وو ځکه چه هغه ډير لطيف الطبع انسان وو، په دے وجه نبی ﷺ په ډيرو

موقعو کښې امر کړیدے چه تاسو خوشبوئی لګوئ، اوددے فضائل ئے بیان کړی دی. خصوصا دجُمعے او اختر په ورځ، دغه شان، دینی حلقو، قرآن ته د کیناستو په وخت، مانځه ته اودریدو په وخت ددے اِستعمالول افضل دی۔ او هغه فرمائیلی دی چه درے څیزونه به نشی واپس کولے، یو دهغے نه عطر دی، ددے رد کول مناسب نه دی۔

وَالنِّكَاحُ : شریعت کښے د نکاح ډیر لوئی مقام دے، دے وجے نه نبی کریم ﷺ نکاح خپل سنت ګرځولے دے، فرمائی : واتزوج النساء، فمن رغب عن سنتی فلیس منی، ځکه چه د نکاح بے شماره فوائد دی چه دمشکاه په جلد ثانی کښے به راشی ۔ ان شاء الله۔

اَلْحَيَاءُ وَيُرْوَى الْخِتَانُ : دے روایت کښے درے قسم الفاظ نقل دی : (۱) الحیاء (۲) الختان (۳) الحناء۔ په دے کښے کوم صحیح دے؟ نو صاحب د تحفه الأحوذی (۱۲۶/۲) د علامه عراقی نه نقل کړی دی چه دا حدیث مونږ ته په حاء او یاء سره نقل دے، یعنی الحیاء۔ حناء ته بعضے علماؤ خطاء وئیلی دی، وجه د خطائی علامه طیبی ذکر کړیده هغه دا چه حناء نکریزو ته وائی، او سړو دپاره لاسونه خپے سره کول د تشبه بالنساء د وجے نه حرام دی۔ او پاتے شو په سر باندے نکریزے لګول نو دا خو صرف زمونږ د نبی ﷺ د زمانے نه شروع دی، مخکښے دا نه وو، نو مرسلین ته ددے نسبت صحیح نه دے۔ (کذا فی المرقاة والمرعاة : ۸۳/۲، والتحفة)۔

پاتے شو الحیاء او الختان نو دواړه صحیح دی، نو بعضے علماؤ یو ته ترجیح ورکړیده، بعضو بل ته۔ علامه ابن القیمؒ په زاد المعاد (۲۳۱/٤) کښے وئیلی دی چه (روی فی الجامع بالنون والیاء (ای الحناء والحیاء)، بیا فرمائی : ما د خپل استاذ ابو الحجاج الحافظ نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئے : (الصواب انه الختان)، حقه خبره داده چه دا د ختان لفظ دے، (وسقطت النون من الحاشیة و کذلك رواه المحاملی عن شیخ ابی عیسیٰ الترمذی) یعنی په بعضو نسخو کښے تر ے نون غورځیدلے دے، ورنه صحیح لغت (ختان) دے، او علامه عبید الله مبارکفوریؒ په المرعاة (۸۳/۲) کښے دا غوره کړیدے، فرمائی : وهذه الروایة انسب لحدیث عمار المتقدم، وحدیث ابی هریرة الآتی فی الترجل فانه ذکر فیهما الختان من خصال الفطرة۔ او حافظ عراقی لفظ د (الحیاء) غوره کړیدے، کما تقدم۔ اوهمدا

ظاهر ښکاری ځکه په روایت د مسند احمد کښې هم د حیاء لفظ دے۔

**درجة الحديث** : قال الشيخ الألباني : قال الترمذي : حديث حسن وفيه نظر من وجوه اصحهما ان بين مكحول وابي ايوب الأنصاري ابا الشمال ولا يعرف الا بهذا الحديث كما قال ابو زرعة وذكر له في ارواء الغليل رقم (۷۵) هناك طريقين آخرين عن ابن عباس مرفوعا، وثالثا عن ابي هريرة وليس فيها ما يتوى الحديث والله اعلم. وحسنه الترمذي لشواهد، فروى نحوه عن غير ابي ايوب قال الحافظ بعد ذكر حديث ابي ايوب هذا، رواه احمد والترمذي ورواه ابن ابي خيثمة من حديث مليح بن عبد الله عن ابيه عن جده نحوه. ورواه الطبراني من حديث ابن عباس، انتهى۔ تحفة الأحوذي، مرعاة (۲/۸٤) ولكن هذه الشواهد ايضا ضعيفة كما في ارواء الغليل رقم (۷۵)۔

۸ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَرْقُدُ مِنْ لَيْلٍ وَلَانَهَارٍ فَيَسْتَيْقِظُ اِلَّا يَتَسَوَّكُ قَبْلَ اَنْ يَتَوَضَّأَ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ .

**ترجمه** : بی بی عائشه رضی الله عنها نه روایت دے دا فرمائی : نبی ﷺ به چه کله هم د شپے یا دورځے د خوب نه رابیدار شو نود اودس کولو نه مخکښے به ئے مسواك کولو ۔ (أحمد، أبوداود)۔

**تشریح** : فَيَسْتَيْقِظُ : دا مرفوع هم وئیلے شی اود نفی لاندے به وی، یعنی نبی کریم ﷺ به دخوب نه راپاځیدو مګر مسواك به ئے وهلو، که شپه به وه که ورځ، وجه داده چه دخوب په وجه داتسان خله کښے تغیر او بدلون راځی او په مسواك وهلو سره خله صفا کیږی۔ ۲ – یا دا لفظ منصوب دے او جواب د نفی دے، یعنے نه به اوده کیدو مګر چه رابیدار به شو نو مسواك به ئے وهلو، نو دا حدیث دلیل دے چه د خوب نه روستو مسواك وهل سنت مؤکده دی، او اوداسه سره مسواك وهل هم سنت دی، دلته صرف د خوب نه پس مسواك وهل راغلل او نورو حدیثونو نه معلومه ده چه بیا به ئے اودس ته هم وهلو ۔

**درجة الحديث** : رواه احمد وابوداود وهو حديث حسن دون قوله ولا نهار، فانه ضعيف كما بينته في صحيح سنن رقم (٥١) قاله الألباني في تعليق المشكاة (۱/۱۲۲) الا ان

في سنده علي بن زيد بن جدعان. قال الحافظ في التلخيص (٦٣/١) وعلي ضعيف. ولكن ذكر بعده حديث عائشة : ان رسول الله ﷺ كان يرقد فاذا استيقظ تسوك ثم توضأ.

دا مطلق دے، ليل او نهار دواړو ته شامل دے، فارتقى الحديث الى درجة الحسن.

---

٩ – وَعَنْهَا قَالَتْ :كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَسْتَاكُ فَيُعْطِيْنِي السِّوَاكَ لِاَغْسِلَهُ فَأَبْدَءُ بِهٖ فَأَسْتَاكُ ثُمَّ اَغْسِلُهُ وَاَدْفَعُهُ اِلَيْهِ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : بی بی عائشے رضی الله عنها نه روایت دے دا فرمائی : نبی کریم ﷺ به مسواك کولو، بیا به ئے ماته راکولو چه زه هغه اووینځم، ما به (د نبی کریم ﷺ) مسواك واخستو اوبه مے وهلو او بیا به مو اووینځلو او رسول الله ﷺ ته به مے ورکولو .

**تشریح** : فَأَسْتَاكُ : یعنے نبی کریم ﷺ چه به کله مسواك اووهلو نو عائشة ؓ ته به ئے د وینځلو دپاره ورکړو نو هغې به دا مسواك پخپله اووهلو، دے دپاره چه تبرك پرے حاصل کړی او استشفاء حاصل کړی دنبی کریم ﷺ په لاړو باندے کومے چه مسواك سره لګیدلے وی، دارنګه دے دپاره چه د نبی کریم ﷺ دمبارکو غاښونو لاړے په اوبو سره زمکے ته پرے نه وځی، دا د عائشة ؓ ډیر لوئے أدب دے .اودا ډیره هوښیارتیا ده .

٢ - **فائده** : دا حدیث هم دلیل دے چه د بل چانه خاصکر دخپلے بی بی نه خدمت أخستل جائز دی .

٣ – دارنګه د بل چا مسواك دهغه په رضا سره وهل جائز دی.

لِاَغْسِلَهُ : د مسواك په وینځلو کښے فائده داده چه کله وهلے شوے مسواك اونه وینځلے شی نو دے ته حیوانات وغیره راځی هغه پرے خله وهی، نوکیدے شی چه زهریله حیوان پرے خله اووهی نوانسان ته به ضرر اورسی، نودا هم سنت دی چه دمسواك وهلو نه پس هغه اووینځل اوشی.

ثُمَّ اَغْسِلُهُ وَاَدْفَعُهُ اِلَيْهِ : ددے مطلب دادے چه کله به نبی ﷺ ماته مسواك راکړو نو ما به هغه د وینځلو نه مخکښے اووهلو، بیا به مے هغه اووینځلو او کیبه مے خودلو .اوکله چه به نبی کریم ﷺ بیا بل وخت اوغوښتلو نو ورته به مے ورکړو، اوداسے نه ده چه د

وينځلو نه پس به مے بيا ورکړو، ځکه بيا خونه استعماليږی۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود وسكت عنه هو والمنذرى، وقال الألبانى : اسناده حسن، وسكت عليه الحافظ فى التلخيص (١/٦٩)۔

## الفصل الثالث - دريم فصل

**١٠ - عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ :(أَرَانِىْ فِى الْمَنَامِ اَتَسَوَّكُ بِسِوَاكٍ فَجَاءَ نِىْ رَجُلَانِ اَحَدُهُمَا اَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ فَنَاوَلْتُ السِّوَاكَ الْأَصْغَرَ مِنْهُمَا، فَقِيْلَ لِىْ : كَبِّرْ، فَدَفَعْتُهُ اِلَى الْأَكْبَرِ مِنْهُمَا ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .**

**ترجمه** : جناب ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دے چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل : ما خپل ځان په خوب کښے اوليدلو چه مسواك مے وهلو، دے کښے دوه کسان راغلل چه يو په کښے د بل نه لوئی وو، نو ما مسواك هغه چاته ورکړو چه په دے دواړو کښے وړوکے وو، ماته اووئيلے شو چه مشر ته مسواك ورکړه، نو ما مشر ته ورکړو۔ (متفق عليه)۔

**تشريح** : أَرَانِىْ :بفتح الهمزة درؤيت نه ماخوذ دے أى أرىٰ نفسى،خپل ځان وينم، دا افعال قلوب دی ددے خصوصيت دادے چه دفاعل اومفعول دواړو ضميرونه يو شخص ته راجع کيدل صحيح دی، دلته دواړه متکلم ته راجع دی، بيا داحديث صريح دے په دے کښے چه دا واقعه په خوب کښے راپيښه شويده او په روايت د احمد او بيهقی (١/٦٥) رقم (١٧٢) کښے دی چه ابن عمرؓ فرمائی : ما رسول الله ﷺ اوليدو چه مسواك ئے وهلو نو بيا ئے د قوم مشر ته ورکړو، بيا ئے اوفرمائيل : جبرئيل عليه السلام ماته داحکم اوکړو چه زه ئے مشرته ورکړم۔ نودا دلالت کوی چه دا واقعه په ويښه راغلے ده،او ددے تائيد دوه حديثه روستو په حديث د عائشےؓ کښے راروان دے۔ نو تطبيق د دواړو دادے چه دا واقعه کله په ويښه راغله نو نبی کريم ﷺ په کښے خپل خوب ذکرکړو چه ماځکه مشرته مسواك ورکړو چه ماته خوب کښے دغه شان وحی شويده، چه مشر ته مسواك ورکول مناسب دی ۔ نود راويانو داختصار په وجه اشتباه راغله، ورنه حقيقت هغه دے کوم چه

مونږ ذكر كړو.

**الْأَصْغَرَ مِنْهُمَا** : يعنے ما مسواك وړوكي ته وركولو، وجه داده چه دا ورته نزدے وو، يا نبي ﷺ ته مسواك معمولي شے ښكاره شو، يا د شفقت دوجے نه ئے كشر ته وركړو، يا دواړو مطالبه كړے وه. نو الله ورته اوفرمائيل : چه مشر ته ئے وركړه، ځكه چه مسواك مشر دپاره مهم دے او هغه أفضل دے اومسواك هم أفضل شے دے، نو دده مناسب دے.

**فوائد الحديث** : ١ - وحي د نبي كريم ﷺ به په خوب كښے هم راتله اودا يوه طريقه وه د وحي .٢ - د بل چانه د مسواك مطالبه كول جائز دي، دلته دے دوه كسانو د نبي ﷺ نه مطالبه كړيده .٣ - كَبِّرْ : يعنے مشر ته ئے وركړه ادبا، ځكه دمشر أدب پكار دے اودا زمونږ داسلام خوبي ده. ٤ - ملا علي قاريؒ فرمائي : دا دواړه كسان د نبي ﷺ په يو طرف كښے وو يا ئے ګس طرفته وو، وهو الأنسب. نو نبي ﷺ اراده اوكړه چه نزدے ته ئے وركړي، نو أمر ورته اوشو چه مشر ته ئے وركړه نو دا حديث منافي نه دے دهغه بل حديث دابن عباسؓ سره چه نبي ﷺ داپه پاتے شوي پئ كښے په ابو بكر او عمر - رضي الله عنهما - باندے مخكښے كړو، وجه داده چه دا ښي طرفته ناست وو، او دا حضرات ګس طرفته وو، اوحق د ښي طرف وي. او په دے حديث كښے دواړه ګس طرفته ناست وو، يا دواړه ښي طرفته وو، خو ماشوم أقرب وو نو ځكه نبي ﷺ ده ته وركړو.

١١ - وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ : ( مَاجَاءَنِيْ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَطُّ اِلَّا أَمَرَنِيْ بِالسِّوَاكِ، لَقَدْ خَشِيْتُ أَنْ اُحْفِيَ مُقَدَّمَ فِيَّ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : جناب ابو أمامه رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ماته چه كله هم جبرئيل عليه السلام راغلے دے نو د مسواك كولو حكم ئے راته كړے دے، تردے پورے چه زه اوريدم چه (دمسواك د ډير وهلو په وجه) چرته زه د خپلے خلې مخكنئ حصه اونه خيرم . (أحمد).

**تشريح** : اِلَّا أَمَرَنِيْ بِالسِّوَاكِ : يعنے د نورو امرونو سره سره ئے دمسواك حكم بار بار كړيدے او په دے حديث اومخكني حديث كښے دمسواك ډير فضيلت ذكر دے.

أَنْ أُحْفِيَ مُقَدَّمَ فِيَّ : صيغه دمضارع متكلم دباب افعال نه ده، احفاء په اصل كښې دخلې غوښه زوړندلو ته وائي په سبب دډير وهلو دمسواك، نو حاصل معنىٰ داده چه ويريږم چه مخكښنئ حصه دخلې د ستې نه اونړوم، يعنې اورئ ختمې كړم په ډير مسواك وهلو سره۔

ددې نه ثابته شوه چه جخت مسواك وهل سنت دى۔

فِيّ: مشدد دې، اضافت د (فوه) شويدې ياء د متكلم ته، اصل كښې فمي وئيلې كيږى، لكه چه ددې په اضافت كښې دوه طريقې دهذيل او حجازينو دى. حجازين (فىّ) وائى او هذيل فمي۔

**درجة الحديث** : رواه احمد : ٥/٢٦٣، بسند ضعيف جدا، في سنده علي بن يزيد الألهاني وهو ضعيف، قال الشيخ الألباني : ومن قواه فما احسن، تعليق المشكاة : ١/١٢٣، وروى نحوه عن ابن عباس وانس وسهل بن سعد وعائشة، وذكر احاديثهم الهيثمي في مجمع الزوائد : ٢/٩٨، مع الكلام عليها۔

دا حديث اګرچه سندا ضعيف دې، مګر معنىٰ ئې د نورو روايتونو نه ثابته ده، لولا ان اشق على امتى والا حديث، يا روسته را روان حديث وغيره۔

**۱۲ - وَعَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَقَدْ أَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ فِي السِّوَاكِ). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ .**

**ترجمه** : جناب أنس رضى الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : بيشكه چه ما تاسو ته د مسواك متعلق ډير څه بيان كړى دى - (بخارى)۔

**تشريح** : لَقَدْ أَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ فِي السِّوَاكِ :١ - دا صيغه د متكلم معلوم ده يعنى ما تاسو ته ډير امر او وصيت اوكړو په باره دمسواك وهلو كښې، اوبار بار مطالبه مې درنه اوكړه، يا مې ډير ترغيب دركړو، نو ددې مطلب دادې چه هركله ما دومره حكمونه اوكړل نو تاسو له پكار دى چه ددې تابعدارى اوكړئ (فحقيق أن تطيعوه) اوغرض په دې خبره كښې دادې چه مسواك ډير اهتمام لرى، او سره ددې نه چه صحابهٌ په دې امرونو باندې خبر وو

خو نبي ﷺ ورته بيا تاكيدا اوفرمائيل چه ما درته ډير حكمونه اوكړل، دا عظيم الشان شے درنه فوت نشي۔

٢ – علامه كرمانيؒ فرمائي : اكثرتُ صيغه دمتكلم مجهول ده، أي بولغتُ من عند الله بطلبه منكم، يعني ماباندے دالله دطرفنه ډير زور اومبالغه شويده چه تاسو نه ددے د استعمالولو مطالبه اوكړم۔

**درجة الحديث** : رواه البخاري في الجمعة واخرجه ايضا احمد والنسائي في اول سننه۔

**١٣ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَسْتَنُّ وَعِنْدَهُ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ، فَأُوحِيَ إِلَيْهِ فِي فَضْلِ السِّوَاكِ أَنْ كَبِّرْ أَعْطِ السِّوَاكَ أَكْبَرَهُمَا ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : بي بي عائشه رضي الله عنها فرمائي : نبي كريم ﷺ مسواك وهلو او دده سره دوه كسان ناست وو چه يو په كښے د بل نه مشر نه وو، نبي كريم ﷺ ته د مسواك د فضيلت په باره كښے وحي اوشوه چه په دے دواړو كسانو كښے چه كوم يو مشر دے، هغه له مسواك وركړه۔ (أبوداود)۔

**تشريح** : يَسْتَنُّ : أي يُمِرّ السواك على أسنان، استنان په اصل كښے په غاښونو مسواك استعمالولو ته وائي ، دا هله چه د سِن بالكسر نه ماخوذ شي چه غاښ ته وائي، او كه د سَن بالفتح نه مشتق شي نو بيا غاښونه تيره كولو ته وائي، او په مسواك هم غاښونه تيره كيږي (صفا كيږي)۔

وَعِنْدَهُ رَجُلَان : ظاهر داده چه داد ويښے واقعه ده او خوب نه دے۔

أَعْطِ السِّوَاكَ أَكْبَرَهُمَا : داد كبَر معنیٰ ده، بعضے راويانو ذكركړيده، يا نبي ﷺ پخپله ذكر كړيده۔

**فائده** : دے حديث نه معلومه شوه چه مشر به مخكښے كولے شي په مسواك وركولو كښے او په دے پورے طعام شراب او مزل او خبرے او سورلئ هم ملحق ده، چه په دے كښے به هم مشر مخكښے كولے شي ۔خودا په هغه وخت كښے چه خلق په ترتيب سره

ناست نه وی، اوکه په ترتیب سره ناست وی نو بیا سنت طریقه داده چه ښی طرف والا به مخکښې کولے شی، اګرچه هغه کشر ولے نه وی، دلیل پرے واقعه دابن عباسؓ ده لکه چه مخکښې حدیث کښې تیره شوه۔

**درجة الحديث** : رواه ابـوداود واسناده صحيح وهو بمعنى الحديث السابق (١٠) فی اول هـذا الـفـصل. تعليق المشكاة : ١/١١٣ـ وقال المباركفوری : رواه ابوداود بسند حسن كـمـا قـال الـحافظ فی الفتح والتلخيص، وقال المنذری : واخرج مسلم معناه من حديث ابن عمر مسندا، واخرجه البخاری تعليقا، انتهى (مرعاة : ٢/٨٦)۔

**١٤ – وَعَنهَا قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (تَفضُلُ الصَّلَاةُ الَّتِیْ يُسْتَاکُ لَهَا عَلَى الصَّلَاةِ الَّتِیْ لَا يُسْتَاکُ لَهَا سَبْعِيْنَ ضِعْفًا). رَوَاهُ الْبُيهَقِیُّ فِیْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ**

**ترجمه** : بی بی عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : هغه مونځ چه هغے دپاره مسواك اووهلے شی په هغه مونځ چه هغے دپاره مسواك اونه کړے شی اویا (٧٠) درجے فضیلت لری -(بیهقی)۔

**تشریح** : 'يُسْتَاکُ لَهَا' : ١ – ددے نه مراد دادے چه دمانځه په وخت کښې اووهلے شی۔ ٢ – یا دا چه ددغه مانځه په اوداسه کښې اووهلے شی، نو ان شاء الله چه الله تعالیٰ ته به دا اجر انسان ته ورکوی، اوکه دمانځه په وخت کښې هم ورسره اووهلے شی نو بیا به خامخا دا اجر ورته ملاویږی۔

**درجة الحديث** : رواه البيهقی فی شعب الايمان واحمد فی المسند : ٦/٢٧٢ ـ

دا حدیث حسن درجه کښې دے ځکه ددے روایت دپاره په حلیه الأولیاء کښې ابو نعیم دوه شاهدین ذکرکړیدی : عن ابن عمر باسناد جيد وعن ابن عباس باسناد صحيح، قاله المنذری (مرعاة : ٢/٨٦)۔ چه په هغے سره دا روایت حسن درجے ته رسیږی۔ رواه الحاكم (١/١٤٦) باسناد صحيح على شرط مسلم۔

**١٥ – وَعَنْ أَبِیْ سَلَمَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِیِّ ؓ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ**

اللهِ ﷺ يَقُولُ : ( لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلٰى أُمَّتِيْ لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَآءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ، وَقَالَ : فَكَانَ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ يَشْهَدُ الصَّلَوَاتِ فِي الْمَسْجِدِ وَسِوَاكُهٗ عَلٰى أُذُنِهٖ مَوْضِعَ الْقَلَمِ مِنْ أُذُنِ الْكَاتِبِ لَا يَقُوْمُ اِلَى الصَّلَاةِ اِلَّا اسْتَنَّ، ثُمَّ رَدَّهٗ اِلٰى مَوْضِعِهٖ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ اِلَّا أَنَّهٗ لَمْ يَذْكُرْ : وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

**ترجمه** : جناب أبو سلمهؒ فرمائی : زيد بن خالد جهنیؓ فرمائی : ما درسول الله ﷺ نه واوريدل : كه ما خپل امت دپاره دا مشكل نه ګڼړلے نو هغوئ ته به مے هر مونځ دپاره د مسواك كولو (ضروری) حكم وركړے وو، اوما به ورته حكم كړے وو چه د ماسخوتن مونځ دريمے حصے شپے پورے روسته كړی، راوی وائی : دے نه پس زيد بن خالدؓ به مونځ دپاره راتلو نو مسواكؓ به ئے غوږ كښے ايخے وو څنګه چه كاتب غوږ كښے قلم ګدی، هغه چه به كله مونځ ته اودريدلو نو مسواك به ئے كولو او بيا به ئے غوږ كښے كيخودلو ۔ (أبوداود، ترمذی)۔ أبو داود (لأخرت صلاة العشاء الى ثلث الليل) الفاظ نه دی ذكر كړدی، ترمذی وئيلی دی چه دا حديث حسن دے ۔

## تعارف : د ابو سلمه رضی الله عنه :

دده پوره نوم ابوسلمه بن عبد الرحمن بن عوف الزهری القرشی المدنی دے،خپل نوم ئے عبد الله يا اسماعيل دے، اوبعضے وائی چه ابو سلمه ئے خپل نوم دے، دا ثقه تابعی دے، فقيه اوكثير الحديث دے، او د مدينے د فقهائے سبعه ؤ نه شمار دے، په (٩٤) يا په (١٠٤) هـ كښے د (٧٤) كالو په عمر وفات شويدے ۔ دابو هريرةؓ اوعائشےؓ شاګرد دے۔

## تعارف : د زيد بن خالد الجهنی رضی الله عنه :

ابو عبد الرحمن، ده سره په فتح د مكه كښے د خپل قوم جهينه قبيلے جنډه وه۔ تول (٨١) احاديث ترے نقل دی۔ په كوفه كښے په سنه (٦٨) يا (٧٨) هـ كښے د (٨٥) كالو په

عمر وفات شویدے ۔

**فوائد الحديث** : په دے حدیث کښے مقدار دمسواك ذکر دے چه دومره اندازه به وی چه په غوږ باندے کیخودلے شی اومرئ ته رسیږی، کما مرّ ۔

۲ - د راوی (زید) عمل ذکر دے چه ده به په وخت د مانځه کښے مسواك همیشه استعمالولو د وجے د قول د نبی کریم ﷺ نه، اودا همیش والے معلومیږی د حصر نه (لا یقوم الی الصلاة الا استن) الفاظ پرے دلیل دے۔ نو د مشکوه په نکته کښے لفظ د (ربما) ذکرکول صحیح نه دی ۔

وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَآءِ اِلٰی ثُلُثِ اللَّيْلِ : د تاخیر نه مراد حکم د تاخیر دے یعنی ما به امت ته حکم کړے وے په ناوخته کولو د مانځه د ماسخوتن ۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود (٤٧) والترمذی (٢٣) وقال : حدیث حسن صحیح، قال الألبانی : وهو كما قال باعتبار طریق اخری له عند احمد (١١٦/٤) وقد تكلمت علیه فی صحیح سنن ابی داود رقم (٣٧)۔

* * * * * * * *

# باب سنن الوضوء

بعضې کتابونو کښې په دې مقام کښې (باب صفة الوضوء) دې، بعضو کښې (باب كَيْفِيَّةِ الوُضُوْءِ فِي السُّنَّةِ الْمُطَهَّرَةِ) دې، او بعضو کښې (باب سنن الوضوء) دې، لکه دلته بيا د فقهاؤ طريقه داده چه دوئ فرائض او واجبات او سنن اومستحبات جدا جدا ذکر کوی، او په دې څیزونو کښې فرق کوی، اوعام محدثين باب سنن الوضوء ذکر کوی، نو دا به کله په درجه د فرضو کښې وی، کله واجب، کله سنت اوکله به د مستحب په درجه کښې وی.

فقه حنفی کښې دی چه په اودس کښې واجب نشته بلکه صرف څلور فرائض دی په کښې، باقي ټول سنت دی، ځکه ﴿اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُؤُسِكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ .. الآية﴾ (المائدة) کښې څلور فرائض ذکر دی، نو باقي ټول سنت دی. ځکه چه د دوئ په نيز په احاديثو باندې فرضيت نه ثابتيږی .

ليکن علامه ابن الهمامؒ په فتح القدير (۲۰/۱) کښې رد کړيدې چه زمونږ د احنافو دا قول خطاء دې چه اودس کښې واجب نشته، وجه داده چه بسم الله د اوداسه په ابتداء کښې وئيل واجب دی، کما يأتي، لکه چه دا د محققينو علماؤ قول هم دې چه د اوداسه په ابتداء کښې بسم الله وئيل فرض دی، او د احنافو په نيز چه کوم واجب دی، جمهور علماء دا نه منی بلکه وائی : په دين کښې صرف فرض يا سنت دی، او دوئ واجب په معنیٰ د فرضو استعمالوی. سيوا د حج نه چه په دې کښې د امام احمدؒ په نيز واجب شته، ددې نه علاوه باقي مسائلو کښې صرف يا فرض ګڼړی يا سنت يا نفل وغيره. او احناف چه واجب منی نو صرف عملاً . اوعقيده د قطعيت او د وجوب پرې نه لری بلکه ظنی ئې شماری . خو ليکن راجح داده چه لکه څنګه چه عمل په دې سره واجب ګڼړی نو عقيده هم د وجوب پرې پکار ده ځکه چه ظنی دليل باندې ظنی عمل ثابتيږی ځکه چه عمل د عقيدې

مطابق کولے شی۔

نودا یو **سوال** دے په احنافو چه علامه آلوسی صاحب د روح المعانی هم دے طرفته متوجه شویدے چه عقیده د ظنیت او عمل په طریقه وجوب دواړه منافی دی۔

نو بناء په دے، په بسم الله باندے عقیده د وجوب لرل ضروری دی۔

**فائده عجیبه** : دا خبره زده کړه چه د تقلید ډیر سوالونه پرے حل کیږی، هغه داچه نبی ﷺ چرته دا نه دی فرمائیلی چه فلانی عمل کښے دومره واجب دی اودومره په کښے فرض دی، او دومره سنت او دومره مستحب دی۔ بلکه دا یو اصطلاح د علماؤ ده، اودے اصطلاح ډیر خلق بے عمله او بے تقویٰ جوړ کړل، ځکه چه مستحب عمل چاته بوس اوخزله هم نه ښکاری۔ صحابه کرامو د نبی کریم ﷺ نه په غالب احکامو کښے دا تپوس نه دے کړے چه دا فرض شو که واجب اوکه مستحب؟ بلکه هغوئ به صرف دا معلومولہ چه پیغمبر ﷺ دا کار کړیدے اوکه نه؟ لکه داخبره شاه ولی الله دهلوی صاحب په الانصاف او حجة الله (۴۰۴) کښے ذکر کړیده، چه دصحابوؓ په زمانه کښے د فرض او واجبو تپوس نه وو، دا وجه ده چه ابن عمرؓ نه چا تپوس اوکړو چه وتر واجب دی اوکه نه؟ نو هغه جواب ورکړو: ( اوتر رسول الله ﷺ وأوتر المسلمون) ۔ یعنے نبی کریم ﷺ او مسلمانانو وتر کړی دی نو ته ئے فرض او واجب څه کوے!

سیر اعلام النبلاء (۱۱۴/۸) کښے د عبد الله بن عمر بن الرماح نه نقل دی دا فرمائی :

دخلت علی مالك فقلت : یا ابا عبد الله ! مافی الصلاة من فریضة وما فیها من سنة ؟ اوقال : نافلة ؟ فقال مالك : کلام الزنادقة اخرجوه۔

یعنے : زه امام مالكؒ ته ورغلم تپوس مے ترے اوکړو چه په مانځه کښے څومره فرض دی او څومره په کښے سنت یا نفل دی، امام مالكؒ، غصه شو او وے فرمائیل : دا خو د زندیقان (بے دینه خلقو) خبرے دی۔ (دا سړے هم راته زندیق ښکاری، شاګردانو ته ئے اووئیل) دا اوباسئ۔

دا اصطلاح خو ددے دپاره علماؤ جوړه کړے وه چه مثلا یو شخص بسم الله په اوداسه کښے پریدی یامضمضه وغیره پریدی نو مونږ به په ده باندے څنګه فتویٰ ورکوو، چه آیا

دا شخص به دوباره اودس کوی، اوکه اودس ئې شویدے خو صرف نقصان والا دے، نو داحکامو مراتب ئې دشریعت نه پیژندلی دی، او دهغې مطابق ئې فیصله کړیده، چه مثلا چا فرض ترك کړل اودس ئې نه کیږی، یا واجب ئې ترك کړل نو مانځه کښې به سجده سهو کوی وغیره، نو دا احکام لګول صرف د علماؤ کار دے. اوکه عوام دا فرض او واجب سنت حکم زده هم نه کړی نو څه ګناهګار نه دی، کله چه دنبی کریم ﷺ په طریقه باندے اعمال کوی، او په (تَرَكْتُ فِيْكُمْ اَمْرَيْنِ) باندے عمل کوی، اوپه مانځه کښې په (صَلُّوْا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ) باندے عمل کوی. هاؤ ! د فرض او واجب اوسنت معلومول ورله بهتر دی، خو واجب پرے نه دی، اوکه دا د هر چا دپاره ضروری وے نو نبی کریم ﷺ به صراحت سره بیان کړی وے، نو دا پیژندل صرف مفتیانو علماؤ له پکار دی، عوام ئې که معلوم نه کړی نو څه نقصان په کښې نشته.

بیا دوئ دا د کوم ځائے نه معلوموی ؟ نودا ددے نه چه کله أمر راشی او قرینه صارفه د وجوب نه وی نو دا أمر به د وجوب دپاره وی، اوکه قرینه صارفه وی نو بیا به استحباب او سنیت یا اباحت دپاره وی.

نو بناء په دے تحقیق سره د مقلدینو دا اعتراض ختم شو چه اهل حدیثو ته وائی چه تاسو هر شے په قرآن او سنت ثابتوئ نو نبی کریم ﷺ کوم ځائے فرمائیلی دی چه مانځه کښې (الله اکبر) فرض دے ؟ مونږ وایو چه ددے پیژندل څه فرض هم نه دی. بلکه پیغمبر ﷺ په طریقه عمل کوه، الله اکبر وایه، مونځ دے کیږی.

۲ – دویم داچه هرکله دا څیزونه دین کښې شته خو صرف امامانو مجتهدینو راښکاره کړل نو بیا دین ناقص نه دے، لکه څنګه چه دوئ پرے خیال کوی. اوکه دین کښې نه وی او صرف امامانو د ځانه کړی وی نو بیا ورته ضروت نشته، نو بهر صورت تقلید باطل دے

بیا علماء چه فرضیت او وجوب معلوموی نو دا د امر نه څکه چه د الله او رسول ﷺ أمر منل ضروری دی، نو أمر به دپاره د وجوب وی، کله چه د وجوب نه اړونکے قرینه نه وی اود بل څه احتمال نه وی موجود. څکه مخالفت دأمر سبب دعذاب الیم اود فتنے دے، کما قال الله تعالیٰ : ﴿ فَلْيَحْذَرِ الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖۤ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ

اَلِيْمٌ﴾۔ سورة النور۔

بيا فرضيت او وجوب عند الجمهور يو شے دے، داوجه ده چه دوئ وائي : الأمر للوجوب، أي الفرضية ۔ او عند الأحناف فرق دے فرض هغه دی (ما ثبت بدليل قطعي ليس فيه شبهة) والواجب ما ثبت بدليل فيه شبهة۔

نو حاصل داشو چه دجمهورو په نيز په اوداسه کښے ډير فرائض دی، صرف څلور نه دی، كما سيأتي تحقيقها ۔ دا ضروری تحقيق دے که ځان دے پرے پوهه کړو۔

---

## الفصل الأول -اول فصل

١ - عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهٖ فَلَا يَغْمِسْ يَدَهٗ فِي الْاِنَاءِ حَتّٰى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا، فَاِنَّهٗ لَا يَدْرِيْ اَيْنَ بَاتَتْ يَدُهٗ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .

**ترجمه** : جناب أبو هريره رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلی دے : کله چه ستاسو کښے څوك چه د خپل خوب نه رابيدار شي نو تر هغے دے په لوښی کښے خپل لاس نه منډی تر څو پورے ئے چه درے ځله وينځلے نه وی، ځکه چه ده ته پته نشته چه دده لاس چرته شپه تيره کړيده ۔ (متفق عليه)۔

**تشريح** : اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهٖ فَلَا يَغْمِسْ يَدَهٗ فِي الْاِنَاءِ حَتّٰى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا :

دے حديث کښے مسئله داستيقاظ ده، مسئله دا ده چه کله يو انسان د خوب نه رابيدار شي نو دا به لوښی کښے لاس نه ننباسی ترڅو ئے چه درے کرتے په اوبو باندے وينځلے نه وی۔ اودا حکم دويخ هم دے دخوب پورے خاص نه دے ځکه نبی کريم ﷺ په ويښه هم لاس وينځلے دے، مخکښے دداخلولو نه لوښی ته، ليکن خوب کښے غالبا د نجاست تو هم وی ځکه ئے ذکرکړو ۔ اودا درے ځل لاسونه وينځل دمستحب او سنت په درجه کښے دی عند الجمهور، برابره ده که دخوب نه روسته وی اوکه داسے نه وی، ځکه نبی کريم ﷺ به عام حالاتو کښے لاس وينځل ۔

مِنْ نَوْمِهِ : په دې کښې اختلاف دې چه کوم خوب مراد دې د شپې که دورځې هم ؟

١ - امام حميدیؒ، ابن جريرؒ، حسنؒ او اسحقؒ فرمائي : داحکم دشپې دخوب په باره کښې دې چه د شپې دخوب نه بيدار شي نو لوښي ته لاس داخلول پکار نه دي، اود ورځې خوب کښې به داسې ضروري نه وي۔

**دليل** : ځکه حديث د ترمذی بشرح التحفه (۱/۱۱۵) کښې ورسره قيد من الليل ذکر دې، نو مطلق به محمول وي په مقيد باندې۔

۲ - دغه شان د ( بَاتَتْ يَدُهُ) نه استدلال کوي ځکه چه حقيقةً مبيت د شپې پورې خاص دې ۔ ۲ - ليکن امام شافعيؒ، احناف اوجمهور فقهاؤ مسلك دادې چه فرق نشته دخوب د شپې اود ورځې۔

**دليل** : دادې چه په دې حديث کښې ( فَإِنَّهُ لَا يَدْرِيْ) سره علت ذکر دې ځکه چه عدم درايت(علم) په نوم الليل والنهار دواړو کښې برابر دې، نو حکم به هم په دواړو کښې برابر وي، اودوئ د (من الليل) قيد نه جواب کوي چه دا قيد اغلبي دې او احترازی نه دې، يعنی غالبا خلق مستغرق خوب دشپې کوي، دا وجه ده چه دا روايت په بخاری کښې مطلق دې قيد ورسره نشه نو د جمهورو مذهب راجح شو او همدا ظاهر هم ښکاری۔

انظر تحفة الأحوذی (۱/۱۱۷)۔

**بله فائده** : کله چه يو شخص خوب نه پاځيدو او لاس اونه وينځی اولاس په اوبو کښې داخل کړی نو آيا اوبه پليتې شوې که نه ؟ نو صحيح داده چه نه پليتيږي، کما هو قول مالك۔دليل پدې باندې فتوی د عائشےؓ ده سنن کبری د بيهقی (۱/۱۸۷) کښې راځی عائشې نه تپوس اوشو په باره د يو شخص کښې چه لوخی ته لاس داخل کړی په حالت د جنابت کښې مخکښې د وينځلو نه ؟ هغې ورته اوفرمائيل : ان الماء لاينجسه شئ ولكن ليبدأ فيغسل يده قد كنت انا ورسول الله ﷺ نغتسل من اناء واحد ) يعنی اوبه په هيڅ شی باندې نه پليتيږي (ترڅو چه خوند رنګ بوئی ئې بدل نشی ) ځکه ما او رسول الله ﷺ به ديو لوخی نه غسل کولو۔انتهی۔

اوکه لاسونه اووينځی او بيائې لوښی کښې داخلوی نو هم خير دې ۔لکه په دې باندې د

(حَتّٰى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا) غايه دلالت کوی ۔
نو معلومه شوه چه مستعملے اوبه نجسے نه دی کما یأتی (الا اذا تغیر احد اوصافه)۔
خو دومره ده چه د وینځلو نه مخکښے لوښی ته لاس داخلولو سره انسان ګنهګار شو، د رسول الله ﷺ دحکم خلاف ئے اوکړو۔

**تنبیه** : په حاشیه کښے ئے د توریشتی خبره نقل کړیده چه دا لاس داخلول دهغه چا دپاره ممنوع دی چه استنجاء بالأحجار ئے کړے وی، ځکه چه په دے استنجاء کښے په مقعد باندے دنجاست آثار باقی وی نو کیدے شی چه لاس ئے مقعد له وړے وی۔ اوکه چرے استنجاء بالماء ئے کړے وی نو داخلول دلاس باك نه لری ۔ خو دا خبره خطاء ده، ځکه چه نبی کریم ﷺ تعمیم کړیدے، برابره خبره ده که استنجاء بالأحجار ئے کړے وی اوکه بالماء۔ په دواړو صورتونو کښے د وینځلو نه مخکښے لاس لوښی ته داخلول پکار نه دی ۔ وجه داده چه ډیر کرته داسے کیږی چه انسان باندے دانه ولاړه وی کله خوب کښے هغه ماته کړی ترخونو کښے ګوتے اووهی، زخمونو باندے لاس راکاږی، ذکر باندے لاس راکاږی، په ټولو صورتونو کښے لاس ګنده کیږی ۔ ۲ – دارنګه استنجاء بالماء کښے هم که انسان مقعد له لاس وروړی نو لاس ئے ګنده کیږی ۔
۳ – بله دا چه یواځے خو مقعد له لاس وروړل ګندګی نه ده بلکه کیدے شی ترخ یا ذکر یا پوزه کښے ګوتے اووهی ۔ وقد تقدم ۔

**فائده کښے فائده** : ددے بحث نه معلومه شوه چه نجاست متوهم له شریعت اعتبار ورکړیدے نو دهغے ازاله ضروری ده نو د نجاست حقیقی ازاله خو په طریق اولیٰ سره ضروری ده ۔برابره خبره ده که نجاست کم وی اوکه زیات ۔
بناء په دے باندے داحنافو دا مذهب دے چه شریعت قدر الدرهم نجاست په مقعد کښے معاف کړیدے، نو د دوئ په نیز په کومه جامه وغیره چه قدر الدرهم نجاست پریوځی او ورته یاد هم وی نو مونځ ورسره کیږی، اودا ئے قیاس کړیدے په نجاست فی المقعد باندے چه هغه خو معاف دے (عندهم) ولے چه استنجاء ددوئ په نیز سنت ده، نو داهم معاف شو، نو ددے نه ئے قاعده کلیه جوړه کړیده ۔

نو دا مذهب هم خطاء شو، يوه وجه مخكښې تيره شويده چه استنجاء فرض ده، نه سنت. نو د قدر الدرهم في المقعد دپاره څه دليل دے؟ ځكه چه عند الجمهور استنجاء فرض ده، او احناف ئے صرف سنت ګڼړي، او بيا ددے نه استدلال كوي په معافئ دقدر الدرهم نجاست باندے، دا استدلال مصادره على المطلوب ده، ځكه چه دليل هم دخپل كوره دے او مدعىٰ هم دخپل كوره ده (غير مُسَلم عند الخصم ده)، اول خو مونږ دا نه منو چه استنجاء دے سنت شي، پاتے لا دا چه بيا دے دا دليل د معافئ د نجاست قدر الدرهم هم اوګرځي. فتدبر فانه دقيق.

٢ – بله وجه داده چه كه اومنو چه مقعد كښې نجاست قدر الدرهم معاف دے نو په دے كښې خو ضرورت دے چه په كانړو باندے استنجاء مشروع ده، او ددے نه علاوه په بل ځائے كښې هيڅ ضرورت نشته، چه هلته دے هم قدر الدرهم نجاست معاف شي، او بيا دے په كښې قياسونه هم اوكړے شي، بلكه الله تعالىٰ فرمائي: ﴿وثيابك فطهر﴾ اودا مطلق دے شامل دے قدر الدرهم او زيات د قدر الدرهم دواړو ته، نو د قليل او كثير نجاست فرق هم باطل شو چه يو قدر الدرهم دے او بل زائد دے نه.

بيا احناف د قدر الدرهم دپاره دا حديث په دليل كښې پيش كوي:

(تعاد الصلاة من قدر الدرهم من الدم) أخرجه البيهقي: ٢/٤٠٤، والدارقطني: ١/٤٠١، عن أبي هريرة.

١ – ددے **جواب** دادے چه دا حديث موضوعي دے ددے په سند كښې روح بن غطيف متروك الحديث راوي دے، كذا في الضعفاء للعقيلي (٢/٥٦، ونصب الراية (١/٢١٢) وابن الجوزي والسيوطي في اللآلي، وقال البخاري: هذا الحديث باطل.

زيلعيؒ دابن حبانؒ نه نقل كوي: هذا حديث موضوع لا شك فيه، لم يقله رسول الله ﷺ، ولكن اخترعه أهل الكوفة، وكان روح بن غطيف يروي الموضوعات عن الثقات.

**خلاصه**: دا چه په دے باره كښې چه كوم احاديث رانقل دي هغه ټول موضوعي دي، لكه ددے تحقيق په فتاوى الدين الخالص (١/٤٢٦) كښې اوګوره.

٢ – **دويم** دا چه: په دے حديث باندے خو احناف هم عمل نه كوي بلكه د دوئ

مذهب خلاف دے، ځکه احناف قدر الدرهم نجاست معاف ګڼړی، او په دے حدیث کښے (تعاد الصلاة من قدر الدرهم من الدم) دے یعنے مونځ به راګرځوی ځکه قدر الدرهم نجاست معاف نه دے ۔ نو بیا ددے نه ولے احناف استدلال کوی ؟۔

٣ – دارنګه دے حدیث الباب کښے (فَلَا يَغْمِسُ يَدَهُ) کښے نجاست متوهم لره اعتبار ورکړے شویدے نو حقیقةً نجاست که قدر الدرهم وی اوکه ددے نه زیات وی نو هغه به په طریق اولیٰ سره نجس حسابیږی، کما مر۔ نو د قدر الدرهم مسئله بے أصله او باطله شوه ـ ځکه ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ او دا حدیث الباب، ددے په بطلان باندے صریح دلالت کوی ۔

**مسئله** : په دے کښے اختلاف دے چه غسل الیدین حکم په کومه درجه کښے دے ؟۔

١ – ابن عمرؓ، ابو هريرةؓ، حسن بصریؒ، امام احمدؒ په نیز دا حکم وجوبی دے، یعنی لاس وینځل فرض دی۔ کما ذکره ابن قدامه فی المغنی (١/١١١) ځکه أمر للوجوب دے او نهی دپاره د تحریم ده ۔

٢ – امام شافعیؒ په نیز دا حکم مسنون درجه کښے دے۔

٣ – او د امام مالكؒ ، اسحقؒ او اوزاعیؒ په نیز دا مستحب دے، ځکه حدیث کښے علت ذکر دے (فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي) سره ۔

لیکن احناف په کښے تفصیل کوی، کما فی البحر الرائق، که په لاس باندے نجاست یقینی وی نو غسل الیدین فرض دے، اوکه ظن غالب وی نو واجب دے، اوکه شك وی نو مسنون دے، اوکه شك نه وی نو مستحب دے ۔ (درس ترمذی : ١/٢٢٩)۔

دجمهورو په قول باندے دلته تو هم د نجاست علت ګرځول شویدے دپاره دحکم نوددوئ په نیز په وهم سره وجوب نه ثابتیږی، بلکه مسنون دے، او احمدؒ په کښے علت ته نظر نه کوی، نو نفس حکم د وجوب دپاره ګڼړی ۔

حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا : ددے مفهوم دادے چه درے کرتے لاس اووینځی نو بیا لوښی ته لاس داخلولے شی جائز ده، دے نه احنافو قاعده جوړه کړیده چه هر اندام به درے ځل وینځی په نجاست کښے ۔

٢ – جمهور وائی : دا قاعده نه ده بلکه بعض نجاسات یو یو ځل وینځل دی، لکه

مذی اود ماشوم متیاز ے۔ اوبعضې نجاسات دړے ځل او بعضې اووه ځله وینځل دی، لکه د سور الکلب نه به اووه ځله لوښې وینځلې شی، دا وجه ده چه امام مالکؒ فرمائی : دا حکم تعبدی دے که په لاس نجاست وی اوکه نه نو هم وینځل دلاس ضروری دی۔

فَاِنَّهُ لَا یَدْرِیْ : شان ورود د حدیث کښې امام نوویؒ د امام شافعیؒ نه نقل کړیدی چه د خوب نه پس د لاسونو وینځلو حکم په دے وجه شویدے چه عربو به استنجاء بالحجاره کوله، اولنګ به ئے اچولو او ملك ئے ګرم وو، نو بدنونه به ئے خوله شو دخوب په وجه نو په دغه زمانه کښې ددے خبرے زیات احتمال وو چه د اوده انسان لاس په مقام د نجاست باندے اولګی اوملوث شی، نو ځکه دا حکم اوشو، نو ددے نه بعضې علماؤ دا معلومه کړیده چه کوم شخص استنجاء بالماء کړے وی یائے پرتوګ اغوستے وی نو دهغه دپاره دا حکم نه دے۔

لیکن علامه ابو الولید الباجیؒ په دے باره کښې ښه خبره نقل کړیده چه په اصل کښې داحکم د طهارت دپاره نه دے بلکه د نظافت سره تعلق لری، یعنې اګرچه دلاس دنجس کیدو احتمال هم نه وی بیا هم لاس نه وینځل دخوب کولو نه پس د نظافت خلاف دی۔ او په شریعت کښې دطهارت سره نظافت لحاظ ساتل هم ضروری ښودل شوی دی، لهذا دا حکم دهغه زمانې پورے مختص نه دے بلکه ذهرے زمانې انسانانو دپاره دا حکم عام دے۔اوهمدا صحیح خبره ده، کما تقدم۔

شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ دا وجه بیانوی چه د لاسونو د وینځلو مشروعیت په دے وجه دے چه شیطان دے لاسونو ته ګوتے وروړی او مسه کوی ئے، او په دے باندے دلیل دا تعلیل دے چه (فانه لا یدری أین باتت یده) او دغه شان بل حدیث کښې دی (فان الشیطان یبیت علی خیشومه) شیخ بسامؒ فرمائی : (هذا تعلیل مرضی مقبول) توضیح الأحکام : ١/١٧٤۔

بعضې علماء وائی د خوب نه پس د دړے ځله لاسونو وینځلو حکم د حکمت نه مونږ نه یو خبر، البته د اعقیده لرو چه د الله تعالیٰ احکام مبنی وی په مصالح او منافعو د بندګانو باندے۔ او د نبی ﷺ دا الفاظ (فانه لا یدری این باتت یده) د علت پټ والی ته اشاره کوی۔

**فوائد** : ددے نه حديث نه نورے فائدے دا معلوميږي :

١ – په عبادت كښے په احتياط باندے عمل كول پكار دي۔

٢ – درے ځل نجاست وينځل مستحب دي، ځكه چه مونږ ته د درے ځلو وينځلو حكم شويدے په وخت د توهم د نجاست كښے، او چه كله يقيني نجاست وي نو په طريق اولىٰ به درے ځلو وينځلو حكم مستحب وي۔

٣ – علامه خطابيؒ فرمائي : كه په موضع النجاست (دُبر) كښے د نجاست اثر (بوئي) باقي وي، هم مونځ ورسره جائز دے، او دا رخصت خاص دے دے ځائے پورے۔

٤ – خوب سره اودس ماتيږي، قاله ابن عبد البر۔

٥ – په دے كښے تقويه ده د دليل د هغه چا چه مس الذكر ته ناقض وائي، حكاه ابو عوانةؒ في صحيحه عن ابن عيينة۔

٦ – د اوبو په لوخي كښے پاك لاس داخلولو سره اوبه نه پليتيږي، او نه مستعملے كرځي۔ ٧ – د حياء په خبرو كښے كنايه الفاظ استعمالول پكار دي كله چه مقصود (افهام) حاصليږي، هذا كله في فتح الباري (١/٢١٣)۔

**فائده** : (لايدري) نه نفي د علم الغيب عن غير الله معلومه شوه، چه ما سوى د الله نه هيڅوك عالم الغيب نه دے نو په دے (لا يدري) حكم كښے پير، شيخ، مزشد، عبد القادر جيلانيؒ او نور پيران فقيران ټول داخل دي ۔

---

٢ – وَعَنْهُ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهٖ فَتَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا، فَاِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيْتُ عَلٰى خَيْشُوْمِهٖ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : اود همدے أبو هريره رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : كله چه ستاسو كښے څوك د خپل خوب نه رابيدارشي او اودس كوي نو درے ځل دے (پوزے ته اوبه اچولو نه پس) پوزه سونړ كړي، ځكه چه شيطان دده د پوزے په بره حصه كښے شپه تيروي ۔ (بخاري، مسلم)۔

**تشريح** : فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا : دا حكم د فقه په عامو كتابونو كښے نشته او احاديثو كښے

راغلے دے، نو معلومیږی چه پوره دین د فقه په کتابونو کښے نشته دے۔

په دے کښے گوته وهل په پوزه کښے نه دی راغلی، که څوك ئے د صفائی دپاره کوی نو کوی دے، خو ضروری نه دی اونه مستحب دی، البته سونړول ضروری دی۔

بیا په دے کښے اختلاف دے چه استنثار - پوزے نه اوبه ویستل - کومه درجه کښے دی؟۔

۱ - امام احمدؒ، اهل ظواهرؒ فرمائی : استنثار کول واجب دی، اګرچه امام شافعیؒ، مالكؒ استنثار سنت ګنړی۔

**دلیل** : د دویٔ دادے چه په احادیثو کښے أمر راغلے دے په استنثار باندے لکه حدیث د سلمه بن قیس مرفوعا کښے دی (اذا توضأت فانتثر) رواه الترمذی : ۱/ ۱۰، والنسائی : ۱/ ۲۷۔ او پدے حدیث الباب متفق علیه کښے امر دے (فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلاثًا) ۔

او أمر د وجوب او فرضیت دپاره دے، او په دے کښے احتیاط دے، کیدے شی بغیر ددے نه اودس کول قبول نشی۔

۲ - عند الجمهور دا أمر د استحباب دپاره دے ۔ لیکن قول ئے بے دلیل دے۔

فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيتُ عَلَى خَيْشُومِهِ : دا علت ذکر کوی د پوزے سونړولو۔ بیا ددے نه مراد خو یا هر سړے دے چه دهغه په خیشوم یعنی د پوزے په دننه سوری کښے شیطان شپه تیروی ۔۲ - یا هغه څوك مراد دے چه ذکر اذکار ئے دشپے نه وی وئیلی، خو اول ظاهر دے، شیطان په خیشوم کښے ځکه ناست وی چه دا چوك دے، زړه، اودماغ ته لارے تلی دی، نو بدعتی مُلا په کښے شپه تیره کړیده وینځل ئے پکار دی ۔

بیا د شیطان په شپه تیرولو کښے دوه قوله دی (۱) بعضے وائی : دا په حقیقت باندے حمل دے، ځکه چه دا ځائے کهلاؤ دے، شیطان ورته داخلیدے شی، اوشیطان بند ځائے نشی کهلاوولے، کما فی الحدیث (ان الشیطان لا یفتح غلقا) ، او په حدیث کښے د تثاؤب یعنی آوسیلی په وخت کښے دخلے په پټولو باندے أمر راغلے دے ځکه چه شیطان په کښے داخلیږی۔ (۲) بعضے وائی دا مجاز دے ځکه چه دغه ځائے د رطوباتو اوګندونو اوغبار ځائے دے دشیطان سره موافق دے چه شپه په کښے تیره کړی، نو انسان له ددے پاکول پکار

دی، خو اول قول راجح دے چه دا په حقیقت باندے بناء دے ۔ دغه شان په هر ځائے کښے به قرآن او حدیث په ظاهر باندے حملولے شی ۔

---

۳ – وَقِيلَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ رضي الله عنه : كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَتَوَضَّأُ ؟ فَدَعَا بَوَضُوءٍ فَأَفْرَغَ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ ، ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلاثًا، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلٰثاً ثُمَّ غَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ، ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، بَدَءَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهٖ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا اِلٰى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتّٰى رَجَعَ اِلَى الْمَكَانِ الَّذِىْ بَدَأَ مِنْهُ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ. رَوَاهُ مَالِكٌ وَالنَّسَائِىُّ، وَلِأَبِىْ دَاوٗدَ نَحْوُهُ، ذَكَرَهُ صَاحِبُ الْجَامِعِ.

٤ – وَفِى الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ : قِيلَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ : تَوَضَّأْ لَنَا وُضُوْءَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ ! فَدَعَا بِاِنَاءٍ فَأَكْفَأَ مِنْهُ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثَلٰثاً ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ، فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلٰثاً، ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلٰثاً، ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَغَسَلَ يَدَيْهِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَمَسَحَ بِرَأْسِهٖ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ اِلَى الْكَعْبَيْنِ، ثُمَّ قَالَ : هٰكَذَا كَانَ وُضُوْءُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ .

وَفِىْ رِوَايَةٍ : فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهٖ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا اِلٰى قَفَاهُ، ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتّٰى رَجَعَ اِلَى الْمَكَانِ الَّذِىْ بَدَأَ مِنْهُ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ.

وَفِىْ رِوَايَةٍ : فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلٰثاً بِثَلٰثِ غَرَفَاتٍ مِنْ مَاءٍ . وَفِىْ أُخْرٰى : فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفَّةٍ وَاحِدَةٍ، فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلٰثاً. وَفِىْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِىِّ : فَمَسَحَ رَأْسَهُ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ مَرَّةً وَاحِدَةً، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ اِلَى الْكَعْبَيْنِ.

وَفِىْ أُخْرٰى لَهُ : فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ مِنْ غَرْفَةٍ وَاحِدَةٍ .

**ترجمه**: او عبد الله بن زيد بن عاصمؓ نه تپوس او شو چه رسول الله ﷺ به څنګه اودس کولو ؟۔ (دے آوريدو سره) عبد الله د اوداسه اوبه راوغوښتے، کوم وخت چه اوبه راوړے شوے نو هغه دواړو لاسونو باندے واچولے او هغه ئے مړوندونو پورے دوه دوه ځله اووينځل، بيا ئے خلے ته اوبه واچولے، بيا ئے پوزے ته درے ځله اوبه واچولے او سونړ ئے کړه، بيا ئے درے ځله مخ اووينځلو، بيا ئے دواړه لاسونه تر مړوندونو پورے دوه ځله اووينځل، بيا ئے په خپل لاس سره په سر مسح اوکړه (داسے چه) دواړه لاسونه ئے د مخے نه پورته بوتلل او روستو نه ئے مخے ته راوستل، يعنى د خپل سر د شروع نه ئے مسح شروع کړه او دواړه لاسونه ئے څټ پورے بوتلل، بيا ئے هغه ځائے ته را واپس کړل کوم ځائے نه ئے چه شروع کړے وه، بيا ئے دواړه خپے اووينځلے۔ (مالك، نسائى، ابوداود)، او بخارى او مسلم کښے دا روايت داسے دے : چه عبد الله بن زيدؓ بن عاصم ته اووئيلے شو چه رسول الله ﷺ څنګه اودس کولو نو هغسے تـه مونږ تـه هم اودس اوکړه ! نو عبد الله بن زيدؓ د اوبو لوښے راوغوښتلو، لوښے چه راوړے شو نو هغے نه ئے په دواړو لاسونو باندے اوبه راواړولے او درے ځله ئے اووينځل، بيا ئے خپل لاس (لوښى ته) داخل کړو او هغے نه ئے اوبه راوخکلے او (هغے سره ئے) مضمضه او استنشاق اوکړو په يو ورغوى سره، دا کار ئے درے ځله اوکړو، بيا ئے خپل لاس لوښى تـه ننـه ايستلو او اوبه ئے راوخکلے نو مخ ئے درے ځله اووينځلو، بيا ئے لاس ننـه ايستلو او اوبـه ئے را وخکلے او دواړه لاسونه ئے تر څنګلو پورے دوه دوه ځل اووينځل، بيا ئے خپل لاس لوښى ته ننه ايستلو او راويستلو نو په سر باندے ئے مسح اوکړه (داسے چه ) دواړه لاسو نه ئے د مخے نه شا طرفته بوتلل او بيا ئے د شا نه مخے طرفته راوستل، بيا ئے دواړه خپے تر پړکو پورے اووينځلے، بيا ئے اوفرمائيل : د رسول الله ﷺ اودس داشان وو۔

او د بخارى او مسلم په يو روايت کښے داسے دى : چه دواړه لاسونه ئے د مخکښے نه روستو طرفته بوتلل او بيا ئے د روستو نه مخکښے طرفته راوستل، يعنى د سر د ابتدائى حصے نه ئے شروع اوکړه او دواړه لاسونه ئے څټ طرفته بوتلل بيا ئے دواړه هغه ځائے ته واپس راوستل کوم ځائے نه ئے چه شروع کړے وه ، بيا ئے دواړه خپے اووينځلے۔ او د بخارى

او مسلم په يو بل روايت کښې داسې دي : چه (مسح دپاره ئې) خپل دواړه لاسونه دمخکښې نه روستو طرفته بوتلل بيا د روستو نه مخکښې طرفته ئې راوستل، يعنې د خپل سرد مخکنۍ حصې نه ئې مسح شروع کړه اولاسونه ئې څټ پورې بوتلل، بيا د څټ طرف نه ئې هغه ځائې ته راوستل چرته نه ئې چه مسح شروع کړې وه، بيا ئې خپلې خپې اووينځلې. او د صحيحينو په يو دويم روايت کښې داسې دي چه : خله ئې کنګال کړه او يو چونګ سره ئې پوزې ته اوبه واچولې دغسې ئې درې ځله اوکړل. اود بخاري د روايت الفاظ داسې دي : چه د سر مسح ئې اوکړه (داسې چه) خپل دواړه لاسونه ئې دمخکښې نه روستو طرفته بوتلل او د روستو نه ئې مخکښې طرفته راوستل او داسې ئې يو ځل اوکړل. بيا ئې دواړه پښې ئې ګيټو پورې اووينځلې . دبخاري د يو بل روايت الفاظ دادي : نو خلې ته ئې درې ځلې يو چونګ سره اوبه واچولې، او پوزه ئې صرف يو چونګ سره درې ځله سونړ (صفا) کړه .

**تشريح** : وَقِيلَ لِعَبْدِ اللهِ : دا اوس اختلاف الروايات ذکر کوي، ځکه حديث بعضې تفسير دبعضو وي .وقيل : قائل عمرو بن أبي الحسن الأنصاري چه رور دعماره بن أبي الحسن دې،عبد الله بن زيد بن عاصم الأنصاري مشهور صحابي دې، يو څو حديثونه ترې نقل دي، دا د وحشيؓ سره په قتل د مسيلمة الکذاب کښې شريك وو، بدرته حاضريدو کښې ئې اختلاف دې، په حره مقام کښې شهيد شوې دې، په آخر دذي الحجه سنه (۶۳) هـ، د (۷۰) کالو په عمر باندې، اودا عبد الله بن زيد بن عبد ربه نه دې، کوم ته چه په خوب کښې آذان خودلې شوې وو.

**فوائد الحديث** : ۱ – په اوداسه کښې د بل چانه استعانت غوښتل جائز دي .

۲ – لاس وينځلو کښې خوب نه پاڅيدل شرط نه دي، دا حديث پرې دليل دې .

۳ – دوه کرته وينځل دلاسونو هم جواز لري .

ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا : دلته درې الفاظ دي : مضمضه، استنشاق، استنثار .

مضمضه ديته وائي چه خله کښې اوبه واړوي راواړوي. او استنشاق پوزې ته اوبه اچول او پورته راخکلو ته وائي. او استنثار : بيرته دغه اوبو ويستلو ته وائي.

دلته ئې صرف استنثار ذکرکړو ځکه چه دا مستلزم دې استنشاق لره، ځکه چه اوبه

راويستل هله کيږي چه کله داخلې کړے شوې وي، نو استنثار فرع داستنشاق دے ـ نو دلته دعبارت معنیٰ داده چه (واستنثر أي بعد الاستنشاق) نو استنشاق التزاماً ذکر شو ـ

## مسئله : د مضمضه او استنشاق څه حکم دے ؟

د ټولو علماؤ په دے اتفاق دے چه دا دواړه مشروع دي خو آيا واجب دي او که نه ؟ـ په دے کښے اختلاف دے۔

١ - د امام شافعيؒ، مالكؒ، حسن بصريؒ، حمادؒ، قتادهؒ، ربيعهؒ، ليثؒ، اوزاعيؒ او يحيى الأنصاريؒ په نيز مضمضه او استنشاق په اودس او غسل الجنابة دواړو کښے واجب نه دي بلکه سنت دي۔

**دليل** : د دوئ سره قوي دليل نشته، سوا د دے نه چه حديث کښے راغلي دي (عشر من الفطرة) ـ چه په دے حديث کښے مضمضه او استنشاق ئے د فطرت نه شمارلي دي او فطرت نه مراد سنت دے، او فطرت ئے ورته څکه وئيلے دے چه د نور اودس نه مخالف دي، ليکن د دے جواب داد ے چه دا دليل صريح نه دے څکه چه فطرت سره نفي دوجوب نه راځي، څکه فطرت لکه څنګه چه سنت ته شامل دے دغه شان واجب او مندوب ته هم شامل دے، لکه ختان واجب دے او ديته ئے هم فطرت وئيلے دے۔

٢ - **بل دليل** : د اودس باره کښے حديث د اعرابي دے چه نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل : (توضأ كما أمرك الله) رواه ابوداود والترمذي، وقال : حديث حسن، ولكنه صحيح، كذا قال النووي في المجموع (١/٣٥٢)۔

نو حواله ئے په آيت باندے ورکړه او آيت کښے خو مضمضه او استنشاق او استنثار نه دي ذکر، نو واجب نشو ـ ليکن د دے نه هم جواب داد ے چه دا څيزونه د نبي کريم ﷺ نه صحيح ثابت دي او هغه پرے أمر کړيدے لکه روستو په دلائلو کښے راځي ـ نو مونږ به په قرآن پاك هم عمل کوو او د نبي کريم ﷺ په صحيح حديث به هم عمل کوو، د قرآن بيان نبي کريم ﷺ کړيدے، نو مضمضه او استنشاق بعينه (كما أمرك الله) کښے داخل دي، او دارنګه دا مقام د تعليم وو، په دے کښے ټول احکام بيانول په يو ځل آسان نه وو، نو څکه ئے ورته اختصارا اوفرمائيل : (توضأ كما أمرك الله) نو دا دليل د دے خبرے نه دے چه ګنے دا

دواړه واجب نه دي.

۳ - بله داچه کله د مخ په وینځلو امر اوشو نو حتما په کښې أمر بالمضمضه والاستنشاق هم راغلو، نو بعینه واجب شو.

۲ - د احنافو، سفیان ثوری" اود امام احمد" دویم قول دادے چه مضمضه او استنشاق په غسل الجنابت کښې واجب دي، او په اوداسه کښې سنت دي.

۱ - **دلیل** : دادے چه غسل کښې حکم مؤکد راغلے دے (فَاطَّهَّرُوْا) ځکه چه په غسل کښې مسح علی الخفین نشی کیدے او په اوداسه کښې کولے شی، اودارنګه په غسل کښې دګنړو وبښتو یخونه هم وینځل ضروري دي، په خلاف داوداسه نه، چه په ګیره کښې بیخونو ته اوبه رسول ضروري نه دي. كذا في المغني (۱/۱۵۷).

او په اودس کښې دعدم وجوب دلیل دا بیانوی چه حدیث کښې دی :

(عشر من سنن المرسلين) یو په کښې مضمضه او استنشاق دي، نو دا سنت دي په اودس کښې او فرض نه دي.

**جواب** : ددے نه جواب دادے چه حافظ په التلخيص الحبير (۱/۱۱٤) کښې فرمائیلي دي چه حدیث په دے الفاظو سره نه دے ثابت، بلکه داسے الفاظ دي (عشر من الفطرة)، رواه مسلم، او دا د باب السواك په څلورم نمبر حدیث کښې تیر شو.

اوکه بالفرض دا حدیث ثابت هم شی، نو بیا هم دلیل په عدم الوجوب باندے نه ګرځی، ځکه چه مراد دسنت نه طریقه ده، نه سنت په معنیٰ اصطلاحی اصولی سره. اوطریقه خو واجب ته هم شامله ده، كما مر في الفطرة.

۲ - **دویم دلیل** : استدلال کوی په حدیث دابن عباسؓ مرفوعا باندے : المضمضة والاستنشاق سنة رواه الدارقطني (۱/۸۵).

**جواب** : قال الحافظ في التلخيص : هو حديث ضعيف جدا، كذا في النيل : ۱/۱۷۳، وتحفة الأحوذي : ۱/۱۲۷، و اعلام الموقعين : ۲/۲۹۲، وفيه اسماعيل بن مسلم وهو ضعيف، قال علي بن المديني : لا يكتب حديثه، وقال يحيى بن معين : ليس بشيء، كذا في فتاوى الدين الخالص : ۱/٤۷۹.

۳ - **قول ثالث** : د جمهورو علماؤ يعنى : امام احمدؒ، اسحقؒ، ابو عبيدؒ، ابو ثورؒ، داود ظاهریؒ، ابن المبارکؒ، ابن ابی لیلیٰؒ، حماد بن أبی سلیمانؒ، ابو بکر بن المنذرؒ او عام محدثینؒ دمضمضے او استنشاق په وجوب (فرضيت) باندے قائل دی په اودس او غسل دواړو کښے ـ که چرے یو په کښے پریدی نو اودس اوغسل نه کیږی، بلکه اعاده یئے ضروری وی ـ

**د جمهورو دلائل** : ۱ - یو **دلیل** دادے چه قرآن او احادیثو کښے أمر راغلے دے، او أمر للوجوب وی، لکه د قرآن آیت دے ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ ـ أمر دے په غسل الوجه باندے، او مضمضه او استنشاق د متمماتو دغسل الوجه نه دی، او أمر په غسل الوجه أمر دے په دے دواړو باندے ضمناً ـ

(الاستذکار لابن عبد البرؒ ۱/۱۲٤، السیل الجرار : ۱/۲۲۱، للشوکانی ـ

۲ - **دلیل الوجوب** : حدیث د لقیط بن صَبِرہ رضی الله عنه کښے دی : (اذا توضأت فمضمض) أخرجه أبوداود (۱/۲۱) قال الحافظ : واسناده صحیح. (فتح الباری : ۱/۲۱۱)ـ

نو پدے حدیث کښے أمر بالمضمضه اوشو ـ

۳ - **دلیل** : حدیث دابو هریرةؓ دے : (ان رسول الله ﷺ قال : اذا توضأ أحدکم فلیجعل فی أنفه ماء، ثم لینثر) وسنده صحیح، أخرجه ابوداود : ۱/۲۹) وفی روایة مسلم : من توضأ فلیستنشق ـ

٤ - حدیث د : (واذا استیقظ احدکم من منامه فتوضأ فلیستنثر ثلاثا فان الشیطان یبیت علی خیشومه) بخاری باب بدء الخلق، فتح الباری : ۱/۲۱۱ ـ

٥ - دا حدیث الباب دلیل دے وفیه : (فلیستنثر ثلاثا)ـ

٦ - حدیث دابو هریرةؓ دے مرفوعا : قال : أمر رسول الله ﷺ بالمضمضة والاستنشاق، رواه الدارقطنی وقال : لم یسنده غیر هدبة وداد بن الحعد، وغیرهما یرویه عن عمار، عن النبی ﷺ مرسلاً ـ

لیکن زه وایم چه دا خبره ضرر نه رسوی ځکه چه هدبه د رجالو دصحیحینو نه دے نو دده رفع مقبوله ده، اوتفرد ئے هم مقبول دے ـ کذا فی النیل (۱/۱٥٦) و فتاوی الدین

الخالص (١/٤٧٦).

دلته هم أمر راغلو او فرق د وضوء اوغسل په كښې نشته بلكه په دواړو كښې يو شان د وجوب حكم دے.

**٧ - دليل** : حديث د لقيط بن صبرةؓ دے : اخبرني عن الوضوء ! قال : أسبغ الوضوء، وخلل بين الأصابع، وبالغ في الاستنشاق، الا ان تكون صائما) أخرجه ابوداود (١/٢٩) والترمذي : ١/١٤، وابن ماجة : ١/٧٠) واسناده صحيح.

**٨- بل دليل** الوجوب : حديث عائشةؓ دے : ان رسول الله ﷺ قال : المضمضة والاستنشاق في الوضوء الذي لا بد منه. أخرجه البيهقي : ١/٥٢، وفي سنده محمد بن الأزهر الجوزجاني، ولكن رواه البيهقي باسناد آخر، فقال : حدثنا ابو سعيد احمد بن محمد الصوفي عن ابن عدي الحافظ عن عبد الله بن سليمان بن الأشعث عن الحسين بن علي بن مهران عن عصام بن يوسف عن ابن المبارك عن ابن جريج عن سليمان بن يسار عن الزهري عن عروة عن عائشة الخ. وأخرجه الدارقطني أيضا : ١/٨٤.

**٩ - دليل** : د نبي كريم ﷺ هميش والے اومواظبت اوعدم ترك دائما، دليل دے چه دا واجب دي، ځكه چه دا قسم مواظبت دليل د وجوب وي. نو قولًا او عملًا اومواظبةً وجوب ثابت شو. او عمل دنبي كريم ﷺ بيان د قرآن دے، اوپه دے خبره كښې احتياط هم دے.

دے وجے نه حافظ ابن قيم رحمه الله فرمائي : ولم يتوضأ الا تمضمض واستنشق ولم يحفظ عنه انه اخل به مرة واحدة (زاد المعاد ١/١٨٧).

يعني : رسول الله ﷺ هيڅ داسے اودس نه دے كړے چه په هغے كښې ئے مضمضه او استنشاق نه وي كړے، او هيچا د رسول الله ﷺ نه دا نه دي نقل كړي چه هغه يو ځل هم په اوداسه كښې مضمضه او استنشاق پريښې وي.

٢ - حافظ عسقلاني فرمائي : ولم يحك احد ممن وصف ضوئه ﷺ على الاستقصاء انه ترك الاستنشاق، بل ولا المضمضة، وهو يرد على من لم يوجب المضمضة ايضا (فتح الباري : ١/٢٤٨).

یعنې : کومو صحابه کرامو چه پوره طور سره د نبی کریم ﷺ اودس نقل کړیدے په دوئ کښې هیچا هم دا نه دی نقل کړی چه رسول الله ﷺ استنشاق او مضمضه پریښې وی۔ او په دے حدیث کښې په هغه چا هم رد دے چه مضمضے ته واجب نه وائی۔ (السیل الجرار : ١/٢٢١، تحفة الأحوذی : ١/١٢٤)۔

احناف دا احادیث په درجه داستحباب کښې ګڼړی، خو د دوئ قول ضعیف دے، څکه چه أمر مطلق للوجوب دے، کله چه قرینه صارفه ددے په خلاف نه وی۔ لکه دلته نشته۔

١ - **سوال** : مضمضه او استنشاق څکه نه دی واجب چه د پوزے اود خلے اود وجه (مخ) نوم جدا جدا دے نو دا څنګه په وجه کښې تاسو داخلوئ او د وجه (مخ) حکم ورته ورکوئ چه وجوب دے ؟۔

**جواب** : بناء په دے باندے بیا خو د عینین، اهداب، خدین، جبهه، حاجبین او ظاهر الأنف اودارنګه د مخ د ټولو اجزاؤ دپاره جدا جدا نومونه دی، نو پکار ده چه بیا دا هم په وجه کښې تاسو داخل نه کړئ، اودا خو ډیربیکاره دلیل څکه دے چه ددے نه لازمیږی عدم وجوب د غسل الوجه۔ وهو باطلٌ عندکم أیضاً۔

٢ - **سوال** : تاسو چه مضمضه او استنشاق واجب ګڼړئ پکار ده چه غسل باطن العین هم واجب اوګڼړئ ؟۔

**جواب** : دا به هله لازمیدو چه د نبی کریم ﷺ بیان په دے سره نه وے منحصر، اوحال دا چه نبی کریم ﷺ باطن العین نه دے وینځلے، نو مونږ باندے هم ندی لازم، که هغه وینځلے وے نو مونږ به ولے نه وینځلو ؟ لکه مضمضه او استنشاق باندے دوام کړیدے نو مونږ به هم پدے دوام بلا ترک کوو۔

دا وجه ده : امام شاه ولی الله دهلوی په حجة الله البالغة (٢/١٧٥) کښې فرمائی :

چه ما په دے باره کښې صحیح صریح روایت نه دے موندلے چه نبی کریم ﷺ بغیر د مضمضے او استنشاق او ترتیب نه اودس کړے وی، نو دا ډیر مؤکد دی غایة الوکادة۔

والتفصیل فی المحلی : ١/٢٤٩، وتمام المنة ص: ٩٢، المغنی : ١/١٥٦، والنیل : ١/١٧٤)۔

## تكميل : د مضمضې او استنشاق طريقه :

په مضمضه او استنشاق كښې صحيح صريح سنت طريقه داده (١) چه يوه غُرفه كښې اوبه واچولې شي، نيم د خلې دپاره او نيم دپوزې دپاره، لكه په دې حديث د عبد الله بن زيدٌ كښې مرفوعا دي : (ان رسول الله ﷺ تمضمض واستنشق من كف واحد فعل ذالك ثلاثا) متفق عليه ـ ٢ - اوجدا جدا اوبه هم دهر يو دپاره راخستل جواز لري چه اول دخولې دپاره بيا د پوزې دپاره اوبه راواخلي دا هم په بعضې احاديثو كښې راغلې ده، په دې كښې د افضليت اختلاف دې۔

١ - احناف وائي : ست غرفات بالفصل أفضل دي، يعنې درې درې چونگونه اخستل دخولې اوپوزې دپاره جدا جدا۔

٢ - او د امام شافعيٌ امام احمدٌ او امام بخاريٌ قول دادې چه ثلاث غرفاتٍ بالوصل أفضل دي، داد امام مالكٌ نه يو هم روايت دې، يعنې درې غرفې (چونگونه) به راواخلي او خلې او پوزې ته به ئې شريك واچوي۔

بيا په دې كښې درې طريقې بيانوي (١) يو دا چه نيمې اوبه پوزې ته واچوي او نيمې خلې ته (٢) دواړو ته ئې په يو ځل ورواچوي لږې به خلې ته لاړې شي اولږې به پوزې ته۔ ځوك چه په دې آموخته شي نو داكار ورته آسان وي (٣) دريم دا چه اول ئې خلې ته واچوي بيا ئې بيرته را اوباسي او پوزې ته ئې واچوي۔ دا طريقه لږه مستقذره شان ده، ظاهر حديث دويمه طريقه ده۔ دا مسئله به روستو هم راشي ان شاء الله ـ

**فيصله** : دواړه طريقې جواز لري، اوديته تنوع في العبادات وائي، خو ليكن د وصل (ومن كف واحد) روايات په صحيحينو كښې راغلي دي، اود فصل روايات سنن كښې راغلي دي، اگرچه بعضو كښې لږ كلام هم شته۔

او أكثر علماؤ د وصل رواياتو ته راجح وئيلي دي، كما قال في سبل السلام والتحفة والعيني وهو الأصح۔ نو أكثر وصل كوه، او كله كله فصل كوه ـ

او نور دلائل او احاديث د ترجيح په تحفة الأحوذي (١/٤١) كښې اوگوره ـ

مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ : په احاديثو كښې **د اوداسه ځلور طريقې** اوكيفيات ذكر شوي دي :

۱ - **اول کیفیت** : دادے چه یو کرت ټول اندامونه اووینځلے شي یعنې یو کرت لاسونه، یو کرت مخ، یو ځل لاسونه تر څنګلو پورے، بیا یو ځل مسح او یو ځل خپے اووینځلے شي ۔ دا طریقه په بخاري (۲۷/۱) کښے په حدیث دابن عباسؓ کښے راغلے ده (توضأ النبي ﷺ مرة مرة). وسيأتي۔

۲ - **دویم کیفیت** : په دے حدیث کښے ذکر دے چه (مرتین مرتین) یعنې دوه دوه ځله اندامونه اووینځي، دوه ځله لاسونه تر مروندونو پورے، دوه ځله لاسونه تر څنګلو پورے، یو کرت مسح او دوه ځله خپے اووینځي۔ دا په بخاري (۲۷/۱) کښے د عبد الله بن زیدؓ په حدیث کښے راغلے ده (ان النبي ﷺ توضأ مرتين مرتين)۔

۳ - **دریم کیفیت** : دادے چه درے درے ځله اندامونه اووینځي او یو ځل په سر مسح اوکړي، دا کیفیت هم په بخاري (۲۷/۱) کښے په حدیث د عثمان بن عفانؓ کښے ذکر دے، چه د نبي کریم ﷺ د اوداسه کیفیت ئے خپل شاګرد ته خودلو، مسلم کښے هم راغلے دے۔ وابوداود والترمذي عن علي ۔

٤ - **څلورم کیفیت** : دا وضوء مختلف دے په دے کښے یو (۱) کیفیت دادے چه لاسونه ابتداءً کښے دوه ځله اووینځي، بیا مخ درے ځله، بیا لاسونه تر څنګلو پورے دوه دوه ځله اووینځي، او یو ځل مسح اوکړي، او بیا خپے اووینځي – بخاري : ٤١/١، باب مسح الرأس كُلِّهِ۔ (۲) دویم کیفیت : چه لاسونه مروندونو پورے درے ځله، مخ هم درے ځله، لاسونه څنګلو پورے دوه دوه ځله، مسح یو ځل، او بیا خپے دوه ځله اووینځي۔ (عدد نشته، البته دارقطني : ۸۲/۱، کښے دي : ورجليه مرتين، بسند صحيح) ۔ دا طریقه هم په حدیث د عبد الله بن زیدؓ کښے په بخاري (۳۱/۱) باب غسل الرجلين کښے ذکر ده۔

دا ټولے طریقے په احادیثو کښے راغلي دي، په دے باندے د ټولو علماؤ اجماع ده (لکه دا اجماع علامه شوکانيؒ هم ذکر کړیده په النیل : ۱۷۵/۱، ۲۱۵، کښے) چه په انسان باندے په اوداسه کښے صرف یو یو ځل اندامونه وینځل واجب (فرض) دي، او درے درے ځله وینځل سنت دي، ځکه چه نبي کریم ﷺ کله کله اکتفاء په یو دوه او درے ځلو باندے هم کړیده، کما مرّ، که درے یا دوه ځله وینځل د هر اندام واجب وے نو یو یو وینځل به نه

وي ثابت.

نو په يو ځل كښي صرف جواز قدري دي، صرف واجب پري ساقطيږي، او دوه ځله درميانه حالت دي او دري ځله وينځل بهتر دي، او په دې سره كمال په اوداسه كښي پيدا كيږي.

اود دري ځلو نه زيات وينځل حرام دي، لكه دا په روايت دابو داود رقم (۱۳۵) كښي راغلي دي : (فمن زاد على هذا او نقص فقد تعدى وظلم). اګرچه په دې روايت كښي (أو نقص) لفظ شاذ دي. كما أشار الشوكاني في النيل : ۱/۲۱٦، الى الشذوذ. وقال الألباني :شاذ، كذا في في صحيح أبي داود رقم (۱۳۵)، وقال ابن المبارك : لا آمن اذا زاد في الوضوء على الثلاث أن يأثم، وقال الامام احمد واسحق : لا يزيد على الثلاث الا رجل مبتلى، وقال الشوكاني : لا خلاف في كراهة الزيادة على الثلاث، كذا في فتاوى الدين الخالص ۱:/۴۹۱.

يعني : شيخ الباني وائي (او نقص) لفظ شاذ دي. او عبد الله بن مبارك فرمائي : چه دري ځلو نه زيات اندامونه اووينځي نو ماسره خطره ده چه ګنهګار به شي. امام احمدؒ او اسحقؒ فرمائي : دري كرتو نه زيات وينځل صرف وسواسي سړي كوي. امام شوكانيؒ فرمائي : په دې كښي اتفاق دي چه دري كرتو نه زيات وينځل مكروه دي.

نو صاحب د هدايه (۱/۲۰) چه (والوعيد لعدم رؤيته سنة) سره جواز وركړي دا خطاء دي. هغه وائي پدې حديث كښي وعيد د هغه چا دپاره دي چه دري كرتو نه زيات وينځلو ته سنت وائي او دري كرت سنت نه ګڼړي او كه يو انسان دري ځله وينځل سنت ګڼړي او زيادت د احتياط دپاره اوكړي نو جواز لري. (پدې عبارت بعض مولبان ندي پوهه شوي نو وائي دا خبره هدايه كښي نشته). وجه د خطائي د صاحب هدايه داده چه پدې سره د انسان نه وسواسي جوړيږي او احتياط صرف په عمل د نبي كښي دي. او نبي عليه السلام زيادت كونكي ته مسيء، ظالم او متعدي وائي.

اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ : أي مع المرفقين، دا دواړه داخل دي په غسل اليدين كښي، او په دې مقام كښي غايه په مغيا كښي داخل ده. وهو القول الراجح. اودلته (الىٰ) په معنىٰ د (مَع)

دے، اودلیل په دے باندے دادے چه نبی کریم ﷺ په اوداسه کښے دا وینځلی دی، لکه دارقطنی (۸۳/۱) د عثمانؓ حدیث راوړیدے (باسناد حسن، قاله فی التعلیق المغنی : ۸۳/۱، للعظیم آبادی) چه په کښے د نبی ﷺ د اوداسه کیفیت ذکر دے، دا الفاظ دی په کښے (فغسل یدیه الی المرفقین حتی مس أطراف العضدین) دارنگه حدیث دجابرؓ ئے هم نقل کړیدے (قال : کان رسول الله ﷺ اذا توضأ أدار الماء علی مرفقیه) واسناده ضعیف. بلوغ المرام : ۱۹۱/۱، بشرح التوضیح.

مسند البزار اوطبرانی کښے د وائل بن حجرؓ حدیث دے په صفة الوضوء کښے په هغے کښے دی (وغسل ذراعیه حتی جاوز المرافق).

دارنگه طحاوی کښے حدیث د ثعلبه بن عباد عن أبیه مرفوعا نقل دے :

(ثم غسل ذراعیه حتی یسیل الماء علی مرفقیه). فتح الباری : ۲۳٤/۱.

په دے حدیثونو کښے اگرچه په بعضو کښے کلام شته، لیکن دیو بل تقویه کوی، کذا فی سبل السلام (۶۰/۱). قال الحافظ فی حدیث جابر عند الدارقطنی : اسناده ضعیف، ویغنی عنه ما رواه مسلم عن ابی هریرة انه توضأ حتی اشرع فی العضد، قال : هکذا رأیت رسول الله ﷺ توضأ. وقال ابن القیم : حدیث ابی هریرة فی مسلم فی صفة وضوء النبی ﷺ (انه غسل یدیه حتی اشرع فی عضدیه) یدل علی ادخال المرفقین فی الوضوء (توضیح الأحکام : ۱۹۱/۱). یعنی د مسلم حدیث کښے د نبی علیه السلام د اوداسه په کیفیت کښے داسے دی چه لاسونه ئے اووینځل تردے چه څنگلے ئے په وینځلو کښے داخلے کړے (یعنی د څنگلو نه ئے زیادت کړیدے).

دا وجه ده امام اسحٰق بن راهویهؒ فرمائی : چه په قرآن کریم کښے (الیٰ) کښے دوه احتماله دی (۱) یودا چه دا (الیٰ) په معنیٰ د انتهاء الغایه شی (۲) اودا احتمال هم شته چه په معنیٰ د (مع) شی. نو سنتِ نبوی ددے خبرے بیان اوکړو چه دا (الیٰ) په معنیٰ د (مع) دے، کما مرّ من فعله ﷺ.

اود امام شافعیؒ نه منقول دی چه هغه فرمائی : لا اعلم خلافا فی ایجاب دخول المرفقین فی الوضوء. نو دا گویا اجماعی مسئله ده چه څنگلے په لاسونو کښے داخل دی،

نو ددې وينځل هم واجب دي۔

زمخشري په كشاف كښې هم داخبره كړيده چه لفظ د (الیٰ) مطلقا په معنیٰ دغايه سره راځي، اودا خبره چه آيا ددې مابعد په حكم د ماقبل كښې داخل دې، كه خارج ؟ نودا دليل ته محتاج دې، لكه مثال دهغه چه دليل موجود وي په خروج دهغې باندې دا قول دالله تعالیٰ دې : ١ - ﴿ فنظرة الى ميسرة ﴾ دلته ميسره په انتظار كښې نه ده داخل۔

٢ - دارنګه : ﴿ ثم أتموا الصيام الى الليل ﴾ كښې ليل په صيام كښې نه دې داخل، ځكه بيا وصال لازميږي او وصال حرام دې۔ او مثال دهغې چه دليل موجود وي په دخول باندې لكه (قرأت القرآن من أوله الى آخره) يا لكه : ﴿ من المسجد الحرام الى المسجد الأقصى ﴾ كښې بيت المقدس په اسراء كښې داخل دې۔

اودلته خو تاته معلومه شوه چه دليل موجود دې په دخول المرافق په غسل اليدين كښې د وجې د هغه احاديثو سابقهؤ نه ۔

نو مذهب دهغه علماؤ چه مرفقين په غسل اليدين كښې وجوبا داخل ګڼړي حق شو، اودا مذهب دجمهورو علماؤ دې، لكه عطاء، مالك، شافعي، اسحق، ابو حنيفه او صاحبين - رحمهم الله جميعًا۔

او مذهب د امام زفرؒ، ابن داودؒ او بعضې مالكيانو - چه قائل دي په عدم وجوب د غسل المرفقين باندې - خطاء شو ۔

اود دوئ استدلال په حرفِ الیٰ باندې دې، چه دا راځي دپاره د انتهاء الغايه، نو الله تعالیٰ أمر كړيدې په وينځلو دلاسونو ترځنګلو پورې نوما بعد د (الی) چه مرفقين دي، دابه نه وي داخل په حكم د ما قبل دالیٰ كښې چه غسل اليدين دي، لكه د ﴿ أتموا الصيام الى الليل ﴾ پشان، ليكن وجه دخطائی تاښه اوپيژندله چه عمل د نبي كريم ﷺ دليل دې د خطائی ددې قول دپاره كما مرّ ۔

**ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ : فائده** :د سر په مسح كښې :١ - يو **كيفيت** دادې چه د ابتداء د سر نه به شروع اوكړي او آخر ته به او رسيږي، او واپس به هغه ځائې ته راشي كوم ځائې نه چه ئې شروع كړې وه۔ دا طريقه په دې حديث الباب كښې هم ذكر ده ۔

**۲ - دویم کیفیت** : چه د سر د مینځ نه مسح شروع کړی او دا په حدیث د رُبَیّع کښې راغلې دے، کما فی أبی داود رقم (۱۲۸) او دا په هغه وخت کښې چه کله ویښته د انسان ګومنز شوی وی، نو په اول کیفیت عمل کولو سره ویښته خرابیږی، نو د مینځ نه دے شروع اوکړی ۔ فمسح الرأس کله من قرن الشعر کل ناحیة لمُنْصَبِّ الشَّعْرِ۔

**مسئله جلیله** : په **مسح د سر** کښې **درے طریقے** راغلی دی : (۱) اول : ټول سر مسح کول د اول نه تر آخره پورے (۲) نیمائی مسح په سر او نیمائی په عمامه (پټکی) باندے کول (مسح علی الخفین ومقدم رأسه وعلی عمامته – الحدیث)۔ او یوائځے ناصیه (تندی) باندے مسح کول نه ده نقل شوے (۳) صرف په عمامه باندے مسح کول، بغیر د مسح کولو د ویښتو نه۔

اول قسم مسح په حدیث د عبد الله بن زید ؓ کښې راغلې ده،لکه حدیث الباب شو، چه بخاری (۱/۵۸، اومسلم (۱/۱۲۳) ترمذی (۱/۲۸)، صحیح ابی داود رقم (۱۱۸) احمد (۳۸/٤) دارمی (۱/۷۰۰) او حمیدی (۱/٤۱۷) او ابن خزیمة (۱/۱۵۵) هم روایت کړیدے ۔

دویم قسم د مسح په حدیث دمغیره بن شعبهؓ کښې راغلې دے چه دا مسلم (۱/۱۳٤) باب المسح علی الخفین کښې ذکر دے او صحیح حدیث دے ۔

او دریم قسم مسح په حدیث دعمرو بن امیه الضمریؓ کښې ده (أنه رأی رسول الله ﷺ مسح علی الخفین والعمامة، وفی روایة : قال : رأیت رسول الله ﷺ یمسح علی عمامته وخفیه) رواه احمد ۳۸/۲، والبخاری وابن ماجة، وفی روایة مسلم (۱/۱۳٤) عن بلال ان رسول الله ﷺ مسح علی الخفین والخمار، قال النووی : یعنی بالخمار العمامة، لأنها تخمر الرأس ای تغطیه (مسلم : ۱/۱۳۵)، باب المسح علی الخفین۔

**نکته بدیعه** : په مسح د سر کښې څه خاص کیفیت دکیفیاتو مذکوره نه علاوه د نبی ﷺ نه دے ثابت ۔ او کوم کیفیت چه بعضے فقهاؤ ذکر کړیدے چه اودس کونکے به درے ګوتے د هر لاس د سر په ابتداء باندے کیدی او دوه ګوتے به لاندے ساتی او په دے طریقه سره به ئے راکاږی په سر باندے تر آخره پورے او بیا به دوه ګوتے هم کیدی او واپس به ئے

ابتداء د سر ته راکاږی، (کما فی منية المصلی) نو دا کيفيت په هيڅ صحيح حديث کښې نه دے ثابت، بلکه دځانه جوړے شوے کيفيت دے. کما فی الکفاية (۲۹/۱) ذيل فتح القدير ۔ اودا کيفيت ځکه ذکر کوی چه که دوه ګوتے ورسره هم ملاؤ کړی نو بيا دا اوبه مستعملے ګرځی. درس ترمذی کښې ليکلی چه دا طريقه په ابن حبان کښې شته دے، ليکن حواله غلطه ده، ابن حبان کښې نشته.

## الاختلاف فی مقدار مسح الرأس المفروض

۱- په دے کښې خو د ټولو أئمو اتفاق دے چه ټول سر په مسح کښې راګيرول افضل او مستحب دی (په هغه طريقه سره کوم چه دے حديث الباب کښې ذکر ده).

۲ - او په دے کښې هم اتفاق دے چه مسح د سر فرض ده ۔ ليکن په مقدارِ جائزه کښې اختلاف دے چه څومره مقدار باندے مسح اوشی نو کافی ده ؟ په دے کښې يو څو اقوال دی :

**۱ - اول قول** : د امام شافعیؒ سفيان ثوریؒ دے دوئ فرمائی : چه يو ويښته يا دوه ويښتو يا درے ويښتو باندے مسح کافی ده علی اختلاف الروايات ۔ اودا قول په أدنیٰ درجه دکمزورئ کښې دے، دليل نقلی صريحی په دے نشته دے.

**۲ - قول ثانی** : د امام ابوحنيفهؒ دے چه ربع الرأس (مقدار الناصيه) يعنی مطلقا څلورمه حصه د سر مسح کول کافی دی، که د سر هر طرفنه وی ۔

**۳ - قول ثالث** : امام اوزاعیؒ، ليث بن سعدؒ او امام نوویؒ قول دادے چه مسح دمقدم رأس به کوی. دا درے واړه اقوال بناء دی په دے باندے چه مسح د بعض الرأس کافی ده، او ټول سر باندے مسح کول واجب نه ده.

۱- احناف استدلال کوی په حديث د مغير بن شعبهؓ باندے چه په هغے کښې دا الفاظ دی (ومسح علی ناصيته) أخرجه البخاری (۵۸/۱) مسلم (۱۵٤/۱) وسيأتی فی هذا الباب.

**۱- جواب** : دا استدلال ناقص دے ځکه چه په دے حديث کښې عمامه (پټکے) هم راغلے دے او په هغے باندے احناف عمل نه کوی، بلکه دسره ئے منی هم نه، نو په نيم حديث عمل کوی او باقی نيم باندے عمل نه کوی (دا جواب احنافو ته علامه ابن الهمامؒ

ورکړيدي)۔

په دے وجه امام كمال الدين الحنفي په الكفايه (١/١٦) کښې سخت رد کړيدے په احنافو باندے چه د دوئ مذهب په دے باب کښې ضعيف دے ځکه چه دليل أخص دے د مدلول نه، ځکه مدلول مقدار الناصيه دے وهو ربع الرأس اودليل کښې خو تعين الناصيه راغلے دے، ومثله لا يفيد المطلوب۔

۲ – **دويم جواب** : دا چه په حديث کښې خو ناصيه ذکر ده او احناف ربع الرأس مطلقا واجب وائي، که دهرے حصے نه وي۔ نو استدلال ناقص شو۔

۳ – **دريم رد** دادے چه په حديث د مغيره بن شعبةؓ کښې داسے الفاظ راغلي دي : (ان النبي ﷺ توضأ فمسح بناصيته وعلى العمامة وعلى الخفين) رواه مسلم، كما في المشكاة (١/٤٦) يعنے نبي کريم ﷺ په تندي باندے مسح اوکړه اودائے بيا کامله کړيده په عمامه باندے، نودا په ټول سر باندے مسح ده، خو نيم په تندي او نيم په عمامه باندے، او صرف په تندي باندے مسحه نه ده شوے۔ دا وجه ده چه امام حافظ ابن القيمؒ په زاد المعاد (١/٦٧) کښې فرمائي : چه مسح د بعضے سر د نبي کريم ﷺ نه په هيڅ صحيح حديث کښې نه ده ثابت، اوپه حديث دمغيرهؓ کښې چه مسح دبعضے سر ده نو هلته هم اقتصار په بعض الرأس نه دے شوے بلکه مسح ئے کړيده په ناصيه باندے او کامله کړيده په عمامه باندے۔ لکه دا کيفيت مخکښې هم تير شو۔

اوس که څوك **سوال** اوکړي چه مسح په بعض الرأس باندے خو په عمل د ابن عمرؓ کښې راغلے ده لکه دا خبره ابن المنذرؒ وغيره کړيده، اوصحابوؓ په ده باندے انکار نه دے کړے نو دا دليل دجواز شو، كما قال ابن حزم في المحلى (١/٢٩٨، مسألة رقم : ١٩٨، وفتح الباري : ١/٢٣٤۔

**جواب** : اول خو دا خبره واوره چه دالله او رسول ﷺ نه ماسوا د بل چا په قول او عمل کښې حجت نشته، زمونږ ددين شارع الله دے او هغه نبي کريم ﷺ ته خودنه کړيده او د نبي کريم ﷺ نه د بعضے سر مسح نه ده ثابته۔

۲ – دويم دا چه په دے حديث دابن عمرؓ کښې تاويل هم شته او هغه دا چه کيدے شي چه

ابن عمرؓ عمامه (پټکے) وهلی وی نو بعضے مسح په سر شوے وی او بعضے په عمامه باندے۔ او په دے طریقه سره به ئے نبی کریم ﷺ لیدلے وی، لکه مخکښے حدیث تیر شو۔

او مرفوع روایت په کښے نشته، مګر د عطاء نه مرسلا نقل دی، خو هغه حجت نه دے قال علی بن المدینی : مرسلات مجاهد احب الی من مرسلات عطاء بکثیر، کان عطاء یأخذ من کل ضرب۔ وقال یحیی بن سعید : مرسلات سعید بن جبیر احب الی من مرسلات عطاء، (جامع التحصیل للعلائی ص : ٣٧۔ نو دا مرسل قابل قبول نه دے۔

٤ - **څلورم قول** : دامام احمدؒ، امام مالكؒ او امام بخاریؒ دے اودا راجح قول دے په اعتبار د دلائلو سره، دویٔ وائی چه د **ټول سر مسح واجب** ده، او استیعاب کول ضروری دی، لکه چه طریقه ئے مخکښے ذکر شوه۔

**دلائل ددے قول** : ددے قول ډیر دلائل دی، بعضے د هغے نه دادی :

١ - **اول دلیل** : آیت : ﴿ فامسحوا برؤسكم ﴾ المائده : ٦۔

په دے آیت کښے داخبره ده چه مسح اوکړیٔ په سرونو باندے او سر د انسان د مریٔ نه پورته چه څو مره اعضاء دی – لکه مخ، ګیره، د سر ویښته وغیره – هغے ته شامل دے. خو کله چه الله اودس جدا ذکر کړو، نو د بعضے اندامونو د غسل (وینځلو) حکم اوشو اود سر ویښتو دپاره مسح پاتے شوه، که چرے د غسل حکم نه وے شوے نو د مخ، ګیرے ویښتو وغیره باندے به هم مسح واجب وے، لکه دا استدلال امام قرطبیؒ په خپل تفسیر (٦٧/٦) کښے ذکرکړیدے ۔اودیته امام مالكؒ هم اشاره کړیده په قول خپل سره چه کله دده نه تپوس اوشو چه مسح دبعض الرأس اوکړی اوبعضے پریدی نو آیا دابه جائز وی اوکه نه ؟ نو هغه جواب ورکړو : (أرأیت ان ترك غسل بعض وجهه أكان یجزیه ؟) یعنے که یو شخص د مخ څه برخه اونه وینځی نو دابه څه جائز وی ؟ نو هرکله چه دا ناجائز ده نو بعض مسح خو په طریقه اولیٰ سره ناجائز ده۔ صحیح ابن خزیمة رقم : ١٥٧، الموسوعة الفقهیة المیسرة : ١١٣/١، للشیخ حسین بن عودة۔

**سوال** : که څوك اووائی چه (برؤسكم) کښے باء د تبعیض دپاره ده، یعنے په بعضے حصه د سر مسح اوکړیٔ، لکه دا په شرح وقایه وغیره کښے ذکر دی، اومذهب دامام شافعیؒ

هم دي۔ جواب : موږ وايو چه په لغت کښې باء د تبعيض دپاره نه ده راغلې، دا وجه ده ابن برهان نه صاحب المغني (١٤٢/١) نقل کړيدی : (من زعم أن الباء تفيد التبعيض فقد جاء أهل اللغة بما لايعرفونه) وهكذا عن ابن دريد وابن عرفة ۔ اوسيبويه په خپل كتاب كښې پنځلس ځايه د باء د تبعيض نه انكار كړيدے۔ (المنار للمقبلي : ٥٣/١)۔

اوددے خبرے تائيد د حنفي په ژبه دادے چه اصول الشاشي کښې په بحث الحروف کښې وائي : (فصل : حرف الباء للالصاق في وضع اللغة) صاحب د اجمل الحواشي ص (٣٠٢)، ليکي : باجماع اهل لغت باءُ الصاق دپاره ده، يعنے دباء حقيقي معنیٰ دالصاق ده) نو دلته باء د تبعيض دپاره اخستل مجاز دے اود مجاز ارتكاب هله كيدے شي كله چه حقيقت باندے عمل كول ممكن نه وي لكه چه دا خبره په كتابونو د اصول الفقه كښې امام ابو حنيفةؒ او صاحبينوؒ ته منسوب ده ۔ نو په دے سره د احنافو خپل مابين كښې تدافع او تقابل ثابت شو، او د صاحب شرح وقايه د خود ساخته قاعدے هم رد اوشو، چه په آيت كښې باء د تبعيض مراد كوي ۔

٢ - **بله** دا چه دلته يوه قاعده ده، هغه دا چه كله په لغتِ عربي كښې په يو كلام كښې باء نه وي نو هلته دكمال معنیٰ نه وي، اوكله چه باء وي او په فعل متعدي باندے داخله شي نو هلته باء دكمال معنیٰ وركوي، او باء دالصاق دپاره وي، لكه قرآن كريم كښے دي : ﴿ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ ﴾ نو كه دلته (يَشْرَبُ مِنْهَا) اووئيلې شي نو دا دلالت نه كوي په مړيدو باندے بلكه نفس څکل به مراد وي، خو كله چه باء په كښې راوړے شوه او (يشرب بها) اووئيلے شو نو دا دلالت كوي په كمالِ مړيدو باندے۔

نو كه دلته ﴿ فَامْسَحُوا رُؤُسَكُمْ ﴾ وئيلے شوے وے نو دے به دلالت نه كولے په كمال باندے، اوكله چه ﴿ فامسحوا بِرُؤُسِكُمْ ﴾ اووئيلے شو نو اوس دكمال معنیٰ ئے پيدا كړه، او باء دالصاق دا معنیٰ وركړه، نو معنیٰ داشوه چه (دګوتو پورے چه كومے اوبه وي هغه د سر سره جوختے او ملصق كړئ) لكه په باب د تيمم كښے داسے دي ﴿ فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ ﴾ كښے باء دالصاق ده، فائده ئے داده چه كه ديو شخص لاس ملصق (جوخت) نه وي دخاورو سره او آثار دخاورو نه وي، نو تيمم به ناجائز وي، لكه په يے غباره ځادر تيمم وهل شو۔

اودا تحقيق شيخ الاسلام ابن تيمية" په خپله فتاوى (۱۲۲/۲۱) كښې تفصيلاً ذكر كړيدے۔

۳ - **دريمه** وجه داده : چه قرآن كښې هيڅ دليل نشته په جواز د مسح دبعض رأس باندے ځكه چه دا آيت ﴿ فامسحوا برؤسكم ﴾ نظير دے د آيت التيمم ﴿ فامسحوا بوجوهكم وأيديكم منه ﴾ چه په دواړو كښې لفظ د (مسح) دے او په دواړو كښې باء ذكر ده، نو هر كله چه په تيمم كښې اكتفاء په مسح د بعضے اندام باندے ناجائز ده، سره ددے نه چه دا بدل دے د اوداسه نه، نو دغه شان په اوداسه كښې به هم مسح په بعضے سر باندے كول په طريق اولىٰ سره ناجائز وى۔ سره ددے نه چه دا اصل دے۔ بل مثال ﴿ وَلۡيَطَّوَّفُوا بِالۡبَيۡتِ الۡعَتِيقِ ﴾ دے آيت كښې هم هغه باء ده كوم باء چه په ﴿ برؤسكم ﴾ كښې ده، او په دے باندے اجماع ده چه طواف د بعضے حصے د بيت الله نه جائز نه دے، بلكه د پوره بيت الله نه به ګير چاپيره طواف كوى، نو دغه شان د سر مسح هم ده چه پوره سر به مسح كوى، نو چا چه د بعضے حصے د سر مسح اوكړه نو ده د سر مسح اونه كړه۔ نودلته په يو كښې باء د تبعيض منل او په بل آيت كښې نه منل بے دليله فيصله ده، هيڅ قرينه پرے نشته، نه د قرآن نه اونه حديث او نه دلغت نه۔ اود سياق د قرآن هم خلاف ده، كما مرّ۔

٤ - **څلورم** جواب دادے چه آيت مجمل دے مونږ په كښې دڅانه دا نشو وئيلے چه دا باء د تبعيض دپاره ده، بلكه د نبى كريم ﷺ نه به ددے مجمل دبيان تپوس اوكړو، كله چه مونږ تپوس اوكړو نو معلومه شوه چه نبى كريم ﷺ د ټول سر مسح كړيده اوداسے ترے نقل ده، لكه چه په رواياتو دصحيحينو وغيره كښې دى۔ نو عمل اومواظبت د نبى كريم ﷺ دليل شو په دے خبره چه مسح په بعضے سر باندے ناجائز ده۔

كذا فى فقه السنة : ۱/ ٤۱۔

دا وجه ده چه امام بخارى" باب تړى : باب مسح الرأس كله : ۳۱/۱، او بيا دا احاديث راوړى۔

۲ - بعضے علماء حديث د أنس"، يا حديث د قُطرِى بن الفجائة پيش كړے چه په دے كښې مسح د بعضے سر راغلے ده (اخرجه ابوداود : ۱۲۷/۱، رقم، و كما فى الدراية على

الهداية : (رأيت رسول الله ﷺ يتوضأ وعليه عمامة قطرية فأدخل يده من تحت العمامة فمسح مقدم رأسه ولم ينقض العمامة)۔

نو دلته په څه حصه د سر باندے مسح شویده ۔

ليكن ددے (١) **جواب** دادے چه په دے حدیث کښے داخبره نشته چه بعضے حصه مسح شویده. بلکه هغے کښے داخبره ده چه مسح ئے په ټول سر اوکړه (لکه چه دا د هغه عادتِ مستمره وو) اوعمامه ئے ورانه نه کړه، اودا په اصل کښے جواب د یو وهم دے چه څوك چه دا وهم اونه کړی چه آیا په مسح الرأس کښے به عمامه ورانول ضروری وی ؟ نو أنس فرمائی : دا شرط نشته مسح په ټول سر اوکړه او پګړئ مه ورانوه ۔

نو په دے حدیث کښے هم مسح د ټول سر ده، اودا یو طریقه د مسح ده، دلته ورسره مسح په عمامه نه ده ملګرے شوے لکه څنګه چه په حدیث دمغیرةؓ کښے په دواړو مسح شویده۔

(٢) **جواب** : دا حدیث سندا ضعیف دے په دے کښے ابو معقل راوی مجهول دے کما فی التقریب (٦٧٤) دارنګه ضعیف ابن ماجه (٤٤/١) هم راوړیدے۔ نو په دے باندے په مسح دبعضے سر او مقدار الناصیه باندے استدلال کول جائز نه دی۔

**سوال** : په حدیث دعطاء کښے مرسلا نقل دی : (ان رسول الله ﷺ توضأ فحسر العمامة عن رأسه ومسح مقدم رأسه) أخرجه الشافعی فی مسنده (٣٢/١)۔

**جواب** : دا حدیث مرسل دے او قابل داستدلال نه دے ځکه مرسل حجت نه دے، عند أكثر المحدثين۔ خاصکر مراسیل د عطاء۔

قال علی بن المدینی : مرسلات مجاهد احب الی من مرسلات عطاء بکثیر، کان عطاء یأخذ من کل ضرب، (جامع التحصیل للعلائی ص : ٣٧

دغه شان بعضے علماء استدلال کوی په حدیث د عثمانؓ باندے چه په صفت د وضوء النبی ﷺ کښے وارد دے، په هغے کښے دا الفاظ دی (ومسح مقدم رأسه) أخرجه سعيد بن منصور۔ ١ - **جواب** : دا حدیث قابل داستدلال نه دے ځکه چه په دے کښے خالد بن زید أبی مالك راوی مختلف فیه دے، کذا فی فتح الباری : ٢٣٤/١ ، اګرچه ابن حجرؒ ددے

مؤيد حديث عمل دابن عمرؓ پيش كړيدے ليكن دا خبره په نسبت دتحقيق مذكور سره كمزورے ده۔ ٢ - **جواب** : كومو رواياتو كښے چه د نبي ﷺ نه مسح د مقدم الرأس نقل ده، نو دا محمول ده په دے چه دا مسح مع العمامه ده، لكه ددے تفسير په حديث د مغيرةؓ كښے راغلے دے، نو مسح د ټول سر شويده، خو كله يوائے سر دے اوكله ورسره په نيم سر او نيم پټكى اوكله صرف په پټكى باندے مسح شويده، على كل حال مسح د كل رأس ضروري ده ۔ فتدبر ! ومثله في الروضة الندية (١/ ٤٠) نقلا عن سفر السعادة ۔ بل دا هم كيدے شى چه دا روايت مختصر وى د مطول روايت نه ۔

**الزامى رد :**

په مذكوره رواياتو كښے د (مقدم الرأس) تذكره راغلے ده نوكه د آيت د اجمال دپاره دا تفسير شى نو بيا خو بعينه (مقدم الرأس) مسح كول فرض دى، حال داچه دا مذهب داحنافو نه دے بلكه د دوئ په نيز (مقدار مقدم الرأس) او مقدار الناصيه فرض دے (كما في الشامي : ١/٦٨)، لهذا مذكوره رواياتو نه استدلال كول د احنافو دپاره څه فائده نه وركوى۔

**خلاصه** : داچه راجح قول داشو چه مسح دټول سر فرض او واجب ده، او تعميم او استيعاب په مسح د سر كښے ضروري دے، اگرچه هر ويښته ته اوبه اونه رسيږى خو په ټول سر باندے دواړه لاسونه راخكل ضروري دى ۔ لكه په دے طريقه د نبي كريم ﷺ عمل مستمره وو۔ او د سر په بعضے حصه باندے مسح كول مرجوح دى، كه چا اوكړو نو اودس به ئے ان شاء الله چه باطل نه وى ۔ په دے شرط چه محقق وى۔ اوكه چرے د تقليد په وجه دا ښكاره دلائل پريدى، نو بيا ئے مونځ نه كيږى۔ زكريا صاحب په درس بخاري كښے وائى : په دے قول كښے احتياط دے۔

وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ : ددے نه روستو دوه روايتونه د مصابيح نه دى بلكه دا صاحب المشكاه نقل كړيدى، او په دے سره غرض اعتراض كول دى په صاحب المصابيح باندے چه مخكښے ئے ذكر كړو نو دا په بخاري اومسلم كښے نشته، حال داچه صاحب المصابيح په فصل اول كښے دبخاري اومسلم د احاديثو سره دا ذكر كړيدے، نو پكار داده چه د بخاري

او مسلم روايت كوم چه ماذكر كړو هغه هم ذكر كړے وے، چه ترتيب صحيح شوے وے
ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ: يعنـي بيا ئے لوښي كښے لاس داخل كړو. ددے نه دا معلومه شوه چه مستعملے اوبه پاکے دی. او پدے كښے اختلاف شته.

## استعمال شوے اوبه طاهر دی كه نجس ؟

١ - د امام محمدؒ او امام شافعيؒ يو قول دادے چه ماء مستعمل طاهر دی پخپله، او غير مطهر دی بل شئ لره.

٢ - دامام ابو حنيفهؒ نه مشهور قول دے چه ماء مستعمل نجس دی په نجاست غليظه سره، اودس كول پرے ناجائز دی، او امام ابويوسفؒ ورته نجس وائی په نجاست خفيفه سره. كذا فی الهدايه (٣٨/١).

٣ - امام زفرؒ وائي : كه استعمالونكے ددے اوبو متوضئ وو، نو استعمال شده اوبه طاهر اومطهر دی، اوكه محدث (بے اودسه) وو نو مستعملے اوبه طاهر غير مطهر دی، كذا فی الهدايه (٣٨/١) وبذل المجهود (٤٥/١).

٤ - څلورم قول: د امام مالكؒ او يوقول قديم د امام شافعيؒ دے، دغه شان د حسنؒ، عطاءؒ، نخعيؒ، اهل ظواهروؒ او ابن المنذرؒ قول دے: چه ماء مستعمل طاهر او مطهر دی په هر حال كښے.

احنافو د امام ابو حنيفهؒ دپاره څه دليل نه دے موندلے. د امام ابو حنيفه دپاره بعضے خلق: ١- **دا دليل** بيانوی چه دا صاحبِ كشف وو، د خلقو گناهونه به ورته دهغوئ د اوداسه په وخت ښكاره كيدل. دا وجه ده چه بعضے كسانو ته به ئے وئيل (تُبْ من الزناء وتب من السرقة، وتب من شرب الخمر) نو وے وئيل چه ماء مستعمل سره گناهونه لرے كيږی نو دا گناهونه دوباره په ځان پورے راخكل نه دی پكار، او بيائے الله تعالىٰ ته سوال اوكړو چه مانه دا كشف واخلی، ځكه چه په دے كښے دخلقو په عيبو باندے خبريدل راځی (كذا فی حاشية شرح الوقاية : ٨٨/١، ومثله فی حاشية الهداية ٣٨/١).

ليكن دا واقعه أولا سند نه لری، اوكه ثابته شی نو دليل په نجاست د مستعملو اوبو نه كرځی، ځكه چه الله تعالىٰ ته خودا خبره معلومه وه چه په دے سره گناهونه زائله

كيږي، هغه به رسول الله ﷺ ته أمر كړے وے چه مستعملي اوبه نجسے دي، نو دامام صاحبؒ دكشف په وجه سره خونجاست نه ثابتيږي، ځكه نجاست خو حكم شرعي دے دليل شرعي غواړي او كشف دليل شرعي نه دے، نو په كشف باندے تفريع دمسئلے صحيح نه ده، ځكه چه په نجاست د ماء مستعمل باندے دليل نشته ـ بلكه دلائل ددے په خلاف كښے دي، كما سيأتي ـ

**٢ - دويم دليل** دا بيانوي : چه حديث دابو هريرةؓ كښے داسے راځي: (لا يغتسل أحدكم في الماء الدائم وهوجنب اوبل روايت كښے داسے دي : (لا يبولن أحدكم في الماء الدائم ثم يغتسل فيه) طريقه داستدلال داسے ده چه په بولو سره څنګه اوبه نجسے ګرځي نو دغه شان په اغتسال سره هم نجسے ګرځي ـ (طرح التثريب : ٣٣/١) ـ

ليكن ددے نه **جواب** دادے چه دا استدلال دے په دلالة الاقتران باندے ،يعنے د اوبو نجس ګرځيدل په غسل كولو سره پيوسته شوي دي د اوبو د نجس كيدو سره په بول باندے، اودا صريح نه دے بلكه ضعيف دے، ځكه چه احنافو خپله دا خبره باطله كړيده، لكه حسامي كښے په وجوه فاسده كښے دي : (القِران في النظم لا يوجب القِران في الحكم) يعنے دوه څيزونه يو ځائے ذكر شي نو ددے نه دا نه لازميږي چه ددے دواړو حكم به هم يو وي ـ لكه ﴿ كلوا من ثمره اذا اثمر وآتوا حقه يوم حصاده ﴾ دلته اكل مقترن شويدے دزكوه وركولو سره، نو دا لازم نه ده چه لكه څنګه زكات وركول واجب دي نو خوړل به هم واجب وي ـ

**٢ - دويم جواب** دادے چه نبي كريم ﷺ د بول او اغتسال نه په ماءِ دائم كښے ځكه منع اوكړه چه ستا په هميشه داسے عمل كولو سره به دخلقو طبيعت اونه مني، او هغويٰ ته به طبعا ضرر اورسي، نودا د نظافت خلاف ده نو دا دليل د نجاست د ماءِ مستعمل ندے ـ

**٣ - جواب** : شاه ولي الله دهلويؒ په حجة الله (١٨٣/١) كښے د نهي حكمت ذكر كوي فرمائي : حكمت په نهي كښے دادے چه دا دواړه كارونه د دوه امرينو نه خالي نه وي، يابه بالفعل اوبه متغير شي، اويا به بالفعل متغير نشي، ليكن تغير ته به مفضي شي، په

دے طریقہ چہ خلق بہ دا سرے پہ دے کار کولو اووینی نو هغوئ بہ هم داسے کار کول شروع کړی، نو دا پہ منزلہ د (لاعنین) شو یعنې هغہ دوه کارونہ چہ د لعنت سبب جوړیږی، چہ هغہ بول فی الطریق والبول فی ظل الناس دی۔ مګر کہ اوبہ ډیرے زیاتے وی، یا جاری وی (نو جائز بہ وی) بیا وائی : والعفاف افضل علی کل حال۔ نظافت او پاکی کول پہ هر حال افضل دی۔ پہ الفتح الربانی (۲۰۹/۱) کښې علامہ عبد الرحمن البناء باب تړلے دے (باب طهارة الماء المتوضأ به) او بیا ئے د جابرؓ واقعہ را وړیده چہ زه بیمار ووم نبی ﷺ زما عیادت اوکړو او زه پہ ځان نہ پوهیدم، نو اودس ئے اوکړو او د اوداسہ مستعملے اوبہ ئے پہ ما باندے واچولے۔ (اخرجه البخاری : ۳۹۸/۱، رقم : ۱۹٤)

امام نوویؒ فرمائی : واستدل اصحابنا وغيرهم بهذا الحديث على طهارة الماء المستعمل في الوضوء والغسل ردا على ابي يوسف القائل بنجاسته، وهي رواية عن ابي حنيفة (شرح مسلم: ۳٤/۲)۔

یعنې : زمونږ شوافعو او نورو علماؤ دا حدیث دلیل نیولے دے پہ پاکوالی د مستعملو اوبو باندے پہ غسل او اودس دواړو کښې، او پہ دے کښې رد دے پہ ابو یوسف باندے چہ قائل دے پہ نجاست د مستعملو اوبو باندے، او دده دا قول یو روایت هم دے د ابو حنیفہؒ نہ۔

۳ - **دریم دلیل** دا ذکر کوی چہ مسلم (۱۳۸/۱) کښې حدیث دے : (لا يغتسل أحدكم في الماء الدائم وهو جنب، قالوا كيف يفعل يا أبا هريرة ! قال : يتناوله تناولا)۔

نو دا دلیل دے چہ پہ انغماس سره اوبہ نجس ګرځی اوپہ تناول (راخستلو) سره نجس نہ ګرځی۔ لیکن ددے نہ هم جواب دادے چہ پہ انغماس سره نظافت کښې خلل راځی اګرچہ اوبہ بیا هم طاهر دی، لیکن دنظافت خلاف دی، او د نظافت او طهارت ما بین کښې فرق دے، نو ماءِ مستعمل اګرچے نظیفې نہ دی لیکن طاهرے ضرور دی، شاه ولی الله وائی چہ مستعملے اوبہ بے شکہ طاهرے دی (حجة الله : ۱۸۱/۱)۔ نو د احنافو دا دلائل پہ خپلہ مدعیٰ باندے ډیر کمزوری دی، مدعیٰ پرے نہ ثابتیږی۔

**دلائل الجمهور:**

۱ - **یو دلیل** حدیث د ابو جحیفهؓ په بخاری (۳۱/۱) کښې دے :

(قال : خرج علینا رسول الله ﷺ بالهاجرة فأتی بوضوء فتوضأ فجعل الناس یأخذون من فضل وضوئه فیتمسحون به).

نو د نبی کریم ﷺ استعمال کړے اوبه صحابوؓ په خپلو بدنونو باندے راخکلے، دا دلیل د طهارت ددے مستعملے اوبو دے۔ اودلیل دخصوصیت د نبی کریم ﷺ هم نشته، ولے چه نبی کریم ﷺ دخپل امت سره په احکام شرعیه ؤ کښے شریك وی۔

۲ - **دلیل** : دحدیث دابو موسی اشعریؓ په بخاری (۳۱/۱) کښے دے چه نبی کریم ﷺ یوه پیاله راطلب کړه چه اوبه په کښے وے،نو لاسونه او مخ ئے په کښے اووینځل او دخلے اوبه ئے په کښے واچولے، بیا ئے ابو موسیؓ او بلالؓ ته اوفرمائیل : (اشربا منه) دا اوڅکئ او خپلو مخونو اوسینو باندے ئے واچوئ۔

۳ - **دلیل** : حدیث د سائب بن یزیدؓ نه روایت دے چه زه خپلے ترور نبی کریم ﷺ خواته بوتلم هغے ورته عرض اوکړو : اے دالله رسوله ! زما دا خورئے مریض دے، نو هغه زما په سر باندے لاس راخکلو اوزما دپاره ئے د برکت دعاء اوکړه، بیا ئے اودس اوکړو اوما دهغه د اوداسه اوبه اوڅکلے ... الحدیث (۳۱/۱)۔

**سوال** : دلته اشکال راځی چه په دے احادیثو کښے مستعملے اوبه د نبی کریم ﷺ ذکر شوی دی، کیدے شی چه دابه دهغویٔ د خصوصیاتو نه وی، چه د هغه مستعملے اوبه به پاکے وی اود نور امت مستعملے اوبه به نجسے وی ؟۔

**جواب** : دا دعویٰ بلادلیله ده، ځکه چه دا قانون دے چه نبی کریم ﷺ په احکامو کښ دامت سره شریك دے، ترڅو چه دلیل دخصوصیت پیدا نشی، اودلته هیڅ دلیل د خصوصیت نشته که وے نو مونږ ته نقل شوے وے لهذا دعام امت د ماءِ مستعمل هم دا حکم دے ۔ (نیل الأوطار : ۲۸/۱)۔

بله داچه : کوم حکم چه د نبی کریم ﷺ پورے خاص وی نو په نبی کریم ﷺ دا ضروری وی چه امت ته به دا خبر ورکوی چه دا حکم ما پورے خاص دے، که داسے نه ویٔ نو حکم به عام وی۔

٤ - **دليل** : نبي كريم ﷺ اوعائشہؓ وغيره به ديو خانك ته غسل كول، تو خامخا به د يو بل اوبه په خانك كښې پريوتلې ـ

٥ - دارنګه صحابه كرامؓ اود هغوئ بيبيانو به دخانكو نو اوكاسو نه غسل او اودسونه كول ، او په دې سره خامخا څاڅكي په اوبو كښې پريوځي، او نبي كريم ﷺ د دينه نه دي منع كړي، نو كه چرې ماءِ مستعملې نجس وې نو نبي كريم ﷺ به دوئ منع كړي وې چه ستاسو اوبه په دې لوښو كښې پريوځي نو غسل ترې مه كوئ. ( المغني : ٢٩/١، الروضه الندیه : ١٥/١)ـ

٦ - حديث كښې دي (المؤمن لا ينجس) بخاري : ٧٩/١، مسلم : ١٩٤/١ـ

نو أعضاء د محدث (بې اودسه) پاك دي نو د هغه مستعملې اوبه به هم پاكې وي.

٧ - ان الماء طهور لا ينجسه شيء ، أخرجه ابو داود رقم (٦٧) بسند صحيح.

دغه شان : الماء لا يجنب (صحيح ابى داود رقم : ٦٨ ـ (هيڅ قسم اوبه نه پليتيږي، مګر چه خوند، رنګ، بوئي ئې بدل شي)ـ

٨ - **دليل** : حديث الباب دې (ثم أدخل يده)ـ

دې نه معلوميږي چه نجس نه دي، څكه لاس ئې په اوبو كښې غوپه كړيدې نو ضرور به مستعملې اوبه په يو لوښي كښې پريوتي وي.

٩ - **دليل** : دا قاعده شرعيه ده چه : الأصل في كل شيء الطهارة ـ يعنې هر شې په دين كښې پاك دې ترڅو چه بل نص نه وي راغلې د هغې په نجاست، او دلته بل نص نشته، دا قاعده اول جلد كښې ذكر شويده.

(انظر المنخلة النونية ص : ١٤، القواعد والأصول الجامعة ص : ٤٥)ـ

## فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ :

په مضمضه او استنشاق كښې اختلاف مخكښې تير شو چه دجمهورو مذهب دا وو چه دې دواړو كښې به **وصل** كوي، يعنې د يو لاس اوبو نه به لګې اوبه خلې ته، اولږې پوزې ته اچوي، او دا كار به درې څله كوي.

٢ - احنافو رائې داده چه **فصل** به كوي، يعنې د يو لاس اوبه به اول خلې ته واچوي درې

ځل او بیا به درے ځله پوزے ته جدا اوبه واچوی۔ نو دا ست غرفات شو په نیز د احنافو، او ثلث غرفات شو په نیز د جمهورو۔ اودا دواړه طریقے جائز دی عندنا۔ اودا د تنوع فی العباده د قبیلے نه دی، لیکن راجح وصل دے کما مرّ، نو أکثر عمل په وصل کول پکار دی او کله کله عمل په فصل۔ نو په ټولو روایاتو باندے به عمل راشی، اودا روایت د جمهورو د مذهب مطابق دے صراحةً۔

لیکن احناف شارحین د خپل مذهب د اثبات دپاره دلته داسے **تاویل** کوی چه د (مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ) معنیٰ داده چه په یو لاس ئے اوبه اچولی دی، نه په دوه لاسونو۔

لیکن دا تاویل **خطاء** دے وجه دخطائی داده چه (۱) یو خو په دوه لاسونو باندے اوبه اچول خلے اوپوزے ته سخت گران کار دے۔ نو بیا په تخصیص د یو لاس کنبے فائده نه ښکاری۔

۲ - **دویم** داچه د نبی کریم ﷺ عادت مبارك دا نه وو چه په دوه لاسونو به ئے اوبه اچولے، نو د دے نفی کولو ته ضرورت نشته، او څه قرینه هم په دے نفی نشته۔ نو دومره بعیده توجیه اختیارولو ته هیڅ حاجت نشته، بلکه خپله قاعده اورائے او مذهب صحیح کولو دپاره دنبی کریم ﷺ احادیث ورانول اوخطاء تاویلونه کول د فطرتِ انسانی نه خلاف دی (و كذلك التقليد يفعل بأهله)۔

۳ - **بله** وجه د دے تاویل دخطائی داده چه بناء په دے تاویل دلته پکار وه چه داسے ئے وئیلی وے (فمضمض واستنشق بكف واحدة، لا من كف واحدة) یعنے مضمضه او استنشاق ئے په یو لاس سره اوکړل او د یو لاس نه ئے اونه کړل، او دلته خو (مِن) لفظ ذکر دے، یعنے د یولاس نه دواړه په یو ځائے شوی دی۔ او داسے نه ده چه په یو لاس سره دواړه جدا جدا شویدی۔ فتدبر!۔ نو دا تاویل خطاء شو۔

٤ - **څلورمه** وجه دخطایئ داده چه دلته بیا پکار دا وو چه داسے عبارت ئے وئیلے وے: (ففعل ذلك سِتًّا) یعنے درے ځله ئے مضمضه او درے ځله ئے استنشاق اوکړو، اودلته خو (ثلاثاً) ذکر دے نوداً روسته لفظ ددے تاویل نه انکار کوی، اوددے په خطایئ باندے دلیل او حجتِ واضحه دے د جمهورو دپاره ۔ لکه داخبره په احنافو کنبے ابن الملكؒ ذکر کړیده،

كذا في المرعاة (۲/۹۳).

ثُمَّ اَدْخَلَ يَدَهُ : دطريقه د اوبو راخستو داده چه هراندام لره به په يو لاس اوبه راخلي او بل لاس به ورسره هسې ملګرې کوي، اوحفنه (يوه لپه) دكول د مخ وغيره وينځلو دپاره اسراف دې بلکه غرفه (چونګ) به راخلي، اودې قسم اسراف في الوضوء کښې اکثر عوام خه چه مُلّيان او طالبان هم واقع دي، بميه به راخلاصه کړي اوبه به هسې بهيوي.

**نكته** : دلته يوه قاعده واوره چه په يو حديث کښې تول احکام نه وي ذکر، دا د بدعتيانو طريقه ده، چه يو حديث اووينى بس هغه واخلي اود هغې نه قاعده کليه جوړه كړي. دا وجه ده چه اصول فقه کښې قاعده ايښې ده چه د قرآن سره د حديث تعارض راشي نودا کار به کوو، ډير مثالونه ئې ورله ذکر کړيدي، لکه (لانكاح الا بولي) دوئ مخالف ګڼړي د دې قول د الله تعالىٰ سره ﴿ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ ﴾ دغه شان تغريب عام والا حديث د قرآن مخالف ګڼړي، د تعديل الأركان د فرضيت والا حديث د أيت ﴿ وَارْكَعُوْا ﴾ نه مخالف ګڼړي، دارنګه حديث د (لاتحرم المصة ولا المصتان) د آيت : ﴿ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِيْ أَرْضَعْنَكُمْ ﴾ نه مخالف ګڼړي.

حال دا چه صحيح **حديث** هيڅ کله هم د قرآن نه **مخالف** نه راځي نودا د **اهل بدعت** طريقه ده چه آيت دحديث نه وهي او حديث دآيت نه او په يو بل کښې مخالفت راؤباسي. دغه شان يو حديث واخلي او نورو حديثونو نه جوابونه کوي، او غلط تاويلونه په کښې کوي، او يائې په څه چل رد کوي، نه ئې مني، کله وائي : دا منسوخ شويدې. دا ټول بې دليله خبرې دي، بلکه د اهل السنت والجماعت طريقه داده چه په باب کښې ټول احاديث راجمع کوي بيا روسته مسئله ترې ثابتوي، ځکه چه يو حديث کښې يو حکم وي بل حديث کښې بل وي، نوکله چه دواړه جمع شي نو د دې نه به بيا د مسئلې هيئت او صورت معلوم شي.

ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا اِلٰى قَفَاهُ : په دې حديث کښې دا خبره ده چه نبي ﷺ مسح د ابتداء د سر نه شروع کړه او څټ طرفته ئې دواړه لاسونه اورسول، نو آيا د څټ مستقله مسحه کول دين کښې شته اوكه نه ؟ نو په دې کښې د علماؤ اختلاف دې.

# ازالة القلق فى مسألة مسح العنق

۱ - د **جمهورو** علماؤ مذهب دادے چه د څټ مستقله مسح كول بدعت دے، كمالك والشافعي واحمد رحمهم الله۔

لكه چه امام نووي فرمائي: لم يصح عن النبى ﷺ فيه شئ، وليس هو بسنة، بل بدعة، كذا فى نيل الأوطار (۲۰۲/۱)۔

امام ابن القيم په زاد المعاد (۶۸/۱) كښے فرمائي: لم يصح عنه ﷺ فى مسح العنق حديث البتة۔ (يعنے د څټ د مسح په باره كښے هيڅ صحيح حديث د نبى كريم ﷺ نه نه دے ثابت) نو په دے باندے عمل كول بدعت دى۔

۲ - بل طرفته د **احنافو** مذهب دادے چه مسح د څټ مستحب عمل دے، لكه دا خبره رشيد احمد لدهيانوي په احسن الفتاوى (۱۲/۲) اود فقه حنفى په نورو كتابونو كښے ذكر شويده لكه كنز (۳/۱) شرح وقايه (۶۹/۱) وغيره كښے۔ او لدهيانوي صاحب ددے په استحباب باندے پنځه روايات نقل كړى دى د نيل الأوطار نه، او بيا ئے دا وئيلى دى چه دا روايات اګرچه ضعيف دى ليكن په فضائل اعمالو كښے ضعيف روايت هم معتبر دے۔

او دغه شان خبره عبد الحى لكهنوي په (تحفة الطلبة فى تحقيق مسح الرقبة : ۲۵۴/۱، ضمن مجموعة رسائل اللكنوي) كښے ذكر كړيده، چه په دے باره كښے احاديث قوليه او فعليه وارد دى، مګر د هغے اسانيد ضعيف دى، بيا وائي : كه چا اوكړه نو مستحب ده اوكه چا اونه كړه نو څه باك نشته۔

ددے **جواب** دادے چه په **ضعيف** حديث سره هيڅ كله استحباب نه ثابتيږى، خصوصا كله چه ضعف هم زيات وى۔ لكه دا خبره علماء المصطلح بيان كړيده، او دغه شان ډير ضعيف روايات چه كله راجمع شى نو حسن درجے ته نه رسى، بلكه حسن هله ګرځى كله چه دا ضعف كم وى او په سند كښے په يو ځائے باندے نه وى، كما فى تمام المنة ص (۳۱) مباركفورى صاحب په تحفة الأحوذى (۳۹۹/۱) كښے د زيلعي نه نقل كړيدى چه كله تعدد طرق الحديث سبب د ضعف وى، او په دے سره قوت نه پيدا كيږى۔

نو دا خبره چه ضعیف حدیث په فضائل اعمال کښے معتبر دے : هم صحیح نه ده، وجه دا ده چه مسح الرقبة مستقل حکم شرعی دے، اودا د فضائل الأعمال د قبیلے نه نه دے، ځکه استحباب حکم شرعی دے۔ ددے دپاره قوی ثبوت او دلیل پکار دے او هغه نشته۔

## په مسح د څټ کښے راغلی روایات او د هغے تجزیه :

اوس هغه روایات ذکر کوو چه رشید احمد صاحبؒ پرے د استحباب د مسح الرقبه استدلال کړیدے او د هغے جائزه :

**۱** - عن مصرف بن عمرو يبلغ به كعب بن عمرو قال : رأيت رسول الله ﷺ توضأ فمسح لحيته وقفاه. أخرجه ابن السكن في كتاب الحروف و ابوداود (۱۹/۱) واحمد۔

**جواب** : دا حدیث ضعیف السند دے، په دے کښے لیث بن ابی سلیم دے امام نوویؒ په تهذيب الأسماء واللغات کښے فرمائی : (هو مجمع على ضعفه) یعنے اتفاقی ضعیف دے۔

دارنګه مصرف بن عمرو مجهول راوی دے، قاله ابن القطان كذا في النيل : ۲۰۳/۱، وضعفه احمد وابن عيينة، كما في أبي داود (۱۹/۱)، راجع فتاوى الدين الخالص : ۵۰۱/۱)۔

**۲** - ابو نعیم الأصفهانی په تاریخ د أصفهان (۱۱۵/۲) کښے د عبد الله بن عمرؓ حدیث راوړیدے : (ان النبي ﷺ قال : من توضأ ومسح عنقه وقى الغل يوم القيامة، كما في السلسلة : ۱٦۷/۲، والنيل : ۲۰۳/۱، وتحفة الطلبة (۱۰/۱)۔

**جواب** : دا روایت هم ضعیف بلکه موضوعی دے، ددے په سند کښے محمد بن عمرو الأنصاری راوی واهی، ضعیف دے۔ وقال الذهبي : محمد بن عمرو الأنصاري ضعفه القطان (المغني في الضعفاء : ۳۵۷/۱) رقم (۵۸۸۲) وكذا قاله ابن حجر في التقريب (۱۳۰/۲) رقم (٦۵۵٦)، او سلسله : ۱٦۷/۲، رقم : ٦٤٤، کښے ئے دے حدیث ته موضوعی وئیلی دی۔

**۳** - ابو عبيد په کتاب الطهور کښے د عبد الرحمن بن مهدی نه نقل کوی هغه موسى بن طلحه ته دا روایت رسوی، (انه قال : من مسح قفاه مع رأسه وقى الغل يوم

القيامة)۔

علامه عينيؒ په شرح د هدايه کښې وائي : دا حديث اګرچه موقوف دے ليکن ددے دپاره حکم دمرفوع دے ځکه په داسے مقام کښې درائے دپاره هيڅ دخل نه وي۔

**جواب** : دا خبره د دوه وجهو نه باطله ده (۱) اوله وجه داده چه : موسى بن طلحه صحابي نه دے (الاصابة : ٦/٣١٥، لابن حجر)، چه روايت ئے موقوف شي، بلکه دا يا تابعينو نه دے يا د اتباع التابعين نه، او بناء په دے قول بيا ټول مقطوع روايات او اقوال د تابعينوؒ به أقوال د رسول الله ﷺ شي، وهذا واضح البطلان۔

۲ – دويمه وجه داده چه : ددے په سند کښې المسعودي راوي دے او هغه باندے اختلاط راغلے دے، کذا في التلخيص الحبير : ۱/۹۲، والسلسلة : ۱/۹۸، رقم : ٦٩، و ٧٤٤۔ اوحکم د مختلط راوي دادے چه که راوي ثقه وي نو قبل الاختلاط احاديث به ئے مقبول وي، اوکه په زمانه د اختلاط کښې کوم حديثونه بيانوي، يا پته نه لګي چه دائے قبل الاختلاط زده کړي دي يا بعد الاختلاط نو دابه بالکل قابلِ قبول نه وي۔ (کذا في نهاية الاغتباط بمن رمي من الرواة بالاختلاط ص : ٣٤)۔

٤ – **څلورم روايت** : روى الديلمي في مسند الفردوس من حديث ابن عمر مرفوعا : (مسح الرقبة أمان من الغل يوم القيامة)۔

**جواب** : دا روايت اودويم روايت يو دي، اوددے روايت سند هم ډير ضعيف دے، کما في الموضوعات الکبرى (٦٣) ځکه په دے کښې محمد بن عمرو الأنصاري ابو سهل البصري دے اودا اتفاقي ضعيف دے، دا وجه ده چه امام نوويؒ دے حديث ته (موضوع) وئيلے دے۔ او مسح الرقبه بدعت ګڼړي۔ (المجموع : ۱/٤٦٥) : هذا موضوع ليس من کلام النبي ﷺ و نقله السيوطي في ذيل الأحاديث الموضوعة ص (۲۰۳) عن النووي و أقره. (انظر الضعيفة : ۱/۹۷، رقم : ٦٩) و کشف الخفاء للعجلوني (۲/۲۰۸)۔

هرکله چه دا روايات يا خو موضوعي دي او يا شديد الضعف دي نو قابل د استدلال نه دي، په دے باندے استحباب ثابتول باطل دي۔

دا وجه ده چه شيخ الاسلام ابن تيميةؒ په فتاوى (۲۱/۱۲۷) کښې فرمائي :

لم يصح عن النبي ﷺ أنه مسح على عنقه في وضوئه بل ولا روى عنه ذلك في حديث صحيح، بل الأحاديث الصحيحة التي فيها صفه وضوء النبي ﷺ لم يكن يمسح عنقه، ولهذا لم يستحب ذلك جمهور العلماء، كمالك والشافعي واحمد في ظاهر مذهبهم۔

يعنې : د نبي كريم ﷺ نه دا نه ده ثابته چه هغه په څټ باندې مسح كړې وي په اوداسه كښې، بلكه په هيڅ صحيح روايت كښې دهغه نه دا نه ده نقل، اوكوم صحيح احاديثو كښې چه د نبي كريم ﷺ داوداسه كيفيت رانقل شويدې نو دڅټ مسح په كښې نه ده ذكر شوې. داوجه ده چه جمهورو علماؤ ديته مستحب نه دي وئيلي (بلكه بدعت ئې ورته وئيلې دى)۔

۵ - بعضې خلق - لكه عبد الحي لكهنوىؒ - يو بل روايت ذكر كوى چه ابوداود (۱۹/۱) راوړيدې (عن ليث عن طلحة بن مصرف عن أبيه عن جده قال : رأيت رسول الله ﷺ يمسح رأسه مرة واحدة حتى بَلَغَ الْقَذَالَ، وهو أول القفا)۔

اودا استدلال كوى چه دلته په (قذال) يعنې څټ باندې مسح شويده، اودغه شان دې حديث الباب كښې هم دى (ثم ذهب بهما الىٰ قفاه) په څټ باندې مسح شويده، نو دا دليل داستحباب دې۔

**جواب** : ددې نه عظيم آباديؒ په عون المعبود (۴۹/۱) كښې دوه جوابونه كړيدى :

۱ - اول جواب دادې چه دا حديث ضعيف دې، په دې كښې ليث بن ابى سليم دې، تركه يحيى بن القطان، وابن معين، واحمد بن حنبل، وقال النووي في تهذيب الأسماء واللغات : اتفق العلماء على ضعفه۔

باقي كلام په نيل الأوطار (۲۰۲/۱) كښې اوګوره۔

۲ - دويم داچه كه صحيح هم شي نو هم دليل داستحباب نه ګرځي، ځكه چه په دې كښې اتفاق دې چه مسح د سر به د ابتداء نه شروع كوى او آخر ته به ئې رسوى او څټ به ورسره مسح كړى او بيا به واپس هغې ابتدائي ځائې ته راشي۔

ليكن اختلاف په هغه صورت كښې دې چه دڅټ دپاره جدا لاس لوند كړى او مستقله مسح پرې اوكړى، نودا نه ده ثابته په احاديثو كښې، اوپه دغه حديث د ابوداود

کښے او په دے حدیث الباب دواړو کښے داخبره ده چه دڅټ مسح شویده خو د مسح د سر سره يو ځائے کړيده، اوداخو اتفاقی صورت دے۔ دا د محل النزاع نه بهر دے۔

**خلاصه** : دا چه جمهور علماء مسح الرقبه بدعت ګنړی اواحناف ئے مستحب ګنړی، لیکن بعضے احنافو ورته هم بدعت وئیلی دی (کذا فی فتح القدير : ۱/۲۱ : وقيل انه بدعة أيضا)۔

او هرچه مسح د مرئ ده نو په دے کښے احناف د جمهورو سره ددے په بدعت کيدو باندے متفق دی، کذا فی الشامیؒ : لانه بدعة اذ لم يرد في السنة (۱/۸٤) وفتح القدير (۱/۳۱) او علامه شوکانیؒ هم مسح الرقبه ته مستحب وائی لیکن هغه خطاء شویدے، او په دے اتفاقی صورت باندے ئے استدلال کړیدے (کوم چه د سر سره مسح کولے شی)۔ اودا استدلال خطاء دے ځکه د څټ مستقل مسح کولو دپاره مستقل دليل پکار دے، او دلته خو د سر د مسح سره څټ مسح شويدے، نه دا چه مستقلاً۔

نو په صفة الوضوء کښے د رسول الله ﷺ نه مسح العُنُق نه ده ثابته په صحيح يا حسن رواياتو کښے، نو دا کار به بدعت وی۔

بيا بعضے خلقو دا فرق کړيدے چه په ژمی کښے د څټ مسح مه کوه او اوړی کښے کوه، دے دپاره چه په ټولو رواياتو عمل اوشی۔

ليکن مونږ وايو دا فرق د خيټے نه ايجاد شويدے هيڅ دليل اوثبوت نه لری، ځکه بل طرفته روايات ټول ضعيف او موضوعی دی ۔ نو په دے حديث کښے چه (قفاه) لفظ ذکر دے ددے نه مراد مؤخر الرأس دے، سره دمسح دسر نه، دليل په دے باندے لفظ د (ذهب بهما الى قفاه) دے۔ اودغه شان حديث د ابوداود کښے هم (بَلَغَ الْقَذَالَ) لفظ د (بَلَغَ) دليل دے چه دا څټ مسح شويدے خو په مسح د سر کښے، او مستقلا نه دے مسح شوے۔ او مرئ مسح کول خو بدعت دے، هيڅ دليل پرے نشته۔

**حاصل** داچه : (۱) د مرئ مسح اتفاقا بدعت دے (۲) د څټ مسح د سر سره يو ځائے سنت ده (۳) مستقلا د څټ په مسح کښے اختلاف دے، راجح داده چه نشته دے۔

وَفِیْ رِوَایَةِ الْبُخَارِیِّ : فَمَسَحَ رَأْسَهُ .... مَرَّةً وَاحِدَةً :

## په تثليث المسح کښې اختلاف :

۱ - امام مالكؒ، ابو حنيفهؒ، بخاريؒ، حسن بصريؒ، مجاهدؒ اوجمهورو علماؤ مسلك دادے چه مسح د سر يو ځل ده، او تكرار سنت نه دے۔

۲ - ليكن امام ابو حنيفهؒ نه دا هم نقل دى چه درے ځله مسح كول هم شته، خو بماء واحد، لكه صاحب الهدايه نقل كړيدى (۲۱/۱) : و التثليث مشروع ولكن بماء واحد على ما روى عن أبى حنيفة رحمه الله۔

۳ - د امام شافعيؒ او عطاءؒ مذهب دادے چه تثليث المسح مشروع ده۔

**دلائل الجمهور** : ۱ - د رسول الله ﷺ نه په صفه الوضوء كښې مسح الرأس يا مطلق ذكر ده، لكه (فمسح برأسه) اود مطلق يقيني فرد يو وى، اويا مقيده ذكر ده، لكه په دے روايت د بخارى كښې دى (فمسح رأسه مرة واحدة) په روايت د عبد الله بن زيدؓ كښې۔

۲ - **دليل** : د عثمان رضى الله عنه نه په صفه الوضوء كښې چه څومره روايات نقل دى په هغے كښې مسح الرأس يو ځل ذكر ده، اوكوم روايت د عثمانؓ كښې چه مسح د سر درے ځله راغلے ده هغه شاذ دے، لكه دے شذوذ ته امام ابوداود (۱۶/۱) اشاره كړيده په دے عبارت خپل سره : (واحاديث عثمان الصحاح كلها تدل على مسح الرأس انه مرة، فانهم ذكروا الوضوء ثلاثا وقالوا فيها : ومسح رأسه، لم يذكروا عددا، كما ذكروا فى غيره۔

**غرض** : د امام ابوداودؒ په دے عبارت سره رد كول دى په يو روايت باندے چه روستو راځى۔

۳ - **دليل عقلى** : دادے چه كه مسح د سر درے ځله راشى نوبيا مسح مشابه كيږى دغسل سره، سره ددے نه چه ددواړو ترمينځه فرق دے، ځكه مقصود د شريعت آسانى كول دى په مسح كښې او كله چه مسح درے ځل شى نو بيا به د عضو ممسوح او عضو مغسول فرق رانشى، اود مسح نه غسل جوړول صحيح نه دى، ځكه مامور به په رأس كښې مسح دے نه غسل۔

**دليل د امام شافعيؒ** : ۱ - ابوداود (۱۶/۱) كښې د عثمانؓ روايت ذكر دے په باب صفة وضوء النبى ﷺ كښې : (عن شقيق بن سلمة قال : رأيت عثمان بن عفان غسل ذراعيه

ثلاثا ثلاثا، ومسح رأسه ثلاثا ثم قال : رأيت رسول الله ﷺ فعل هذا)۔ او دغه شان بل روايت د حمران مولىٰ عثمان هم دے (۱/۱٦)۔

جمهور ددے نه جواب کوی چه امام ابوداودؒ دے روايت ته شاذ وئيلی دی، لکه مونږ مخکښے دهغه عبارت ذکر کړو۔ او په هغے کښے شذوذ ته اشاره ده ځکه په مقابله د صحاح کښے ئے راوړيدے يعنی په عام رواياتو کښے مسح برأسه) مطلق راغلی دے بغير د ذکر د عدد نه، او دے يو روايت کښے قيد د (ثلاثا) ذکر دے نو دا شاذ دے ځکه مخالفت د ثقاتو نه شويدے۔

ليکن **انصاف** دادے چه دا روايت د عثمانؓ په دريے سندونو سره نقل دے او دواړه حسن او صحيح روايات دی۔ ۱ – يو روايت د شقيق بن سلمه دے چه ابن خزيمه په خپل صحيح کښے راوړيدے او دارنګه دارقطني (۱/۹۰) او ابوداود (۱/۱٦) ذکر کړيدے، او ديته شيخ البانیؒ په صحيح سنن أبی داود رقم (۱۱۰) کښے حسن صحيح وئيلے دے، اګرچه عامر بن شقيق راوی په کښے مختلف فيه دے (قال الحافظ : لين الحديث) تقريب التهذيب : ۱/۳٤۔ وقال النسائی فی الأحکام الکبری ص : ٤٦٤ : لا بأس به۔ نو قابلِ قبول دے، روايت ئے حسن دے۔

۲ – **دويم دليل** : روايت د حمران دے (أخرجه ابوداود : ۱/۱٦، و البزار فی مسنده كذا فی التعليق المغنی : ۹۱، علی سنن الدارقطنی، قال : رأيت عثمان بن عفانؓ توضأ وفيه : ومسح رأسه ثلاثا... الحديث)۔ او په دے کښے هم د نبی کريم ﷺ د اوداسه حکايت کوی، ديته هم شيخ البانیؒ په ابوداود رقم (۱۰۷) کښے حسن صحيح وئيلے دے، ځکه مدار د سند عبد الرحمن بن وردان دے، قال ابن معين : صالح. وقال ابن أبی حاتم : لا بأس به. (التعليق المغنی : ۱/۹۲)۔

حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کښے ليکی : په دے روايتينو کښے زيادت د ثقه دے او زيادت د ثقه مقبول دے۔ لکه چه امام دارقطنی، امام ابن جوزی، امام نووی، حافظ زيلعی وئيلی دی (نصب الراية : ۱/۳۹، ۲/۱۸٦، ٤/۱۰۰، مستدرك : ۱/٤۲، حجة الله : ۱/۱۳٤، وقال الحاكم : مذهب الشيخين قبول الزيادة من الثقة . نصب الراية : ۲/٤۳۳،

مستدرك : ۱۲۸/۳، تمام المنة ص : ۹۱)۔

او دیته شاذ نه دی وئیل پکار، ځکه چه نور راویانو مطلق مسح ذکر کوی، اوپه دے روایت کښے تقیید ذکر دے په ثلاثا سره۔

دغه شان ددے روایاتو دپاره نور ډیر شواهد په الدارقطنی (۹۰) کښے موجود دی۔ چه یو دهغے نه موقوف روایت د انسؓ دے چه امام بیهقی (۶۲/۱) او ابن ابی شیبه په المصنف (۱۵/۱) کښے راوړیدے (عن قتادة عن انس انه كان يمسح على رأسه ثلاثا، يأخذ لكل واحدة ماء جديداً)۔

۲ - بل روایت د سعید بن جبیرؒ، ابراهیم تیمیؒ، عطاءؒ، زاذانؒ او میسرةؒ دے : (انهم كانوا اذا توضؤوا مسحوا رؤسهم ثلاثا) أخرجه ابن ابی شیبة : ۱۶/۱، وابن حجر فی التلخیص (۸۵/۱).

ددے تحقیق نه معلومه شوه چه دعثمانؓ نه په صفه الوضوء کښے تثلیث المسح هم ثابت دے۔

٤ - **څلورم دلیل** د امام شافعیؒ، حدیث د علیؓ دے چه دارقطنی (۸۹/۱) نقل کړیدے : (انه توضأ فغسل يديه وفيه : ومسح برأسه ثلاثا... الحديث)۔

بیا دارقطنی په دے روایت کښے داسے فرمائی : خالف ابو حنيفة الثقات فى قوله ثلاثا)، نو ګویا دا د امام ابو حنیفةؒ روایت دے نو احنافو له ئے قبلول پکار دی۔

٥ - **پنځم دلیل** : متفق علیه حدیث دے : (ان النبى ﷺ توضأ ثلاثا ثلاثا)۔

لیکن : ددے نه جمهور دا جواب کوی چه دا روایت مجمل دے او په نورو روایاتو کښے ددے بیان شویدے چه (مسح الرأس) کښے تکرار نشته، نو دابه په تغلیب باندے حمل وی یعنی درے اندامونو کښے ئے تثلیث اوکړو، یابه مختص وی په هغه اندامونو پورے چه وینځلے شی۔ كذا فى عون المعبود : ۱/ ٤۰۔

امام صنعانیؒ فرمائی : په سنن ابی داود کښے د عثمان رضی الله عنه په حدیث کښے درے ځل مسح نقل ده، چه د یو سند امام ابن خزیمه صحیح کړیدے او دا کافی ده د درے ځله مسح د سنت کیدو دپاره، اود ابوداود د کلام نه جواب ورکوی (واجيب : بان كلام ابى

داود ینقضه ما رواه هو وصححه ابن خزیمة کما ذکرناه) یعنې د امام ابوداود په کلام کښې تعارض دې، وجه داده چه ده پخپله په صحیح سند سره د عثمانؓ حدیث نقل کړې او ابن خزیمه هم ورته صحیح وئیلی دی، نو بیا څنګه وائی چه صحیح روایات د عثمان نه صرف په یو ځل سر مسح کولو کښې دی ؟

(سبل السلام شرح بلوغ المرام : ۶۲/۱، تمام المنة ص : ۹۱)۔

اود دلیل عقلی نه جواب دادې چه هرکله د نبی ﷺ نه درې ځل مسح ثابت شوه نو دا خبره کول چه مسح مشابه کیږی د غسل سره نو دا هسې بیباکه خبره ده او قیاس دې په مقابله د نص کښې (سبل السلام : ۶۲/۱)۔

## المحاکمة بین القولین

د انصاف تقاضا داده چه دا مسئله هم د قبیلې د تنوع فی العبادات نه اوګڼلې شی، یعنې دواړه طریقې جائز او مشروع دی، اودواړو باره کښې حدیثونه راغلی دی، کما سبق۔

لیکن درې کرت مسح أحیانا (کله کله) شویده، اودلیل ئې دادې چه په عام احادیثو کښې (مرة واحدة) ذکر کیږی، یا مطلقا بغیر د قید د (ثلاثاً) نه ذکر کیږی، او په بعضې احادیثو کښې ورسره قید د (ثلاثاً) ذکر دې۔ نو کله کله په دې باندې هم عمل پکار دې او بالکل متروك ګرځول ئې ښه کار نه دې، او په دې کښې څه تعارض او تناقض هم نشته، چه مونږ په یو عمل اوکړو اوبل پریدو۔ ځکه چه تعارض اوتناقض کښې وحداتِ ثمانیه نه اتحاد د زمان او مکان شرط دې، اودا دواړه عملونه په یو وخت او یو مکان کښې نه دی شوی، بلکه په مختلفو اوقاتو او مکاناتو کښې شوی دی۔تناقض به هله وې چه مثلا نبی کریم ﷺ نه دشوال په میاشت کښې د ما سخوتن په اوداسه کښې یو ځل مسح نقل وې، او په بل روایت کښې همداسې راشی په همدغه ماسخوتن اوداسه کښې ئې درې ځل مسح کړیده، نو مونږ به وایو چه دا خو تناقض دې ځکه یو وخت څنګه په دوه طریقو اودس اوکړې شی ؟

نو هرکله چه تناقض نشته نو مونږ به دا اووایو چه دا تنوع فی العبادات د قبیلې نه دې، اودا قانون په اکثرو ځایونو او مسائلو کښې جاری کیږی، اوپه دې سره عمل په ټولو

احادیثو راځي، والحمد لله۔ او په دے سره د تقلید شخصي بنیاد هم ختمیږي۔

اود مقلدینو خوئے دادے چه احادیثو کښے تناقض پیدا کړی او ورته موقعه ملاؤ شی او خپل مذهب لـه ترجیح ورکړی۔ اودا قول علامه صنعانیؒ او شیخ البانیؒ هم غوره کړیدے۔

او په کومو احادیثو کښے چه مسح الرأس مرتین راغلے ده لکه په حدیث د ربیع بنت معوذ بن عفراءؓ عند الترمذی وابی داود (۱/۲۷) رقم (۱۲۶) وفیه : (ومسح برأسه مرتین) چه په دے کښے هم د نبی کریم ﷺ داوداسه حکایت دے۔ او دا حسن حدیث دے۔

نو دا غالباً د اقبال او ادبار په دواړو حرکتونو باندے محمول دی، چه دا په حقیقت کښے مسح مرتین نـه ده، بلکه د ابتداء نه مسح شروع شویده څټ پورے او بیا د څټ نه بیرته مقدم الرأس طرفته، نو د یو طرفنه مسح اوبل طرفنه مسح دواړه جدا جدا مسحے ګرځولے شوی دی چه په حقیقت کښے دا د استیعاب الرأس یوه طریقه ده اودواړه مستقلے مسحے نـه دی۔ اودلیل په دے باندے روستنی الفاظ دی چه : (یبدأ بمؤخر رأسه ثم بمقدمه) اودے روایت ته شیخ البانیؒ حسن وئیلے دے، صحیح ابی داود : ۱/۲۷۔

دغه شان حدیث د عبد الله بن زیدؓ دے عند النسائی (۱/۲۳) رقم (۹۶) والبخاری باب الوضوء مرة مرة، او المشکاة کښے په دے باب کښے دا روستو متصل حدیث راروان دے۔

اګرچه د وکیع بن جراحؒ او بعضے اهل کوفه مذهب دادے چه دوه کرته مسح مستقلا مشروع ده، کما ذکره الترمذی۔

او استدلال کوی په دے روایتینو سره۔ لیکن علامه عظیم آبادیؒ په عون المعبود (۱/۴۸) کښے د ابن العربیؒ نه دا خبره نقل کړیده چه په حدیث د ربیعؓ کښے چه مسح مرتین راغلے ده نو په دے کښے راوی خطاء شویدے اود (فأقبل بهما وأدبر) نه ئے دا فهم کړیده چه ګنے دا مسحتین شو، او اصل کښے دا یوه مسح ده، کما مرّ۔ او امام شعرانی دا تاویل دبعض السلف نه په تثلیث المسح کښے هم ذکرکړیدے کذا فی عون المعبود (۱/۴۹)۔ بعضو دا جواب کړیدے چه دا کار نبی کریم ﷺ بیانا للجواز کړیدے۔ ظاهر داده چه دوه ځله مستقله مسحه هم جواز لری، لان الرواة ثقات فاحتمال الخطأ بعید۔

۵ – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ ﷛ قَالَ : تَوَضَّأَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَرَّةً مَرَّةً لَمْ يَزِدْ عَلٰى هٰذَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ .

**ترجمه** : جناب عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائي : رسول الله یو یو ځل اودس اوکړو، (یعنې د اوداسه اندامونه ئې صرف یو یو ځل اووینځل)، په دې باندې ئې زیادت اونه کړو ـ (بخاری)ـ

**تشریح** : لَمْ يَزِدْ عَلٰى هٰذَا : مطلب دا نه دې چه رسول الله ﷺ درې درې ځله اندامونه نه دی وینځلی، او صرف دوه دوه ځل ئې وینځلی، بلکه : ۱ – مطلب دادې چه صرف په دې موقعه او په دې وخت کښې ئې دوه دوه ځله اندامونه اووینځل . ۲ – یا په دې اوداسه کښې ئې دوه دوه ځله اووینځل ـ که دا مطلب وانه خلو نو بیا نور ډیر روایات ضائع کیږی چه په هغې کښې درې درې ځله اندامونه وینځل راغلی دی ـ

۳ – یا دا نفی عبد الله بن عباس" د خپل علم مطابق کوی، هغه ته به نور حدیثونه د درې ځله وینځلو نه وی رسیدلی ـ اوله توجیه زیاته مناسب ده ـ

٦ – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ ﷛ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ .

**ترجمه** : جناب عبد الله بن زید رضی الله عنه فرمائي : نبی کریم ﷺ دوه دوه ځله اودس اوکړو (د اوداسه اندامونه ئې دوه دوه ځله اووینځل) ـ بخاری ـ

**تشریح** : مخکښې تیر شو چه درې درې ځل اندامونه وینځل اعلیٰ درجه مستحب دی، نو نبی ﷺ دلته ولې دوه دوه ځله اووینځل ؟ نو وجه داده چه دا د بیان د جواز دپاره، چه دا طریقه هم جائز ده . ۲ – یا د جلتئ موقع وه . ۳ – یا اوبه کمې وې ـ نوکه داسې موقع راپیښه شی نو انسان په کښې په دې رخصت باندې هم عمل کولې شی، چه یو کرت یا دوه کرته اندامونه اووینځی ـ د شریعت هر حکم د حکمت نه خالی نه وی چه په هغې باندې الله تعالیٰ بنه پوهیږی ـ بیا دا حدیث دلیل دې چه یو یو ځل اندامونه وینځل فرض او

ددې نه زيات وينځل مستحب او بهتر دی۔

---

۷ – وَعَنْ عُثْمَانَ رضي الله عنه أَنَّهُ تَوَضَّأَ بِالْمَقَاعِدِ فَقَالَ : أَلَا أُرِيكُمْ وُضُوءَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ ؟ فَتَوَضَّأَ ثَلٰثاً ثَلٰثاً . رَوَاهُ مُسْلِمٌ .

**ترجمه** : جناب عثمان رضی الله عنه نه روايت دے چه دوئ په مقاعد مقام کښے اودس اوکړو، وے فرمائيل : آيا تاسو ته زه د رسول الله ﷺ اودس در اونه ښايم ؟ نو درے درے ځل ئے اودس اوکړو ۔ (يعنی د اوداسه اندامونه ئے درے درے ځل اووينځل) ۔ مسلم۔

**تشريح** : بِالْمَقَاعِدِ : جمع د مقعد ده ځائے د ناستے ته وائی، دلته مراد دکانونه دی د عثمانؓ د کور په خوا کښے، يا پوړئ دی۔ بعضے وائی : دا يو ځائے وو د مسجد په خوا کښے چه خلق به په کښے کيناستل د اوداسه او نورو حاجتونو دپاره۔

فَتَوَضَّأَ ثَلٰثاً ثَلٰثاً : داحديث د امام شافعیؒ دليل دے چه درے ځل مسح سنت ده، ليکن مخکښے د جمهورو د طرفنه جواب تير شو چه داحديث مجمل دے او نور صحيح روايتونو نه ثابت ده چه مسح يو ځل شويده، نو دا به محمول وی په بعضے اوقاتو، يا به دا درے والے مختص وی د هغه اندامونو پورے چه وينځلے شی، او مطلب دا شی چه د وينځلو اندامونه ئے درے ځله اووينځل، اود مسح ذکر په کښے نشته۔

---

۸ – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه قَالَ : رَجَعْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ مِنْ مَكَّةَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى إِذَا كُنَّا بِمَاءٍ بِالطَّرِيْقِ تَعَجَّلَ قَوْمٌ عِنْدَ الْعَصْرِ فَتَوَضَّؤُوْا وَهُمْ عُجَّالٌ فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ وَأَعْقَابُهُمْ تَلُوْحُ لَمْ يَمَسَّهَا الْمَاءُ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ، اَسْبِغُوا الْوُضُوْءَ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : جناب عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ سره موږ د مکے نه مدينے نه واپس شو تردے چه کله موږ اوبو ته اورسيدو چه په لار کښے وے، نو ځينے خلقو مازيګر مونځ دپاره اودس کولو کښے تادی اوکړه اوهغه خلق ډير تادی

كوونكي وو، څه وخت چه مونږ هغې خلقو ته اورسيدو نو مونږ اوليدل چه د هغوئ پوندو چمك كولو (يعنې اوچې پاتې شوې وې)، اوبه ورته نه وې رسيدلې (د هغوئ دې اوچو پوندو ليدو سره) رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ويل الخ يعنې هلاكت او عذاب دې پوندو دپاره د اور نه، اودس پوره كوئ (مسلم)۔

**تشريح** : عُجَّالٌ : جمع د عاجل ده، لكه جهال جمع د جاهل ده۔

تَلُوحُ : معنې ځليدلې ، لم يمسها الماء : جمله حاليه تفسير او بيان دې د تلوح، يعنې اوبه ورته نه وې رسيدلې ځكه كوم ځائې چه اوچ وې هغه سپين ښكارى۔

**فوائد الحديث** : ١- بعض خلق لكه هلكان د قوم د مشرانو نه مخكښې تللې شي، دې دپاره چه مشرانو ته لارخالي شي اودا بې أدبي نه ده، لكه دلته چينې ته بعضې خلق مخكښې راغلي دي د نبي كريم ﷺ او مشرانو صحابوؓ نه ۔

٢ - چينه د ټولو انسانانو ترمينځه مشتركه ده (الا ما خص لقوم) او تشريح به ئې په خپل مقام كښې راشي ۔

٣ - وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ نه معلوميږي چه كه په اوداسه كښې په يو اندام كښې لګ شان اوچ ځائې پاتې شي نو اودس نه صحيح كيږي، بلكه دغه شخص قابل د (ويل) دې۔ ٤ - د نبي كريم ﷺ دعوت كله د دهمكئ په الفاظو سره هم وو، لكه دلته ئې دهمكي وركړيده ۔

٥ - وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ: (هلاكت دې وي پوندو دپاره د اور نه) يا د اهل الأعقاب دپاره هلاكت يا د دوزخ كنده ده ، اعقاب مستحق د عقاب دي كله چه اوچې پاتې شي ۔ په الأعقاب كښې الف لام عهدي دي يعنې دغه پوندې چه اوبه ورته نه دي رسيدلې۔

٦ - دا حديث رد دې په شيعه ګانو باندې چه هغوئ په رجلين (خپو) باندې مسح كوي، او خپې په اوداسه كښې نه وينځي، او مسلمانان غسل الرجلين كوي، كله چه خفين (موزې) نه وي، اومسح كوي كله چه موزې په خپو وي ۔

او په دې حديث كښې دليل دې چه غسل الرجلين واجب دې په اوداسه كښې او دا د ټولو مسلمانانو محدثينو، مفسرينو او فقهاؤ اتفاقي مذهب دې، په خلاف د شيعه ګانو

چه هغوئ مسح علی الرجلین کوی او موزو باندے مسح کول نه منی۔ زمونږ د اهل السنت دلیل دادے چه د نبی کریم ﷺ نه په تواتر سره دا نقل دی چه هغه په اوداسه کښے خپے وینځلی دی کما ذکره الحافظ (فتح الباری : ١/٣٢٠، علامه مبارکفوری په تحفة الأحوذی : ١/١٥٩، ابن خزيمة : ١/١٢٩، رقم : ٢٦٠)۔

او عمل د نبی کریم ﷺ بیان دے دپاره د قرآن۔ لکه په حدیث د عمرو بن عبسهؓ کښے کوم چه ابن خزیمه نقل کړیدے دا فرمائیلی دی : (ثم يغسل قدميه كما أمره الله) نو غسل الرجلین بعینه عمل دے په قرآن کریم باندے۔ او نبی ﷺ د خپو په مسح کونکو باندے سخت رد کړیدے، او د (ویل) کلمه ئے ورله استعمال کړیده۔ د ابن عمر په حدیث کښے دی (تخلف رسول الله ﷺ فی سفر سافرناه فأدركنا وقد أرهقنا الصلاة صلاة العصر ونحن نتوضأ فجعلنا نمسح على أرجلنا فنادى بأعلىٰ صوته : ويل للأعقاب من النار، مرتين او ثلاثا). (بخاری : ١/٢٣، رقم : ٦٠، مسلم : ١/١٤٨)۔

(یعنے رسول الله ﷺ سره مونږ شریك په سفر کښے اوتی وو، رسول الله ﷺ رانه روستو پاتے شو، بیا ئے مونږ په داسے وخت کښے را لاندے کړو چه د مازیګر د مانځه وخت وو، مونږ اودس کولو نو مونږ شروع شو چه په خپو باندے مو مسح کوله، رسول الله ﷺ په خپل اوچت آواز سره دوه یا درے ځله اوفرمائیل : پوندو دپاره دے د اور د وجے نه هلاکت وی)۔

**شیعه** استدلال کوی په آیت ﴿ وامسحوا برؤسكم وأرجلكم ﴾ باندے طریقه د استدلال داده چه الله تعالی رجل عطف کړیدے په رأس باندے او په رأس باندے خو مسح ده نو په خپو به هم مسح وی، ځکه د معطوف او معطوف علیه حکم یو وی۔

لیکن ددے نه څو **جوابونه** دی : اول خو شیعه ګانو سره خبرے نه دی پکار ځکه د دوئ تول دین زمونږ د دین مخالف دے مګر دخپل دین د حفاظت دپاره دا جوابونه کیږی :

**١ - اول جواب** : دادے چه ﴿ وأرجلكم ﴾ په آیت کښے لکه څنګه چه بالکسر راغلے دے نو دغه شان په نصب سره هم راغلے دے چه دا نصب قرأت د نافع، ابن عامر، حفص، کسائی او یعقوب دے، كما ذكرها محمود الآلوسی فی تفسیره روح المعانی : ٦/٧٣.

او احادیث صحیحه متواتره مؤید د قرأت النصب دی، نو خامخا به مونږ په قرائت دجر کښې تاویل کوو، د وجې ددې احادیثو نه ـ نو چا یو تاویل دا کړیدے چه ﴿ وأرجلكم ﴾ کښې دا جر للجوار دے، او دا په کلام عربئ کښې په فصیح کلام کښې راځي لکه همدغه قرآن کښې ﴿ عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴾ ﴿ عَذَابَ يَوْمٍ مُحِيطٍ ﴾ کښې أَلِيمٍ او مُحِيطٍ مجرور دی او جر په کښې للجوار دے، ورنه دا په حقیقت کښې صفت دعذاب دے او هغه مرفوع دے۔

۲ - **جواب** دادے چه که ﴿أرجلكم ﴾ کښې مسح مراد واخلے نو بیا ﴿ الى الكعبين ﴾ ذکر کول دپاره د تحدید صحیح نه دی، معلومیږی چه دا تحدید دغسل دپاره دے لکه په ﴿ الى المرافق ﴾ کښې چه د غسل دپاره دے، اوپه ﴿ برؤسكم ﴾ کښې ورسره تحدید نشته نو هلته مسح مراد ده۔

۳ - اوکه اومنو چه د رجلین وظیفه مسح ده نودا په وخت د تخفف (موزو اچولو) کښې ده نو قرائت النصب کثیر دے نو دا په عام حالاتو باندے محمول دے او قرائت الجر په حالت التخفف باندے حمل دے۔

پوره تفصیل ددے مسئلے په تفسیر روح المعانی او مرعات : ۱۰۱/۲، وغیره کښې کتل پکار دی ـ

۷ - **فائده** : په دے حدیث کښې مسئله د موالات فی الوضوء هم ده، یعنې په اوداسه کښې پرله پسے اندامونه وینځل په داسے طریقه چه د اودس ختمولو پورے اندامونه اوچ نشی واجب دی که نه ؟ او چه هواء هم معتدل وی ولے کله د هواء د سختوالی په وجه د اودس کونکی اندامونه زر اوچیږی نو په دے باره کښې اختلاف دے :

۱ - د امام مالكؒ، احمد بن حنبلؒ، اوزاعیؒ، قتادةؒ، او شافعیؒ یو قول دادے چه موالات واجب دے او بغیر ددے نه اودس نه کیږی ـ (کذا قاله العظیم آبادیؒ فی العون : ۲۰۵/۱)۔

۲- د امام ابو حنیفةؒ، نخعیؒ او سفیان الثوریؒ قول دادے چه موالات واجب نه دے۔

د دوئ (۱) **دلیل** دادے چه په آیت کښې مامور به صرف د اندامونو وینځل دی ـ نو په هره طریقه ئے چه ووینځی نو مامور به اداء کیږی۔

۲ - **دویم دلیل** : قیاس دے په غسل باندے چه په هغے کښے موالات واجب نه دے، سره ددے نه چه هغه طهارت کبرئ دے نو په طهارتِ صغرئ کښے به هم موالات واجب نه وی۔

**دلائل الجمهور** : ۱ - اول دلیل : حدیث د مسلم (۱/۱۲۵) اوابوداود (۱/۳۵) باب تفریق الوضوء : عن أنس بن مالكؓ أن رجلا جاء الی النبی ﷺ وقد توضأ وترك علی قدمیه مثل موضع الظفر، فقال له رسول الله ﷺ : ارجع فأحسن وضوئك.

انس بن مالكؓ فرمائی : یو سړے نبی کریم ﷺ ته راغلو چه اودس ئے کړے وو او په قدمونو کښے ئے د نوك هومره ځائے اوچ پریښے وو، نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل : لاړ شه ښه اودس اوکړه۔ نو په بل روایت کښے دیٔ چه هغه لاړ او اودس ئے اوکړو او بیا ئے مونځ اوکړو۔

وعن عمر عن النبی ﷺ نحوه، قال : ارجع فأحسن وضوئك.

وفی روایة احمد : فرجع فتوضأ ثم صلی. (۱/۲۱، ۲۳، ۳/۱۴۶، وكذلك فی المغنی : ۱/۱۵۸)۔

امام نوویؒ په شرح د مسلم (۱/۲۴۳) کتاب الطهارة باب وجوب استیعاب جمیع اعضاء محل الطهارة، کښے فرمائی : قاضی عیاض په دے حدیث باندے د وجوب الموالات استدلال کړیدے ځکه چه (أحسن وضوئك) لفظ ئے وئیلے دے او (اغسل الموضع الذی ترکته) ئے نه دے وئیلے یعنے دا ئے ورته اونه فرمائیل : چه کوم ځائے درنه اوچ پاتے شویدے صرف هغه اووینځه بلکه ټول اودس ئے پرے دوباره اوکړو، نو دا دلیل دے ددے خبرے چه موالات واجب دے۔

لیکن امام نوویؒ وائی چه دا استدلال ضعیف یا باطل دے، ځکه چه (أحسن وضوئك) احتمال د تتمیم او استیناف دواړو لری، چه دغه اودس ئے پرے د دغه ځائے نه پوره کړے وی، یائے پرے د سر نه بیرته دوباره کړے وی، او ترجیح د یو په بل باندے نشته۔

لیکن مونږ وایو چه د امام نوویؒ خبره باطله ده، ځکه چه حمل په استیناف باندے واجب دے وجه داده چه بل حدیث ددے دلیل دے هغه ابوداود (۱/۳۶، رقم : ۱۷۵) د بعضو

صحابیٌّ نه نقل کړيدي : (ان النبی ﷺ رأی رجلا یصلی وفی ظهر قدمه لمعة قدر الدرهم لم یصبها الماء فأمره النبی ﷺ أن یعید الوضوء والصلاة)، وسنده حسن كما قال ابن القيم فی تهذیب السنن (١/٢٠٤) قال الأثرم : قلت لأحمد بن حنبل : هذا اسناد جيد، قال : جيد. وصححه صاحب عون المعبود۔

نبی کریم ﷺ یو سړی اولیدو چه په داسې حال کښې ئې مونځ کولو چه د خپې پاسنی طرف کښې د روپۍ په اندازه لږ شان اوچ ځائې پاتې وو چه اوبه ورته نه وې رسیدلې، نبی کریم ﷺ هغه ته د اودس او مونځ دواړو دوباره کولو حکم اوفرمائیلو۔

نو دا حدیث صریح دلیل دې په وجوب الموالات باندې ځکه چه نبی کریم ﷺ أمر کړیدې په اعاده د اوداسه باندې کله چه څه ځائې اوچ پاتې شی، نو دا أمر دلیل دې په لزوم د موالات باندې، كما قال فی عون المعبود : ١/٦٨.

اودا حدیثونه ئې صحیح ګرځولی دی، او په دې کښې رد دې په قول د امام نوویؒ باندې۔

**٢- دویم دلیل** : وعن عمر رضی الله عنه قال رأى رسول الله ﷺ رجلا توضأ فترك موضع الظفر علی قدمه فامره ان یعید الوضوء والصلاة قال فرجع (سنده صحيح) صحيح ابی داود (١٦٥) وابن ماجه رقم (٦٦٦)۔ الارواء (١/١٢٧)۔

دا حدیث هم صریح رد دې په قول د امام نووی باندې ځکه دې سړی په قدم کښې په اندازه د نوك باندې اوچ ځائې پریخې دې او نبی علیه السلام ورته د مانځه او اوداسه دواړو راګرځولو حکم فرمائیلې دې۔ نو دا دلیل شو چه موالات فرض دې۔

**٢ - دویم دلیل** : ابن أبی شیبه : ١/٤١، کښې دی :

عن أبی قلابة أن عمر رأى رجلا يصلی وقد ترك علی ظهر قدمه مثل الظفر فأمره أن يعيد الوضوء وصلاته) انظر الارواء لتحقيق هذه الأحاديث : ١/١٢٦، رقم : ٨٦، والنيل : ١/٢٢٧.

یعنې : عمر فاروقؓ یو سړې اولیدلو چه په داسې حالت کښې ئې مونځ کولو چه دهغه دخپې پاسنی طرفته د نوك هومره ځائې ته اوبه نه وې رسیدلې، عمر فاروقؓ ورته داودس او مونځ دواړو راګرځولو حکم اوکړو۔

۳ - **دریم دلیل** : آیت کښې دلیل دې په وجوب دغسل الأعضاء باندې، اونبي کریم ﷺ دهغې کیفیت بیان کړیدې او ددغه مجمل بیان ئې په خپل فعل او عمل سره کړیدې چه نبي کریم ﷺ بغیر دموالات نه اودس نه دې کړې، اوچا چه موالات پریښې دې هغه ته ئې د مانځه او اودس دواړو راګرځولو حکم کړیدې، مجمل باندې تر هغه وخته پورې عمل نه کیږي ترڅو پورې چه ددې بیان نه وي شوې، لهذا په آیت باندې د عدم وجوب الموالات دپاره استدلال کول صحیح نه دي.

او هرچه قیاس دې په غسل باندې نو دا قیاس صحیح نه دې، وجه داده چه غسل په منزله د یو اندام دې، نو موالات په کښې ضروري نه دې، په خلاف داوداسه نه چه په دې کښې متعدد اندامونه دي، موالات په کښې ضروري دې. نو دا قیاس مع الفارق دې اودا باطل وي.

بله وجه داده چه نبي کریم ﷺ موالات سره اودس کړیدې او په غسل کښې ئې موالات پریښې دې . لکه په حدیث دابن عباس رض کښې دي چه نبي کریم ﷺ غسل اوکړو او اوګه باندې ئې څه اوچ ځائې پاتې وو هغه ئې د سر په ویښتو لوند کړو.

(أخرجه ابن أبي شيبة : ۱/٤۱، كذا في الدين الخالص : ۱/٥۰٤، وسنده ضعيف، فيه ابو علي الرحبي وهو مجهول).

اودا احادیث دابن عمر رض د حدیث سره متعارض نه دي چه ابن عمر رض حدیث بخاري ذکر کړیدې كذا في فتح الباري (۱/۲۹۸) چه ابن عمر رض بازار کښې اودس اوکړو بیا مسجد کښې ئې مسح اوکړه په موزو باندې او بیائې مونځ اوکړو، نو موالات ئې اونه کړو.

وجه د عدم تعارض داده چه دابن عمر رض په فعل کښې دلیل نشته چه ده ګنې موالات نه دې کړې، نو دا دې ضروري هم نه وي، ځکه مرفوع حدیث مخکښې تیر شو چه نبي کریم ﷺ خپله په موالات باندې مواظبت فرمائیلې دې او چانه چه پاتې شویدې هغه ته ئې د اعادې حکم فرمائیلې دې، لهذا ددې مرفوع حدیث په مقابله کښې به د ابن عمر رض فعل نشي پیش کولې . او مخکښې د ابن عمر رض د والد صاحب عمر فاروق رض اثر ذکر شو چه دوئ هم یو شخص ته د موالات په پریخودلو سره د اعادې حکم اوکړو.

ددې مسئلې د تفصيل دپاره دا كتابونه اوګورئ: (المجموع شرح المهذب : ١/ ٥١٤،
عون المعبود : ١/ ٢٠٥، نيل الأوطار : ١/ ١٩١، السيل الجرار : ١/ ٢٤٥، بلوغ الأماني :
٢/ ٣٧، بداية المجتهد : ١/ ٤٧، اعلام الموقعين : ٢/ ٢٦٥، مجموعة الفتاوى : ٢١/ ١٣٥).
او دې تولو علماؤ موالات ته فرض وئيلى دى.

## مسئلة وجوب الترتيب فى أعضاء الوضوء

په ترتيب سره اودس كول په كومه درجه كښې دى آيا فرض دى او كه سنت؟ نو په دې كښې اختلاف دے.

١ - د امام احمدؒ، شافعيؒ، ابو ثورؒ، ابو عبيدةؒ او اسحق بن راهويهؒ مذهب دادے چه په اوداسه كښې ترتيب واجب دے، لكه څنګه چه الله تعالىٰ ذكر كړے دے.

او **دليل** د وجوب د ادے چه نبى ﷺ په ترتيب سره اودس اوكړو او آخر كښې ئې دا اوفرمائيل :

(هذا وضوء لا يقبل الله الصلاة الا به) . ليكن شوكانىؒ وئيلى دى چه دے حديث كښې مقال دے غير صالح للاحتجاج. نيل الاوطار (١/ ١٧٥-٢١٨)

٢ - بله **دليل** دادے چه په حديث د جابرؓ كښې بيان د طريقې د حج د نبى ﷺ دے، او په هغې كښې نبى ﷺ دا فرمائيلى دى (اِبْدَؤُا بِمَا بَدَأَ اللّٰهُ بِهٖ- اخرجه النسائى (٢/ ٢٣٠) رقم (٢٩٦٢) بسند صحيح) نو أمر ئې كړے دے چه كوم شے الله تعالى په قرآن كريم كښې مخكښې ذكر كړے وى نو تاسو هم هغه مخكښې كوئ او ترتيب مه خرابوئ، نو دا حديث صالح دے د احتجاج دپاره په وجوب د ترتيب په اوداسه كښې هم، ځكه چه دا عام دے او مختص نه دے په سبب پورې، نو آيت د اوداسه ددے عموم لاندې مندرج دے. لان العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب.

٣ - دريم دليل دادے چه نبى ﷺ نه بے ترتيبه اودس نه دے ثابت. نو دا تول عمرى مواظبت خامخا دليل د وجوب دے.

٢ - **قول ثانى** : د امام، مالكؒ، سفيان ثورىؒ حسن بصرىؒ، ابن المسيبؒ، ابو حنيفهؒ دے، هغه دا چه ترتيب نه دے واجب، دليل دادے چه الله تعالى أمر كړے دے په غسل

الأعضاء سره، او بعضے اندامونه ئے په بعضو باندے عطف کړی دی په واؤ سره، او واؤ د ترتیب تقاضا نه کوی، هر څنګه چه اووینځلے شی نو په آیت به عمل راځی۔

اول قول والا ددے جواب دا ورکوی چه دلته په آیت کښے د ترتیب دپارة قرینه موجوده ده، او هغه دا چه الله تعالیٰ ممسوح (سر) په مغسولینو (اَیْدِیْ او رِجْلَیْن) کښے داخل کړے دے، او نظیر ئے د بل نظیر نه قطع کړے دے په ﴿ وأرجلكم ﴾ سره، او عرب دا کار د یو ے فائدے دپاره کوی چه هغه ترتیب دے ۔

**سوال** : دا فائده دے دپاره د استحباب الترتیب شی نه د وجوب الترتیب دپاره ؟۔

**جواب** : آیت چلول شوے دے دپاره د بیانولو د واجب۔ دا وجه ده چه سنن ئے په کښے نه دی ذکر کړی ۔

۲ - **دلیل** دادے چه علی رضی الله عنه نه نقل دی چه (ما أبالی اذا أتممت وضوئی بأی أعضائی بدأت) دغه شان د ابن مسعودؓ نه هم نقل دی۔

**جواب** : د علی رضی الله عنه نه ددے خلاف هم نقل دی، کما فی مسند احمد او د ابن مسعودؓ قول دپاره هیڅ اصل نشته، کما فی المغنی (۱/۱٤۹) مع الشرح الکبیر۔

: بله وجه داده چه ترتیب ځکه واجب دے چه د نبی ﷺ نه چه څومره صحابؓ اودس نقل کړے دے نو هغه ئے په ترتیب سره نقل کړے دے، اودا تفسیر د آیت دے،که دا واجب نه وے نو پکار وه چه نبی ﷺ یو کرت دوه کرتے د بیان الجواز دپاره ترک کړے وے۔ لیکن هرکله چه ئے هیڅ کله ترک نه کړو نو دا دلیل دے په دے چه ترتیب په اوداسه کښے ضروری دے۔

۳ - **دریم دلیل** : استدلال کوی په حدیث د مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه

رواه احمد وابوداود : اتی رسول الله ﷺ بوضوء فتوضأ فغسل کفیه ثلاثا ثم غسل وجهه ثلاثا ثم غسل ذراعیه ثم مضمض واستنشق ثلاثا ومسح برأسه واذنیه ظاهرهما وباطنهما وغسل رجلیه ثلاثا۔ قال الشوکانی واسناده صالح وحسن اسناده النووی والحافظ ابن الحجر انظر الموسوعة الفقهیة (۱/۱٤۷) لحسین بن عودة وتمام المنة (۸۸).

نو پدے روایت کښے نبی علیه السلام د څنګلو وینځلو نه پس مضمضه او استنشاق

کړیدی نو دا دلیل دے چه بے ترتیبی اودس نه فاسدوی کما قال به الالبانی وتلمیذه حسین بن عودة ۔ او د حافظ ابن القیم په نیز باندے دا روایت شاذ دے۔ زاد المعاد (۱۸۷/۱) کښې وائي: انه ﷺ رتب الوضوء لم یخل به مرة واحدة البتة ۔ یعني یوکرت هم نبي علیه السلام بے ترتیبه اودس ندے کړے۔

او دا جواب هم کیدے شي چه پدے حدیث کښې صرف د مضمضه او استنشاق بے ترتیبي راغلے ده او مقصود د شوافعو دا دے چه په فرضي څلورو اندامونو کښې ترتیب ضروري دے۔

---

۹ – وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﷺ قَالَ : إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ تَوَضَّأَ فَمَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ وَعَلَى الْخُفَّيْنِ ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : اوجناب مغیره بن شعبه رضی الله عنه فرمائي: نبي کریم ﷺ اودس او کړو، نو په خپل تندي او پګړئ او دواړو موزو باندے ئے مسح اوکړه ۔ (مسلم)۔

**تشریح** : إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ تَوَضَّأَ فَمَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ وَعَلَى الْخُفَّيْن :

دا هغه حدیث دے چه علمائے احنافو ددے نه استدلال کوی چه د سر څلورمه حصه مسح کول فرض دی، ځکه دلته (مسح بناصیته) لفظ راغلے دے۔

لیکن مخکښې په قول د ابن الهمام کښې تیر شو چه دا استدلال صحیح نه دے،ځکه چه حدیث کښې (ناصیه) ذکر ده، او ناصیه د سر مخکنئ حصے ته وائي، او احناف مطلق ربع الرأس ته فرض وائي. برابره خبره ده که ناصیه وی اوکه د سر مؤخره حصه وی اوکه یمینا وی او که شمالا وی خو چه څلورمه وی نو فرض ده، نو په دے حدیث کښې تعیین د ناصیه دے او احناف قول بالتعیین نه کوی، لهذا دے حدیث نه د احنافو استدلال درست نه دے۔

۲ – دویم دا چه په دے حدیث کښې د (ناصیه) سره دا هم ذکر دی چه ( وعلى العمامة ) یعني په پټکی باندے ئے هم مسح اوکړه، او احناف د پټکی مسح نه مني، نو که دا حدیث د قرآن کریم بیان جوړیږی، نو که دا اولنئ نیمائی حصه ئے بیان جوړیږی نودا روستنئ

نيمائې حصه به ئې هم بيان جوړيږي۔ ﴿أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ﴾۔
نه، بلکه قرآن کريم حکم اوکړو ﴿وَامْسَحُوا بِرُؤُسِكُمْ﴾ او رسول الله ﷺ ئې په درے طريقو سره بيان اوکړو (۱) يا مسح دټول سر (۲) يا نيم په سر او نيم په پټکي باندے لکه په دے حديث کښے دا طريقه ذکره (۳) يا صرف عمامه باندے مسح ۔لهذا دحديث الباب نه داحنافو استدلال په فرضيت دربع الرأس باندے باطل دے۔
احناف وغيره ددے قسم احاديثو نه شپاړس **جوابونه** کوي، چه ټول دحديث ورانول دي، بعضے جوابونه دادي ۔
۱- وائي نبي کريم ﷺ په سر مسح کوله نو پټکے ئې وران شو نو هغه ئې برابرولو، دے کښے صحابي اوليدلو نو دا ګمان ئې اوکړو چه دا ګنے نبي ﷺ په پټکي باندے مسح اوکړله۔ لکه مرقات کښے ليکلي دي (۱٦/۲)۔
**جواب** : دا بيهوده خبره ده، وجه داده چه په دے کښے تخطئة الثقات دے ، دصحابه کرامو ؓ پشان معتمد خلق د خپل مذهب دپاره خطاء کول دي، او هغوئ ته دے احتياطئ نسبت کول د چا کار دے ؟۔ ددے فائده شيعه ګانو، پرويزيانو ته لاړه چه منکرين حديث شو۔ اودا کار مقلدين أکثر کوي، لکه تاسو ته به په دے کتاب کښے بار بار راشي ان شاء الله، د مقلدينو په دے کار کښے د صحابه کرامو ؓ بے أدبي ده ۔
۲ - امام محمد وائي : احاديث د مسح العمامه منسوخ شويدي۔
**جواب** : نسخ ناسخ غواړي، تاريخ معلومول غواړي، تعارض غواړي۔ اودلته نه ناسخ شته، نه د تاريخ معلوم دے چه کوم مخکښے دے اوکم روسته، او تعارض هم نشته د مسح الرأس سره، بلکه ټولو طريقو سره مسح جائز ده کما تقدم. صرف دامام محمد په قول سره خو نسخ نه ثابتيږي، او هغه د نسخ دليل هم نه دے پيش کړے، بلکه صرف دائے وئيلي دي چه (بلغنا أن المسح على العمامة كان فترك - الموطأ)۔
۳ - بعضے جواب کوي چه : دا خبر واحد دے او قرآن کښے الله تعالیٰ په سر باندے مسح وئيلے ده، نو نص د کتاب الله څنګه په خبر واحد باندے پريخودلے شي ؟ څکهٔ الله تعالیٰ أمر کوي چه په سر مسح اوکړئ او حديث کښے پټکے ذکر دے ؟ نو خبر واحد سره

زيادت په كتاب الله صحيح نه دے !۔

**جواب** : قرآن كريم كښے سر ذكر دے اورسول الله ﷺ د سر تشريح كړيده په خپل عمل سره نو نه زيادت شته په كتاب الله باندے اونه د كتاب الله خلاف شته، بلكه پټكے چه كله د سرنه اوتړلے شي نو ددے حكم د سر وي، او نبي كريم ﷺ ورله حكم د سر وركړيدے په صحيح حديث كښے، ځكه چه قرآن كريم كښے خو د وينځلو تخصيص نشته، اوددے خبرے مثال هم شته لكه موزه چه په خپه كښے واچولے شي نو ددے حكم دخپے وي، نو په موزه لاس راخكل داسے دي لكه په خپه باندے لاس راخكل۔ فتدبر !۔

٤ - **جواب** : د مسح العمامه په احاديثو كښے اضطراب دے، او په سند كښے ئے مجاهيل دي۔

**جواب** : هيڅ اضطراب نشته، بعضے حديثونه ضعيف دي مگر أكثر احاديث صحيح مستقيم السند دي، لكه حافظ په تلخيص الحبير او علامه زيلعي په نصب الرايه كښے ذكر كړيدي ۔

٥ - **جواب** : په دے حديث كښے په ناصيه باندے مسح شويده، او په دے سره فرض اداء شو چه ربع الرأس ده، او په پټكي سره اتمام د مسح راغلے دے، نو دا په فرض كښے داخل نه ده۔

**جواب** : د پټكي په مسح كښے خو ځانله دا يو حديث نه دے بلكه مختلف واقعات او احاديث دي چه په بعضو كښے صرف په پټكي باندے مسح شويده او په بعضو كښے په سر او په پټكي دواړو باندے شويده۔ (كما مر هذه الأحاديث)، او پاتے شوه دا خبره چه پټكي باندے مسح داتمام دمسح الرأس دپاره ده نو دا هسے دعویٰ ده بے دليله، هيڅ قرينه په حديث كښے په دے باندے نشته چه دا د اتمام دپاره شويده، اونه نبي كريم ﷺ ديته اشاره كړيده، اونه چرته په بل يو روايت كښے راغلے ده، بلكه دا هسے حديث ورانول دي۔

٦ - بعضے وائي : دا پټكے داسے وړوكے او نرے وو چه لوندوالے ددے نه سرته رسيدو !۔

**جواب** : اول خو په دے باندے دليل نشته چه دا وړوكے او نرے وو، بلكه بعض مقلدين خو لا دا وائي چه نبي كريم ﷺ به دولس گزه پټكے وهلو، لكه د قندهاريانو نه تپوس

اوکړه، نو دلته ئې د مذهب دپاره څنګه د نبی ﷺ پټکے وړوکے او نرے کړو؟۔

٢ – دویم داچه مونږ دا نه منو چه د پټکی نه لوندوالے دِے سر ته اورسی اګرکه وړوکے هم وی، څکه چه پټکی کنبے خو ولونه وی، هر څومره چه نرے وی خو لوندوالے سرته نه کوزیږی، لکه هر سړے دِے په دے تجربه اوکړی، داخو څه رومال نه وو چه هسے په سرئے اچولے وو، بلکه هر څنګه چه وی نو زمونږ دپاره حجت دے۔

٧ – بعضے وائی : دلته مجاز دے مَسَحَ عَلَى الْعِمَامَةِ معنیٰ ده مَسَحَ مَا تَحْتَهَا، ذکر دحال او مراد ترینه محل دے۔

**جواب** : مجاز خلاف الأصل دے، دې ته ضیرورت کول سَره د وجود د حقیقت نه باطل دی، فتدبر! --- دغه شان نور جوابونه هم شته چه ټول باطل اوبے ځایه دی، اودیو بل معارض هم دی۔ انظر المرعاة (٢/١٠٣)۔

نو ثابته شوه چه صحیح قول دامام احمدؒ وغیره دے چه په مسح الرأس کنبے دا ټولے طریقے جائز ګنړی، کما مرّ۔

---

١٠ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِيْ شَأْنِهِ كُلِّهِ، فِيْ طُهُوْرِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَتَنَعُّلِهِ . متفق عليه .

**ترجمه** : اوبی بی عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی کریم ﷺ به د خپل وس مطابق په خپلو ټولو کارونو کنبے ښی لاس سره شروع کول خوښول (مثلا) خپل طهارت کنبے، خپل ګومنز کولو کنبے، خپل پیزار اچولو کنبے ۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ : ددے حدیث نه معلومیږی چه نبی کریم ﷺ به دا خوښوله چه په هر کار کنبے په ښی طرف باندے اوښی لاس باندے شروع اوکړی، څو پورے چه به ممکن وه، چه په ښی لاس کیدے شی۔ اوکه په یوائے په ښی لاس سره به نشو کیدلے، بیا به ئے ورسره ګس لاس هم ملګرے کولو، لکه دمخ وینځل، د سر مسح، غوږونه مسح کول، څکه دلته دانسان وسع نشته چه په یو لاس سره دا کار اوکړی ۔

اود : مَا اسْتَطَاعَ : نه مراد ددے اهمیت معلومیږی چه نبی کریم ﷺ به ښی لاس سره

کارونه ډېر په تاکید سره کول، اوددې اهتمام به ئې ساتلو۔
بیا (شَأْنِهِ كُلِّهِ) نـه مراد هر هغه کارونه دي چه د بزرګئ اود شرافت سره تعلق لري، لکه اوداسه کښې شروع کول شو، چه اول به ئې ښې لاس بیا ګس لاس دارنګه اول خئ خپه بیا ګسه خپه وینځله، د سرګومنزول به ئې د ښي طرفنه شروع کول، چپل ټپلئ اچولو وخت کښې ئې خئ خپه مخکښې کوله، دا درې څیزونه په دې حدیث کښې صرف بطور مثال ذکر دي، ورنه تخصیص په دې درې ؤ کښې نشته، ځکه (في شانه كله) نه عموم معلومېږي۔ اوکوم کارونه به چه دګندګئ د صفایئ سره تعلق لرلو، یا به په کښې شرافت نه وو، نو هغه به ئې په ګس لاس او خپې سره کولو لکه ددې تشریح مخکښې تیره شویده ۔
مَا اسْتَطَاعَ : د استطاعت نه مراد استطاعت شرعي دې، یعنې شریعت کښې به چه دهغه پدې وسع وه نو هغه به ئې په ښي طرف کول، اوکه شرعا به استطاعت نه وو لکه خروج عن المسجد ، بیت الخلاء ته داخلیدل، استنجاء کول وغیره، نو دابه ئې په ګس لاس خپې سره کول۔ ځکه شرعا دا کارونه په ښي طرف کول جائز نه دي۔

---

## الفصل الثاني - دويم فصل

١١ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (إِذَا لَبِسْتُمْ وَإِذَا تَوَضَّأْتُمْ فَابْدَؤُوْا بِأَيَامِنِكُمْ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : جناب أبو هريره رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې دې : کله چه تاسو جامې اغوندئ اویا اودس کوئ نو خپل ښي طرفنه شروع کوئ ۔ (احمد، ابوداود)۔

**تشریح** : فَابْدَؤُوْا بِأَيَامِنِكُمْ : أيامن جمع دأيمن ده، په معنئ د بمين سره ښي لاس ته وائي، په بل روایت کښې داسې دي : (فَابْدَؤُوْا بِمَيَامِنِكُمْ) میامن جمع دمیمنه ده، داهم ښي لاس ته وائي۔ دواړه الفاظ په عربئ کښې استعمالیږي۔ په دې حدیث کښې أمر دې په ښي طرفنه شروع کولو باندې۔
اوس که څوك په ښي طرف اودس اونه کړي نو دده به څه حکم وي ؟۔

نو اصح خبره داده چه سنت ترې پاتې شو او اودس ئې باطل نه دې، دليل په دې باندې دادې چه دلته اقتران داودس راغلې دې دجامې سره نوكه څوك په جامې اغوستلو كښې په كس طرف باندې شروع اوكړي نو صرف سنت ترې پاتې شو، نه واجب. نو دغه شان اودس هم دې. نو أمر په دواړو داستحباب او سنيت دپاره دې، او په دې باندې أمام نووي اجماع د اهل السنت نقل كړيده چه دا أمر د استحباب دې، نه د فرضيت. كه دا پاتې شي نو هم اودس صحيح دې، صرف فضيلت فوت شو. خلافا للشيعة، ولا اعتداد بهم. اګرچه اقتران قوي دليل نه دې هميشه دپاره، بلكه كيدې شي چه يو حديث كښې دوه حكمه وي يو دې فرض وي او بل دې مستحب وي، ليكن كله كله علامه اونبنه ګرځي د نورو دلائلو په وجه.

۲ - **دويم دليل** : مخكښې حديث د عائشهؓ دې چه په هغې كښې داسې دي : كان النبي ﷺ يحب التيمن ما استطاع في شانه كله الخ. په دې حديث كښې (يحب التيمن) لفظ دليل دې په استحباب باندې. ليكن دومره واضح نه دې، فَاِنَّ الْوَاجِبَ ايضًا يُحِبُّهُ.

---

۱۲ - وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ ؓ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَا وُضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

۱۳ - وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ .

۱٤ -وَالدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنْ أَبِيْهِ وَزَادَ فِيْ أَوَّلِهِ : (لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَا وُضُوْءَ لَهُ).

**ترجمه**: او سعيد بن زيد رضى الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائي : دهغه چا اودس اونه شو چه د اوداسه په شروع كښې ئې د الله نوم وانه خستلو (يعني بسم الله ئې اونه وئيله). (ترمذي، ابن ماجه)، او احمد او ابوداود دا حديث د ابو هريرةؓ نه او دارمي د ابو سعيد خدري نه او هغه د خپل پلار نه روايت كړې دې او دهغې په اول كښې ئې دا الفاظ زياتي كړي دي چه : دهغه چا مونځ نه كيږي د چا چه اودس نه وي.

## تعارف : د سعید بن زید رضی الله عنه :

سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل العدوي القرشي أبو الأعور، يو د عشره مبشره نه اود مهاجرينو اولينو نه دے، پخوانے مسلمان دے، ټولو غزواتو ته د نبی کریم ﷺ سره حاضر شویدے، سیوا د بدر نه ځکه چه دا دطلحه بن عبید اللهؓ سره د قریشو د قافلے د طلب کولو دپاره تلے وو، او نبی کریم ﷺ ورله حصه هم مقرر کړے وه، دا د فاطمے بنت الخطاب خاوند وو، یعنی د عمر فاروقؓ اوخے وو، په شکل غنم رنګے ، او تك تور ډیرو ویښتو والا صحابی وو۔ په سنه (۵۱) هـ یا (۵۰) هـ کښے څه دپاسه اویا کالو په عمر ، په عقیق علاقه کښے وفات شو، بیا مدینے طیبے ته را نقل کړے شو او بقیع کښے دفن کړے شو ۔ ټول (۳۸) احادیث ترے نقل دی ۔ رضی الله تعالیٰ عنه۔

**تشریح** : لَا وُضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ :

دے حدیث کښے دوه مسئلے دی : ★ – لا وضوء کښے کومه نفی ده ؟

★ – بسم الله عند الوضوء کښے اختلاف۔

۱ – نو په دے کښے اختلاف دے چه دا نفی کومه ده ؟

۱ – شوافع او احناف او مالکیه او یو قول دامام احمدؒ دادے چه دلته نفی دکمال ده، یعنی که چا بسم الله په ابتداء د اودس کښے اونه وئیله نو اودس ئے کیږی، خو صرف سنیت او استحباب او فضیلت ترے فوت شو۔ او فرض او واجب ترے ندی فوت شوی۔

اوس په دے **سوال** وارد شو چه تاسو دا کوم ځائے نه وائے، ځکه چه په نفی د کمال سره خو نفی د ذات د شئ نه راځی، کما أن نفي جزء الشئ لا ينفي الكل كقطع الورقة من الشجرة۔ نو هغوئ جواب کوی چه دا روسته حدیث دابو هریرةؓ، ابن مسعودؓ او ابن عمرؓ نه معلومیږی (کما یأتی قبیل باب الغسل) چه بسم الله وئیل واجب نه دی، بلکه سنت دی، لکه حدیث داسے دے (چه چا په اوداسه کښے بسم الله اووئیله نو په دے سره به ټول بدن دده پاك شی، اوکه چا بسم الله اونه وئیله نو صرف د اوداسه اندامونه به ئے پاك شی) ددے نه معلومیږی چه بسم الله وئیل واجب نه دی په اوداسه کښے، که چرے دا واجب وے نو پکار ده چه د اوداسه واله اندامونه هم نه وے پاك شوے او اودس نه وی شوے !۔

لیکن د دے نه **جواب** دادے چه داحدیث ضعیف جداً دے (أخرجه الدارقطني و البيهقي مرفوعا من حديث ابن عمر) ددے په سند کښے ابو بکر الداهری عبد الله بن الحکم متروك راوی دے، اودارنګه وضاع هم دے، او په حدیث د ابو هریرةؓ کښے مرداس بن محمد بن عبد الله بن أبان عن أبيه دے، اودا دواړه ضعیف دی۔ او په حدیث دابن مسعودؓ کښے یحییٰ بن هشام السمسار متروك راوی دے، نو دے حدیث کښے ډیر زیات ضعف دے، نو په دے وجه دا دلیل نه ګرځی ددے دپاره چه نفی دکمال دپاره شي۔ اودا خبره هم صحیح نه ده چه ددے حدیث ډیرے طریقے دی نو قوت پیدا کوی۔ ځکه چه دا قوت هله پیدا کوی چه کله دا ضعف کم وی په طرقِ الحدیث کښے۔ اوهرکله چه ضعف سخت وی لکه په دے روایت کښے نو بیا کثرة الطرق دلیل د قوت نه وی۔ بلکه لا ضعف زیاتوی۔ کما في مصطلح الحديث . تمام المنة ص : ٣١، تحفة الأحوذي : ٣٩٩/١، نقلا عن الحافظ۔

٢ ۔ دویم دلیل : دا بیانوی چه ابن سید الناس په شرح د ترمذی کښے لیکی چه بل روایت کښے داسےؒ راغلی دی : (لاوضوء كاملا لمن لم يذكر اسم الله) نو دلته پخپله نفی دکمال ذکر شوه۔

لیکن ابن حجر عسقلانیؒ فرمائی : لم أره هكذا ۔ دا روایت ما پدے طریقه نه دے موندلے، نو دا روایت نه دے ثابت۔ بعضے حنفیه وائی چه دابن حجرؒ نه موندل دلیل نه دے په هغه چا چه هغه لیدلے دے په متقدمینو کښے۔ نو داخبره د دوئ خطاء ده وجه داده چه نفس لیدل هم کافی نه دی د اثبات دمطلوب دپاره ترڅو چه صحت او حسن نه وی معلوم شوے۔ اوددے زیادت حال نه دے معلوم۔ او تراوسه پورے دا څوك په صحیح معتبره طریقه سره نشی ثابتولے۔ نوصرف لیدل دابن سید الناس دلیل نه دے۔

٢ – دامام احمدؒ، اهل ظواهرؒ، حسن بصریؒ، اسحق بن راهویهؒ مذهب دادے چه بسم الله په ابتداء داوداسه کښے وئیل واجب دی۔ اودا رائے په احنافو کښے دشاه ولی الله دهلویؒ او ابن الهمامؒ هم ده۔ (لکه شاه انور شاهؒ په العرف الشذی : ١٣/١، کښں وائی : وتفرد بالوجوب منا ابن الهمام)۔ دغه شان علامه عبد الحی هم دے (كما في احكام القنطرة في أحكام البسملة : ٦٢/١)۔

او علامه كاساني په البدائع والصنائع :۱/ ۲۰، كښې دامام مالكؒ نه هم د فرضيت قول نقل كړيدے۔

البته : امام اسحقؒ په كښې داوائي چه كه : عمداً ئې بسم الله پريخودله نو اودس باطل شو، اعاده ئې فرض ده، اوكه سهواً ترے پاتے شوه يا په تاويل سره، نو اودس ئې جائز دے۔ دابنه قول دے ځكه د بسم الله احاديث داسے ډير قوي نه دي، ګوياكه دا دريم قول شو ۔

ددے **دويم قول والا دلائل :**

۱ – يو خو دا حديث دے چه په دے كښې نفي د شئ شويده اونفي د شئ د ترك د ركن يا ترك د فرض په وجه كيږي، معلومه شوه چه تسميه شرط او ضروري ده۔ اودلته نفي د صحت، نفي دذات ته نزدے ده ځكه عدم د حقيقت سره عدم د ذات لازم دے، او كله چه نفي د صحت اوشوه نو معنىٰ به داوي چه هغه شے به باطل وي، نو معنىٰ دحديث به دا شي (لاوضوء : أي لا يصح الوضوء ولا يوجد شرعا الا بالتسمية)۔ اوكوم علماء چه نفي د كمال مراد كوي نو هغه مجاز دے، اومجاز ته هله رجوع كيږي كله چه حقيقت متعذر شي او دلته حقيقت نه دے متعذر، دارنګه په مجاز كښې قرينے ته ضرورت دے او دلته نشته، كما سبق بطلانها۔

۲ – دويم حديث دابو هريره دے : (قال رسول اللّٰه ﷺ : لا صلاة لمن لاوضوء له، ولا وضوء لمن لم يذكر اسم اللّٰه عليه) أخرجه ابن ماجة :۱/ ۳۹۹، وابوداود : ۱/ ۱۰۱، واحمد :۲/ ٤١٨ . قال الحاكم : صحيح الاسناد، وصححه الألباني في صحيح سنن أبي داود :۱/ ۲۰، رقم : ۱۰۱)۔

۳ – دارنګه په بعضے رواياتو كښې – لكه په روايت د ترمذي او ابن ماجة كښې – ورسره په ابتداء كښې دا الفاظ زيات شويدي : (ولا صلاة لمن لاوضوء له) نودلته هغه جمله مقترنه شويده ددے جملے سره، او په دے جمله كښې خو نفي دصحت ده نو په (لا وضوء لمن الخ) كښې به هم نفي د صحت مرادوي، ځكه د دواړو جملو ترمينځه اقتران شويدے، اودا قِران دليل دے كله چه د دے مخالف دليل صريح نه وي۔

دا وجه ده شاه ولي الله دهلويؒ په حجة الله البالغة (۱/ ۱۷۵) كښې ليكي :

هو - أي حديث أبي هريرة - نص على أن التسمية ركن او شرط، ويحتمل أن يكون المعنىٰ : لايكمل الوضوء، لكن لا أرتضي بمثل هذا التاويل، فانه من التاويل البعيد الذي يعود بالمخالفة على اللفظ، انتهى۔

يعنې دا حديث صريح دے چه بسم الله وئيل ركن يا شرط دی، بغير ددے نه اودس نه کيږی، اود نفی د کمال معنی چه کومو علماؤ کړيده نو زه دا نه خوښوم ځکه چه دا بعيد تاويل دے اود ظاهر لفظ دحديث نه مخالف دے۔

بعضے احناف وائی : چه مونږ په دے مقام کښے دا روايت (لا وضوء آه) په معنىٰ حقيقی ظاهری باندے ځکه نشو حمل کولے چه په دے سره تخصيص په آيت کښے راځی په خبر واحد سره په مرتبه د شرطيت کښے، اودا تخصيص زيادت دے په کتاب الله باندے او زيادت په کتاب الله نسخ دکتاب الله ده، او نسخ په خبر واحد سره نه ده جائز، ځکه کتاب الله نص قطعی دے، اوخبر واحد ظنی دے او نسخ د قطعی په ظنی سره جائز نه ده۔

ددے نه **جواب** : ١ - دادے چه نه منو داخبره چه زيادت په کتاب الله باندے نسخ ده، ځکه چه نسخ خو رفع دحکم شرعی ثابت بالخطاب ته وائی، اودلته خو رفع دحکم نشته بلکه هغه حکم ثابت دے سره د زيادت نه، نو تعريف د نسخ پرے نه صادقيږی۔ کما قدمنا هذا البحث في المجلد الاول۔

٢ - **دويم جواب** دادے چه زيادت په خبر واحد سره په نص قطعی باندے په مرتبه د وجوب او استحباب کښے خو احناف هم منی، چه دا جائز دے، نوگويا کښے دا دَ سره زيادت نه دے د دوئ په نيز هم، نو بناء په دے باندے احنافو له پکار دی چه قول په وجوب د تسميه باندے اوکړی، لکه څنګه چه علامه ابن الهمامؒ دا قول کړيدے، او لکه څنګه چه جمهور احناف د وجوب د فاتحے قائل دی په مانځه کښے په خبر مشهور سره (كما في اصول الشاشي و شرح الوقايه : ١٦١/١)، نو پکار ده چه دلته هم قائل بوجوب التسميه شی په اودس کښے ۔

اوکه دوئ وائی چه په اوداسه کښے واجب نشته نو مونږ وايو : دا خبره هم فاسده ده لهذا دا د بناء الفاسد على الفاسد د قبيلے نه شوه۔ نو ددے اعتراض نه د احنافو خلاصے

نشته ـ بل جواب دادے چه دغه قاعده باطله ده، لکه په اول جلد (٤٨٩/١) کښې تفصیلا تیره شویده۔

۲ - **بل جواب** دادے چه دا حدیث التسمیه أصح او أقویٰ او ډیر مشهور دے دحدیث الوضوء بالنبیذ نه، نو چه په حدیث د وضوء بالنبیذ باندے زیادت جائز ګنړئ نو پکار ده چه داخو ډیر مشهور دے په دے باندے دے هم زیادت په کتاب الله باندے راشی ځکه چه زیادت دکتاب الله په خبر واحد سره خو احناف هم منی ـ

امام ابن الجوزیؒ په التحقیق (۱۳۷/۱) کښې فرمائی : مسئلة : التسمية فی الوضوء واجبة (فرض)، لنا أربعة أحاديث على فرضيتها، الى آخر ما قال .

بیا جمهور اعتراض کوی چه دا حدیث د سعید بن زیدؓ ضعیف دے، نو وجوب پرے نه ثابتیږی، او وجوب دپاره قوی دلیل پکار دے، اوددے خبرے دپاره دامام احمدؒ دا قول ذکر کوی کوم چه امام ترمذیؒ رانقل کړیدے : ( لا أعلم فی هذا الباب حديثا له اسناد جيد) یعنې : په دے باب دتسمیه کښې جید حدیث نشته۔ دغه شان قول دامام بزارؒ او ابو زرعهؒ هم دے، کما فی تحفة الأحوذی : ۳۹/۱۔

لیکن ددے **جواب** اهل ظاهر دا ورکوی چه ددے روایت ډیر اسانید دی، چه بعضے په بعضو سره قوی کیږی او ډیر ضعف په کښې نشته۔

دا وجه ده چه ابن حجرؒ په تلخیص الحبیر (۱۱۲) کښې لیکی : والظاهر أن مجموع الأحاديث يحدث منها قوة تدل على أن له أصلا۔

دارنګه د ابو أبو بکر بن أبی شیبهؒ نه نقل دی چه : (ثبت لنا أن النبی ﷺ قاله) یعنی د نبی کریم ﷺ نه دا ثابته ده چه هغه دا حدیث وئیلے دے۔ (الترغیب والترهیب)۔

۳ - دارنګه ابن سید الناسؒ په شرح د ترمذی کښې فرمائی : (لا يخلو هذا الباب من حسن صريح وصحيح غير صريح، انتهى) . یعنې : په باب د بسم الله وئیلو کښې په ابتداء داوداسه کښې حسن حدیثونه صریح دی او صحیح حدیثونه غیر صریح ثابت دی۔

(تلخيص الحبير : ۱۱۲/۱)۔

٤ - امام حافظ منذریؒ په الترغیب (۲۲٤/۱) کښې فرمائی : چه په دے باب کښې چه

کوم حدیثونه راغلي دي په هغه ټولو کښې مقال شته مګر (فانها تتعاضد بکثرة طرقها وتکتسب قوة). یعنې چه ټولې طریقې راجمع کړې شي نو یو قوت پیدا کوي. اوضعف په کښې زیات نه دے.

۵ – دارنګه ابن کثیر په الارشاد (۳٦/۱) کښې نقل کړیدی : (وقد روی من طرق یشد بعضها من بعض فهو حدیث حسن او صحیح). تعلیق ابی داود : ۳۵.

یعنې د دے حدیث ډیر سندونه دي چه بعضې د هغې نه بعضې قوي کوي، نودا یا حسن حدیث دے اویا صحیح.

ځکه چه کله په سند کښې ضعف وي او متابعات شواهد اولري نو دا حدیث بیا صحیح لغیره درجه کښې شمارلے شي، کما فی المصطلح.

دا وجه ده چه : ٦ – ابن الصلاحؒ هم دا خبره کړیده چه : (یثبت بمجموعها ما یثبت بالحدیث الحسن) هذا کله فی عون المعبود : ۱/۳۸، والتحفة : ۱/۳۸، والمرعاة : ۳/۱۰۸). وتنقیح الرواة (۱/۷٦).

۷ – علامه عبد الحی لکهنوی فرمائی :

فان حدیث ( لا وضوء لمن لم یذکر اسم اللّٰه علیه) وان لم یکن مثل حدیث (لا صلاة الا بفاتحة الکتاب) فی الصحة، لکنه لیس بساقط ایضا، فان کثرة الطرق وان کان کل منها ضعیفا قد رقاه الی الحسن علی ما هو مقرر فی اصول الحدیث، فما المانع من ثبوت الوجوب به ؟ فافهم (احکام القنطرة فی احکام البسملة، لعبد الحی : ۱/٦۲).

یعنې : ( لا وضوء لمن لم یذکر اسم اللّٰه علیه) حدیث اګرکه د (لا صلاة الا بفاتحة الکتاب) حدیث سره په صحت کښې برابر نه دے، لیکن ساقط هم نه دے، ځکه چه کثرت د طرقو – اګرکه یوه یوه طریقه ضعیفه هم ده – دا حدیث، حسن درجے ته رسولے دے، لکه چه دا خبره په اصول الحدیث کښې بیان شویده. نو اوس هرکله چه دا حدیث حسن شو نو بیا په دے سره د وجوب ثابتیدلو نه څه شي مانع دے ؟ ښه پو هه شه ! انتهی.

۸ – علامه شوکانیؒ فرمائی : وهذه الطرق یقوی بعضها بعضا فتصلح للاحتجاج بها، ( السیل الجرار : ۱/۲۱۱).

۹ – علامه ابن قیم الجوزیهؒ فرمائی : احادیث التسمية على الوضوء احاديث حسان.
فالخلاصة : ان الحديث حسن.
(المنار المنيف فى الصحيح والضعيف ص : ۱۳۰، رقم : ۲۷۱۔

بل دلیل په فرضیت د بسم الله وئیلو باندے حدیث د انسؓ دے (قال طلب بعض اصحابنا من رسول الله ﷺ وضوء فقال رسول الله ﷺ : هل مع احد منكم ماء ؟ فوضع يده فى الماء ويقول : توضؤوا بسم الله فرأيت الماء يخرج من بين اصابعه، فتوضؤا حتى توضؤا من آخرهم ... الحديث) اخرجه النسائى : ۶۱/۱، والبخارى : ۱۶۹، كتاب الوضوء باب التماس الوضوء، واحمد : ۱۶۵/۳، وابن عبد الهادى فى التنقيح : ۱۰۶/۱. قال النووى فى المجموع شرح المهذب : ۴۰۵/۱ : واصح ما فى التسمية حديث انس واسناده جيد، واحتج به البيهقى فى معرفة السنن والآثار، انتهى واخرجه عبد الرزاق رقم : ۲۰۵۳۵، وابو يعلىٰ : ۳۰۳۶)۔

**ترجمه** : بعضے صحابوؓ د رسول الله ﷺ نه اوبه طلب کړے، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : پتاسو کښے چاسره اوبه شته ؟ نو نبی ﷺ اوبو کښے لاس کیخودلو او وے فرمائیل : د الله په نوم اخستلو سره اودس شروع کړئ۔ انسؓ وائی : ما اوبه اولیدلے چه د رسول الله د ګوتو د مینځ نه راوتلے، نو تولو صحابوؓ اودس اوکړو۔

او دا حدیث دریمه مسئله کښے هم را روان دے۔ او په دے باب کښے نور حدیثونه هم ډیر دی لکه حدیث ابی سعید، اخرجه احمد : ۴۱/۳، وابو یعلیٰ : ۳۳۴/۲، الدارقطنی : ۷۱/۱، ابن ماجة (۳۹۷)۔

۴ – **څلورم** : حدیث د سعید بن زیدؓ اخرجه الترمذی رقم : ۲۵، ابن ماجه : ۳۹۸، الطیالسی رقم : ۲۴۳، البیهقی : ۴۳/۱۔

۵ – **پنځم** : حدیث د عائشهؓ دے اخرجه الدارقطنی : ۷۲/۱۔

**خلاصه** : داچه د اوداسه په شروع کښے د (بسم الله) احادیثو ته اکثرو علماؤ صحیح یا حسن وئیلی دی چه بعضے د هغوئ نه دادی (۱) امام اسحق بن راهویهؒ (۲) امام بخاریؒ (۳) امام ابن حجرؒ (۴) امام ابن کثیرؒ (۵) حافظ منذریؒ (۶) امام ابن قیمؒ (۷) علامه

شمس الحق عظیم آبادیؒ (۸) علامه شوکانیؒ (۹) شیخ البانیؒ (۱۰) علامه الأحناف عبد الحی لکنویؒ (۱۱) شیخ عبد الرحمن مبارکفوریؒ (۱۲) امام ابن جوزیؒ (۱۳) امام ابن قدامهؒ (۱٤) علامه ابن سید الناسؒ (۱۵) امام ترمذیؒ (۱٦) علامه سندهی حنفیؒ (۱۷) علامه ابن صلاحؒ (۱۸) علامه نواب سید صدیق حسن خانؒ (۱۹) امام بوصیریؒ (۲۰) امام احمد بن حنبل - رحمهم الله۔

نو معلومه شوه چه دا حدیث ثابت دے او وجوب پرے ثابتیدے شی، او احتیاط هم په دے قول کښے دے، ځکه که دا حدیث ثابت وی او انسان پرے عمل اونه کړی نو نقصان کښے به پریوځی، اودس به ئے خراب شی، اګرچه آسانی په قول د جمهورو کښے ده، خو لیکن دا اختلاف علمی دے، نه عملی، په استحباب کښے اختلاف نشته صرف وجوب کښے اختلاف دے۔ په دے باندے یوه بله مسئله تفریع ده۔

اوهغه دا چه یو انسان په بیت الخلاء کښے اودس کوی آیا هغه به بسم الله وائی که نه ؟ ۔ ۱ - **یو قول** دادے چه نشے وئیلے ځکه دا بے عزتی ده د الله تعالیٰ د نوم۔ دا د هغه علماؤ قول دے چه بسم الله وئیلو ته مستحب وائی۔ ځکه چه دمستحب په عملی کولو سره به بے ادبی کول نه اختیاروی۔

۲ - **دویم قول** دادے چه بسم الله وئیل واجب دی په هر ځائے کښے چه اودس کوی حتی چه بیت الخلاء کښے به ئے هم وائی اودلته اګرچه ظاهرا بے أدبی معلومیږی لیکن د واجبو د رعایت په وجه ظاهرا بے أدبی کښے پریوتل جواز لری، اګرچه په زړه کښے به ئے د بے أدبیٔ اراده نه وی خصوصا نن صبا بیت الخلاء (لیټرینونه) خو داسے صفا فرشی وی هیڅ ګندګی په کښے نه ښکاری په اوبو استعمالولو سره، او بیت الخلاء فراخه وی ګندګی جدا ځائے وی او د غسل خانے ځائے جدا وی، نو بسم الله به ضرور وائی۔ او په دے باندے دلیل دادے چه نبی کریم ﷺ به د عائشےؓ په غیږه کښے په حالت د حیض دهغے کښے قرآن لوستلو۔ وهو الراجح دلیلًا۔

## ۳ - دریمه مسئله : بسم الله به په کومو الفاظو سره وائی ؟

۱ **یو قول** دادے چه فقط (بسم الله) لفظ به وائی، دلیل په دے باندے دادے چه په

عمل اليوم والليلة د ابن السني رقم (٢٧) كښې د أنس بن مالكؓ يو صحيح حديث دے چه په هغې كښې د رسول الله ﷺ معجزه ذكر ده، چه بعضو صحابوؓ د نبي كريم ﷺ نه د اوبو مطالبه اوكړه نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل : تاسو سره څه لوښي كښې اوبه شته ؟ نو په لوښي كښې ئې لاس كيخودلو اودائے اوفرمائيل : (توضؤا بسم الله) بسم الله سره اودس شروع كړئ. لكه چه مخكښې تير شو.

أنسؓ فرمائي : مونږ اويا كسانو د هغې نه اودس اوكړو. (باب كيف التسمية على الوضوء). وكذا أخرجه النسائي : ١/١٨، رقم : ٧٧، والبيهقي : ١/٤٣، والدارقطني : ١/٧١.

په دے حديث كښې صرف (بسم الله) ذكر ده ، چه بسم الله اووائے اودس شروع كړئ.

٢ - **دويم قول** : دادے چه بسم الله والحمد لله، الفاظ به وائي، لكه چه حديث د طبراني في الصغير : ٧٣، اومجمع الزوائد : ١/٢٢٠، كښې دابو هريرةؓ حديث دے چه رسول الله ﷺ ده ته اوفرمائيل : يا أبا هريرة ! اذا توضأت فقل : بسم الله والحمد لله.

اودے حديث ته ئے حسن وئيلي دي، دارنګه رد المحتار : ١/٧٤، كښې هم وئيلي دي چه : واسناده حسن.

٣ - **بعضے** علماؤ دا وئيلي دي چه (بسم الله العظيم والحمد لله على دين الاسلام) به وائي، كما في الدر المختار : ١/٧٤، ليكن بے سنده خبره ده. په هيڅ صحيح يا حسن حديث كښې نه ده ثابته داد فقهاؤ تعمقات دي.

**خلاصه** : داچه چه يا خو به صرف (بسم الله) وائي، او يا به (بسم الله الحمد لله) دواړه جمع كوي. ليكن بسم الله سره (الرحمن الرحيم) يوځائے كول چرته حديث كښې نه دي راغلي، بلكه صرف بسم الله لفظ راغلے دے، لكه په مقام د ذبح كښې چه صرف (بسم الله) لفظ راغلے دے.

اګرچه عون المعبود : ١/٣٧، كښې علامه عظيم آباديؒ د شيخ محمد طاهر، صاحبِ تكمله مجمع البحار نه نقل كړيدي چه : (ويكفي بسم الله، والأكمل : بسم الله الرحمن الرحيم. وهكذا في المجموع : ١/٣٤٤).

ليکن په دے خبره هم دليل نشته، صرف قياس دے، او په احاديثو کښے فقط لفظ د (بسم الله) ذکر دے نه مکمله (بسم الله الرحمن الرحيم) - کما أشار اليه صاحب العون :
۳۹/۱ - او په المغنى : ۱۱۵/۱، کښے فرمائى :
والتسمية وهى قول بسم الله : لا يقوم غيرها مقامها کالتسمية المشروعة على الذبيحة -
(يعنے : صرف بسم الله لفظ به وائى، لکه په ذبح کښے چه صرف بسم الله وائى، ددے په ځائے بل لفظ نشى وئيلے)-

په دے باندے بله مسئله تفريع ده --- او هغه داچه : يو شخص نه په ابتداء داوداسه کښے **بسم الله وئيل هير شى** نو آيا داودس په مينځ کښے به ئے وائى اوکه نه ؟-

۱ - احناف وائى چه د اوداسه په مينځ کښے بسم الله وئيل نه دى پکار او روټئ په ابتداء کښے چه بسم الله هيره شى نو په مينځ کښے به ئے وائى که ورته ياده شى-

**دليل** دا وائى : ځکه چه روټئ کښے هره لقمه (نوړئ) جدا عمل دے نو بسم الله وئيل ورله پکار دى، او اودس خو د ابتداء نه تر انتهاء پورے يو عمل دے نو چه بسم الله د يو محل نه فوت شوه نو بل محل کښے نشى راوړے، اودا قول قوى دے، لعدم ورود النص فى الأمر بذلك عند الفوات فى الوضوء، کما ورد الأمر به فى اثناء الطعام-

۲ - امام شافعى په کتاب الأم (۳۱/۱) کښے دا فتوىٰ ورکړيده چه بسم الله داوداسه په مينځ کښے لوستے شى (فان سها سمى متىٰ ذکر)-
دليل ورله داسے ذکرکولے شى : چه قرآن کريم کښے دى :
﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ ﴾ التغابن-

د الله نه دخپل طاقت مناسب يره کوئ، نو بناء په دے باندے هيره کښے دانسان طاقت نه وى نو الله ئے نه رانيسى چه ابتداء کښے فوت شوه نو وسط کښے دے راوړى، اوکله کله يو عمل بل مقام کښے اداء کولے شى، لکه ددے ډير مثالونه دى-

عَنْ اَبِيْهِ : په دے مقام کښے مصنف باندے دوه کرت وهم غالب شويدے :
۱ - يو کرت وهم خو دادے چه دلته ئے (عَنْ اَبِيْهِ) لفظ وئيلے دے يعنى ابو سعيد الخدرى دپلار نه دا حديث نقل دے، حال داچه دابو سعيد خدرى پلار مالك بن سنان دے

اوهغه خو مخکښې تیر شویدې حدیثونه ترې نه دی نقل ـ نو صحیح عبارت داسې دې (عن ابن ابی سعید الخدری عن ابیه، وابنه عبد الرحمن، کما فی الدارمی : ۱/۱۴۱)، او نسخه د نصیر الدین کښې هم داسې دی۔

۲ - دویم وهم دادې چه : (زادوا فی أوله) کښې ئې داوئیلی دی چه دا روستو عبارت احمد او ابوداود او دارمی تولو زیات کړیدې، سره ددې نه چه دا عبارت دارمی نه دې زیات کړې، نو داسې عبارت وئیل پکار وو : (وزاد غیر الدارمی)۔

---

۱۵ - وَعَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ ﷺ قَالَ : قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَخْبِرْنِيْ عَنِ الْوُضُوْءِ قَالَ : اَسْبِغِ الْوُضُوْءَ ، وَخَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ، وَبَالِغْ فِي الْاِسْتِنْشَاقِ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ صَائِمًا ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ. وَرَوَى ابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِيُّ اِلٰى قَوْلِهٖ : بَيْنَ الْأَصَابِعِ.

**ترجمه** : او جناب لقیط بن صبره رضی الله عنه فرمائی : ما عرض اوکړو یا رسول الله ! ماته د اوداسه په باره کښې خبر راکړئ، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : پوره اوس کوه، ګوتو کښې خلال کوه، که ستا روژه نه وی نوپوزې ته په ښه شان اوبه رسوه ـ (ابوداود، دارمی، نسائی)، ابن ماجه او دارمی دا حدیث (بین الأصابع) پورې روایت کړې دې ـ

### تعارف د لقیط بن صبره ﷺ :

دده پوره نوم او سلسله نسب داسې ده : لقیط بن عامر بن صبره ابو رزین العقیلی، د بنی المنتفق قبیلې مشهور صحابی دې۔ تول (۲۴) احادیث ترې نقل دی ـ

۲ - بعضې وائی لقیط بن صبره جدا شخص دې اولقیط بن عامر بن صبره جدا دې۔

**تشریح** : قُلْتُ : داپه وفد کښې راغلې دې اود نبی کریم ﷺ نه تپوسونه کوی نور تپوسونه کتابونو د تاریخ ذکر کړیدی، زاد المعاد (۵۸۸/۳) کښې۔ وکذا فی صحیح ابی داود رقم (۱۴۲)۔

وَخَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ: یعنی اصابع الیدین والرجلین۔

## د لاسونو او ښپو د ګوتو په خلالولو کښې اختلاف :

١ - امام شافعيؒ اومالكؒ په نيز مستحب دے۔

٢ - دامام ابو حنيفةؒ اواحمدؒ په نيز سنت عمل دے۔

٣ - داهل ظواهرؒ په نيز خلال اصابع الرجلين واجب دے۔ اودا قول علامه شوكانيؒ په نيـل الأوطار (١٩١/١) كښې، او علامه مباركفوريؒ په تحفه الأحوذى (٤٩/١) كښې راجح كړيدے۔

**دلائل الوجوب** : په دے باره كښې ډير احاديث دى (ذكر بعضها فى التحفة والنيل والـدين الخالص : ٤٩٨/١) چه په هغے كښې أمر راغلے دے په تخليل الأصابع باندے او وعيد داور راغلے دے په هغه چاچه دا نه كوى۔ بعضے دهغے نه دادى :

١ - **اول** حديث د لقيط بن صبرةؓ (حديث الباب) دے، چه په دے كښے أمر راغلے دے په تـخـليل الأصابع باندے (أخرجه الترمذى : ١٤/١، وابوداود : ٢٩/١، وابن ماجه : ٧٥/١، وسنده صحيح وصححه الترمذى والبغوى وابن القطان كذا فى النيل : ١٩١/١)۔

٢ - **دويم** حديث دابن عباسؓ دے (قال : قال رسول الله ﷺ : اذا توضأت فخلل أصابع يـديك و رجليك) رواه الترمذى : ١٤/١، وابن ماجه : ٧٥)۔ يـعـنـى : كله چه اودس كوے نو دلاسونو او ښپو ګوتو خلال كوه (ګوتے په كښے راكاږه)۔

والحديث وان كان فى سنده صالح مولى التوأمة وهو اختلط بآخره، لكن حسنه البخارى لأنـه مـن رواية مـوسـى بـن عـقبة عن صالح وسماع موسىٰ عنه قبل أن يختلط، كذا فى النيل. وقال الألبانى حسن صحيح، صحيح ابن ماجه : ٧٥/١۔

٣ - **دريم** حديث : د مستورد بن شدادؓ دے (قال : رأيت رسول الله ﷺ اذا توضأ دلك اصـابـع رجـليه بخنصره) رواه الترمذى : ١٥/١، رقم : ٤٠، وابن ماجة، وفى سنده ابن لهيعة، لكن تابعه الليث بن سعد وعمرو بن الحارث خرجه البيهقى وابو بشر الدولابى والدارقطنى فى غرائب مالك من طريق ابن وهب عن الثلاثة، و صححه ابن القطان، كذا فى النيل (١٩١/١). وقـال الألبـانـى : صحيح، صحيح أبى داود (١٣٥) وصحيح ابن ماجة (٧٥/١، رقم : ٣٦٠، باب تخليل الأصابع)۔

٤ - **څلورم** حديث : د واثلةؓ دے (عن النبی ﷺ قال : من لم يخلل اصابعه بالماء، خللها الله بالنار، يوم القيامة). أخرجه الطبرانی فی معجمه عن العلاء بن كثير عن مكحول عن واثلة، كذا فی نصب الراية : ١/٢٦۔

**نبی کریم ﷺ فرمائی : چاچه په اوبو سره دګوتو خلال اونه کړو، الله به دهغه ګوتے د قیامت په ورځ په اور سره خلال کړی۔**

٥ - **مصعب بن سعدؓ فرمائی : عمر فاروقؓ په یو قوم باندے تیر شو چه اودس ئے کولو، نو عمرؓ ورته أمر اوکړو چه (خللوا) خلال اوکړئ** (أخرجه ابن أبی شيبة : ١/١١)۔

٦ -**ابن مسعودؓ فرمائی :** (لينهكن الرجل ما بين أصابعه بالماء اولتنهكنه النار) **یعنے خلال نه کونکی شخص ته به الله دا سزا ورکوی چه ګوتے به ورله په اور سوزوی۔**

٧ - **حذیفه رضی الله عنه فرمائی :** (خللوا بين الأصابع فی الوضوء، قبل أن تخللها النار) أخرجهما ابن ابی شيبة : ١/١١، وعبد الرزاق۔

**(په اوداسه کښے دګوتو خلال اوکړئ، مخکښے ددے نه چه الله ئے په اور اوسوزوی)۔**

**ددے احادیثو د نقل کولو نه پس شوکانیؒ فرمائی :**

والأحاديث قد صرحت بوجوب التخليل وثبتت من قوله ﷺ وفعله، ولا فرق بين امكان وصول الماء بدون تخليل و عدمه، ولا بين أصابع اليدين والرجلين، فالتقييد بأصابع الرجلين اوبعدم امكان وصول الماء لا دليل عليه نيل الأوطار : ١/١٩١۔

**ترجمه : احادیث صریح راغلی دی په دے کښے چه تخلیل الأصابع واجب دے اودا د رسول الله ﷺ دقول او فعل دواړو نه ثابت دے، برابره خبره ده چه اوبه په غیر د خلال نه ګوتو ته رسیږی اوکه نه، او برابره خبره ده چه دلاس ګوتے وی اوکه دخپو، نوکومو علماؤ چه داخبره کړیده (لکه ابن سید الناس) چه خلال په هغه وخت کښے ضروری دے کله چه ګوتے ته اوبه نه رسیږی بغیر دخلال نه، نو داخبره ددوئ بے دلیله ده، هیڅ حدیث کښے ورته اشاره هم نه ده شوے، بیا فرمائی :**

وأحاديث الباب تدل على مشروعية تخليل أصابع اليدين والرجلين ويقوى بعضها بعضا، فتنتهض للوجوب، لا سيما حديث لقيط بن صبرة۔

یعنې : ددې باب حدیثونه دلالت کوي په دې خبره چه د لاسونو اود خپو دګوتو خلال مشروع دې، اوبعضې حدیثونه اګرچه ضعیف دي خو لیکن نور حدیثونه هغې لره قوي کوي، خصوصاً حدیث د لقیط بن صبرةؓ.

دا وجه ده چه امام صنعانیؒ په (سبل السلام : ۶۷/۱) کښې فرمائي :

وحديث لقيط دليل على ايجاب تخليل الأصابع.

یعنې : د لقیطؓ حدیث دلیل دې چه خلال د ګوتو واجب دې.

**دليل الجمهور** : کوم علماء چه تخليل الأصابع واجب نه ګنړي بلکه مستحب یا سنت ورته وائي، نو دهغوئ دلیل دادې چه کوم حدیثونو کښې أمر راغلې دې نو دا أمر د ندب او استحباب اوسنیت دپاره دې او أمر دوجوب نه دې، او وجه دا بیانوي چه درسول الله ﷺ داوداسه حکایت کونکي صحابهؓ ډیر زیات دي، اوپه هغې کښې کم صحابه تخلیل ذکر کوي، نو که دا واجب وې نو ټولو صحابه کرامو به ذکر کولې.

لیکن ددې دلیل نه **جواب** دادې چه مخکښې بار بار تیر شو چه دین ټول په یو حدیث کښې نه وي، دارنګه ټول احکام او فرائض هم په یو حدیث کښې نه وي ذکر، بلکه د اهل السنت دا طریقه ده چه په باب کښې وارد ټول احادیث راجمع کوي بیا حکم را اوباسي، په یو حدیث کښې یو حکم ذکروي، په بل کښې بل حکم ذکروي، نو چه کله په بعضې احادیثو کښې تخليل الأصابع ذکر نشو او په بعضو کښې ذکر شو نو ددې نه دا نه لازمیږي چه دا حکم به واجب او ضروري نه وي، کله چه دا په نورو احادیثو کښې په صحیح سند سره ثابت وي لکه چه مخکښې تا احادیث اولیدل. ددې مسئلې دتفصیل دپاره (فتاوی الدین الخالص : ۴۹۸/۱، السيل الجرار، نيل الأوطار، تمام المنة، سبل السلام، نصب الراية، درس ترمذي او عون المعبود ته مراجعه اوکړه).

**فائده** : د خلال او تخلیل یوه معنی ده، یعنې (التفريج بينها واسالة الماء بينها). یعنې د ګوتو کهلاؤل او د هغې ترمینځ اوبه ورداخلول (توضيح الأحكام : ۱۷۵/۱).

**تکمله** : دلاس په ګوتو کښې دخلال څه خاص طریقه په احادیثو کښې نه ده راغلې، که په طریقه د تشبیك سره وي اوکه په طریقه د تصفیق سره وي دواړه جائز دي، یعنې که د

دواړو لاسونو ګوتې يو بل کښې مخامخ داخلې کړې اوکه يو لاس په بل لاس اوچت کړې اوګوتې يو بل کښې ننباسي. هره يوه طريقه جائز ده، البته دخپو دګوتو په خلال کښې طريقه داسې راغلې ده چه دګس لاس په خنصر (قچې) ګوتې سره به د ښئ خپې د قچې ګوتې نه شروع کوي، او په خپه کښې به د غټې (ابهام) ګوتې نه شروع کوي. لکه چه دا طريقه په حديث د مستورد بن شدادؓ کښې راغلې ده، کما مرّ (دلك أصابع رجليه بخنصره)، اوبل حديث کښې دي : (كان رسول الله ﷺ يحب التيامن في كل شئ). بيا که د لاندې نه شروع کوي اوکه د بره نه هيڅ حرج په کښې نشته، دارنګه د قچې (خنصر) ګوتې سره د ګس لاس ذکر هم صريح حديث کښې نشته، مګر داد قبيلې د نجاست زائل کولو نه دي او حديث دعائشةؓ کښې دي چه د نبي کريم ﷺ ګس لاس به د ناپاك څيزونو صفا کولو او استنجاء دپاره وو.

**وَبَالِغْ فِي الْاِسْتِنْشَاقِ** : په روايت د دولابي کښې داسې دي (وبالغ في المضمضة والاستنشاق) نو دا حديث دليل دې په دې چه مضمضه او استنشاق په اوداسه کښې واجب دي ځکه په دې دواړو باندې أمر راغلې دې، اود مسئلې تفصيل مخکښې ذکر شو.

**اعتراض** : جواب مطابق د سوال نه ښکاري ځکه چه صحابي تپوس داوداسه کړيدې او نبي کريم ﷺ صرف اختصار په دې خصلتونو باندې اوکړو؟

ددې **جواب** دادې چه دا حديث خو يا راويانو تردې پورې نقل کړيدې او نبي ﷺ ورته پوره اودس ښودلې دې، اويا کيدې شي چه راوي تردې ځائې پورې مهم ګڼړلو او هغه نور به ورته واضح ښکاره شوي وي.

۲ – يا دا چه نبي کريم ﷺ تردې ځائې پورې ذکرکړيدې ځکه چه هغه ته په وحي يا دمخاطب دحال نه دا معلوميدله چه ده لفظ د (وضوء) ذکر کړو خو غرض ئې صرف دا څيزونه تپوسل دي، نو ځکه ئې ورته صرف دغه خصلتونه ذکر کړل نو جواب مطابق د سوال دې.

**درجة الحديث** : رواه ابوداود : دا حديث امام ابوداود، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي، شافعي، احمد، ابن خزيمه، ابن الجارود، ابن حبان او حاکم نقل کړيدې، اوحاکم او

ترمذی او بغوی او ابن القطان ورته صحیح وئیلی دی، دارنګه حافظ ابن حجرؒ عسقلانی په الأصابه (۳۲۹/۳) کښې نقل کړیدې اوبیا ئې وئیلی دی : هذا حدیث صحیح۔ امام نوویؒ فرمائی : (حدیث لقیط بن صبرة اسانیده صحیحة)، شیخ البانیؒ په صحیح ابن ماجه رقم : ٤٤٦، او صحیح أبی داود رقم (١٤٢) ورته صحیح وئیلی دی۔

**وَرَوَی ابْنُ مَاجَةَ اِلیٰ قَوْلِهٖ : بَیْنَ الْاَصَابِعِ :**

دا هم د مصنفؒ خطائی ده ځکه چه ابن ماجه کښې دا روایت دوه کرته ذکر دې یو ځل په باب المبالغة فی الأستنشاق کښې اودا مکمل روایت دې اودویم ځل په (باب تخلیل الأصابع) کښې او په دې کښې صرف (بین الأصابع) پورې روایت نقل شویدې۔ نو د مصنف دا خبره چه ابن ماجه دا روایت صرف (بین الأصابع) پورې ذکر کړې او پوره روایت ئې نه دې ذکر کړې، صحیح نه ده۔ ځکه مصنفؒ دا روایت صرف په یو باب کښې ناقص لیدلې نو حکم ئې کړیدې، ورنه په بل باب کښې مکمل روایت هم شته، کما عرفتَ۔

---

۱۶ – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ اَصَابِعَ یَدَیْکَ وَرِجْلَیْکَ). رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ. وَرَوَی ابْنُ مَاجَه نَحْوَهٗ. وَقَالَ التِّرْمِذِیُّ : هٰذَا حَدِیْثٌ غَرِیْبٌ .

**ترجمه** : او جناب ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : کله چه ته اودس کوې نو د دواړو لاسونو او خپو د ګوتو خلال کوه (ګوتو کښې ګوتې ورکوه)۔ (ترمذی) ، او ابن ماجه ددې پشان روایت کړې دې، ترمذی وئیلی دی : دا حدیث غریب دې۔

**درجة الحدیث** : رواه الترمذی (۳۹) وابن ماجة (٤٤٧) :

دا روایت امام ترمذیؒ، احمدؒ او حاکمؒ نقل کړیدې، امام ترمذیؒ ورته حسن غریب وئیلې، لکه په موجوده نسخو کښې دا عبارت دې (حدیث حسن غریب)، په دې روایت کښې اګرچه صالح مولیٰ التوأمة راوی ضعیف دې په آخری عمر کښې ئې حافظه ګډه وډه شوې وه نو په حدیثونو کښې به خطاء کیدو، لیکن مونږ د نیل الأوطار په حواله نقل کړی

وو چه موسىٰ بن عقبه چه ددې روايت راوي دې هغه دا حديث د صالح نه مخکښې داختلاط نه آوريدلې دې کله چه هغه صحيح الحافظه وو، لهذا دا روايت صحيح دې.

دا وجه ده چه امام ترمذیؒ هم ورته صحيح وئيلی دی ـ او امام بخاریؒ هم تحسين کريدې، لکه چه حافظ ابن حجرؒ په تلخيص الحبير ص (٣٤) کښې نقل کړيدې او شيخ البانیؒ په صحيح ابن ماجه رقم (٤٤٧) کښې ورته حسن صحيح وئيلی دی.

---

١٧ – وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ ﷺ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اِذَا تَوَضَّأَ يَدْلُكُ اَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهٖ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : او جناب مستورد بن شداد رضی الله عنه فرمائی : ما رسول الله اوليدو چه کله به ئې اودس کولو نو په کچې ګوتې سره به ئې د خپلو دواړو خپو ګوتو خلال کولو. (ترمذی، ابو داود، ابن ماجه).

## تعارف : د مستورد بن شداد ﷺ

دا قريشی حجازی صحابی دې اوپلار ئې هم صحابی دې، دکوفې اوسيدونکې پاتې شويدې. د مصر فتح ته حاضر شويدې او په اسکندريه مقام کښې په سنه (٤٥) کښې وفات شويدې. ټول (٧) احاديث ترې نقل دی، امام مسلمؒ صرف دوه نقل کړيدی. رضی الله عنه.

**تشريح** : اِذَا تَوَضَّأَ يَدْلُكُ اَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهٖ : ديدلك مطلب دادې چه نبی عليه السلام به دګس لاس په قچه ګوته باندې د خپو په ګوتو کښې خلال کولو، لکه په روايت د أحمدؒ کښې (ويدلك) په ځائې (يخلل) لفظ راغلی دې، نو دا حديث دليل دې چه قچې ګوتې سره د خپو په ګوتو کښې خلال کول مستحَب دی. غرض په خلال کښې دادې – والله أعلم – چه اوبه دګوتو بيخونو ته اورسی، او هيڅ ځائې اوچ پاتې نشی، اودګس لاس په قچه ګوته به ځکه خلال کوی چه دا ازاله دنجاست ده، اودا په ګس لاس سره کول پکار دی اوقچه ګوته دګوتو بيخونو ته بنه ننوځی.

٢ – ياد (يدلك) معنیٰ داده چه قچه ګوته به ئې د خپو په ګوتو باندې راخکله او مرله،

نو بيا به په دے کښے دليل وي چه دټولو اندامونو مږل مستحب دی، دپاره ددے چه اوبه هرځائے ته اورسي ـ لکه دا سنت په بل حديث دعبد الله بن زيدؓ کښے راغلے دے (ان النبی ﷺ اتی بثلثی مد فجعل يدلك ذراعيه) حديث صحيح (مسند احمد : ٣٩/٤، ابن خزيمة : ١١٨، وصححه، وابن حبان : ١٠٨٣، والحاكم : ١٤٤/١، وصححه شعيب في تحقيقه لابن حبان، وصححه البسام في توضيح الأحكام : ٢١٥/١) وسيأتي۔

يعنے : نبي ﷺ ته د يو مُد دوه حصے اوبه راوړے شي نو رسول الله ﷺ شروع شو چه دواړه څنګلے ئے مږلے۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذی : دا حديث هم ترمذی، ابن ماجه، ابوداود او احمد نقل کړيدے، ابوداود په دے حديث سکوت کړيدے او امام ترمذیؒ وئيلی دی چه عبد الله بن لهيعه په دے روايت سره متفرد دے، ليکن دا خبره صحيح نه ده ځکه دده متابعين موجود دی چه هغه حافظ ابن حجرؒ په التلخيص (٣٤) کښے ذکر کړيدی، يو ليث بن سعد دے، او بل عمرو بن الحارث۔ دا وجه ده چه ترمذی ورته په بعضو معتمدو نسخو کښے (هذا حديث حسن غريب) وئيلی دی، بيهقی، ابو بشر الدولابی او دارقطنی په (غرائب مالك) کښے په طريقه دابن وهب ددرے واړو نه دا روايت نقل کړيدے نو متابعين ئے شته دے، دے وجے نه امام ابن القطانؒ ورته صحيح وئيلی دی، شيخ البانیؒ په صحيح الترمذی رقم (٤٠) او ابن ماجه رقم (٤٤٦) کښے صحيح کړيدے۔

---

١٨ – وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ. وَقَالَ : هٰكَذَا أَمَرَنِيْ رَبِّيْ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : او جناب أنس رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ به چه کله اودس کولو نو د اوبو يو چونګ به ئے راواخستلو ـ د زنے لاندے به ئے کړو او په هغے سره به ئے د ګيرے خلال اوکړو، او وے فرمائيل : همدا شان ماته مے خپل رب حکم کړے دے۔ (ابو داود)۔

**تشريح** : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ:

حنك په فتح د حاء او نون سره د دننه خولې بره او د ژبې لاندې طرف حصې ته وائي او تحت الحنك د زنې لاندې طرف ته وائي .

**د تخليل معنى** : ګيره جدا جدا كول په ګوتو سره او ددې په مينځ كښې اوبه تيرول دي دپاره چه د اوداسه اوبه د ويښتو مينځ ته داخل شي او څرمن د مخ ته اورسي .

٢ - بيا په لحيه كښې خلال يو ځل كافي دې. اودوه ځله اودرې ځله چه كومو احاديثو كښې راغلي دي هغه ضعيف دي، نو سنت عمل نه دې . كما في فتاوى الدين الخالص (٤٩٥/١) بيا په دې باب كښې دوه مسئلې دي :

١- يوه دګيرې وينځل. ٢ - دويمه : تخليل اللحيه.

١- نود اولې مسئلې تفصيل دادې : ١ - عطاءؒ او ابو ثورؒ فرمائي : ګنړه ګيره او ګده اوخفيفه وغيره كښې هيڅ فرق نشته، بلكه د تولو وينځل واجب دي، دوئ قياس كوي په جنابت باندې چه په هغې كښې ددې فرق نه كيږي، نو په اوداسه كښې به هم ددې فرق نشي كولې . ٢- د جمهورو مذهب كښې تفصيل دې :

(١) **شق اول** : كه ګيره ګنړه او اوګده نه وي يعنې د مخ د دائرې نه بهر نه وي اود مخ څرمن په كښې ښكارې، نو ددې په وينځلو كښې تقريبا د تولو علماؤ اتفاق دې چه وينځل ئې واجب او فرض دي، كه يو ويښته اوچ پاتې شي نو اودس به بيا راګرځوي. الفقه على المذاهب الاربعه (٦٠/١) .

(٢) **شق ثاني** : اوكه ګيره مسترسل ( زوړنده ) اوګده يا ګنړه وي نو په دې كښې دا ګنجائش شته چه د مخ د دائرې ويښته اووينځل شي اوكوم ويښته چه زوړند دي كه هغه اوچ پاتې شو نوباك نه لري، البته دهغې وينځل مسنون دي واجب نه دي . او د ګيرې ګنړ ويښتو كښې صرف ګوتې ورداخل كړې شي اګركه هغه اونه وينځل شي هم جائز ده. خو دا مذهب داحنافو او مالكيانو دې. داحنافو د مذهب تشريح داسې ده چه د هغوئ نه په مقدار مفروض د ګيرې كښې څو روايات دي (١) مسح ربع اللحية (٢) مسح كل اللحية (٣) مسح ما يلاقي بشرة الوجه ( مخ سره مخامخ ويښته مسح كول فرض ) وَصَحَّحَهُ قاضي خان (٤) مسح الثُلُث ( دريمه حصه د ګيرې مسح كول . (٥) وروى عدم وجوب

شئ۔ (پدے کښے هیڅ شے نـه دے واجب) او دا روایات صرف په ګنړه ګیره کښے دی او په خفیفه ګیره کښے خو وینځل د ټولے ګیرے واجب دی ترڅو چه لاندے څرمن د مخ ته اوبه اورسوی۔ او کـه ګیـره مستـرسـل (زوړنده) وی نو د هغے نه وینځل واجب دی او نه مسح کول او منیة المصلی کښے دی چه مسح کول ئے سنت دی کذا فی البحر الرائق (۴۱/۱)

اود شـوافـع او د حـنـابـله مذهب دادے چه که ګیره مسترسل (زوړنده) وی او یا د مخ د دائرے نـه بهـر وی نـو د هـغـے ویـنـځـل هم واجب دی۔ ځکه چه دا د مخ نه حساب ده او په محل د فرض کښے زرغونه شویده ۔ کذا فی المغنی

لیـکـن دا فرقونه صرف علماؤ کړیدی، احادیثو کښے دګنړے او نرئ ګیرے صراحه فرق نـه دے خـودلے شوے۔ بلکه علماؤ د حدیث نه استنباط کړیدے لکه په حدیث د ابن عباسؓ کښے دی چه نبی ﷺ د مخ دپاره یو چونګ اوبه راواخستے او بل لاس ئے ورسره یو ځائے کړو او مخ ئے پرے اووینځلو ۔ الحدیث (أخرجه البخاری : ۲۶/۱) ۔

نـو د دے نـه معلـومیږی چه ګنړه ګیره په یو کرت اوبو اچولو سره هیڅ کله پوره نه وینځلے کیږی، دا عادتاً ممکن نه ده، بلکه ضرور څه ویښته اوچ پاتے کیږی۔ اوخوك چه دا نـه مـنـی نـو دا مـکـابـره (سینه زوری) ده، د وجدان خلاف کول دی، کما قال الشوکانی فی النیل (۱۸۵/۱) اودا قول او فرق کول مذهب د أکثرو علماؤ دے۔

**دلائل** : احـنـاف او مالکیه دلیل دا پیش کوی چه نبی ﷺ پخپله دګنړے ګیرے والا وو، اودهغه نه هیچرے نه دی نقل چه هغه به باطن دګیرے هم وینځلو، بلکه صرف خلال تـرے نقل دے۔ ۲- دارنګه زوړند ویښته د محل د فرض نه خارج دی نو ددے مثال داسے دے لـکـه هـغـه ویښتـه چـه د سر نـه راخـکـتـه شـوی وی۔ او دننـه اوبه ورننویستل هم ځکه ضـروری نـدی چه وجه (مخ) نوم دے د هغه څرمن چه په هغے سره مواجهت حاصلیږی او دننه څرمن خو داسے نده۔

شوافـع او حـنـابـلـه دلیل دا وائی ځکه چه : ۱- دا مسترسل په محل د فرض کښے را زرغونه شویده او په نوم دګیره کښے داخل ده، یعنی د لحیه لفظ هغے ته هم شامل دے۔

۲- **دویم دلیل** : مسلم (۱۲۰/۱) کښے حدیث د عمرو بن عبسه کښے دی : (ثم اذا

غسل وجهه کما أمره الله الا خرت خطایا وجهه من أطراف لحیته مع الماء)۔

نو ددے نه معلومیږی چه أطراف اللحیه وینځل هم واجب دی، او په دے قول کښے احتیاط دے، او اول قول کښے گنجائش دے۔

**تنبیه** : دا اختلاف صرف په اوداسه کښے دے، هر چه غسل دجنابت دے نو په هغے کښے دگیرے وینځل مطلقا واجب دی، یعنے که گیره هر څنګه مقدار کښے وی وینځی به ئے۔ وجه داده چه په قرآن او احادیثو کښے د جنابت په غسل کښے ډیر تاکید راغلے دے۔

۱ – لکه آیت : ﴿ فَاطَّهَّرُوا ﴾ کښے مبالغه فی التطهیر راغلے ده۔

۲ – او حدیث : (تحت کل شعرة جنابة، فبلوا الشعر وانقوا البشر)، ابو داود، ترمذی، ابن ماجه، بسند فیه مقال، ویؤیده روایة علی مرفوعا، وسیأتی فی باب الغسل۔ یعنی د هر ویښته لاندے جنابت دے۔

## دویمه مسئله : تخلیل اللحیه ده :

اول په دے کښے اختلاف دے چه آیا دگیرے خلال شته که نه ؟۔

۱ – **نو یو قول** دادے چه دگیرے خلالول نشته، او په دے باره کښے چه څومره احادیث راغلی دی هغه ټول باطل دی، لکه دا قول د ابن أبی حاتمؒ، احمدؒ او ابو زرعهؒ دے او ابن القیمؒ هم ذکر کړے دے۔

نصب الرایه (۲٦/۱) کښے فرمائی :

قال ابن أبی حاتم فی کتاب العلل : سمعت أبی یقول : لا یثبت فی تخلیل اللحیة حدیث، آه۔

علامه ابن القیمؒ په زاد المعاد (۱۹۰/۱) کښے فرمائی :

وقال أحمد وأبو زرعة: لا یثبت فی تخلیل اللحیة حدیث، آه۔

۲ – **قول ثانی** : د اکثرو علماؤ دے چه په دے باب کښے ډیر صحیح احادیث شته دے چه هغه نصب الرایه، تلخیص الحبیر، تحفة الأحوذی او نیل الأوطار کښے ذکر دی۔ لکه چه روستو به راشی۔ نو خلال اللحیه په اوداسه کښے شته دے، اودغه نه منونکی علمائے کرام خطا شویدی، هغوئ ته به صحیح حدیثونه نه وی رسیدلی، یا ئے تقلیدی انداز کښے قول نقل کړیدیے۔

## حکم د تخليل اللحية :

اوس کوم علماء (جمهور) چه د خلال قائل دی دوئ خپل مینځ کښې مختلف دی په حکم د تخليل اللحيه کښې چه دا په کومه درجه کښې ده ؟۔

**١ – نو یو قول** : دادے چه تخليل اللحيه واجب دے،اودا قول د اسحق بن راهويهؒ دے، دا فرمائی : (ان ترکه ناسيا او متأولاً أجزأه، وان ترکه عامداً أعاد) ، يعنی که په هیره یا تاویل سره ئے پریدی نو اودس ئے جائز دے، اوکه قصداً ئے پریدی نو بیا به دوباره اودس کوي (ترمذی : ١٣٧/١)۔

او علامه مقبلیؒ هم ورته واجب وائی، کما قال فی المنار (٥/١) : وتخليل اللحية واجب کقبل نباتها الخ۔

٢ – د شوافعو او ابو يوسف په نيز سنت دے۔

٣ – د احنافو په نيز مستحب دے۔

**الغرض** : دجمهورو په نيز واجب نه دے بلکه مستحب او سنت دے۔

قائلينو د **وجوب** دپاره دليل دادے چه دتخليل اللحيه باره کښې ډير احاديث راغلی دی،او په بعضو احاديثو کښې أمر شويدے په تخليل اللحيه باندے لکه په حديث د أنسؓ (حديث الباب) کښې دی (فخلل به لحيته، وقال: هکذا أمرني ربي)۔ او أمر دپاره د وجوب دے۔ ٢ – دارنګه نبی کريم ﷺ نه په تخليل اللحيه کښې مداومت ثابت دے په احاديثو کښې۔نو دا دليل د وجوب دے، لکه چه په حديث دعثمانؓ (کما يأتی متصلا فی الکتاب) کښې دی : (ان النبی ﷺ کان يخلل لحيته) اوکان د دوام دپاره دے، اودا صحيح حديث دے لکه چه ترمذیؒ ورته حديث حسن صحيح وئيلی دی ۔

## قائلينو د استحباب او سنيت دپاره دلائل دادی :

تخليل اللحيه ځکه مونږ د أستحباب په درجه کښې ګڼړو چه په دے باب کښې څومره حديثونه راغلی دی هغه اګرچه زيات دی، ليکن ضعيف دی۔ اوکه اومنو چه صحيح دی، اوقابل داستدلال دی (لکه چه دا خبره صحيح ده – کما قال الشوکانی : ١٨٥/١ – نو بیا هم وجوب پرے نه ثابتيږی۔ ځکه چه په دے رواياتو کښې افعال د نبی کريم ﷺ ذکر

دی، او افعال وجوب نه پیدا کوی نو مستحب شو۔ اوهغه روایات نصب الرایه (۲٤/۱) او نیل الأوطار (۱٦٥/۱)، تحفة الأحوذی (۱۳۹/۱)، السیل الجرار (۲۲۳/۱)، تلخیص الحبیر (۱٥۳/۱)، الفتح الربانی (۲۸/۲)، صحیح الجامع (۸٥۷/۲)، کښې ذکر دی۔

۲- او هرچه په بعضې روایاتو کښې دأمر راتلل دی لکه چه په دې حدیث د أنسؓ کښې (هکذا أمرنی ربی) نودا حدیث اګرچه حسن درجه کښې دې یا صحیح دې کما یأتی، خو لیکن بیا هم په دې سره وجوب نه ثابتیږی، وجه داده چه په دې کښې أمر نبی ﷺ ته شویدې نه امت ته، نو په أمت باندې ددې وجوب نه دې ضروری ځکه دا الفاظ صریح دی په تخصیص کښې په نبی ﷺ پورې، او فرائض خو په احتمال باندې نه ثابتیږی ترڅو چه یقینی دلیل نه وی، کما فی المرعاة (۱۱۱/۲) والنیل (۱۸٦/۱)، اوکه تخصیص رانشی هم نو دا مجرد فعل د نبی کریم ﷺ او فعل وجوب نه پیدا کوی۔

۳- **بله وجه** اودلیل دا بیانوی: چه د نبی ﷺ نه د اودس حکایت ډیرو صحابوؓ کړیدې لیکن د تخلیل اللحیه متعلق احادیث صرف دڅو صحابوؓ نه نقل دی، که دا واجب وې نو پکار ده چه د هر صحابی په حدیث کښې نقل کیدلې۔

اودا علماء، د عثمانؓ دحدیث نه دا جواب کوی چه (کان یخلل لحیته) کښې کان همیشه دپاره د دوام او استمرار دپاره په احادیثو کښې نه راځی، بلکه په احیانا وقوع باندې هم دلالت کوی۔ لکه علامه نوویؒ په شرح د مسلم کښې ددې تصریح کړیده۔ اوددې ډیر مثالونه په احادیثو کښې موجود دی چه بعضې صحابوؓ دا وئیلی دی (کان رسول الله ﷺ یفعل کذا) اوحال داچه هغه کار دهغه نه یو څو کرت نقل وی۔ دا وجه ده چه حافظ ابن القیمؒ زاد المعاد (۱۹۰/۱) کښې فرمائی:

وکان یخلل لحیته احیانا ولم یکن یواظب علی ذلك۔

یعنې: نبی ﷺ به کله کله ګیره مبارکه خلال کوله، په دې باندې به ئې همیش والې نه کولو۔ دارنګه د ګیرې دِ خلال په پریخودلو رخصت د ابن عمر او حسن بن علی او بیا نخعی او جماعت د تابعینو نه نقل دې۔ کما فی السنن الکبر للبیهقی (٥٤/۱) لکه چه د ابن عمر روایت کښې دی (ویشبك لحیته اصابعه احیانا ویترك احیانا) (٥٥/۱).

ددې په خلاف علامه مقبلیؒ په المنار (۵۰/۱) کښې لیکي چه : تخلیل اللحیه واجب دې او په احادیثو د باب کښې په بعضې روایاتو کښې تصریح د وجوب ده (هکذا أمرني ربي) نو په باندې عمل کول شي او ددې معارض حدیث نشته، مګر صرف هغه حدیث چه نبي ﷺ یو یو کرت اودس کړیدې او په یو غرفه (چونګ) باندې ئې مخ وینځلې دې، نو په یوه غرفه باندې خو دمخ وینځل اودګیرې خلال دواړه نشي کیدې، مګر - دې وائي - په دې حدیث کښې هیڅ دلیل نشته په نفي دوجوب باندې، وجه داده چه هغه یوه غرفه تامه کامله وه، او په کامله غرفه سره د مخ وینځل اوخلال دواړه ممکن دي، نو دا حدیث په نفي د وجوب کښې صریح نه دې.

**خلاصه :** ★ دا چه تخلیل اللحیه ضروري ده، په درجه د استحباب یا وجوب کښې، او پرېښودل ئې صحیح نه دي. وجه داده چه دا په سنت کښې ثابت ده، لکه ابن ابی شیبه (۱۲/۱) دعمار بن یاسرؓ، ابن عمرؓ، أنسؓ، عليؓ، ابو امامهؓ، عثمانؓ، ابن سیرینؒ او ابراهیمؒ نه تخلیل اللحیه نقل کړیده.

★ امام ترمذیؒ فرمائي : وقال بهذا أكثر أهل العلم من أصحاب النبي ﷺ ومن بعدهم رأوا تخليل اللحية، وبه يقول الشافعي. وقال أحمد : ان سهى عن التخليل فهو جائز.

(ترمذی : ۱۳۷/۱).

★ دارنګه ډیر متعدد احادیث په کښې دي چه بعضې دهغې نه دادي :

۱ - یو حدیث دأنسؓ دې (هكذا أمرني ربي) په دې کښې اګرچه ولید بن زوران راوي دې لیکن دا حسن الحدیث دې اودا حدیث په نورو سندونو ثابت دې، وصححه الحاكم (۱۴۹/۱) ووافقه الذهبي كما سيأتي.

۲ - دویم حدیث : دعثمانؓ دې (كما يأتي في الكتاب) : أن رسول الله ﷺ توضأ فخلل لحيته) رواه الترمذي برقم : ۳۰، وهو صحيح كما سيأتي الكلام عليه.

۳ - حدیث دعماربن یاسرؓ : قال : رأيت رسول الله ﷺ يخلل لحيته (أخرجه ابن ماجة : ۷۲/۱، رقم : ۴۲۹، والترمذي رقم : ۲۹.

امام ترمذیؒ ددې حدیث باره کښې فرمائي چه ابن عیینهؒ فرمائي : عبد الكريم بن أبي

المخارق د حسان بن بلال نه دا حديث التخليل نه دے آوريدلے۔ خو ليكن بيا همدغه حديث په بل سند سره ذكر كوى۔ دا حديث په دوارو سندونو امام حاكم النيسابورىؒ په المستدرك (۱/۱٤۹) كښے صحيح كړيدے۔ دارنګه شيخ البانىؒ ورته په صحيح ابن ماجه رقم (٤۲۹) كښے صحيح وئيلى دى دوجے د كثرتِ شواهدو نه په دے باب كښے۔

٤ - حديث دعائشةؓ دے : (كان رسول الله ﷺ اذا توضأ خلل لحيته بالماء) نبى كريم ﷺ به چه كله اودس كولو نو ګيره مباركه به ئے خلال كوله۔

(أخرجه الحاكم فى المستدرك : ۱/۱٥۰، وصححه، وسكت عنه الذهبى، بلوغ الأمانى : ۲/۲۸)۔ حافظ ابن حجرؒ فرمائى : واسناده حسن، كذا فى التلخيص : ۱/۸٦۔

٥، ٦ - دارنګه حديث دانس بن مالكؓ او ابو أيوب أنصارىؓ دے چه حاكم (۱/۱٤۹) اونصب الرايه (۱/۲٦) كښے ذكر دے، او شيخ البانىؒ په صحيح ابن ماجه (۱/۷۲) كښے نقل كړيدے او د شواهدو په وجه باندے صحيح دے۔

۷ - حديث ابن عمر : أخرجه الطبرانى وابن ماجة والبيهقى وصححه ابن السكن بلفظ (كان اذا توضأ عرك عارضيه بعد العرك ثم يشبك لحيته بأصابعه من تحتها) وفى اسناده عبد الواحد وهو مختلف فيه، كذا فى النيل : ۱/۱۸٥۔

ددے نه علاوه نور احاديث هم په نصب الرايه، تلخيص الحبير اونيل الأوطار كښے كتلے شئ۔

نو ددے ګڼرو احاديثو په رڼړا كښے - چه بعضے ډير صحيح دى، او بعضے ګذاره حال دى - دا خبره مخے ته راځى چه تخليل اللحيه مشروع عمل دے، ياخو په درجه د وجوب كښے اويا په درجه د استحباب كښے، عمل پرے پكار دے۔

نو په دے احاديثو ذكر كولو كښے رد راغلو په هغه علماؤ چه هغوئ منكر دى دخلال اللحيه نه، په دے ګمان چه په دے باب كښے هيڅ يو حديث صحيح نشته۔ نودا صحيح روايتونه مونږ د دوئ په رد كښے ذكر كړل۔

**تكميل** : هر كله چه تخليل اللحيه ثابت شو نو اوس به ددے **څه طريقه** وى ؟۔

نو د دے طريقه په احاديثو كښے داسے راغلے ده : چه په لاس كښے به اوبه را واخلى اود

زنے لاندے به ئے كړى اود لاندے نه به خلال دګيرے اوكړى ـ

**درجة الحديث** : رواه ابوداود (١٤٥) : په دے حديث د انسؓ بن مالك كښے وليد بن زوران راوى دے، حافظ ابن حجرؒ په التقريب كښے فرمائى : لين الحديث دے ـ اودده نه علاوه نور راويان ثقات دى ـ ابن حِبّانؒ دا په ثقاتو كښے ذكر كړيدے ـ

شيخ البانىؒ په تعليق د مشكاة المصابيح (١٢٨/١) كښے فرمائى : ددے حديث اسناد احتمال د تحسين لرى، ليكن حديث صحيح دے دكثرت طرق اوشواهدو په وجه ـ او په ارواء الغليل : ١٣٠/١، كښے فرمائى : ددے حديث بل طريق دے صححها الحاكم : ١٤٩/١، ووافقه الذهبى، ومن قبله ابن القطان، وله شواهد كثيرة ذكرت بعضها فى صحيح أبى داود تحت رقم : ١٣٣، وبها يرتقى الحديث الى درجة الصحة ـ

---

**١٩ – وَعَنْ عُثْمَانَ ﷺ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.**

**ترجمه** : او جناب عثمان رضى الله عنه نه روايت دے چه نبى كريم ﷺ به خپله ګيره مباركه خلال كوله ـ (ترمذى، دارمى) ـ

**تشريح** : كَانَ يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ : يخلل معنىٰ ده : يُدْخِلُ يَدَهُ فى خِلَلِهَا، اوخِلَلُ د ويښتو كهلاؤ ځايونو ته وائى، دا حديث ترمذى (٣٢) ، دارمى (١٧٨/١ – ١٧٩) ، ابن ماجه (٤٣٠) ، ابن الجارود فى المنتقىٰ، دارقطنى، ابن خزيمه، ابن حِبّان او حاكم روايت كړيدے ـ

امام ترمذىؒ فرمائى : حديث حسن صحيح ـ اود امام بخارىؒ نه نقل كوى چه هغه فرمائى : أصح شئ فى هذا الباب حديث عامر بن شقيق عن أبى وائل عن عثمان ـ اوحسن ئے ورته وئيلى دى ـ

امام حاكمؒ په المستدرك : ١٤٩/١، كښے فرمائى :

اسناد صحيح لا نعلم فيه طعنا بوجه من الوجوه ووافقه الذهبىؒ ـ (يعنے : په هيڅ يوه طريقه كښے په كښے طعن نشته) اوددے دپاره ئے شواهد راوړيدى ـ دانسؓ، عائشهؓ، علىؓ،

عمارؓ نه۔

حافظ په التلخیص (۸۵/۱) کښې فرمائی : ددې نور شواهد د أم سلمهؓ، أبی أیوبؓ، أبو أمامهؓ، ابن عمرؓ، جابرؓ، جریرؓ، ابن أبی اوفیٰؓ، ابن عباسؓ، عبد الله بن أبی عکیرهؓ او أبو الدرداءؓ نه په مختلفو سندونو سره نقل شویدی۔او په هغې ئې بیا کلام کړیدې۔

دارنګه حافظ په التهذیب (۶۹/۵) کښې ددې حدیث تصحیح دابن خزیمهؒ، ابن حِبانؒ نه هم نقل کړیده، دارنګه حافظ زیلعیؒ په نصب الرایه (۲۶/۱) کښې فرمائی : أمثل احادیث تخلیل اللحیة حدیث عثمان۔

او دغه شان ابن القطانؒ دې حدیث ته صحیح وئیلې دې، شیخ البانیؒ په صحیح ابن ماجه (۷۲/۱) کښې فرمائی : صحیح۔

اوهرچه دا قول د ابن معینؒ دې چه په دې روایت کښې عامر بن شقیق دې اوهغه ضعیف دې، او ابو حاتم وائی : لیس بالقوی۔ نو ددې جواب دادې چه علامه مبارکفوریؒ په تحفه الأحوذی (۴۴/۱) کښې لیکی چه دا حدیث صحیح دې اوصالح دې داحتجاج دپاره، اوهرچه ددې علماؤ تضعیف دې نو دا مجمل دې، سره ددې نه چه د دوئ په خلاف حاکم اوترمذی او امام بخاریؒ ورته حسن اوصحیح وئیلې دې، نسائی دده باره کښې فرمائی : لیس به بأس۔ نو د عامر حدیث مقبول دې خصوصا چه کله ورسره دغه شواهد کثیره هم ملګری شی۔

---

۲۰ – وَعَنْ أَبِیْ حَیَّةَ قَالَ: رَأَیْتُ عَلِیًّا تَوَضَّأَ فَغَسَلَ کَفَّیْهِ حَتّٰی اَنْقَاهُمَا ثُمَّ مَضْمَضَ ثَلٰثاً وَاسْتَنْشَقَ ثَلٰثاً وَغَسَلَ وَجْهَهٗ ثَلٰثاً وَذِرَاعَیْهِ ثَلٰثاً، وَمَسَحَ بِرَأْسِهٖ مَرَّةً ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَیْهِ اِلَی الْکَعْبَیْنِ، ثُمَّ قَامَ فَاَخَذَ فَضْلَ طُهُوْرِهٖ فَشَرِبَهٗ، وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ: اَحْبَبْتُ أَنْ اُرِیَکُمْ کَیْفَ کَانَ طُهُوْرُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ . رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ وَالنَّسَائِیُّ .

**ترجمه** : او جناب ابو حیهؒ فرمائی : ما علی رضی الله عنه اولیدلو چه اودس ئې

اوكړو، نو خپل دواړه ورغوى ئې اووينځل تردې پورې چه صفائې كړل، بيائې درې ځلې ته اوبه واچولې او درې ځله ئې پوزې ته اوبه واچولې، او درې ځله ئې خپل مخ اووينځلو، او درې ځله ليچې، او يو ځل ئې په سر باندې مسح اوكړه، بيائې ترپړكو پورې خپلې دواړه خپې اووينځلې، بيا اودريدلو او د خپل اوداسه نه پاتې شوې اوبه ئې راواخستې او هغه ئې په ولاړه اوڅكلې، بيائې اوفرمائيل : ما دا خوښه اوګڼړله چه زه تاسو ته اوښايم چه د رسول الله ﷺ اودس څنګه وو ـ (ترمذى، نسائى)۔

## تعارف : د ابى حيه رحمه الله :

دا د قيس الوداعى الهمدانى الحارثى ځوئې دې، خپل نوم ئې نه دې ذكر، ابو حيه باندې مشهور دې، ابن حبان په ثقاتو كښې ذكر كړيدې، ابن القطانؒ فرمائى : وثقه بعضهم۔ اودده حديث ته ابن السكنؒ صحيح وئيلې دى، ابن الجارودؒ په الكنىٰ كښې فرمائى : وثقه ابن نمير۔

**تشريح** : وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً : داد جمهورو دليل دې چه مسح الرأس يو ځل ده، امام شافعىؒ فرمائيلى دى چه تثليث هم سنت دې، ليكن محاكمه داده چه دا تنوع فى العبادات د قبيلې نه دې، أكثر يو ځل مسح پكار ده، اوكله كله تثليث هم سنت دې، باقى دلائل مخكښې تير شوى دى ـ

فَشَرِبَهُ، وَهُوَ قَائِمٌ: ددې حديث نه په ولاړه څكل ثابتيږى او ددې په شان نور احاديث هم شته نو آيا په لاړه اوبه څكل جواز لرى نو د مسئلې تفصيل داسې دې چه پدې باره كښې دوه قسمه احاديث راغلي دى چه د بعضو نه اباحت معلوميږى اود بعضو نه حرمت لكه مسلم (۲/۱۷۳) ترمذى (۱۹۵۷) كښې دى انس فرمائى : ان النبى ﷺ زجر عن الشرب قائما وفى رواية لمسلم نهى الا يشرب الرجل قائما ـ

۲– عن ابى هريرة قال : قال : رسول الله ﷺ : لايشربن احد منكم قائما فمن نسى فليستقئ مسلم (۱/۱۷۲)

۳– طحاوى مشكل الآثار (۳/۱۹) كښې د ابو هريره روايت ذكر كړيدې : فرمائى رسول الله ﷺ يو سړې اوليدو چه په ولاړه ئې اوبه څكلې ـ ورته ئې اوفرمائيل : دا اولتىٔ كړه !

هغه اُووئيل ولې ؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : آيا ستا دا خوښه ده چه پيشو تاسره څکل اوکړه ؟ هغه اوويئل : نه ! نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : قد شرب معك الشيطان) يعني شيطان تا سره څکل اوکړه . واخرجه احمد (٧٩٩/٣) انظر الصحيحة رقم (١٧٥- ١٧٦).

٤- د ابو هريره مرفوعا روايت کښې دي : لو يعلم الذى يشرب وهو قائم ما فى بطنه لاستقاء . اخرجه احمد (٧٧٩٥- ٧٧٩٦) والطحاوى (١٨/٣) يعني کوم سړے چه په ولاړه اوبه څکي که هغه ته پته اولګي چه دده خيټه کښې څه دي ؟ نو خامخا به هغه قئ (اولتيئ) کړي .

بل طرفته **د جواز روايتونه** هم شته لکه :

١- ابوداود رقم (٣٧١٨) کښې د نزال بن سبره روايت دے چه علي رضي الله عنه اوبه را اوغوښتلې او په ولاړه ئې اوڅکلې بيائې اوفرمائيل : ان رجالا يکره احدهم ان يفعل هذا وقد رأيت رسول الله ﷺ يفعل مثل ما رأيتموني أفعله . يعني بعض خلق دا کار بد ګڼړي خو ما رسول الله ﷺ پدے کار ليدلے دے کوم چه تاسو اوليدلو . واخرجه البخاري بمعناه .

٢- ابن عمر : فرمائي : كنا نأكل على عهد رسول الله ﷺ ونحن نمشي ونشرب ونحن قيام . رواه الترمذى رقم (١٩٥٩) . يعني مونږ به د نبي ﷺ په زمانه کښې په لاره په روانه خوراك كولو او په لاړه به مو اوبه څکلې .

٣- د كبشه رضي الله عنها نه روايت دے چه رسول الله ددے کور ته ورغلو او هلته يوه مشکيزه زوړنده وه نو رسول الله ﷺ په ولاړه اوڅکلې نو هغې د هغه مشکيزے خوله پريکړه چه د نبي ﷺ د خولے د ځائے نه برکت واخلي . رواه ابن ماجه رقم (٣٤٢٣) والترمذى (١٩٧١).

٤- د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده نه روايت دے قال : رأيت رسول الله ﷺ يشرب قائما وقاعدا ) رواه الترمذى رقم (١٩٦١) واسانيدها صحيحة . يعني ما رسول الله ﷺ) ليدلے دے چه په ولاړه او ناسته (دواړه حالتونو کښې) ئې اوبه څکلې دي .

نو پدے احاديثو کښې ١- بعضے علماؤ داسے **تطبيق** کړيدے چه احاديث د اباحت منسوخ دي لکه دا خبره ابن الحزم په المحلى (٢٣٠/٦) کښې کړيده ليکن صحيح نده ځکه

دلیله نسخ ته ضرورت نشته۔
۲- پدے کښے جمهور علماء دا وائی چه احادیث نهی محمول دی په **کراهت** تنزیهی باندے یعنی په ولاړه اوبه څکل د مستحب خلاف دی۔ او احادیث د رخصت محمول دی په بیان للجواز باندے۔
لیکن شیخ البانی په سلسلة الاحادیث الصحیحة (۲۸۹/۱) کښے فرمائی چه د نهی په احادیثو کښے چه کومه نهی ده نو ظاهر دا ده چه دا تحریم دپاره ده بغیر د عذر نه په ولاړه اوبه څکل حرام دی۔ وجه دا ده چه پدے احادیثو کښے لفظ د (زجر) راغلے دے دارنګه قئ کولو امر، او د شیطان د ملګرتیا وعیدونه راغلی دی او په شریعت کښے دا په ترک د مستحب باندے نه رائحی بلکه سخت نفرت مقصود دے۔
۳- بعضے علماء وائی چه په ولاړه اوبه څکل خاص دی په هغه اوبو پورے چه د اوداسه نه پاتے شوی وی، ځکه دے کښے برکت رائحی، لکه دا حدیث (الباب) دلیل دے، اودارنګه د زمزم اوبو باره کښے صرف حدیث دے، اوباقی په ولاړه اوبه څکلو نه منع راغلے ده۔ لیکن صحیح خبره داده چه په احادیثو کښے په نوروځایونو کښے هم په ولاړه اوبه څکل راغلی دی۔
یا داچه کومو احادیثو کښے چه په ولاړه اوبه څکل راغلی دی هغه به محمول وی په ضرورت او عذر باندے۔ خاصکر نبی کریم ﷺ به چه د مشك نه اوبه څکلے نو ولاړ به وو چه دے ته کیناستل ګران دی چه توله مشکیزه راکوزه کړی یا به ځائے تنګ وو۔
نو اوس هم که دیو انسان ضرورت وی مثلاً ځائے د کیناستو نه وی چه چکړے وی یا ګنړه وی نو په ولاړه څکل به ورله ان شاء الله چه جائز وی۔
نو **راجح** داده چه په ولاړه اوبه څکل ندی په کار ځکه چه احادیث د نهی قولی او محرم دی او دا اصُولی مسلمه قاعده ده چه کله د قولی او فعلی حدیث تعارض راشی یا د محرم او مبیح تعارض راشی نو ترجیح قولی حدیث لره وی په فعلی باندے ځکه چه فعلی کښے احتمال د تخصیص او ضرورت کیدے شی او دارنګه ترجیح محرم لره وی په مبیح باندے۔ نو تقوی او احتیاط پدے کښے دے چه انسان حتی الوسع په ولاړه باندے

اوبه اونه څکی والله تعالی اعلم۔

**فائده** : دے حدیث نه بل سنت د اوداسه معلوم شو چه د اوداسه نه پاتے شوے اوبه څکل پکار دی، دے کښے ډیر خیر دے۔

**درجة الحديث** : رواه الدارمی (١/١٧٨) من طریق خالد بن علقمة الهمدانی : حدثنی عبد خیر، واخرجه احمد والنسائی (١/٦٧) ایضا صححه عبد الحق فی احکامه الکبری (١/٤٨٦) والألبانی فی صحیح الترمذی، قال الألبانی فی تعلیق المشکاة : قلت : وهذا سند صحیح، وکذا فی تعلیق المشکاة بتحقیق رمضان بن احمد۔

---

٢١ – وَعَنْ عَبْدِ خَيْرٍ قَالَ : نَحْنُ جُلُوسٌ نَنْظُرُ اِلٰى عَلِيٍّ حِيْنَ تَوَضَّأَ فَاَدْخَلَ يَدَهُ الْيُمْنٰى فَمَلَأَ فَمَهُ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَنَثَرَ بِيَدِهِ الْيُسْرٰى فَعَلَ هٰذَا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ : مَنْ سَرَّهُ اَنْ يَنْظُرَ اِلٰى طُهُوْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَهٰذَا طُهُوْرُهُ . رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ .

**ترجمه** : او عبد خیرؒ فرمائی : مونږ ناست وو د جناب علی رضی الله عنه اودس ته مو کتل، هغه د لوښی نه ښی لاس سره اوبه واخستے او په ډکه خله ئے خله کنګال کړه او پوزه کښے ئے اوبه واچولے او ګس لاس سره ئے پوزه صافه کړه، دغسے ئے درے ځله اوکړل، بیا ئے اوفرمائیل : چا لره چه دا خبره خوشحالوی چه د رسول الله ﷺ اودس ته اوګوری، نو دا د هغه اودس دے۔ (دارمی)۔

## تعارف : د عبد خیر ﷛ :

عبد خیر بن یزید الهمدانی أبو عماره الکوفی، د نبی کریم ﷺ زمانه ئے لاندے کړیده لیکن نبی کریم ﷺ سره ئے ملاقات نه دے شوے، او د علیؓ سره ملګرے پاتے شویدے، ثقه مامون شخص دے، د کوفے اوسیدونکے دے۔ یو سل شل (١٢٠) کاله عمر ئے وو۔

**تشریح** : فَهٰذَا طُهُوْرُهُ : دلته درے کارونو ته اودس وئیلے شویدے، دا د راوی اختصار دے، ځکه چه باقی اودس معلوم وو، دلته صرف د مضمضے او استنشاق او استنثار کیفیت بیانول مقصود وو، په دے وجه ئے په دے باندے اکتفاء اوکړه، او ټول روایت په

تلخيص الحبير (۲۸/۱) كښې ذكر دے۔

**درجة الحديث** : اخرجه الدامى (۱۷۸/۱) والنسائى (۶۷/۱) واسناده صحيح. ولحديث على فى صفة الوضوء طرق صحيحة عنه، عند ابى داود والترمذى، جمعها الحافظ فى التلخيص (۸۰/۱) باب سنن الوضوء، فالحديث سنده صحيح۔

---

**۲۲ - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ ﷺ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلٰثاً . رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِىُّ.**

**ترجمه** : او جناب عبد الله بن زيد رضى الله عنه فرمائى : ما رسول الله ﷺ اوليدلو چه خلے او پوزے ته ئے د يو چونګ نه اوبه واچولے، دا كارئے درے ځله اوكړو۔

ددے عبد الله نه مراد عبد الله بن زيد بن عاصم المازنى دے، نه عبد الله بن عبد ربه۔

**تشريح** : **مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ** : دا حديث صريح دليل دے دجمهورو دپاره چه جمع بين المضمضه والاستنشاق من كف واحد به كوى، لكه چه مصنف" دا حديث په فصل اول كښے ذكر كړيدے او اختلاف هم تير شويدے ۔ كف : بعضے نسخو كښے كف واحده په تاء سره دے، خو هندوستانئ نسخه كښے بدون التاء دے، او دواړه جائز دى، ځكه چه كف مؤنث سماعى جائز التانيث دے۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود والترمذى وسنده صحيح كما تقدم باتم مما هنا فى رواية الشيخين فى اول الفصل الاول رقم (۳)۔

---

**۲۳ - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ أَنَّ النَّبِىَّ ﷺ مَسَحَ بِرَأْسِهٖ وَأُذُنَيْهِ بَاطِنَهُمَا بِالسَّبَّاحَتَيْنِ وَظَاهِرَهُمَا بِإِبْهَامَيْهِ. رَوَاهُ النَّسَائِىُّ.**

**ترجمه** : او ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى : نبى كريم ﷺ په خپل سر او دواړو غوږونو باندے مسح اوكړه، او غوږونو كښے دننه مسح ئے د خپل شهادت ګوتو سره او پورته ئے قتهو ګوتو سره اوكړله ـ (نسائى)۔

**تشريح** : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ مَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ : دلته دوه مسئلے دی :

۱- يو دا چه غوږونو دپاره مسح ده كه غسل (وينځل)۔

نو په دے كښے اختلاف دے : ۱ - دامام زهري اوداؤد ظاهري مذهب دادے چه غوږونو دپاره غسل (وينځل) دی د مخ سره، اودا دواړه د مخ نه حساب دی۔ دا قول ډير ضعيف دے، ظاهر دليل ئے نشته۔ مګر وائی چه الاذنان من الرأس والا احاديث ضعيف دی۔ ليكن دا خبره غلطه ده لكه چه روستو به راشی ان شاء الله۔

۲ - **قول ثاني** : دادے چه مسح مع الرأس او غسل مع الوجه دے۔ يعني دغوږونو مخامخ طرف به دمخ سره وينځی او شا طرف به ئے د سر سره مسح كوی۔ اودا قول دحسن بن صالح او شعبي دے۔

ددے قول خاوندانو دپاره دليل دادے چه : امام طحاوي (۲۸/۱) په خپل سند سره د علي نه نقل كړيدی چه په هغے كښے د رسول الله ﷺ د اوداسه بيان دے۔ دارنګه امام ابوداود رقم (۱۱۷) باب حكم الأذنين، او مسند احمد كښے روايت شويدے، وكذا في المنتقى بشرح نيل الأوطار (۱۸۷/۱) چه په هغے كښے داسے الفاظ دی : (فأخذ حفنة من ماء بيديه جميعا، فضرب بهما وجهه ثم الثانية مثل ذلك، ثم الثالثة، ثم ألقم ابهاميه ما أقبل من أذنيه، ثم أخذ كفا من ماء بيده اليمنىٰ فصبها على ناصيته، ثم أرسلها تسيل على وجهه، ثم غسل يده اليمنىٰ الى المرفق ثلاثا، واليسرىٰ مثل ذلك، ثم مسح برأسه وظهور أذنيه)۔

ابن تيمية په المنتقىٰ (۱۸۷/۱) كښے فرمائی : فيه حجة لمن رأى ما أقبل من الأذنين من الوجه، انتهى، وكذا في تحفة الأحوذي (٤٨/۱)۔

**ترجمه** : علي رضی الله عنه يوه لپه راواخسته په لاسونو كښے اومخ ته ئے واچوله، دغه شان دويم اودريم ځل ئے اوكړل، بيائے دغوږونو مخامخ طرف كښے غټے ګوتے وركړے، بيا ئے په ښی لاس كښے اوبه راواخستے او په تندی ئے واړولے، او دغسے ئے پريخودلے چه په مخ روانے وی، بيا ئے ښے لاس تر څنګلو پورے اووينځلو درے ځله، اودغه شان ګس لاس اوبيا ئے په سر اود غوږونو په ظاهر طرف باندے مسح اوكړه۔

نو په دے حديث كښے علي مسح كړيده په غوږونو باندے دسر سره او وينځلی ئے دی

دمخ سره۔

**جواب** : امام منذری فرمائی : په دے حدیث کښے مقال دے، امام ترمذی فرمائی : ما دمحمد بن اسماعیل البخاری نه تپوس اوکړو نو هغه دا حدیث ضعیف کړو، اودائے اوونیل : چه زه نه پو هیږم چه داڅه دی ؟ تحفة الأحوذی : ١/٤٨۔ نیل الاوطار (١/١٨٧)۔

او هرچه دلیل د قول اول دے نو هغه حدیث د عائشة دے په سجود القرآن کښے چه هغے کښے دا الفاظ دی : ( سجد وجهی للذی خلقه وشَقَّ سمعه وبصره الخ)، رواه أصحاب السنن – نو دا حدیث دلیل دے په دے خبره چه غوږونه د مخ نه حساب دی۔ ځکه چه (سَمْعَهُ) کښے ضمیر وجه ته راجع دے، یعنے هغه الله ته مے سجده اوکړه چه غوږونه د مخ ئے څیرلی دی۔

دارنګه دا حدیث دعائشة او حدیث د (الأذنان من الرأس) د دویم قول والا دلیل هم دے چه په اول حدیث (د عائشه) کښے غوږونه د مخ نه حساب شوی دی، او په حدیث د (الأذنان من الرأس) کښے غوږونه د سر نه شمارلے شوی دی، نو معلومیږی چه مخامخ غوږونه به د مخ سره وینځلے شی، او شاطرفونه به ئے د سر سره مسح کولے شی۔

لیکن ددے نه **جواب** دادے چه دا حدیث دعائشة نص او صریح نه دے په دے کښے چه غوږونه به د مخ سره وینځلے شی۔ داوجه ده چه علامه شیخ مبارکفوری په التحفه (١/٤٩) کښے فرمائی : په دے باره کښے صحیح صریح حدیث نه دے ثابت۔ ۲ – دارنګه د نبی کریم ﷺ نه غسل الأذنین نه دے ثابت، بلکه د هغه نه صرف مسح الأذنین ثابت ده۔

اودلیل په دے باندے چه (الأذنان) د سرنه حساب دی، حدیث د عبد الله الصنابحی دے أخرجه النسائی رقم (١٠٠) وابن ماجه رقم (٢٨٢)، ، وقد مر فی اول الفصل الثالث من کتاب الطهارة، وفیه : (فاذا مسح برأسه خرجت الخطایا من رأسه حتی تخرج من أذنیه)۔ وسنده صحیح۔

علامه ابن تیمیة په المنتقیٰ (١/١٨٦) کښے فرمائی : چه (تخرج من أذنیه) دلیل دے په دے چه غوږونه د سر نه حساب دی، اود رأس په مسمیٰ کښے داخل دی۔

د اول حدیث (عائشه) نه بل جواب دادے چه دغه حدیث ظاهر دے په دے کښے چه

غوږونه د مخ نه دی، او د مسح خبره په کښې نشته، او بل طرفته احادیث نص دی په دے چه غوږونه به د سر سره مسح کولے شی۔ او کله چه د نص او ظاهر تعارض راشی نو ترجیح نص لره وی، نه ظاهر لره۔ بله وجه داده چه غوږونه د مخ سره نزدے دی، ځکه ئے ضمیر (سمعه) مخ ته راجع کړیدے۔

**۳ - قول ثالث** : دأئمه اربعه وغیرهم دے، امام ترمذیؒ فرمائی : دا قول د سفیان ثوریؒ، ابن المبارکؒ، احمدؒ او اسحق بن راهویهؒ دے چه د غوږونو وظیفه صرف مسح ده۔ او په دے باره کښے بے شماره دلائل او احادیث دی، چه بعضے دهغے نه به روستو راشی۔

## المسألة الثانية:

بیا دا جمهور علماء خپل مینځ کښے مختلف دی چه هر کله د غوږونو دپاره مسح ثابت ده، نو ددے دپاره به نوے مستقلے اوبه راخلی او که د سر د مسحے نه چه کومے اوبه پاتے وی په لاسونو پورے، په هغے به ئے مسح کوی ؟۔

نو په دے کښے دوه قوله دی :

**۱ - قول اول** : د ابن عمرؓ، امام شافعیؒ، احمدؒ، مالکؒ او ابو ثورؒ رائے داده چه دے دپاره به مستقلے اوبه راخلی او جدا اوبه راخستل سنت دی۔ (کذا فی المغنی : ۱/۱۴۵)۔

**۲ - قول ثانی** : ددے په خلاف ابو حنیفهؒ، ثوریؒ، احمدؒ، ابن المبارکؒ او یو روایت د مالکؒ هم دے، اود نخعیؒ او اسحقؒ قول دے دوئ فرمائی چه : د سر په اوبو باندے به دواړه غوږونه مسح کوی، جدا اوبه راخستو ته ضرورت نشته۔ اودا قول علامه ابن عبد البرؒ د یو لوئی جماعت د صحابوؓ او تابعینوؒ نه نقل کړیدے، کما قال المبارکفوریؒ فی التحفة (۱/۴۹) او همدا راجح قول دے ددلیل په اعتبار سره (ورجحه الصنعانی فی سبل السلام : ۱/۷۰)۔

## دلائل الفريقين ----- د اول قول والا دلائل :

۱ - حدیث د عبد الله بن زیدؓ دے چه حاکم او بیهقی روایت کړیدے ونقله الحافظ فی بلوغ المرام بشرح توضیح الأحکام (۱/۱۸۰)۔ د حرملة عن ابن وهب نه چه په هغے کښے عبد الله بن زید د نبی کریم ﷺ د اوداسه طریقه بنائی هغے کښے دا الفاظ دی :

انه یأخذ لأذنیه ماء غیر الماء الذی أخذه لرأسه۔

یعنې د غوږونو مسح ئې د سر د مسح نه پاتې شوو اوبو نه علاوه نورو اوبو سره اوکړه۔

امام نووی په المجموع (۱/ ٤۱۲) کښې دا حدیث ذکر کړیدے او وئیلي ئې دي چه هذا حدیث حسن رواه البیهقی وقال اسناده صحیح او په (۱/ ٤١٤) کښې وائی وهو حدیث صحیح کما سبق بیانه قریبا۔ بیا وائی: دا حدیث صریح دلیل دے پدے چه غوږونه د سر نه ندی ځکه که دا د سر نه وے نو جدا اوبه به ئې ورله نه راخستے لکه د باقی اجزاؤ د سر پشان او دا صریح دے په نوے اوبه راخستو کښې او پدے کښې رد دے په هغه چا چه دا وائی چه غوږونه د مخ نه حساب دی۔

حافظ په تلخیص الحبیر (۱/ ۸۹) کښې فرمائی: دا روایت حاکم نقل کړیدے (باسناد ظاهره الصحة)، او بیهقی د عثمان الدارمی عن الهیثم بن خارجه عن ابن وهب په طریقه نقل کړیدے چه د هغې الفاظ دادی: فأخذ لأذنیه ماء خلاف الماء الذی أخذ لرأسه. وقال هذا اسناد صحیح، انتهی. وکذا فی المستدرك للحاکم: ۱/ ۱۵۱، وصححه الحاکم ووافقه الذهبی.

لیکن په بلوغ المرام بشرح توضیح الأحکام (۱/ ۱۸۰) کښې فرمائی: أخرجه البیهقی وهو عند مسلم من هذا الوجه بلفظ ومسح برأسه بماء غیر فضل یدیه وهو المحفوظ۔

یعنې په دے حدیث کښې چه مستقلې اوبه راخستل شویدی نو دا د سر د مسح دپاره دی، او همدا قوی سند سره ثابت دے، لکه دا امام ترمذی او ابن حبان هم په همدے الفاظو نقل کړیدے۔ او هرچه مسح د أذنین دپاره جدا اوبه راخستل دی، نو دا غیر محفوظ حدیث دے، یعنې شاذ دے، او حکم د شاذ رد کول دی، او حکم د محفوظ قبلول دی۔ (توضیح الأحکام: ۱/ ۱۸۰)۔ او صحیح سند کښې د (أذنان) ذکر نشته، لکه دا سند ابن دقیق العید په (امام کتاب) کښې هم په مسح د سر کښې ذکر کړیدے په هغې کښې هم مسح الأذنین نشته۔ دغه شان صحیح ابن حبان کښې هم (ومسح رأسه بماء غیر فضل یدیه) الفاظ دی، او د اذنان ذکر په کښې نشته۔ کذا فی التلخیص: ۱/ ۸۹۔ دا دلیل دے چه د اذنین ذکر کول شاذ دی۔

شیخ البانیؒ د بیهقیؒ ددے روایت شذوذ په السلسه الضعیفه رقم (۹۹۵) کښے داسے بیانوی : چه اصل روایت کښے د اذنین ذکر نشته بلکه (مسح برأسه بماء غیر فضل یدیه) الفاظ دی، کوم چه مسلم کښے هم راغلی دی خو ابن وهب او هیثم بن خارجه او ابن مقلاص راویانو باندے اختلاف راغلو پدے حدیث کښے هغوی اذنین ذکر کړیدی او د دوی په خلاف ابن معروف او ابن سعید الایلی او ابو الطاهر راویان اذنین نه ذکر کوی۔

او ددے روستنو راویانو درے نور راویان متابعین هم موجود دی ۱- حجاج بن ابراهیم الازرق ۲- ابن اخی ابن وهب اسمه احمد بن عبد الرحمن بن وهب ۳- وسریج بن النعمان نو دوی شپږ شو نو شپږ راویان اذنین نه نقل کوی او درے ئے نقل کوی۔ نو دا دلیل دے په شذوذ ددغه روایت باندے او ددے شپږ راویانو بل تائید هم موجود دے عبد الله بن لهیعة عن حبان بن واسع مثل روایة الستة اخرجه الدارمی (۱/۱۸۰) واحمد (۴/۳۹-۴۲) او دے شذوذ ته حافظ ابن حجر اشاره کړیده په بلوغ المرام کښ چه دا روایت بیهقی ذکر کړیدے وهو غیر محفوظ ای شاذ۔

۲ - **دلیل** : حدیث د عبد الله بن عمرؓ نه نقل دے (انه کان اذا توضأ یأخذ الماء باصبعیه لأذنیه) ابن عمرؓ چه به کله اودس کولو نو په دوه گوتو به ئے د غوږونو دپاره اوبه راخستله۔

۳ - **دریم دلیل** : حدیث د أنسؓ دے چه په هغے کښے د رسول الله ﷺ د اوداسه حکایت دے په هغے کښے دا الفاظ دی : (فأخذ ماء جدیدا لصماخه فمسح صماخه) رواه الطبرانی فی الصغیر : ۶۴، وهکذا فی مجمع الزوائد : ۱/۲۳۵، ونصب الرایة : ۱/۲۲۔

**جواب** : ددے په سند کښے دوه مجهول راویان دی، یو عمر بن أبان، دویم : جعفر بن حمید شیخ الطبرانی، دواړو باره کښے حافظ ذهبیؒ په میزان الاعتدال : ۱/۴۰۵ : کښے لیکی : وعمر بن أبان لا یدری من هو ؟ والحدیث انما دلنا علی ضعفه۔

او په (۳/۱۸۱) کښے فرمائی : (عمر بن أبان عن أنس فی الوضوء لایعرف، وعنه شیخ الطبرانی جعفر بن حمید فمن جعفر)۔ یعنے دواړه مجهول دی۔

نو ثابته شوه چه دا حدیث ضعیف دے، اگرچه ابن حبان عمر بن أبان په ثقاتو کښے ذکر

کړیدے، لیکن دا قاعده ده دأصحاب المصطلح چه دوئ فرمائی : ابن حبانؒ مجهول راویان هم ثقه ګڼړی، نو په مجهول راویانو کښې دهغه توثیق مقبول نه دے۔ اذا لم یوافقه غیره۔

۲ – دویم **جواب** دا هم کوی : که اومنو چه دا حدیث ثابت دے نو بیا هم دا محمول دے په هغه صورت باندے چه کله په ګوتو کښې د سر د مسح نه روستو هیڅ لوندوالے باقی پاتے نه وی، نو بیا مستقل اوبه راخستل مشروع او سنت عمل دے۔ لکه دا خبره علامه صنعانیؒ فی سبل السلام (۷۰/۱) کښې کړیده۔ لکه دے فرمائی :

وتاویل حدیث : أنه أخذ لهما ماء خلاف الذی مسح به رأسه : أقرب ما یقال فیه : انه لم یبق فی یده بلة تکفی لمسح الأذنین، فأخذ لهما ماء جدیدا، انتهیٰ۔

او دغه شان شیخ البانی په تردید د امام نووی کښې وائی : پدے حدیث د بیهقی کښې د شوافعو هیڅ حجت نشته ځکه غایه ما فی الباب پدے حدیث کښې صرف مشروعیت او اجازه راغلے چه جدید اوبه راخستل د غوږونو دپاره هم جائز دی لکه څنګه چه د سر په اوبو سره مسح کول جائز دی نو دا منافی ندے د الاذنان من الرأس حدیث سره۔ یعنی په (الاذنان من الرأس) حدیث کښې دا خبره راغله چه غوږونو مسح کولو دپاره د سر د مسح نه پاتے شوے اوبه کافی دی او پدے حدیث کښې دا راغلل چه نوے اوبه راخستل هم جائز دی۔ نو دواړو روایتونو کښې هیڅ تعارض نشته بلکه دواړه د یو بل موافق دی۔ السلسله الضعیفه (۹۹۵) بیا وائی : دا تطبیق هله دے چه کله مونږ اومنو چه حدیث د عبد الله بن زید (بیهقی روایت) ثابت دے لیکن دا ثابت ندے۔ وقد تقدم شذوذه۔

٤ – **دلیل** قیاس دے : چه غوږ مستقل اندام دے لهذا په مستقلو اوبو سره ئے مسح کول ضروری دی۔

**جواب** دادے چه دا قیاس ستاسو په مقابله د نص کښې دے ځکه چه مسح د أذنین دا د سر تابع ده، اودا په صحیح احادیثو سره ثابت ده، نو ددے نه پس قیاس کول داد نص سره مقابله ده، چه هغه نامنظوره اومردود ده۔

## دلائل القول الثانی :

**اول دلیل** :حدیث الباب، حدیث ذ ابن عباسؓ دے چه نبی کریم ﷺ (مسح برأسه وأذنیه باطنهما بالسباحتین، وظاهرهما بابهامیه) رواه النسائی وابن ماجة والحاکم والبیهقی والترمذی، بالفاظ متقاربة وقال الترمذی : حدیث ابن عباس حیث حسن صحیح. وقال الحافظ فی التلخیص ص : ۹۰، رواه ابن حبان فی صحیحه وصححه ابن خزیمة وابن مندة ۔

**شیخ البانیؒ په ارواء الغلیل : ۱/۱۲۹، رقم: ۹۰، کښے فرمائی :** صحیح، أخرجه الترمذی (۱/۱۰) والنسائی (۱/۲۹) وابن ماجه رقم (۴۳۹) والبیهقی (۱/٦٦) من طریق محمد بن عجلان عن زید بن أسلم عن عطاء بن یسار عن ابن عباس.

قلت : وسنده حسن، لأن فی ابن عجلان ضعفا یسیرا، لکنه قد توبع فیرتقی الحدیث الی درجة الصحة، فقد أخرجه ابوداود رقم (۱۲٦) من سننه والحاکم (۱/۱۴۷) من طریق، انتهیٰ ۔ وصححه ابن خزیمة وابن مندة کذا فی النیل (۱/۲۰۱)۔

**نودا حدیث حسن دے لیکن د توابعو په وجه درجے د صحت ته ختلے دے، نوبس صحیح حدیث دے۔**

**او په دے کښے نبی کریم ﷺ په سر او غوږونو دواړو باندے په یو اوبو سره مسح کړیده، اود مستقل اوبو راخستلو ذکر نشته، لکه چه په عام احادیثو کښے کښے دا ذکرنشته۔**

**۲ - دلیل** : حدیث د ربیع بنت معوذؓ (لکه چه کتاب کښے متصل راروان دے) :

انها رأت النبی ﷺ یتوضأ قالت : فمسح رأسه ما أقبل منه وما أدبر وصدغیه وأذنیه مرة واحدة وفی روایة : أنه توضأ فأدخل أصبعیه فی جحری أذنیه). رواه ابوداود. وروی الترمذی الروایة الأولی (۱/۱۰)، واحمد وابن ماجة الروایة الثانیة۔

**یعنے : نبی ﷺ په سر مسح اوکړه اوپه غوږونو باندے اونوے اوبه په کښے نه دی راخستلے شوی۔**

امام صنعانیؒ په سبل السلام (۱/۷۰) کښے لیکی : چه مسح رأسه وأذنیه مرة واحدة) دلیل دے چه ماء جدید نه دی راخستل شوی ځکه که د غوږونو دپاره ماء جدید را واخلی نو په دے باندے دا نه صادقیږی چه (انه مسح رأسه وأذنیه مرة واحدة) ځکه دا خو دوه ځله مسح شوه، یو په سر او بل په غوږونو۔ او په دے کښے دا احتمال بیانول چه ددے نه مراد دا

دے چه مسح ئے مکرر نه ده کړے او ماء جدید ئے راخستے دی دغوږونو دپاره، نودا احتمال بعید دے ظاهر لفظ ددے تهٔ اضا نه کوی ۔ انتهیٰ۔

دغه شان الفاظ یا دیته قریب الفاظ حاکم په مستدرك کښے په روایت د ربیع کښے ذکر کړیدی۔ په دے حدیث کښے علامه شوکانیؒ په نیل الأوطار (۱/۱۹٤) باب مسح الرأس کله کښے لیکی : چه ددے روایت دپاره نور روایات هم شته چه هغه احمد، ابن ماجه او بیهقی ذکر کړیدی، لیکن ددے ټولو مدار په عبد الله بن محمد بن عقیل باندے دے، اوده باره کښے مشهور مقال دے،خصوصا کله چه دا عنعنه هم اوکړی۔ او په دے ټولو روایاتو کښے ئے عنعنه کړیده۔ انتهیٰ۔

لیکن دا حدیث حسن دے۔ امام ترمذیؒ فرمائی : هذا حدیث حسن صحیح۔ ابوداود پرے سکوت کړیدے۔ اوشیخ البانیؒ په صحیح ابی داود (۱/۲۷) رقم : (۱۱۸) کښے فرمائی : دا حدیث حسن دے۔

او عبد الله بن محمد بن عقیل اګرچه مدلس راوی دے لکه حافظ ابن حجر عسقلانیؒ په طبقات المدلسین کښے ذکر کړیدے، مګر دده په حدیث باندے امام أحمدؒ، اسحقؒ او امام حمیدیؒ احتجاج کړے، امام بخاریؒ ورته مقارب الحدیث وئیلے دے (کما ذکره الترمذی فی باب : مفتاح الصلاة الطهور)۔

دے وجے نه امام ذهبیؒ فرمائی : حدیثه فی مرتبة الحسن وقال فی التلخیص علی المستدرك (۲/۳۸) : عبد الله بن عقیل مستقیم الحدیث ۔

اودا قول صاحب المرعاة (۲/۱۱٤) هم غوره کړیدے چه دا حدیث ربیعؓ په مرتبه د حسن کښے دے۔

**۳ - دلیل** : حدیث د مقدام بن معدیکربؓ دے چه هغے کښے دا الفاظ دی : (ثم مسح برأسه وأذنیه ظاهرهما و باطنهما) رواه ابوداود رقم (۱۲۳) والطحاوی (۱/۲۸) قال الحافظ فی التلخیص (۱/۹۰) : واسناده حسن: نیل الاوطار (۱/۲۰)۔ دے کښے هم د سراو د غوږونو دواړو طرفونو مسح شویده۔

شیخ البانیؒ په صحیح ابی داود (۱/۲٦) کښے فرمائی : واسناده صحیح۔

٤ – حديث د عثمان بن عبد الرحمن التيمىؒ دے چه دا فرمائی : د ابن أبی مليكةؒ نه تپوس اوشو د اوداسه په باره كښے، نو هغه جواب وركړو: چه ما عثمان بن عفانؓ اوليدو چه هغه نه هم د اوداسه په باره كښے تپوس شوے وو، اوهغه ورته د نبی ﷺ د اوداسه حكايت اوكړو، په هغے كښے دا الفاظ دی : (فمسح برأسه وأذنيه فغسل بطونهما وظهورهما مرة واحدة ... الحديث. ثم قال : أين السائلون عن الوضوء ؟ هكذا رأيت رسول الله ﷺ يتوضأ). أخرجه ابوداود رقم (۲۳) واحمد والحاكم (۱۵۲/۱) والدارقطنی (۱/۱۰) كذا فی النيل (۲۰۲/۱)۔

دے روايت ته شيخ البانیؒ په صحيح ابی داود (۲۳/۱) كښے حسن صحيح وئيلی دی۔

۵، ٦ – حديثونه د حسن بصریؒ عن أنس بن مالكؓ دی۔ وفيه : (ومسح رأسه وأذنيه) او حديث د براء بن عازبؓ كښے دی (ومسح برأسه وأذنيه ظاهرهما وباطنهما) ۔ دا دواړه روايتونه نصب الرايه (۱٤/۱) كښے دی ۔

۷ – مخكښے حديث د عبد الله الصنابحی په اول د كتاب الطهارة كښے تير شويدے چه (فاذا مسح برأسه خرجت الخطايا من رأسه حتى تخرج من أذنيه). رواه النسائی : ۲۹/۱۔ ددے نه معلوميږی چه أذنين د سر تابع دی۔ كما مرّ۔

۸ – حديث د أبی أمامهؓ دے، كما فی صحيح سنن الترمذی (۱٤/۱، رقم: ۳۷) وصحيح سنن ابن ماجة رقم: (٤٤٤) : الأذنان من الرأس۔

علامه مناوی فيض القدير كښے فرمائی : الاذنان من الرأس لا من الوجه ولا مستقلتان ) يعنی غوږونه د سر په حكم كښے دی د مخ نه هم حساب ندی او مستقل هم ندی يعنی جديد اوبو راخستو ته په كښے ضرورت نشته بلكه په پاتے شوی اوبو د سر به مسح كولے شي۔ نقله الالبانی فی الصحيحة (٥٦/۱).

دا حديث صريح دے په دے كښے چه غوږونه د سر تابع دی په مسح كولو كښے، او مستقل اوبو راخستو ته ددے د مسح كولو دپاره ضرورت نشته۔

## په حديث : الأذنان من الرأس اعتراضونه :

ليكن په دے حديث باندے څو اعتراضونه شويدی :

١ - **اول اعتراض** : امام ترمذیؒ دا کړیدے چه حماد بن زید - چه ددے حدیث راوی دے - فرمائی : ( لا أدری، هـذا مـن قول النبی ﷺ أو من قول أبی أمامة). يعنـے ماته دا پته نشتـه چـه دا الـفاظ د نبـی کریم ﷺ دی اوکه د ابو امامهٔ دی. نو ددے نه معلومیږی چه ددے حدیث مرفوع کیدل مشکوك دی .

١ - **جواب** : دادے چـه حافظ زیلـعیؒ پـه نصب الرایه (١٩/١) او شیخ البانیؒ پـه الـصحیحـه رقـم (٣٦)، کښے د دے حدیث ډیر سندونـه ذکر کړیدی، یو پـه روایت د ابن عباسؓ.

٢ - بـل پـه روایت د عبد الله بن زیدؓ. ٣ - بل پـه روایت دابو هریرةؓ. ٤ - بل پـه روایت د ابو أمامهؓ، او ابن عمرؓ. (وصـحـحه الألبانی فی المشکاة : ١/٣١). اونـور هم شتـه. نو پـه دے کښے ئے صرف دابـو هریـرةؓ او أنسؓ او عائشةؓ روایت ضعیف کړیدے اوباقی صحیح روایتـونـه دی . د ابـن عبـاسؓ روایت ته ابن القطانؒ صحیح یا حسن وئیلی دی (وصححه الألبـانـی فـی المشکاة : ١/١٣١، والصحیحة : ١/٤٧، رقم : ٣٦) د ابـن عـمرؓ روایت ته ئے حسن وئیلے دے، د عبد الله بن زید روایت ته ئے صحیح وئیلے دے.

نـو دهغـه روایاتـو نـه معلـومیږی چه دا حدیث مرفوعا ثابت دے، اود حمادؒ شك لره اعتبار نشتـه .

٢ - **دویم جواب**: دادے چه د حـماد نـه پـه خپله هم رفع ددے روایت ثابت ده، لکه دا تـرے أبـو الـربیـع شاګرد نقل کړیده، او موقوف والے ترے هم ثابت دے لکه دا ترے ابن حرب شـاګرد نقل کړیدے. دارنګه پـه دے سند کښے پـه مسدد راوی باندے هم اختلاف راغلے دے، چنانچه کله د حماد نه رفع نقل کوی اوکله ترے وقف . اودا د أصول الحدیث قاعده ده چه کـلـه یو ثقه راوی یو حدیث مرفوع کوی او بل راوی ئے موقوف کوی. یا یو شخص پـه دوه وختـونو کښے موقوف هم نقل کوی او مرفوع هم، نو رفع کونکی ته به ترجیح وی، ځکه چـه ده زیادت باندے راتلل کړی دی. دارنګه دا هم جائز ده چه یو شخص یو حدیث واوری، نو پـه یو وخت کښے پـه هغـے فتوی ورکړی، اوپه بل وخت کښے ئے مرفوع نقل کړی . هکذا قال الحافظ الزیلعی فی نصبه (١/١٩).

او دليل ددې خبرې چه دا مرفوع دے او موقوف نه دے روايت د صحيح سنن ابن ماجه (٤٤٤) دے : عن محمد بن زياد عن حماد باسناده بلفظ (ان رسول الله ﷺ قال : الأذنان من الرأس، وكان يمسح رأسه مرة، وكان يمسح الماقين). نو دا الفاظ دليل دے چه الأذنان من الرأس موقوف نه دے بلكه دا نص دے چه دا الفاظ د نبي ﷺ دي. مرعاة (١/١١٦).
وقال الألباني في صحيح سنن ابن ماجة (٤٤٤) : سنده صحيح، دون مسح الأذنين، وصحيح ابي داود (١٢٣).

**۲ - دويم اعتراض** دادے چه امام ترمذي دا حديث نقل كړے دے او بيائے وئيلي دي (هذا حديث ليس اسناده بذاك القائم)، يعني ددے حديث سند ضعيف دے ځكه ددے په سند كښې شهر بن حوشب راوي دے.

**جواب** : دادے چه شهر بن حوشب يو مختلف فيه راوي دے، حافظ زيلعيؒ او علامه مباركفوريؒ (تحفة الأحوذي : ١/٤٨) كښې د ابن القطان نه نقل كړيدي چه هغه په كتاب الوهم والإيهام كښې فرمائي : (شهرب بن حوشب وثقه قوم وضعفه آخرون، وممن وثقه ابن حنبل وابن معين، وقال ابو زرعة : لا بأس به، وقال أبو حاتم : ليس هو بدون الزبير وغيرهم يضعفه، قال : ولا أعرف لمضعفه حجة الخ. ومثله في الجوهر النقي ذيل السنن الكبرى (١/٦٦).

يعني : بعضې علماؤ ورته ثقه وئيلي دي (وصححه الألباني في المشكاة : ١/٣١) او بعضو ورته ضعيف، ليكن چا چه ورته ضعيف وئيلي دي هغوئ سره هيڅ دليل نشته، بيائے هغه جرح چه په هغه لګيدلے ده هغه ئے باطله كړيده. لكن قال في التقريب : ان شهرا صدوق كثير الارسال والأوهام (٢٢٦).

دارنګه فرمائي : چه دے روايت ته خو امام ترمذيؒ د شهر بن حوشب په وجه ضعيف وئيلي دي، مګر امام ترمذيؒ پخپله د شهر حديث ته صحيح وئيلے دے.

شهر بن حوشب عن أم سلمة أن النبي ﷺ لف الحسن والحسين وعلي وفاطمة في كساء وقال : هؤلاء أهل بيتي. وقال : هذا حسن صحيح، انتهى باب فضل فاطمة وكذا في الجوهر النقي (١/٦٥).

دارنګه باب (اسم الله الأعظم) کښې ئې هم د شهر روایت کړی حدیث ته حسن وئیلے دے۔ دا وجه ده امام بیهقی په السنن الکبری (۶۶/۱) کښې لیکی : حدیث الأذنان من الرأس أشهر اسناد ۔ او ابن دقیق العید په الامام کښې لیکی - کما نقله الزیلعی : ۱۸/۱ :
هذا الحدیث معلول بوجهین أحدهما : الکلام فی شهر بن حوشب، والثانی : الشك فی رفعه ولکن شهرا وثقه احمد ویحیی والعجلی ویعقوب بن أبی شیبة الخ۔
بیا یو کرښه روسته فرمائی : فالحدیث عندنا حسن. انتهی کلامه —— دارنګه دے حدیث ته په صحیح أبی داود رقم (۱۳۴) کښې شیخ البانیؒ لیکلی : صحیح ۔
نو ثابته شوه چه دا حدیث صحیح یا حسن دے، د وجے د کثرت شواهدو او متابعاتو نه کما ذکرها الزیلعی ۔

۳ - **دریم اعتراض** دادے : چه بعضے علماء وائی چه که د (الأذنان من الرأس) مطلب دا شی چه أذنین په حکم د مسح کښے د سر جزء دے نو بیا که یو شخص صرف د أذنین مسح اوکړی، اود سر مسح پریدی، نو دده مسح دے صحیح شی، ځکه چه أذنین ستاسو په نزد د سر جزء دے۔
ددے **جواب** دادے چه د (الأذنان من الرأس) دا مطلب نه دے چه أذنین د سر جزء دی، بلکه دا مطلب دے چه أذنین په مسح کښے د سر تابع دی، ددے دپاره جدا اوبه اخستو ته ضرورت نشته ۔

۴ - بعضے دا **اعتراض** کوی چه ددے حدیث د مسح سره هیڅ تعلق نشته، بلکه دا د بیان د خلقت دپاره دے او مطلب ئې دادے چه غوږ خِلْقَةً د سر جزء دے ۔
لیکن ددے نه **جواب** دادے چه رسول الله ﷺ د أحکامو بیانولو دپاره رالیږلے شوے دے، نه د بیان د خلقت دپاره۔ او داخو هرچاته معلومه ده چه غوږونه د سر نه حساب دی، نو ددے په بیانولو کښے فائده نشته۔
دارنګه په حدیث کښے دا تصریح ده چه دا جمله رسول الله ﷺ د مسح د سر نه فورا روستو وئیلے ده، چه هغه ددے خبرے دلیل دے چه ددے جملے تعلق د مسح سره دے ۔ او ددے جملے نه روستو ئې هم مسح ذکر کړیده، لکه په روایت د ابن ماجه کښے د اول اعتراض

د جواب لاندې تیر شو۔ انظره۔

**خلاصه** : داچه عام أوقاتو کښې به مستقل اوبه نه راخلی د مسح دأذنین دپاره، کما ثبت من حدیث ابن عباس والربیع ومعدیکرب وأبی أمامه۔ لیکن کله کله اوبه راخستل هم جواز لری ۔ د وجې د حدیث ابن عمرؓ نه چه هغه نه موقوفا ثابت دې۔ دا وجه ده چه علامه ابن القیمؒ په زاد المعاد (۱۸۷/۱) کښې فرمائی :

وکان یمسح أذنیه مع رأسه وکان یمسح ظاهرهما وباطنهما، ولم یثبت عنه أنه أخذ لهما ماء جدیدا، وانما صح ذلك عن ابن عمر ۔

یعنې : د رسول الله ﷺ نه دا صحیح ثابت نه ده چه هغه نوې اوبه راخستې وی د غوږونو مسح کولو دپاره ۔ صرف د ابن عمرؓ نه صحیح ثابت دی۔

لاندې معلق شعیب الأرناؤط لیکی : (رواه مالك فی الموطأ : ۳٤/۱) فی الطهارة باب ماجاء فی المسح بالرأس علی الأذنین، وسنده صحیح آه۔ او مخکښې په دلائلو کښې تیر شو۔

معلومه شوه چه پدې باب کښې مرفوع صحیح حدیث نشته۔ لکه چه علامه شیخ مبارکفوری هم په التحفه (٤۹/۱) کښې فرمائی : لم اقف علی حدیث مرفوع صحیح خال عن الکلام یدل علی مسح الاذنین بماء جدید) ۔ یعنی داسې صحیح مرفوع حدیث نشته چه د کلام نه خالی وی او د غوږونو دپاره په نوې اوبو راخستو باندې دلالت اوکړی۔

مګر کله چه په لاسونو کښې هیڅ لوندوالې پاتې نه وی نو بیا تازه اوبه راخستل هم سنت دی ——— نو معلومه شوه چه ماء جدید راخستل هم جواز لری مګر بهتره طریقه داده چه په هغه اوبو سره د غوږونو مسح اوکړی کومې اوبه چه د سر مسح کولو نه باقی پاتې شوې وی ۔

**فائده** : ددې حدیث الباب (حدیث ابن عباس) او حدیث الربیع نه طریقه د مسح د غوږونو ښکاره شوه، هغه دا چه مسواکۍ ګوتې به د غوږونو په سورو کښې ننباسی او غټې ګوتې به د غوږونو په ظاهر طرفونو باندې سر طرفته راتاؤ کړی ۔ وبالله التوفیق ۔

## المسألة الثالثة : حكم مسح الاذنين :

د غوږونو د مسح کولو په حکم کښې اختلاف دے :

۱ - ابن عباس، ابن عمر، ابو موسی الاشعری رضی الله عنهم او احمد بن حنبل او اسحق فرمائی چه د غوږونو مسح فرض ده۔ **دلیل** : حدیث د ابوامامه وغیره دے چه (الأذنان من الرأس) ځکه چه دا حدیث صریح دے پدے کښې چه غوږونه به د سر سره مسح کولے شی ځکه چه غوږونه ئے د سر سره ملحق کړیدی۔ او د نبی علیه السلام پدے الحاق کښې غرض هم دا دے چه د سر د مسح کوم حکم وو هغه به د غوږونو هم وی۔

۲- جمهور علماء وائی : د غوږونو مسح کول سنت دی فقط کما فی الفقه علی المذاهب الاربعة (۱/ ۵٦) ددے علماؤ څه خاص **دلیل** نشته صرف پدے حدیث تنقید کوی امام نوویؒ په المجموع (۱/ ٤١٥) کښې وائی : انه ضعيف من جميع طرقه ۔ یعنی حدیث د ابوامامه (الأذنان من الرأس) په ټولو طریقو ضعیف دے۔

**جواب** : تا مخکښې اوپیژندل چه دغه حدیث بالکل صحیح دے بلکه قول د امام نووی خطاء دے۔ پدے وجه شیخ البانی په سلسلة الاحاديث الصحيحة رقم (۳٦) ص (۱/ ۵۵) کښې ددے قول داسے تردید کوی : واذا علمت ان الامر ليس كذلك وان بعض طرقه صحيح لم يطلع عليه النووی والبعض الآخر صحيح لغيره استطعت ضعف هذه الحجة۔

یعنی هرکله چه تا ددے حدیث بعض صحیح طرق هم معلوم کړل نو تا ته پدے سره د امام نووی د دلیل ضعف هم معلومیږی۔

جمهور یو بل دلیل دا وائی چه حدیث د اعرابی کښې امر راغلے دے (توضأ كما امرك الله ) یعنی څنګه چه الله تعالی امر کړیدے په قرآن کریم کښې هغه شان اودس کوه او قرآن کریم کښې خو غوږونه ندی ذکر نو فرض هم نشو۔

**جواب** : احادیثو کښې د غوږونو بیان راغلے دے، او احادیث تشریح د قرآن ده نو پدے باندے هم فرضیت ثابتیږی وهو الحق الراجح، انظر المجموع شرح المهذب (۱/ ٤١٣)۔

---

٢٤ - وَعَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ ﷺ يَتَوَضَّأُ قَالَتْ : فَمَسَحَ

رَأْسَهُ مَا أَقْبَلَ مِنْهُ وَمَا اَدْبَرَ وَصُدْغَيْهِ وَأُذُنَيْهِ مَرَّةً وَاحِدَةً. وَفِي رِوَايَةٍ : اَنَّهُ تَوَضَّأَ فَأَدْخَلَ اِصْبَعَيْهِ فِي جُحْرَيْ أُذُنَيْهِ . رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَرَوَى التِّرمِذِيُّ الرِّوَايَةَ الْأُوْلٰى وَأَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَه الثَّانِيَةَ .

**ترجمه** : بی بی ربیع بنت معوذ نه روایت دے چه دے نبی ﷺ په اودس کولو اولیدلو، فرمائی : نبی ﷺ د خپل سر په مخکنئ حصه، په روستنئ حصه، غوږونو او سترګو ترمینځه ځائے ( څنړه) او غوږونو باندے یو ځل مسح اوکړه. او یو روایت کښے دی چه نبی ﷺ اودس اوکړو، او (مسح دپاره ئے) خپلے دواړه ګوتے د غوږونو سورو کښے داخلے کړے ـ (ابوداود) ترمذی اولنے حدیث اواحمد او ابن ماجه دویم حدیث روایت کړے دے ـ

## تعارف : د ربیع رضی الله عنها :

رُبَيِّع : بضم الراء وفتح الباء وتشديد الياء المكسوره. دا ربیع بنت معوذ بن عفراء ده، اوعفراء د معوذ والده ده، د پلار نوم ئے الحارث بن رفاعه دے، د بنو نجار نه انصاریه صحابیه ده، اوصلح حدیبیه کښے ئے د رسول الله ﷺ سره د ونے لاندے بیعت کړے دے، ابن عبد البرؒ فرمائی : لها قدر عظيم. لویه قدرمنه بی بی ده. د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کښے ئے ډیر غزوات کړی دی ـ ټول (۲۱) احادیث ئے امت ته را نقل کړی دی ـ رضی الله تعالی عنها ـ

**تشریح** : غوږونه خو د سر نه حساب دی شرعاً او لغةً او عرفاً نو بیا ددے مسح جدا ولے ذکر شوه څه حکمت دے ؟ نو وجه دا ده چه ددے په مسح کولو سره کمالِ طهارت حاصلیږی ظاهراً او باطناً او ددے نه هغه ګناهونه اوځی کوم چه دے کړی وی لکه د باقی اندامونو د اوداسه نه چه ګناهونه رژیږی. نو پدے مسح کښے طهارت حسیه او طهارت معنویه حاصلیږی.

وَصُدْغَيْهِ : صدغ هغه ځائے ته وائی چه د سترګے او غوږ ترمینځ وی او هغه ویښته چه هلته رازوړند وی ـ ددے مسح کول هم سنت دی.

ددے حدیث په سند باندے کلام تیر شویدے په بیان د دلائلو کښے چه حسن یاصحیح حدیث دے ـاخرجه احمد (۶/۳۵۹) والترمذی (۳۴) وحسنه الشيخ الالبانی فی صحیح ابی

داود (١/٢٧) رقم : (١١٨) ـ

**٢٥ ـ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ ﷺ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ ﷺ تَوَضَّأَ وَأَنَّهُ مَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ) . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ مَعَ زَوَائِدَ.**

---

**ترجمه** : عبد الله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دے چه ده نبي ﷺ په اودس كولو اوليدلو، نبي ﷺ د سر مسح هغے اوبو سره اوكړه چه دلاسونو نه پاتے شوے اوبو نه علاوه وے (يعنے نوے اوبه ئے ددے دپاره را واخستے). (ترمذي) او مسلم دا روايت زيادت سره نقل كړے دے چه هغے كنبے د اودس د نورو اندامونو وينځلو ذكر هم دے ـ

**تشريح** : وانه مسح رأسه بماء غير فضل يديه : يعنے رسول الله ﷺ مسح اوكړه په سر باندے په هغه اوبو سره چه هغه غير وے د زياتي اوبو د لاسونو نه، يعنے ماء جديد سره ئے مسح اوكړه، نه په هغه اوبو سره كومے چه په لاسونو پورے باقي وے.

**مسئله** : په دے كنبے اختلاف دے چه آيا د سر مسح كولو دپاره به جدا مستقلے اوبه راخلي، اوكه په هغه اوبو به ئے مسح كوي كومے چه لاسونو پورے پاتے وي ؟.

نو په دے كنبے دوه قوله دي :

١ ـ **اول قول** دادے : چه ماء جديد او مستقلے اوبه به ورله نه راخلي، اودا قول د امام ابو حنيفهؒ او امام شافعيؒ دے. امام ترمذيؒ فرمائي :

والعمل على هذا عند أكثر أهل العلم ـ يعنے دا د جمهورو علماؤ مذهب دے ـ (ورجحه المباركفوريؒ في التحفة (١/٤٧).

٢ ـ **قول ثاني** : دادے چه جدا اوبه به راخلي. دوئ لاندينى دلائل وائي :

١ ـ اول دليل : حديث د عبد الله بن زيدؓ (حديث الباب) دے چه په دے كنبے د رسول الله ﷺ عمل داسے نقل شوے دے چه نوے اوبه ئے راخستے دي ـ دا حديث امام ترمذيؒ رقم (٣٥) نقل كړے او بيائے وئيلي دي : هذا حديث حسن صحيح، وكذا أخرجه مسلم (١/٢٣) مطولا ـ او دے حديث ته شيخ البانيؒ په صحيح أبي داود (١/٢٦) قم (١١١) كنبے صحيح وئيلي دي، په دے وجه علامه صنعانيؒ په سبل السلام (١/٧٠) كنبے

فرمائی :

وأخذ ماء جديد للرأس أمر لا بد منه .

یعنې : سر مسح کولو دپاره نوې اوبه راخستل ضروري کار دے .

د اول قول والا **دليل** : دوئ په همدغه حديث د عبد الله بن زيدؓ کښې په روايت د ابن لهيعه کښې دا الفاظ پيش کوی (انه مسح رأسه بماء غبر من فضل يديه)، یعنی رسول الله ﷺ د سر مسح اوکړه په هغه اوبو سره کومې چه د لاسونو د اوبو نه زياتی پاتې شوې وې. اودا روايت هم امام ترمذیؒ نقل کړے دے .

**٢ - دليل** : حديث د ربيع بنت معوذ دے، چه ابوداود (٢٧/١) کښې نقل کړے دے :

ان النبی ﷺ مسح برأسه من فضل ماء كان فی يده . قال الألبانی فی صحيح أبی داود (٢٧/١) : وسنده حسن . انظر تلخيص الحبير (٣٣/١) والسلسلة الصحيحة (٥٧/١).

یعنې : رسول الله ﷺ د سر مسح په هغه اوبو سره اوکړه کومې چه په لاس پورې باقی پاتې شوې وې.

نو ظاهر کښې ددې حديثونو تعارض ښکاری، مګر شيخ مبارکفوریؒ په تحفه الأحوذی (٤٨/١) کښې فرمائی : چه دا تعارض نه دے. وجه داده چه اول حديث د عبد الله بن زيدؓ په روايت د عمرو بن الحارث نقل دے، اودويم حديث په روايت د ابن لهيعهؒ نقل دے، او عمرو بن الحارث ثقه حافظ دے، اوعبد الله بن لهيعهؒ ضعيف دے، نو د ابن لهيعهؒ روايت غير محفوظ شو. دا وجه ده چه امام ترمذیؒ هم دے ته اشاره کړيده په دے عبارت سره (ورواية عمرو بن الحارث عن حبان أصح، لأنه قد روی من غير وجه هذا الحديث عن عبد الله بن زيد وغيره أن النبی ﷺ أخذ لرأسه ماء جديدا ).

او هرچه حديث د رُبَيع دے نو اول خو دا ضعيف دے، ځکه په دے کښې ابن عقيل راوی دے، او په ده کښې مشهور مقال دے، کما مرّ. دارنګه ددې په متن کښې اضطراب هم دے، بيائے هغه ذکرکړے دے چه کله (مسح بماء جديد) نقل کوی، کما مرّ فی روايه ابن ماجه من طريق شريك بن عبد الله عن عبد الله بن عقيل عن الربيع. اوکله (مسح بماء غبر فی يديه) نقل کوی .

۲ – ثانیا : که دا روایت د رُبَیّع ثابت هم شی (وهو الحق) نو حمل دے په جواز باندے، یعنے دواړه طریقے جائز دی که نوے اوبه راخلے اوکه د لاسونو نه پاتے اوبو سره د سر مسح کوی۔ مگر راجح داده چه نوے اوبه را واخلی، ځکه چه حدیث د عبد الله بن زیدؓ په روایت د عمرو بن الحارث ډیر صحیح دے، نو عمل هم په دے باندے پکار دے ۔ اودا راجحه خبره ده۔ ځکه چه روایت ثانیه د عبد الله بن زیدؓ د ابن لهیعه په روایت هم شیخ البانیؒ ورته حسن وئیلے دے، نو اوله طریقه راجحه اودویمه طریقه غیر راجح صرف جائز ده۔

**تنبیه** : صاحب المشکاة دا حدیث الباب (حدیث عبد الله بن زید) د ترمذی نه نقل کړے دے او په احادیث حسنه کښے ئے شمارلے دے، سره ددے نه چه دا حدیث په مسلم کښے هم موجود دے، خو امام ترمذیؒ ترے بعض الفاظ را نقل کړی دی، یا دا چه صاحب المشکاه ته هم دا پته ده چه دا حدیث مسلم کښے شته، لیکن په صحاح کښے ئے نه دے شمارلے، د وجے د هیرے او نسیان نه پدے وقت کښے۔

---

۲۶ – وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ ﷺ ذَكَرَ وَضُوْءَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ : وَكَانَ يَمْسَحُ الْمَاقَيْنِ. وَقَالَ : اَلْاُذُنَان مِنَ الرَّأْسِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجه وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ. وَذَكَرَا : قَالَ حَمَّادٌ : لَا أَدْرِيْ اَلْاُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ مِنْ قَوْلِ أَبِيْ أُمَامَةَ أَمْ مِنْ قَوْلِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

**ترجمه** : ابو امامه رضی الله عنه نه روایت دے چه ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس ذکر کړو او وے فرمائیل چه رسول الله ﷺ به د سترگو گوټونه هم مسح کول او فرمائیلی دی چه غوږونه په سر کښے داخل دی ـ (ابن ماجه، ابوداود، ترمذی) او أبو داود او ترمذی ذکر کړی دی چه حماد اووئیل : زه په دے نه پو هیږم چه (غوږونه په سر کښے داخل دی) داد ابو امامه خپل قول دے اوکه د رسول الله ﷺ ارشاد دے ـ

**تعارف : د أبو أمامه ﷺ :**

دده نوم صُدی بن عجلان الباهلی دے، او طیبی چه دا وئیلی دی چه راوی ددے حدیث

أبو أمامه أسعد بن سهل بن حنيف الأنصاري الأوسي دے، نو هغه خطاء شويدے ځکه همدا روايت أحمدؒ په مسانيدو د أبو أمامه صدى بن عجلان الباهلي کښے ذکرکړے دے، دغه شان عبد الغني النابلسي هم دده روايت نقل کړے دے او په کنيه باندے ئے صرف دا أبو أمامه الباهلي مشهور دے، اود اسعد سره أبو أمامه يو ځائے ذکرکيږي ۔ هغه په أبو أمامه کنيه سره نه دے مشهور ۔

**تشريح** : وَكَانَ يَمْسَحُ الْمَاقَيْنِ . : ماقين تثنيه دَ مأق ده، په فتحه د ميم او سکون دَ همزه سره ۔ ياپه الف سره ۔ په دے کښے مشهور لغت مُوق دے، دا هغه طرفونو د سترګو ته وائي چه پوزے او غوږ ته نزدے دي، يعنې د سترګو قنجونه، او ددے مسح کول مستحب دي، ځکه په دے کښے کله چخي انختي وي نو اوبه منع کړي د سترګو نه ۔ د عبد الله ابنِ عمر رضي الله عنهما نه نقل دي چه ده به سترګے هم وينځلے، تردے چه ددے په وجه ئے سترګے ضعيفے شوے ۔ خو دا دده اجتهاد دے ۔باقي تشريح ددے حديث مخکښے تيره شويده ۔ اودرجة الحديث هم مخکښے ذکر شويده چه مرفوع حديث دے، مدرج نه دے ۔ صحيح حديث دے اويا حسن درجه کښے دے ۔ فتذکره ۔اودا حديث په روايت د أبو هريرةؓ او أبو موسىٰ او ابن عمر او عائشه او أنس – رضي الله عنهم – سره هم نقل دے ۔
انظر التلخيص (١/٣٣) ونصب الراية (١/٢٠) والصحيحة رقم (٣٦).

---

٢٧ – وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ﷺ قَالَ : جَآءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ يَسْأَلُهُ عَنِ الْوُضُوْءِ، فَأَرَاهُ ثَلَاثاً ثَلَاثاً، ثُمَّ قَالَ : هٰكَذَا الْوُضُوْءُ، فَمَنْ زَادَ عَلٰى هٰذَا، فَقَدْ أَسَاءَ وَتَعَدّٰى وَظَلَمَ). رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه، وَرَوَى أَبُوْدَاوُدَ مَعْنَاهُ.

---

**ترجمه** : عمرو بن شعيب د خپل پلار په واسطه سره د خپل نيکه نه روايت کوي چه ده اوفرمائيل : يو بانده چي د رسول الله ﷺ په خدمت کښے حاضر شو او د هغه نه ئے د اودس باره کښے تپوس اوکړو ۔ رسول الله ﷺ ورته د اوداسه اندامونه درے درے ځل

وینځل اوخودل، بیا ئے اوفرمائیل : اودس داسے وی، نو چا چه په دے باندے زیادت اوکړو (یعنے درے ځلو نه ئے زیات اندامونه اووینځل) نو بیشکه چه ده بد کار اوکړو او زیاتے او ظلم ئے اوکړو ـ (نسائی، ابن ماجه)، او ابوداود هم ددے مطلب حدیث روایت کړے دے ـ

**عمرو** بن شعیب عن أبیه عن جده : عن أبیه نه مراد شعیب دے، اوجده نه مراد د شعیب نیکه (عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما) دے ـ

**تشریح** : فَأَرَاهُ ثَلَاثاً ثَلَاثاً : دا تثلیث په ما سوا د مسح الرأس کښے مراد دے ـ ځکه چه په دے حدیث کښے راغلی دی چه مسح ئے یو ځل اوکړه، لکه دا په روایت د سعید بن منصور کښے حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کښے ذکر کړیدے ـ

فَقَدْ أَسَاءَ وَتَعَدّٰی وَظَلَمَ : یعنے دے شخص بدی اوکړه چه د آدابِ شرعیه ؤ لحاظ ئے اونه کړو، د شریعت دا عمل ورته ناقص ښکاره شو نو ځکه ئے زیادت اوکړو ـ

او تَعَدّٰی : معنی داده چه زیادت ئے اوکړو په حدودو شرعیو باندے، رسول الله ﷺ د وینځلو حد درے ځل مقرر کړے دے اوده پرے زیادت اوکړو ـ فتجاوز من السنة ـ

وَظَلَمَ : معنیٰ دا چه ځان سره ئے زیاتے اوکړو، چه ځان ئے ستړے کړو په زیادت سره او ثواب ورته ملاؤ نشو ـ دارنګه زیاتے ئے اوکړو په بے ځایه اوبو استعمالولو او په مخالفت د سنت رسول الله ﷺ سره ـ

**تنبیه** : صاحب الهدایه (۲۰/۱) وائی : ددرے کرته وینځلو نه زیات هم جواز لری د احتیاط دپاره چه ځلور یا پنځه کرتے اوبه واچوی ـ بیا ورته دا حدیث هم معلوم دے نو ددے نه ئے جواب کړے دے ـ لیکن طریقه داده چه یو سړے یو شئ ته جائز وائی نو اول دهغے دپاره حدیث دلیل کښے پیش کړی، بیا د بل روایت نه جواب اوکړی، کله چه تعارض ورته ښکاری ـ اوهرکله چه په جواز باندے هیڅ دلیل پیش نه کړی اود حدیث نه جواب کوی نو دا ددغه حدیث ورانول وی ـ

نو دلته دا کار د صاحب هدایه خطائی ده په اجتهاد کښے خطاء شویدے، جواب ئے داسے کړیدے چه (هذا الوعید محمول علی عدم رؤیته سنة)، یعنے په حدیث کښے چه ددرے ځلو نه زیاتو وینځلو باندے کوم وعید راغلے دے دا د هغه چا دپاره دے چه درے ځله وینځل

مسنون نه گنړی او زیادت کوی۔ اوکله چه انسان د قطع وسوسے او احتیاط د وجے نه د درے ځلو نه زیات وینځل کوی نو دا وعید ورته شامل نه دے ۔ لیکن حدیث په دے باب کښے مطلق راغلے دے، چه په هره وجه ددرے ځلو نه زیادت کوی نو دا وعید به ورته شامل وی۔ بلکه احتیاط بعینه په حدیث باندے په عمل کولو کښے دے۔ چه درے ځله اندامونه وینځه، اوکه ددے نه زیادت کوے نو دا خو وسوسه جوړه شوه، ځکه چه شیطان د اوداسه په شروع کښے انسان ته وسوسه اچوی ۔ د نبی ﷺ په خبره کښے احتیاط دے، او دغه مذکوره خبره زیادت او غلو فی الدین او اعتداء فی الطهور ده ۔ او دا رد حافظ په فتح الباری (١٨٩/١) کښے هم کړیدے۔ دارنگه بعض فقهاء احناف هم درے ځله وینځلو نه زیادت بدعت گنړی لکه رد المحتار (٨١/١) کښې تتارخانیه عن الناطفی نه نقل کوی چه (لوزاد علی الثلاثة فهو بدعة).

**فائده** : دا حدیث دلیل دے په دے چه درے ځلو نه زیات اندام وینځل ناجائز دی ۔ اودا اعتداء فی الطهور ده، کوم چه نبی کریم ﷺ د قیامت د علاماتو نه شمارلے ده، چه داسے قوم به په دے امت کښے پیدا شی چه په اوداسه او دعاء کښے به د حد نه ورتیریږی ۔لکه روستو حدیث راروان دے۔

**تنبیه** : د أبو داود په روایت کښے ددے حدیث سره دا الفاظ دی (فمن زاد علی هذا او نقص) نو بعضے علماؤ باندے دا مشکله شویده چه د درے ځلو نه کم وینځل خو جائز دی، د رسول الله ﷺ نه خو یو ځل دوه ځله اندامونه وینځل هم نقل دی ۔ نو بیا د نقص څه معنیٰ ده ؟ نو بیائے توجیهات کړی دی ۔ کما فی النیل (٢١٦/١) ۔یو توجیه دا کوی چه :

١ - د نقص نه مراد دادے چه اندامونه پوره اونه وینځی۔

٢- یا د نقص نه روستو تقدیر دے، یعنی نقص من واحده یعنی د یو ځل نه ئے کم اودس اوکړی۔ کما ورد فی حدیث مرسل رجاله ثقات کما قال الحافظ فی فتح الباری (١٨٨/١).

لیکن أصح داده چه دا روایت حسن درجه کښے دے او د (اونقص) لفظ زیاتی کول په کښے منکر دی۔ شیخ البانیؒ په صحیح أبی داود (٢٨/١) رقم (١٣٥) کښے فرمائی : چه دا

لفظ د (اونقص) په کښې شاذ دے، باقي روايت حسن صحيح دے۔ وكذا في فتاوى الدين الخالص (٤٩١/١)۔ وقال الحافظ في الفتح : صحّحه – أي هذا الحديث – ابن خزيمة وغيره۔ وقال في التلخيص : هذا الحديث روى من طرق صحيحة۔
نو ثابته شوه چه دا روايت صحيح دے، سيوا د لفظ د (أو نقص) نه ۔

---

٢٨ – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ ﷺ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَهُ يَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الْأَبْيَضَ عَنْ يَمِيْنِ الْجَنَّةِ قَالَ : أَيْ بُنَيَّ ! سَلِ اللّٰهَ الْجَنَّةَ وَتَعَوَّذْ بِهٖ مِنَ النَّارِ، فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ : إِنَّهُ سَيَكُوْنُ فِيْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ قَوْمٌ يَعْتَدُوْنَ فِي الطُّهُوْرِ وَالدُّعَآءِ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْ دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : عبد الله بن مغفل ؓ نه روايت دے چه ده د خپل ځوئے نه واريدل چه دا دعاء ئے کوله : اے الله ! زه تانه د جنت ښی طرفته سپينه بنګله غوارم۔ عبد الله بن مغفل ؓ ورته اوفرمائيل : اے ځويه ! د الله نه د جنت سوال کوه او په هغه سره د اوره پناه غواره، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی چه فرمائيل ئے : بيشکه چه په دے امت کښے به څه داسے خلق پيدا شی چه په اوداسه او دعاء کښے به د حد نه تجاوز کوی ۔ (احمد، ابوداود، ابن ماجه)۔

**تشريح** : أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَهُ : ددے ابن نه مراد يا يزيد بن عبد الله بن مغفل دے، دکوم نه چه أبو نعامة الحنفی روايت کوی ۔ په ترك د جهر بالبسملة کښے کما في الترمذی وغيره ۔ او بناء په دے باندے يزيد مجهول الحال راوی دے۔

٢ – او يا بل ځوئے د عبد الله دے، چه نوم ئے نه دے ذکر شوے۔ لکه دا لاعلمی صاحب المرعاه (١١٨/١) هم ښکاره کړيده۔

أَيْ بُنَيَّ ! سَلِ اللّٰهَ الْجَنَّةَ : **سوال** : عبد الله بن مغفل ؓ ولے خپل ځوئے د داسے قسم دعاء نه منع کرو، او دا ئے د اعتداء في الدعاء نه اوشمارلو ؟۔

**جواب** : ددے څو وجوهات دی : ١– اوله وجه داده چه عبد الله بن مغفل ؓ خپل ځوئے

پيژندلو چه د عمل په لحاظ هغه درجې ته نشي رسيدلے کومه چه غواړي، چه هغه د انبياؤ – عليهم السلام – سره مناسب ده۔ نو په دے دعاء کښے دده ځوئے د أدب نه تجاوز اوکړو ۔او ځان ته ئے د کمال په نظر اوکتل ۔ نو ځکه ئے پرے داسے انکار اوکړو ۔

٢ – دويمه وجه داده : چه ځوئے معين شے طلب کړو، نو کيدے شي چه دا بل چا دپاره مقرر وي، نو داسے دعاء مناسب نه ده، چه قيدونه په کښے لګوي۔

٣ – يا وجه داده : چه دده په دعاء کښے اعتداء نه وه، ليکن د سد باب الاعتداء نه دے، ځکه چه کله داسے دعاء غواړي نو کيدے شي چه صبا له داسے دعاء طلب کړي چه هغے کښے اعتداء وي۔ نو ځکه ئے تنبيه ورکړه ۔

٤ – يا دا چه : عبد الله ورته تنبيه ورکړه، مقصد ئے داوو چه ته کوم قيدونو سره دعاء غواړے دا غلط او د عبوديت د شان نه خلاف دي، ځکه په دے کښے يو طرفته په الله باندے تحکم دے، اوبل طرفته په جنت کښے يو خاص صفت يا خاص ځائے طلب کول دا بے ځايه کار دے، بلکه طريقه داده چه تاسو صرف د الله نه جنت غواړئ، او دوزخ نه پناه غواړئ، بيا د الله خوښه ده چه په جنت کښے کومه درجه او مرتبه درکوي۔ دا وجه ده چه نبي عليه السلام هم فرمائي : د الله نه فردوس أعلیٰ غواړئ (يعنے خاص قيدونه مه لګوئ بلکه اجمالا سوال کوئ)۔

فِي الطُّهُوْرِ : زيادت په اوداسه کښے دادے چه درے کرتو نه زيات اندامونه اووينځي، يا په اوبو کښے زيادت اوکړي، ډيرے اوبه استعمال کړي۔ يا په اندامونو وينځلو کښے داسے مبالغه اوکړے شي چه هغے نه وهم او وسوسه پيدا شي ۔

بيا که په اوداسه کښے وي که په غسل کښے اوکه په نجاست زائل کولو کښے وي ۔ لکه چه دا کار نن صبا عام خلق په مساجدو کښے کوي، خصوصًا وسوسے والا خلق۔

وَالدُّعَآءِ : اعتداء او د حد نه تجاوز کول په دعاء کښے دادي : چه نا جائز ځيزونه غواړي، تيز آوازونه او چغے په کښے وهي، يا دَ أنبياؤ درجے او کورونه غواړي، يا په دعاء کښے په تکلف سره سجع او وزنونه جوړوي۔ د دعاء دپاره د ځانه وختونه مقرروي، کوم چه شريعت نه دي مقرر کړي، لکه د جنازے نه روستو دعاء کول، يا د فرضو يا سنتو نه پس په

هيئت اجتماعي سره دعاء کول، اودا لازم گنړل۔ دا ټول اعتداء ده په دعاء کښې ۔

دارنگه په **ذوات** فاضله ؤ باندې توسل کول، يا په **جاه** اوحرمت او طفيل د فلان يا نبي وغيره سره کول۔ دا ټول په اعتداء کښې داخل دي۔ دارنگه داسې څيزونه غواړي چه هغه عادتا ممکن نه وي۔ لکه په هوا ألوتل، د اوبو دپاسه تلل وغيره۔ دا د رسول الله ﷺ پيشن گوئى ده چه رشتينې شويده په دې امت باندې۔ څومره مبتدعين او باطل پرست خلق په دعاء بعد الفرض والسنن او بعد الجنازه او په توسل بالذوات الفاضله باندې جگړې او مناظرې کوي، اوددې ثابتولو دپاره دروغجن دلائل وائي۔ يقينا چه دا خبره په همداسې خلقو باندې صادقه شويده ۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح، قال الشيخ الألباني وصححه جماعة وأعل بما لا يقدح كما بينته في صحيح ابي داود رقم (٨٦) هذا، و ليس عند ابن ماجة الاعتداء في الطهور في تعليق المشكاة : ١/١٣١، رقم : ٤١٨۔

---

**٢٩ – وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ : اِنَّ لِلْوُضُوْءِ شَيْطَانًا يُقَالُ لَهُ الْوَلَهَانُ، فَاتَّقُوْا وَسْوَاسَ الْمَاءِ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَلَيْسَ اِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيْثِ، لِأَنَّا لَا نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ غَيْرَ خَارِجَةَ وَهُوَ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا.**

**ترجمه** : أبيّ بن كعب ؓ نه روايت دې چه نبي ﷺ ارشاد اوفرمايه : بيشکه د اوداسه يو شيطان دې چه هغه ته ولهان وئيلې کيږي نو د اوبو د وسوسې نه بچ اوسئ۔ (ترمذي، ابن ماجه) او امام ترمذيؒ فرمائيلي دي : دا حديث غريب دې او د محدثينو په نزد ددې اسناد قوي نه دې ځکه چه مونږ ته نه ده معلومه چه خارجه (راوي) نه علاوه بل چا ددې سند بيان کړې وي، او خارجه زمونږ محدثينو په نزد قوي نه دې۔

**تشريح** : اَلْوَلَهَانُ : بروزن فعلان، د وله نه مشتق دې صفت مشبهه صيغه ده، وله مصدر دې، په معنیٰ د حيرانتيا او ليونتوب سره دې، چه د سخت محبت او عشق نه پيدا

کیږی، نو شیطان ته ولهان ځکه وائی چه دا هم ډیر حرص لری په حیرانولو د انسان کښې او په وسوسه اچولو کښې انسان ته۔ تردې چه انسان حیران کړی چه زما اندام ته به اوبه رسیدلې وی اوکه نه ۔ یا حیران وی چه څو کرته اوبه مې اچولی دی ۔ نو بس لګیا وی بار بار اوبه اچوی تردې چه د انسان نه د جماعت مونځ فوت کړی۔

فَاتَّقُوْا وَسْوَاسَ الْمَاءِ : وسواس یا په کسرې د واو سره دې نو بیا مصدر دې پشان د زلزال رباعی مجرد دې۔ ۱ – نو معنیٰ ئې داده چه تاسو ځان اوساتئ د هغه وسوسې نه چه دهغې په سبب ډیرې اوبه تویې کولې شي په اوداسه او استنجاء کښې ۔

۲ – یا معنیٰ داده : چه په پاکوالی او نجاست د اوبو کښې شکونه مه کوئ، تر څو چه علامات د نجاست نه وی ښکاره شوی، مثلاً چه انسان دا شك کوی چه زما د اندامونو نه په لوټه کښې څاڅکی پریوتل نو اوبه به نجسې شوې وی ۔

۲ – یا وسواس په فتح دَ واؤ سره دې، نو بیا دا اسم دې، او مراد ترینه شیطان دې، یعنې ځان اوساتئ ددې شیطان نه چه په اوبو کښې درته وسوسې اچوی۔

صاحب المرعاة (۱۱۹/۱) کښې دعلامه ابن الملكؒ نه یوه بله معنیٰ هم نقل کړیده چه د وسواس الماء نه مراد وسواس الولهان دې، نو په ځائې د ضمیر ددې باندې الماء لفظ وضع شو دپاره د مبالغه ددې شیطان په کمال وسوسه کښې د اوبو په باره کښې او دپاره د شدتِ ملازمت د شیطان د اوبو سره، نو ګویاکه دا اوبه بعینه شیطان دې ۔

**فائده** : دا حدیث هم دلیل دې په دې خبره چه په اوداسه کښې په اوبو کښې اسراف کول حرام دی، کما مر فی حدیث عبد الله بن مغفل ۔

## فائده عجیبه : د شیطان د وسوسې څو طریقې دی :

۱ – اوله وسوسه د شیطان داده چه انسان په اوداسه کښې شکی کوی۔ چه دا ځائې دې اوچ پاتې دې وغیره ۔

۲ – بیا دویم نمبر په مانځه کښې وسوسه اچوی چه درې رکعته دې اوکړل یا څلور، او فلانې لفظ درنه پاتې شو۔

۳ - ددے نه چه خلاص شي بيا ورته طلاق متعلق وسوسے اچوی چه ستا ښځه طلاقه شوے ده ځکه کيدے شي چه فلانے لفظ ستا د خولے نه وتلے وی ـ ددے نه چه هم خلاص شي نو :

٤ - بيا د ايمان، کفر، قرآن، الله باره کښے وسوسے اچوی ـ

٥ - بيا د قتل د خپل ځان باره کښے وسوسے اچوی ـ

بيا شيطان په دوه څيزونو خوشحاليږی، يو په افراط او بل په تفريط، لکه يو شے فرض نه وی او انسان ئے فرض اوګنړی ، يا يو شے فرض وی او انسان ئے مستحب اوګنړی۔ افراط دا هم دے چه د دين يو امام دَ ألوهيت درجے ته اورسوی۔

مثلا تنظيم الأشتات (٤٦/١) کښے يو حنفی د امام أبو حنيفةؒ په باره کښے وائی : امام ابو حنيفةؒ د آسمان او زمکے په سياست باندے پوهيدلو ـ دا غلو فی الصالحين هم افراط او حرام کار دے، خو په اکثرو مقلدينو کښے دا مرض زيات دے چه خپل مشران او علماء د پيغمبر درجے ته رسوی او په ځان نه پوهيږی دَ تقليد په جذبه کښے وی ـ او تفريط دا هم دے چه څوك يو عالم ته کنځل اوکړی يا يو امام سره دشمنی اوکړی نو دا تفريط دے۔ ليکن دا خبره دے واضحه وی چه د يو امام خبره په دليل سره رد کول دا بے أدبی او تفريط نه دے، بلکه دا بعينه دين دے، اود سلفوؒ علماؤ نه همدا شان طريقه را روانه ده، چه هغویٔ به د حق په مقابله کښے د هيچا پروا نه کوله، که هرڅوك به وو خو چه خبره به ئے د حق نه خلاف وه نو هغویٔ به اکرام او احترام سره دَ هغه خبره رد کوله ـ

**درجة الحديث** : رواه الترمذی ـ دا حديث په اعتبار د سند سره ضعيف دے، امام ترمذیؒ فرمائی : دا حديث غريب دے او اسناد ئے ضعيف دے ځکه په دے سند کښے خارجه بن مصعب ابو الحجاج السرخسی راوی دے، او هغه ضعيف دے، ابن المبارك، ابن معين، احمد، وکيع، نسائی دارقطنی، ابن حبان - رحمهم الله - وغيرهم ورته ضعيف وئيلی دی۔

حافظؒ فرمائی : متروك و كان يدلس عن الكذابين ـ ليکن ددے حديث مؤيدات موجود دی لکه مخکښے حديث د عبد الله بن مغفلؓ تير شو، اود عمرو بن شعيب روايت هم تير

شو، او روستـو پـه فصل ثالث كښې د عبد الله بن عمرو بن عاصؓ په روايت د أحمد او ابن ماجـه را روان دے، نـو دا دليل دے چه ددے حديث دپاره اصل شته دے په دين كښے۔ او ددے صحت د نورو ځايونو د دين نه معلوميږي۔

---

۳۰ – وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ ﷺ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ إِذَا تَوَضَّأَ مَسَحَ وَجْهَهُ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : معاذ بن جبلؓ نه روايت دے دا فرمائي : ما رسول الله ﷺ په اودس كولو اوليدلو چه خپل مخ ئے د جامے په يوے پيڅكى سره اوچ كړو - (ترمذى)۔

**تشريح** :

**مسئله** : د اوداسه او غسل نه روستو **اندامونه اوچول** پـه كومه درجه كښے دى ؟ څه حكم لرى ؟۔ نو په دے كښے اختلاف دے په څو اقوالو سره :

۱ - **اول قول** دادے : چـه د توليه وغيره استعمالول مكروه دى، د نبى كريم ﷺ نه نه دى نـقـل۔ اودا قول د ابن عمرؓ او ابن أبى ليلىٰ دے (بقول النوويؒ)، او سعيد بن المسيبؒ او امام زهريؒ دے۔

د دوئ **دليل** دادے چه په بخارى (۱/۹۱، ۱/۴۰) باب من جلس فى المسجد ينتظر الصلاة كښے حديث د ميمونهؓ دے دا فرمائي : رسول الله ﷺ ته (داندامونو اوچولو دپاره) كپړه پيش كړے شوه نو رسول الله ﷺ رد كړه - كـمـا يـأتى فـى المشكاة، باب الغسل (۱/۴۹) فناولته ثوبا فلم يأخذه فانطلق وهو ينفض يديه۔

بـعـض عـلـماء لكه حافظ ابن حجرؒ دا جواب كوى چه ممكنه ده چه د عذر په بناء نبى ﷺ نـه وى اخستى چـه مثلا كپړه كښے وريښم استعمال وويا جلتى وه، ليكن دا جواب مناسب نه دے ځكه كه عذر وے نو بيان شوے به وے۔

۲ **بل** دليـل دا فـرمائي : چه په دے باره كښے چه څومره احاديث راغلى دى هغه ټول ضعيف دى، امام ترمذىؒ فرمائي : ولا يصح فى هذا الباب شئ عن النبى ﷺ۔ او پـه صحيحينو كښے نه دى نقل - دارنګه المنار المنيف كښے هم دى۔

دارنګه زاد المعاد (۶۸/۱) کښې حافظ ابن القيمؒ فرمائي : (ولم يكن رسول الله ﷺ يعتاد تنشيف أعضائه بعد الوضوء ولا صح عنه في ذلك حديث ألبتة، بل الذى صح عنه خلافه)۔ يعنې د رسول الله ﷺ د اوداسه نه روستو اندامونه اوچول عادت نه وو او نه دهغه نه په هيڅ صحيح حديث کښې ثابته ده بلکه د هغه نه ددې په خلاف ( نه اوچول) په صحيح سند ثابت دې ۔ ( يعنې اکثرئې اوچول ندی کړی)۔

۳ – امام ترمذیؒ د کراهت قول دپاره يو دليل دا هم ذکر کړې چه (لأن الوضوء يوزن)، يعنې د اوداسه اوبه تللې کيږی۔

۲ – **قول ثانی** : دادې چه دا عمل مباح او جائز دې بغير د کراهت نه، اودا قول د امام مالكؒ، احمدؒ، ثوریؒ، اسحقؒ، امام شافعیؒ او احنافو دې، كما في قاضيخان ۔ او منية المصلی کښې ورته مستحب وئيلی دی، ليکن هغه قول محققينو رد کړې دې او مفتیٰ به قول د قاضيخانؒ دې ۔ درس ترمذی (۲۶۱/۱)۔

**دليل** : په دې باره کښې ډير احاديث نقل دی د مختلفو صحابوؓ نه، كما أوردها في التحفة (۵۷/۱) اګرچه ضعيف هم په کښې شته مګر صحيح سندونو والا روايات هم شته او عمل د صحابوؓ په کښې هم راغلې دې۔ لکه ابن المنذرؒ نه صاحب د تحفة الأحوذی (۵۷/۱) نقل کړيدی :

قال : أخذ المنديل بعد الوضوء عثمان، والحسن بن على وأنس، وبشير بن أبى مسعود – رضى الله عنهم– ورخص فيه الحسن وابن سيرين وعلقمة والأسود ومسروق والضحاك آه۔

اودا حديث الباب اګرچه ضعيف دې ځکه په دې کښې دوه ضعيف راويان دی (۱) رشدين بن سعد (۲) عبد الرحمن بن زياد بن أنعم الأفريقى، دواړو ته امام ترمذیؒ ضعيف وئيلی دی (يُضَعَّفَان في الحديث)۔ ليکن :

۲ – دويم حديث : د عائشه رضى الله عنها قول دې لکه کتاب کښې راروان دې، هغه داچه عائشه رضى الله عنها فرمائي :

---

۳۱ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَتْ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ خِرْقَةٌ يُنَشِّفُ بِهَا أَعْضَائَهُ

بَعْدَ الْوُضُوْءِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: د رسول الله ﷺ دپاره یوه کپړه وه چه په هغې سره به ئې داودس کولو نه پس خپل اندامونه اوچول۔ (ترمذی)۔

**تشریح** : امام ترمذیؒ دے حدیث ته اګرچه ضعیف وئیلے دے د وجے د أبو معاذ راوی نه، لیکن صحیح خبره داده چه أحمد شاکر په شرح د ترمذی کښے دے حدیث ته صحیح وئیلی دی، هغه فرمائی : ابو معاذ دوه کسان دی (۱) یو أبو معاذ فضیل بن میسره دے اودا قوی راوی دے (۲) او دویم أبو معاذ سلیمان بن أرقم دے، اودا ضعیف دے۔ او په دے روایت کښے ابو معاذ فضیل بن میسره دے کما قال الحاکم فی روایته۔ نو دا روایت صحیح دے، لیکن شیخ البانیؒ په سلسلة الأحادیث الصحیحة (۱۳۳/۵) کښے فرمائی :

دا حدیث زما په نیز حسن دے، اوصحیح نه دے۔ وجه داده چه په دے روایت کښے ابو معاذ سلیمان بن أرقم راوی دے او دا خو ضعیف او متروك راوی دے۔ او دا خبره امام بیهقی هم کړیده۔ او دے دپاره ئے دا دلیل ذکر کړیدے چه دا څکه سلیمان بن أرقم دے چه علماؤ دده په ترجمه کښے لیکلی دی چه دا د زهری نه نقل کوی، او په دے سند کښے هم د زهری نه ئے نقل کړے دے، نو دا قرینه ده ددے خبرے چه دا سلیمان بن أرقم دے۔ بیا وائی : ددے حدیث شواهد موجود دی، لکه روایت د رشدین بن سعد شو، چه ددے په راویانو کښے ضعف من قبیل الحفظ دے، او په ذات کښے ئے تهمت نشته، نو د دوئ په حدیث باندے استدلال او استشهاد کیدے شی ۔نو دا حدیث په مجموعه طرقو او شواهدو سره زما (البانیؒ) په نیز حسن درجه کښے دے، نو دا حدیث د شیخ البانیؒ په نیز حسن، اود أحمد شاکر په نیز صحیح دے، او وجه د اختلاف ابو معاذ راوی دے، که دا فضیل وی نو صحیح روایت دے، اوکه سلیمان بن أرقم شی نو حسن روایت دے ۔

**خلاصه** : د مسئلے داشوه چه : دَ اودس نه پس اندامونه همیشه دپاره اوچول نه دی پکار، اوکله کله اوچول جواز لری، لکه دے خبرے ته مخکښے اشاره اوشوه په عبارت د ابن القیمؒ کښے۔ دغه شان په سنن أبی داود (۳۷/۱) کښے دی : قال الأعمش : فذکرت ذلك لابراهیم فقال : کانوا لا یرون بالمندیل بأسا، ولکن کرهوا العادة ۔

يعنې : صحابه كرامو ؓ به د اودس نه پس رومال استعمالول جائز گڼل، مگر عادت گرځول او هميشه استعمالول به ئې مكروه گڼل ـ

او د نبي عليه السلام نه عملا اوچول هم په ابن ماجه (١/٧٨) رقم (٤٦٨) كښې ثابت دي ـ عن سلمان الفارسي ان رسول الله ﷺ توضأ فقلب جبة صوف كانت عليه فمسح بها وجهه. وسنده حسن (حسنه الالباني) ـ يعنې رسول الله ﷺ د وړئ يوه چوغه (كوټ) اغوستې وه چه كله ئې اودس اوكړو نو د چوغې (په يو طرف) ئې خپل مخ مبارك اوچ كړو ـ

٢- دارنگه امام تيمي ؒ فرمائي دا حديث دليل دے چه نبي عليه السلام به اندامونه كله كله اوچول ځكه كه اندامونه ئې بالكل هميشه دپاره نه اوچولے نو عائشې ؓ به ورته ولے رومال راوړلو ـ معلوميږي چه كله رسول الله ﷺ اندامونه اوچ كړيدي ـ مرعات (٢/١٢٠) ـ

او نبي عليه السلام ددے د استعمال نهي هم نده كړے چه مه استعمالوئ خو خپله ئې هم اكثر نده استعمال كړے نو بهتره دا ده چه اوچ نكړے شي اگرچه جواز د اوچولو هم شته ـ بعضو دا فرق كړيدے چه ژمي كښې اوچوه او اوړي كښې مه اوچوه ليكن پدے باره كښې هم صريح حديث نشته صرف د دواړو حديثونو تطبيق كښې ئې دا قول كړيدے ـ والله تعالى اعلم ـ

## الفصل الثالث - دريم فصل

٣٢ - عَنْ ثَابِتِ بْنِ أَبِيْ صَفِيَّةَ قَالَ : قُلْتُ لِأَبِيْ جَعْفَرٍ - هُوَ مُحَمَّدُ بْنُ الْبَاقِرُ - حَدَّثَكَ جَابِرٌ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً، وَمَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، وَثَلٰثاً ثَلٰثاً ؟ قَالَ : نَعَمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : ثابت بن أبي صفية ؒ فرمائي : ما ابو جعفر باقر ؒ ته عرض اوكړو : آيا تاته جابر داسے حديث بيان كړے دے چه نبي ﷺ د اوداسه اندامونه يو يو ځل، دوه دوه ځل او درے درے ځل اووينځل ؟ ابو جعفر اوفرمائيل : هو ! ـ

## تعارف : د ثابت بن أبي صفيه :

دده د پلار نوم دينار دے، کنيه ئې ابو حمزه ده، د صغار التابعين نه دے، کوفي دے، ضعيف او رافضي دے، په خلافت د ابوجعفر کښې مړ شويدے۔

**مُحَمَّدُ بْنُ الْبَاقِرِ** : داد ابو جعفر نوم دے، سلسله د نسب ئې داسې ده : ابو جعفر محمد بن الباقر بن علي زين العابدين بن الحسين بن علي بن أبي طالب الهاشمي، ثقه او فاضل دے، د تابعينوّ د فقهاؤ نه حساب دے۔ اودده د أبو بکر او عمر - رضي الله عنهما - په باره کښې صحيح عقيده وه، خو شيعه گان دده نيے خبرے نه مني۔ په سنه (٥٦) کښې پيدا شوے دے، او په مدينه کښې په سنه (١١٤) هـ، يا (١١٧) هـ د (٦٤) کالو په عمر وفات شوے دے۔ او په بقيع کښې دفن شويدے۔

**الْبَاقِرِ** : باقر ورته ځکه وائي چه باقر د بَقْرٌ نه دے شلولو ته وائي، اوده هم په علم کښې فراخي او ژور والے لرلو، گوياکه علم ئې څيرلے دے۔ او دهغے بيخ ته رسيدلے دے، نو ځکه په باقر العلم سره مشهور دے۔ دده ځوئے جعفر ابو عبد الله په جعفر صادق مشهور دے۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذي وابن ماجة۔ دا حديث په اعتبار د سند سره ضعيف دے ځکه دوه راويان په کښې ضعيف دي :

١ - يو شريك بن عبد الله النخعي، اودا كثير الغلط دے.

٢ - دويم دده استاذ ثابت بن أبي صفيه۔ اودا په اتفاق د محدثينو ضعيف الحديث دے۔ ليکن ددے حديث معنیٰ ثابت ده، لکه مخکښې تير شو، حديث د ابن عباسؓ اوجابرؓ او عبد الله بن زيدؓ چه په هغے کښې يو يو کرت اودوه او درے کرته اودس د نبي کريم ﷺ ذکر شوے وو۔

---

٣٣ - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ ﷺ قَالَ : إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، وَقَالَ : هُوَ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ ).

**ترجمه**: عبد الله بن زيدؓ فرمائي : رسول الله ﷺ دوه دوه ځل اودس اوکړو (يعنے د اوداسه اندامونه دوه دوه ځله اووينځل) او وے فرمائيل : دا نور دپاسه نور دے۔

**تشريح** : هُوَ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ : ددے نه مخکښې روايت صحيح ثابت دے او دا الفاظ د

نبی ﷺ قول نه دے، بلکه داد سلفو وینا ده، اودا حدیث په هیڅ کتابونو د حدیثو کښې نه دے راغلے، کما قال المنذری فی الترغیب (۱۶۳/۱)۔ په کتاب د زرین کښې راغلے دے خو هغه هم مرفوع نه دے۔ اودا چا اخستے دے د هغه حدیث نه چه (من توضأ علی طهر کتب الله له عشر حسنات) او معنیٰ به ئے دا وی چه یو کرت اندامونه وینځلو سره فرض اداء شو اودویم کرت سره سنت اداء شو او دواړه نور دے، ددے نه مخکښې جمله صحیح ثابت ده ځکه نبی ﷺ دوه ځل اندامونه هم وینځلی دی، کما تقدم فی الحدیث المتفق علیه۔

---

۳۴ - وَعَنْ عُثْمَانَ رضي الله عنه قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ تَوَضَّأَ ثَلٰثاً ثَلٰثاً، وَقَالَ : هٰذَا وُضُوْئِیْ وَوُضُوْءُ الْأَنْبِيَاءِ قَبْلِیْ، وَوُضُوْءُ اِبْرَاهِيْمَ ). رَوَاهُمَا رَزِيْنٌ وَالنَّوَوِیُّ ضَعَّفَ الثَّانِیْ فِیْ شَرْحِ مُسْلِمٍ.

**ترجمه** : عثمان رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ د اوداسه اندامونه درے درے ځل اووینځل او بیا ئے اوفرمائیل : دا زما اودس دے او مانه مخکښې د انبیاؤ - علیهم السلام - اود ابراهیم - علیه السلام - اودس دے ۔(دا دواړه حدیثونه رزین روایت کړی دی او امام نووی ؒ په شرح دمسلم کښې دویم حدیث ته ضعیف وئیلی دے)۔

**تشریح** : په دے روایت د عثمان کښې دا جمله چه (هذا وضوئی الخ) دا هم په ضعیف سند سره نقل ده، امام نووی ؒ هم ورته ضعیف وئیلے ده، اودارنګه حافظ ابن حجر په فتح الباری (۱۸۹/۱) کښې ورته ضعیف وئیلی دی، اګرکه معنیٰ ئے صحیح ده ۔

**مسئله** : پخوانو امتونو باندے اودس وو که نه ؟ نو دا مسئله کتاب الطهارة کښې تیره شویده ۔ هلته ئے اوګوره۔ (۶۱۰/۱)۔

---

۳۵ - وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ وَكَانَ أَحَدُنَا يَكْفِيْهِ الْوُضُوْءُ مَا لَمْ يُحْدِثْ . رَوَاهُ الدَّارِمِیُّ.

**ترجمه** : انس ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به د هر مانځه دپاره اودس کولو، او مونږ

کښې د يـو کـس دپاره تر هغه وخته پورې يو اودس کافي دے څو پورې چه يې اودسه شوې نه وي ـ (دارمی)۔

**تشريح** : يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلاةٍ : دا خو يا محمول دے په استحباب باندے، يعنى هر فـرض مـانځه دپاره اودس كول مستحب دی، کله چه اودس وی، ليكن په روايت د ترمذی کښې داسے راغلی دی (طـاهرًا او غير طاهرٍ) ، يـعـنـے كـه اودس به ئے کړے وو که نه خو هر مـانځه دپاره به ئے اودس کولو، نو دا يا د نبی کريم ﷺ خصوصيت او عادت وو، او په هغه بانـدے فـرض وو، بيا په حديث د سويـد بـن الـنعمان باندے - کوم چه په باب ما يوجب الـوضـوء کښے تير شو - د خيبر په غزا کښے منسوخ شو۔ روستو راروان حديث هم په دے دليـل دے چـه پـه نبی ﷺ بانـدے هـر مـانځه ته اودس کول گران شو نو دا حکم ترے الله تـعـالـیٰ لـرے کـړو الـخ۔ او زمـونږ دپاره اجازه ده په (وكان أحدنا) لفظ سره يعنى يو اودس زمونږ د ډيرو مونځو دپاره کافی دے۔

يا داچـه رسـول الـلـه ﷺ بـانـدے هم واجب او فرض نه وو، کله چه زوړ اودس وی، خو دوباره اودس کـول صرف مستحب وو، او په عزيمت باندے ئے عمل کولو۔ بيائے دا گمان اوکـړو چـه هسے نـه خـلـق ئے واجب اونه گنړی نو د بيان د جواز په طورئے پريخودلو۔ او دا قول حافظ عسقلانیؒ راجح کړے دے۔ اوددے خبرے دليل هغه حديث د بريدةؓ دے کوم چه په (بـاب مـا يوجب الوضوء) کښے تيـر شـو، چـه رسـول الله ﷺ په فتح د مکه کښے گنړ مـونـځـونـه په يو اوداسه سره اوکړل، او عمر فاروق رضی الله عنه ترے تپوس اوکړو، هغه جواب ورکړو چه (عمدا صنعته ) أی لبيان الجواز۔ يعنی قصدا د جواز دپاره مے دا کار اوکړو

**درجة الـحـديـث** : رواه الـدارمـی (۱/۱۹۸) وعـزو الـمـصـنـف الـيـه فـقـط فـيـه قصور فـالـحـديـث عـنـد الستة الا مسلما و كذلك اخرجه احمد والطيالسی اخرجه ابوداود (۱۷۱) والترمذی (٦١) وابن ماجة (۵۰۹) باسناد صحيح۔

---

٣٦ – وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيٰى بْنِ حِبَّانَ قَالَ : قُلْتُ لِعُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا : أَرَأَيْتَ وُضُوْءَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ لِكُلِّ صَلاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ

غَيْـرَ طَاهِرٍ عَمَّنْ أَخَذَهُ ؟ فَقَالَ : حَدَّثَتْهُ أَسْمَاءُ بِنْتُ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ حَـنْـظَـلَةَ بْنِ أَبِيْ عَامِرِ الْغَسِيْلِ حَدَّثَهَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَـانَ أَمَـرَ بِالْوُضُوْءِ لِكُلِّ صَلاةٍ، طَـاهِـرًا كَـانَ أَوْغَيْـرَ طَـاهِـرٍ، فَـلَـمَّـا شَقَّ ذٰلِكَ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ أُمِرَ بِـالسِّـوَاكِ عِـنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَوُضِعَ عَنْهُ الْوُضُوْءُ، إِلَّا مِنْ حَدَثٍ. قَالَ : فَكَانَ عَبْدُ اللهِ يَرٰى أَنَّ بِهٖ قُوَّةً عَلٰى ذٰلِكَ فَفَعَلَهُ حَتّٰى مَاتَ . رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : او محمد بن يحيى بن حبان فرمائي : ما د عبد الله بن عمر ځوى عبيد الله ته اووئيل ما ته اوښايه چه عبد الله بن عمرؓ به هر مانځه دپاره اودس كولو برابره ده كه هغه به اودس كښې وو يا بې اودسه، (نو) هغه دا عمل د چا نه حاصل كړے وو؟، عبيد الله اووئيل : چه عبد الله بن عمرؓ ته اسماء بنت زيد بن خطاب دا حديث بيان كړو چه عبد الله بن حنظله بن ابى عامر الغسيل هغے ته دا حديث بيان كړے وو چه رسول الله ﷺ ته هر مانځه دپاره د اودس كولو حكم وركړے شوے وو برابره ده كه رسول الله ﷺ به اودس كښې وو يا بے اودسه ، خو هر كله چه رسول الله ﷺ ته دا مشكله شوه نو د هر مونځ په وخت د مسواك كولو حكم ورته اوشو او د اودس حكم ترے لرے كړے شو (يعنى هرمونځ دپاره تازه اودس كول واجب پاتے نشو)۔ څو پورے چه اودس مات نشي۔ عبيد الله اوفرمائيل د عبد الله بن عمرؓ دا خيال وو چه ما كښې هر مونځ دپاره د تازه اودس كولو قوت دے نو هغه به پدے د مرګ وخته پورے عمل كولو۔ (احمدؒ)۔

## تعارف : د محمد بن يحيى بن حبان

دده كنيه أبو عبد اللـه ده، ثقه فقيه تابعي دے، واقديؒ فرمائي : ده ته به په مسجد دَ مدينه كښې يوه حلقه راجمع كيدله، او ده به فتوے وركولے، اودا ثقه او كثير الحديث دے، امام مالكؒ به ورله ډير عزت او احترام كولو، اوده تذكره به ئے كوله په ډير عبادت او زهد او فقه او علم سره۔ په مدينه كښې په سنه (۱۴۱) هـ كښې وفات شوے دے د (۷۴) كالو په عمر۔

## تعارف : د عبيد الله بن عبد الله بن عمر:

کنیه ئې أبو بکر ده، دده ورور شقیق، سالم بن عبد الله بن عمر ثقه دے اود اوساط التابعین نه دے، دا ثبت دے۔ دا د عبد الله بن عمرؓ مشر ځوئے دے، ثقه او قلیل الحدیث دے، په سنه (۱۰۵) کښې وفات شوے دے۔

**تشريح** : عَمَّنْ أَخَذَهُ ؟ : د **سوال** مطلب دادے چه عبد الله بن عمرؓ به هر مانځه دپاره اودس کولو – برابره خبره ده که اودس به ئې وو اوکه نه به وو – دا ئې د چانه اخستے دے ؟ اود **جواب** مطلب دادے چه هغه ته اسماء بنت یزیدؓ حدیث بیان کړے دے او هغې ته عبد الله بن حنظلةؓ حدیث بیان کړے دے الخ۔ یعنی نبی علیه السلام باندے هر مانځه ته اودس کول فرض وو بیا کله چه هغه ته دا کار مشکل شو نو دا حکم منسوخ شوددے په ځائے هر مانځه په وخت کښې د مسواك کولو حکم اوشو۔ لیکن عبد الله بن عمرؓ ددے حدیث نه دا اجتهاد او استنباط اوکړو چه هرمانځه دپاره اودس کول مخکښې فرض وو، بیا منسوخ شو، او استحباب ئې دهغه چا په حق کښې باقي دے چه هر مانځه دپاره اودس کولو طاقت لري ۔ اوزه هم طاقت لرم نو ځکه هر مانځه ته اودس کوم۔

الْغَسِيْل : دا صفت دے د حنظله، نه دهغه د پلار أبو عامر الفاسق ۔ ځکه أبو عامر الفاسق کافر مړ شوے دے، او غسیل الملائکه د هغه ځوئے – حنظله –دے۔ ده ته غسیل الملائکه ځکه وائی چه د غسیل معنیٰ ده : لمبولے شوے، اودا هم د شهادت نه پس ملائکو لمبولے وو، سیرت کښې راځی چه حنظلةؓ کلهٔ أحد جنگ ته روانیدو نو دے وخت کښې ئې د کور والا سره همبستری اوکړه، نو بیا ورته د غسل موقع ملاؤ نشوه، ناڅاپه ورته د وتلو آواز اوشو نو غسل ئې هیر شو۔ د عروه بن الزبیرؓ نه روایت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ د حنظلةؓ د بی بی نه تپوس اوکړو : د هغه څه حال وو (کله چه هغه د کور نه وتلو) نو څه کارئې کولو ؟ هغې ورته اووئیل : هغه جنب وو ۔ (د ناپاکئ په حالت کښې وو)، اود لمبولو په وخت کښې ما دهغه د سر یوه حصه وینځلې وه چه په دے کښې ئې دجهاد آواز واوریدو (چه رسول الله ﷺ جهاد ته لاړو) نو په دے حالت کښې هغه د کور نه اووتلو، او په غزوه احد کښې شهید شو۔ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ما ملائك اولیدل چه ده ته ئې غسل ورکولو۔ (کذا فی الاستیعاب : ۱۰۵/۲)۔

أُمِرَ بِالسِّوَاکِ: علامه طيبيؒ فرمائي : په دے کښے تنبيه ده په عظمتِ شان د مسواك باندے، ځکه چه دا د واجبو په ځائے قائم شو اونزدے ده چه په نبي ﷺ فرض شوے وے۔

فَکَانَ عَبْدُ اللهِ يَرٰى أَنَّ بِهٖ قُوَّةً عَلٰى ذٰلِکَ : عبد الله بن عمرؓ به هر مانځه دپاره تازه اودس په دے وجه کولو چه هغه دا اجتهاد اوکړو چه اګرچه وجوب منسوخ شوے دے ليکن د هغه شخص دپاره چه په دے باندے د عمل کولو طاقت لرى ددے فضيلت باقي دے۔ په دے وجه هغه په ځان کښے ليدل چه طاقت او همت ئے شته دے چه زه دا کار په ښه طريقه پوره کولے شم نو هيڅ وجه نشته چه زه ددے فضيلت اوسعادت نه محروم پاتے شم، نو هغه دا خپل معمول جوړ کړو، چه هر مانځه ته به ئے تازه اودس کولو، او ترمرګه پورے په دے باندے قائم او دائم پاتے شو۔رضى الله تعالىٰ عنه۔

**فائده** : ١ - دا دليل دے چه هر فرض مانځه ته اودس کول مستحب دى، ددے فرضيت اګرچه منسوخ شوے دے ليکن استحباب ئے اوس هم باقي دے، او منسوخ نه دے، ولے که استحباب ئے هم منسوخ شوے وے نو په منسوخ باندے عمل کول نا جائز دى۔

٢ - دوام او هميش والے په مستحب باندے ښه کار دے، حديث کښے دى (أفضل الأعمال الى الله أدومها وان قل) ۔ بهترين أعمال د الله په نيز هغه دى چه هميشه وى اګرکه کم وى۔ ليکن فرض به ئے نه ګنړى، اوکله چه ورنه پاتے شي نو ځان به ګنهګار نه ګنړى۔ نو دوام دَ مستحب او التزام د مستحب ترمينځه فرق ياد لره۔ بعضے خلق دوام د مستحب ته هم بد ګورى، دا صحيح نه دے۔ دوام هم پکار دے مګر التزام او په ځان باندے فرض ګنړل صحيح نه دى۔

**درجة الحديث** : رواه احمد (٢٢٥/٥) واسناده صحيح قال رمضان فى تحقيقه على المشكاة (١٩٧/١) وقال الالبانى سنده حسن وقد رواه ايضا ابوداود رقم (٣٨) بسند حسن۔

---

٣٧ - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ مَرَّ بِسَعْدٍ وَهُوَ

يَتَوَضَّأُ فَقَالَ : مَا هٰذَا السَّرَفُ يَا سَعْدُ ! قَالَ : اَفِي الْوُضُوْءِ سَرَفٌ ؟ قَالَ : نَعَمْ، وَإِنْ كُنْتَ عَلٰى نَهْرٍ جَارٍ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** :عبد الله بن عمرو بن العاصؓ نه روايت دے چه ( يو ځل ) رسول الله ﷺ په سعد رضى الله عنه باندے تير شو چه هغه اودس كولو ( او اودس كښے ئے اسراف كولو) دے ليدو سره رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل : اے سعدؓ دا څه اسراف ( زياتے ) دے؟. سعدؓ عرض اوكړو : آيا په اودس كښے هم (ګنے) اسراف شته. رسول الله ﷺ اوفرمائيل : هاؤ ! اګركه ته په جارى نهرباندے اودس كوے. ( احمد، ابن ماجه ).

**تشريح** : اَفِي الْوُضُوْءِ سَرَفٌ ؟ : د سعدؓ خيال دا وو چه په طاعت او عبادت كښے به اسراف نه وى، په دے وجه ئے تعجب اوكړو، دارنګه د سعد دا خيال وو چه اوبه خو څه ناياب شے نه دے او زياتے هم دى نو پدے كښے د اسراف څه معنى ده، اسراف خو به هغه شى كښے راځى چه هغه ډير نه ملاويږى او ستا په ډيرولګولو سره ختميږى نو رسول الـلـه ﷺ جواب وركړو په مبالغه سره، يعنے دا خو په طريق اولٰى سره اسراف دے،كه د نهر نه اودس كوے او د اوبو په استعمال كښے زيادت كوے هغه هم اسراف دے چه په دے كښے خولا د اسراف پته هم نه لګيږى، پاتے لا عامے اوبه، اسراف هسے د الله بدے شى.

۲ – يا داچه د اسراف نه مراد ګناه ده، چه په سبب د تجاوز د حد شرعى نه حاصله شوے ده. بيا په نهر جارى كښے اسراف داسے كيږى چه انسان بار بار په ځان ډيرے ډيرے اوبه اړوى او د شرعى حد نه زيادت كوى نو په دے كښے يو وخت او عمر ضائع كيږى.

۲ – دويم بے حاجته اوبه استعمالول دى، اودا كار د هر صحيح فطرت والا انسان په طبيعت باندے بد لګى، په دے وجه په نهر جارى كښے هم اسراف كيدے شى.

اسراف هر شئ كښے راتلے شى په ډير سبق وئيلو كښے هم شته، چه د الله عبادت ته اوزګار نشى. ډيرو خبرو كښے هم شته. ډير خوب كښے هم شته. كثرت جماع كښے هم شته. دغه شان نورو ډيرو څيزونو كښے اسراف واقع كيږى.

نو پدے حديث كښے لازمى ادب دا دے چه په اودس او غسل كښے د ضرورت نه زياتے اوبه خرچ كول نه دى پكار ځكه چه دا اسراف دے او اِنَّ اللّٰهَ لَايُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ. الله تعالى

اسراف کونکی نه خوښوی دا وجه ده چه کله انسان په اودس وغیره کښې اسراف کوی نو په مانځه کښې ئے هغه کمال نه پیدا کیږی کوم چه پکار دے۔ د اودس نقصان سبب دے د مانځه د نقصان دپاره۔ عصمنا الله من الاسراف۔

**درجة الحديث** : رواه احمد (۲/۲۲۱) وابن ماجة (٤۲٥) :

په دے روایت کښې عبد الله بن لهيعة دے او ده باره کښې ابو حاتمؒ او أبو زرعهؒ فرمائی : يكتب حديثه للاعتبار۔ حافظ ابن حجرؒ په تلخيص الحبير ص (۵۳) کښې فرمائی : اسناده ضعيف۔ او په فتح البارى (۱/۱۱۸) کښې فرمائی : باسناد لين۔ ليكن أصح داده چه دا حسن الحديث دے، په شواهدو کښې مقبول دے، اود دے حديث معنىٰ هم د دين نه ثابت ده۔ وقال الالبانى فى ضعيف ابن ماجة رقم (۹٦) سنده ضعيف وقال فى الارواء رقم (۱٤۰) ابن لهيعة سيئ الحفظ وجزم الحافظ فى التلخيص (۵۳) بضعف اسناده وكذا البوصيرى فى الزوائد ق (۲/۳۲) قال لضعف حيى بن عبد الله وعبد الله بن لهيعة ثم قال قلت : ويغنى عن هذا حديث ابى نعامة ان عبد الله بن مغفل سمع ابنه يقول : اللهم انى اسألك القصر الابيض وفى آخره : انه سيكون فى هذه الامة قوم يعتدون فى الطهور والدعاء رواه احمد وغيره باسناد صحيح كما بيناه في صحيح ابى داود رقم (۸٦)۔ نو د حديث معنى صحيح ده اګر چه سند ضعيف دے۔

---

**۳۸ – وَعَنْ أَبِیْ هُرَيْرَةَ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ وَابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِیِّ ﷺ قَالَ : ( مَنْ تَوَضَّأَ وَذَكَرَ اسْمَ اللّٰهِ فَإِنَّهُ يُطَهِّرُ جَسَدَهٗ كُلَّهٗ، وَمَنْ تَوَضَّأَ وَلَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ، لَمْ يَطْهُرْ اِلَّا مَوْضِعُ الْوُضُوْءِ ).**

**ترجمه** : ابو هريره، ابن مسعود، او ابن عمر رضى الله عنهم د نبى ﷺ نه روایت کوی : چه کوم سړی اودس اوکړو او بسم الله وئیلو سره ئے اودس شروع کړو نو هغه خپل تمام بدن ( د ګناهونو نه ) پاك کړو او چا چه اودس اوکړو او د الله تعالى نوم ئے وانخستلو ( بسم الله ئے او نه وئیله ) نو هغه صرف د اوداسه ځایونه پاك کړل۔

**تشريح** : مَنْ تَوَضَّأَ وَذَكَرَ : يعنے که د اودس په ابتداء کښې بسم الله اووئیلے شی

نو پدې سره به ټول بدن د ګناهونو نه پاك شي او كه بسم الله اونه وئيلے شي نو صرف د هغه خاص مواضعو ګناهونه به لرے كړے شي۔

فَاِنَّهٗ يَطْهُرُ : دا مبني للفاعل دے او ضمير په كښے راجع دے اودس كونكي ته يعنے ده د الله نوم يادولو سره خپل ټول بدن پاك كړو۔ دا حديث دليل دے د هغه چا دپاره چه قائل دي په عدم وجوب د تسميه باندے په ابتداء د اوداسه كښے ځكه چه دلته د بسم الله فضيلت ذكر دے او كه بسم الله او نه وئيلے شي نو بيا هم اودس صحيح دے خو زيات فضيلت به ورته نه حاصليږي ليكن دا به هله صلاحيت د دليل لري چه حديث صحيح ثابت شي ليكن حديث ضعيف جدا دے قابل د استدلال نه دے۔ نو اصح دا ده چه بسم الله وئيل په ابتداء د اوداسه كښے واجب دي بغير ددے نه اودس نه كيږي۔ كما مر تفصيل المسئلة في هذا الباب في حديث سعيد بن زيد (لا وضوء لمن لم يذكر اسم الله) وسنده حسن فليراجع۔

**درجة الحديث** : ددے حديث درے سندونه دي او درے واړه ضعيف جدا دي۔

۱ – يو په روايت د أبو هريرةؓ سره، اودا هم ضعيف جدا دے، په دے كښے مرداس بن محمد بن عبد الله بن أبان عن أبيه دے، او مرداس اوپلار ئے، دواړه ضعيف دي۔

۲ – دويم په روايت د ابن مسعودؓ سره، داهم ضعيف جدا دے، په دے كښے يحيىٰ بن هشام السمسار، متروك راوي دے۔ دا دواړه روايتونه دارقطنيؒ نقل كړي دي۔

۳ – دريم روايت ابن ماجه نقل كړے دے، په روايت د ابن عمرؓ سره. اودا روايت هم ضعيف جدا دے، په دے كښے أبو بكر الداهري عبد الله بن الحكم دے اودامتروك او منسوب الى الوضع دے۔

---

۳۹ – وَعَنْ أَبِيْ رَافِعٍ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا تَوَضَّأَ وُضُوْءَ الصَّلَاةِ حَرَّكَ خَاتَمَهٗ فِيْ اِصْبَعِهٖ. رَوَاهُمَا الدَّارِقُطْنِيُّ وَرَوَى ابْنُ مَاجَه الْاَخِيْرَ.

**ترجمه** : ابورافع رضي الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ به چه كله د مانځه دپاره اودس كولو نو خپله ګوته كښے به ئے ګوتمه اوخوزوله۔ دا دواړه حديثونه دارقطني روايت

كړيدي او ابن ماجه صرف دويم حديث، نقل كړيدے۔

**تشريح** : مسئله دا ده چه كه گوتمه سسته وي او ددے خبرے گمان وي چه د اودس په وخت كښے اوبه د گوتمے لاندے ته رسي نو پدے صورت كښے گوتمه خوزول سنت دي ځكه د اوداسه په اندامونو كښے استيعاب فرض دے او گوتمه خوزول پكښ سنت شو او كه گوتمه تنگه وي او دا يقين وي چه د گوتمے خوزولو نه بغير د هغے لاندے اوبه نه رسي نو بيا گوتمه خوزول واجب دي چه اوبه د هغے لاندے ته اورسي، دے دپاره چه څه ځائے اوچ پاتے نشي۔ ( ملا علي القاري)۔ ٢- دارنگه د گوتمے خوزول ځكه مشروع شو چه د گوتمے نه لاندے خيري صفا شي۔ او كامله صفائي حاصله شي۔

بيا پدے روايت كښے صرف گوتمه ذكر شويده خو ددے په حكم كښ بنگړي او نوره گانړه وغيره هم دي د هغے خوزول هم ضروري دي دے دپاره چه اوبه مو اضع د اوداسه ته اورسي۔

**درجة الحديث** : رواه الدارقطني (٣١/١) وابن ماجة رقم (٤٤٩) وفي سنده معمر بن محمد بن عبيد الله وهو وابوه ضعيفان ولا يصح هذا الحديث فهو ضعيف السند . دواړه روايان منكر الحديث دي ۔ شيخ الباني په تعليق المشكاة كښے په ملا علي القاري رد كړيدے چه هغه دے حديث ته حسن وئيلے دے سره ددے نه چه په سند كښ ئے معمر راوي دے نو د كوم ځائے نه حسن شو۔ قال عبيد الله المباركفوري في المرعات ٢/١٢٦) وقد ذكره البخاري تعليقا عن ابن سيرين ووصله ابن ابي شيبة۔

* * * * * * * * *

# بابُ الغسل

**مناسبة الباب :**

کله چه مصنفؒ د طهارتِ صغری نه فارغ شو نو اوس طهارتِ کبریٰ بیانوی.

۲ - دویم دا چه : وضوء - اودس - کثیر الوقوع دے، دا مقدم شو او غسل قلیل الوقوع (کم واقع کیږی) په دے وجه مؤخر شو.

**د لفظِ غسل لغوی تحقیق :**

غسل په فتحے د غین سره استعمالیږی د مطلق وینځلو دپاره هم، اودغه شان د لمبلو دپاره هم، اودا په کښے فصیح او مشهور قرائت دے. امام نووی فرمائی : د اهل لغت په نیز فتحه زیاته فصیحه ده لیکن فقهائے اکثر ضمه استعمالوی. المجموع (۱٤۸/۲).

اوپه ضمے د غین سره هغه اوبو ته وائی چه انسان په هغے سره لامبی. او په کسرے د غین سره هغه څیز ته وائی چه په هغے سره وینځل کیږی، لکه بیرے، خطمی، صابون وغیره. کذا قاله القسطلانی وابن السکیت وابن بری.

امام نوویؒ فرمائی : که د غسل نه کله اوبه مراد شی نو بیا مضموم الغین دے، اوکله چه معنیٰ مصدری مراد شی، نو بیا مضموم الغین او مفتوح الغین دواړه لغته مشهور دی.

۳ - بعضے وائی : که غسل لفظ د غسلتُ دپاره مصدر واقع شی نو بیا به منصوب وی، لکه ضربتُ ضربا پشان غَسَلْتُ غَسْلًا به وی. اوکه په معنیٰ د اغتسال (لامبلو) سره شی نو بیا به مضموم الغین وی. لکه فقهاء وائی : غسل یوم الجمعة مسنون. کذا فی نیل الأوطار (۲۷٤/۱) والمرعاة (۱۲٤/۲) والبحر الرائق.

**تعریفات الغسل** : ۱ - غسل په شریعت کښے د اوبو استعمالول دی په ټول په بدن کښے په مخصوصه طریقه سره کوم چه نبی علیه السلام خودلے ده سره د نیت نه. توضیح الاحکام (۳۳۲/۱).

٢- افاضة الماء الطهور على جميع البدن على وجه مخصوص (الفقه الاسلامى) : راړول د پاکو اوبو دی په ټول بدن باندے په خاص طريقه سره۔

٣- شوافعؒ داسے تعريف کوی : اسالة الماء على جميع البدن مع النية۔ يعنی بهيول د اوبو دی په ټول بدن باندے سره د نيت نه۔

٤- مالکيه د غسل داسے تعريف کوی : ايصال الماء لجميع الجسد مع النية لاستباحة الصلاة مع الدلك. حاشية الصاوی على الشرح الصغير (١/١٦٠) ۔ يعنی رسول د اوبو دی ټول بدن ته سره د نيت او مږلو د بدن نه دپاره د جائز کيدو د مانځه۔

## أقسام الغسل :

غسل په دوه قسمه دے : ١- يو غسل واجب۔ ٢- دويم غسل مستحب۔

د غسل واجبی دپاره يو څو اسباب دی چه هغے ته (موجبات الغسل) هم وائی۔

١- انزال او خروج د منی په ټوپ اوخوند سره، که د سړی نه وی اوکه د زنانه نه۔

٢- التقاء الختانين۔ يعنے د زنانه په خاص اندام کښے د حشفے داخليدل۔

٣- حيض۔ ٤- نفاس۔ ٥- اسلام الکافر۔ ٦- الموت۔

او **أغسالِ مستحبه** دوه قسمه دی : ١- يو اجتهادی دی، دا صاحب د نور الايضاح شپاړس ذکر کړی دی، بعضو باندے دليل شته اوبعضو باندے نه شته۔

٢- اوبل غير اجتهادی دی۔ دا دولس غسلونه دی، چه دهغے تفصيل په به په خپل باب صفحه (٥٥) کښے راشی، ان شاء الله تعالیٰ۔

دلته صرف (١) موجبات الغسل او (٢) کيفية الغسل بيانيږی۔

**مسئله** : د علماؤ په دے اتفاق دے چه په غسل کښے ټول بدن لمدول فرض دی، که چرے يو ويښته هم اوچ پاتے شو نو غسل نه کيږی۔

خو په دے کښے اختلاف دے چه آيا دلك (بدن مږل) شرط دے اوکه نه ؟۔

١- مالکيه وائی : دلك ضروری او واجب دے، اودا قول د امام ابويوسف او شيخ ابن الهمامؒ حنفی هم دے، په فتح القدير (١/٥٠) کښے۔

٢- نور علماء دلك ضروری نه ګڼړی، د دوئ دليل دادے چه غسل په لغت کښے صبّ

او اِسَالَه نه وائي، يعنې په بدن باندې اوبه اړول، او په دې کښې دَلُك وغيره نشته، نو واجب هم نشو.

مالکيه وغيره دليل دادې چه دلك معتبر دې په معنىٰ د غسل کښې لغةً هم او شرعًا هم، هرچه لغةً دې نو دا ځکه چه غسل هغه ته وائي چه په هغې کښې دلك وي، (وما لا دلك فيه لا يسمى غسلا، بل يسمى صَبًّا وَاِسَالَةً) - يعنې کوم غسل چه کښې مږل نه وي هغه غسل نه دې بلکه صرف اوبه اړول دي.

اوشرعاً ځکه چه غرض په غسل کښې دادې چه ظاهري اندامونه انسان ددې دپاره پاك صفا کړي چه الله تعالىٰ ته په پاکئ سره اودريږي، اودا نه حاصليږي په غير د دلك (مږلو) نه غالبا - او قرآن کريم کښې د ﴿ فَاطَّهَّرُوْا ﴾ د تشديد نه هم معلوميږي - يعنې په آيت کښې دا حکم دې چه ځان ښه پاك کړئ او ښه پاکولو دپاره مږل ضروري دي.

٢ - دارنګه حديث کښې راځي : (بلوا الشعر، وأنقوا البشر). رواه ابو داود باسناد فيه مقال وسيأتي تحقيق الحديث.

دا دليل دې په وجوب د **دلک** باندې ځکه چه انقاء او پاکي نه حاصليږي په صرف اوبو اُړولو سره په بدن باندې، ترڅو چه مږل په کښې نه وي - اودا قول راجح دې په اعتبار د دليل سره - واقعي که څوك تجربه اوکړي نو د مږلو نه بغير په هسې اوبه راړولو سره د انسان بدن نه لمديږي، خاصکر کله چه انسان هغه اوبه استعمالوي کوم چه سنت کښې راغلي دي چه هغه يو صاع وغيره دي.

٣ - بعضې وائي : چه دلك په هغه وخت کښې واجب دې چه اوبه پوره بدن ته نه رسيږي - د بعضې اندامونو او ويښتو وغيره اوچ پاتې کيدو امکان وي - اوکه داسې نه وي نو دلك واجب نه دې، لکه دا قول ابن الحاج په شرح د منيه المصلي کښې ذکرکړيدې.

**فرائض الغسل** : په غسل کښې څو فرائض دي ؟

١ - احناف وائي درې فرائض دي (١) ټول بدن باندې اوبه اچول (٢) خله (٣) او پوزه کښې اوبه اچول - او نور الايضاح او مراقي الفلاح (٢٣) کښې ئې يولس فرائض شمارلي دي، ليکن هغه د بدن د هر اندام تفصيل کړې دې ځکه ئې يولس ذکر کړي دي، د هغې رجع هم

درے ؤ ته کيږي.

۲ – مالکيه وائي : درے فرائض دي (۱) نيت کول په زړه کښے (۲) دلك يعني بدن مږل (۳) تول بدن وينځل.

۳ – د جمهورو علماؤ په نيز دوه فرائض دي : (۱) يو نيت کول (۲) دويم تول بدن وينځل. اودا قول ئے په فقه السنة (۱/٦٦) کښے ذکر کړے دے کما قال : (لاتتم حقيقة الغسل المشروع الا بأمرين : النية، اذ هي المميزة للعبادة عن العادة. والثانی : غسل جميع أعضاءِ البدن . پدے تولو کښے راجح قول دا دے چه نيت کول هم فرض دي ځکه چه انما الاعمال بالنيات حديث دليل دے، دارنگه مږل د بدن هم ضروري دي خاصکر کله چه د بدن کوم ځائے اوچ پاتے کيدو امکان وي ځکه امر د ﴿ فَاطَّهَّرُوْا ﴾ کښے مبالغه مطلوب ده په غسل کښے او دا په دلك حاصليږي او تول بدن باندے اوبه اوچول هم فرض دي. نو د مالکيه قول راجح شو.

**تنبيه** : په دے باب کښے اول موجبات الغسل بيانوي .

---

## الفصل الأول - اول فصل

۱ – عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :( اِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ وَاِنْ لَمْ يُنْزِلْ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .

**ترجمه** : ابو هريرة نه روايت دے دا فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دے : کله چه په تاسو کښے يو تن د ښځے د ځلورو ځانګونو ترمينځه کيني او بيا هغے سره کوشش اوکړي نو په تحقيق سره غسل واجب شو، اګرکه انزال ئے نه وي شوے (مني ترے نه وي خارجه شوي). (بخاري، مسلم).

**تشريح** : شعب : جمع د شعبه ده په معنیٰ د حصے او قطعے ديو شئ سره. د شعب أربعه په مصداق کښے متعدد أقوال دي :

۱ – بعضے وائي : شعب أربعه نه مراد دواړه لاسونه او خپے دي، لکه دا ابن دقيق العيدؒ وئيلي دي.

۲ – دواړه خپې او ورنونه دی۔ (۳) بعضې وائي : دواړه پونډۍ او ورنونه دی۔ (٤) بعضې وائي : څلور واړه طرفونه د فرج مراد دی۔

اودا کیناستل په څلور واړو طرفونو د زنانه کښې کنایه ده دجماع نه، یعنې جماع اوکړی۔ او د (جهد ها) معنیٰ داده چه ځان ئې ستړې کړو په جماع کولو سره، یائې کوشش اوکړو د هغې سره په جماع کښې ۔ نو جهد (کوشش) هم کنایه ده د دخول الحشفه نه۔ د أبوداود په روایت کښې د (جهدها) په ځائې دا الفاظ دی (ألزق الختان الختان)، دا دلیل دې چه مراد د جهد نه جماع ده ۔

**مسئله** : په ابتداء د اسلام کښې دا حکم وو چه ترڅو پورې انزال نه وی شوې نو هسې په دخول الحشفه سره غسل نه واجبیدلو، بیا دا حکم منسوخ شو، په دې حدیث د ابو هریرهؓ او ددې پشان په حدیث د عائشهؓ باندې چه (اذا جلس أحدكم بين شعبها الأربع ومس الختان الختان فقد وجب الغسل). رواه مسلم وأحمد۔ او په روایت د ترمذی بشرح التحفه (۱۱۰/۱) کښې ( جاوز الختان الختان ) الفاظ دی۔

اود دې منسوخ کیدل په ډیرو احادیثو او آثارو سره ثابت دی لکه چه دا نیل الأوطار (۲۷۹/۱) کښې په روایت د ابو هریرهؓ او عائشهؓ او أبی بن کعبؓ او رافع بن خدیجؓ سره ذکر کړی دی ۔دا وجه ده بعضې صحابوؓ ته – لکه أبیّ بن کعبؓ، علیؓ، طلحهؓ، زبیرؓ، أبو أیوبؓ، عثمانؓ او عتبان بن مالكؓ ابوسعید الخدریؓ، زید بن خالد، سعد بن ابی وقاص۔ ومعاذ بن جبلؓ ته دا منسوخ کیدل نه وو رسیدلی، نو د هغوئ رائې دا وه چه ترڅو پورې منی نه وی خارجه شوی نو غسل نه واجبیږی۔ استدلال ئې کولو په حدیث د أبو سعیدؓ (الماء من الماء) باندې، یعنې غسل به هله واجبیږی چه کله منی خارجه شی، والا فلا۔

بیا عمر فاروقؓ پدې باره کښې د عائشې رضی الله عنها نه تپوس کولو دپاره سړې اولیږلو لکه طحاوی (٤٧/١) کښې راځی : عبید الله بن عدی بن الخیار فرمائی چه د عمر فاروق په خوا کښې صحابه کرامو د جنابت د غسل متعلق خبره ذکر کړه بعضو پکښې اووئیل کله چه یو فرج د بل فرج نه تیروځی نو بس غسل واجب دې بعضو اووئیل چه اوبه نه وی خارج شوی نو غسل نه واجبیږی۔ نو عمر فاروق اوفرمائیل : تاسو خو په

ما باندے اختلاف راوستو او حال دا چه تاسو بدریان غوره خلق ئے (نو چه تاسو اختلاف کویٔ) ستاسو نه روستو خلقو به څه حال وی پدے کښے علی بن ابی طالبؓ عمر فاروق ته اوفرمائیل اے امیر المؤمنین ! که ته دا مسئله معلوموول غوارے نو د نبی ﷺ د بی بیانو پسنے څوك اولیږه او د هغوی نه ددے په باره کښے تپوس اوکړه نو عمر عائشےؓ پسے سړے اولیږلو نو عائشےؓ جواب ورکړو چه کله د سنت ځائے د سنت ځائے نه تیروځی نو بس غسل واجب دے (اګرکه اوبه نه وی وتلی) نو عمر فاروق فیصله اوکړه چه (ددے نه بعد) زه دِے هیچا نه دا وانه ورم چه دا وائی الماء من الماء مګر هغه ته به څه عبرتناکه سزا ورکوم۔ امام طحاوی پدے باندے تفریع کوی چه اوګوره دا عمر دے چه د صحابو په مخامخ خلقو ته دغه حکم بیانوی او هیڅوك پرے انکار نکوی نو دا اجماع شوه۔

صحیح ابن خزیمه (۱۱٤/۱) او مسلم (۱۵٦/۱) کښے روایت داسے دے۔ ابو موسی اشعریؓ فرمائی : صحابه خپل مابین کښے ناست وو نو دائے ذکر کړه چه غسل په څه سره واجبیږی ؟ نو حاضرینو کښے بعض مهاجرینو اووئیل : کله چه ختان د ختان نه تیر شی نو غسل واجب دے او حاضرینو کښے بعض انصارو اووئیل نه ! (بلکه) هله به غسل واجب وی چه کله توپ اووهی (اوبه خارج شی) ابو موسی اشعریؓ فرمائی (ماورته اووئیل) زه به درته خبر راوړم ۔نو دے عائشے ته لاړو سلام ئے پرے واچولو بیائے اووئیل زما اراده ده چه زه تا نه د څه (مسئلے) باره کښے تپوس اوکړم خو زه د هغے (د ذکر کولو) نه حیاء کوم (شرمیږم) عائشےؓ ورته اوفرمائیل : د څه باره کښے چه تپوس کول غوارے اوکړه ما د خپلے مور پشان اوګڼړه چه ته ترے پیدا شوے ئے زه ستا موریم (وایه) دے فرمائی : ما ورته اووئیل : مایوجب الغسل) غسل په څه سره واجبیږی ؟ هغے اوفرمائیل : (علی الخبیر سقطت) یعنی د خبردار شخص نه دِے تپوس اوکړو۔ رسول الله ﷺ فرمائیلی دی کله چه سړے د زنانه په څلور څانګو کښے کینی او فرج د فرج سره ملاؤ شی نو غسل واجب شو (یعنی اګرکه انزال نه وی شوے)۔

بس اوس دا د ټول امت مذهب دے سره د أئمه أربعهؒ وغیرهم نه کما قال الحازمی فی الاعتبار فی الناسخ والمنسوخ من الآثار ص (۲۱)۔

صرف امام داؤد ظاهریؒ په دے باره کښے اختلاف کړے دے (کما صرح بقوله ابن العربی ونقله فی نیل الأوطار) چه د غسل واجبیدو دپاره خروج المنی ضروری دے۔

لیکن د هغه دا قول په دے باب کښے ضعیف دے، په خطاء باندے دے۔

امام نوویؒ فرمائی : اعلم ان الامة مجتمعة الآن علی وجوب الغسل بالجماع وان لم یکن معه انزال وکانت جماعة من الصحابة علی انه لا یجب الا بالانزال ثم رجع بعضهم وانعقد الاجماع بعد الآخرین انتهی۔

حافظؒ وائی اګر چه اجماع نه ده بلکه خلاف د بعض صحابو په کښے موجود دے خو د جمهور علماؤ قول دے۔ چه انزال ضروری ندی صرف دخول الحشفه کافی ده۔ صاحب د تحفه الاحوذی (۱۱۱/۱) فرمائی دا قول د جمهورو دے خو همدا حق او صواب دے۔

امام ابن حزمؒ فرمائی : غسل ځکه واجبیږی چه دلته سبب الانزال چه دخول الحشفه دے قائم ده په مقام د انزال کښے، ځکه انزال أمرِ خفی دے، کله منی خارجه شی او انسان پرے خبر هم نشی۔ لکه څنګه چه نفس سفر قائم دے په مقام د مشقت باندے په رخصت کښے۔ نودا اجماعی مسئله ده چه په نفس دخول الحشفه سره غسل فرض او واجب دے۔

علامه شوکانیؒ فرمائی : که بالفرض اومنو چه حدیث د مس الختان الختان روستو ندے د الماء من الماء نه او دا الماء من الماء منسوخ ندے نو بیا هم دا حدیث الماء من الماء معارضه نشی کولے د حدیث د عائشه او ابو هریره وغیره سره ځکه چه دا حدیث مفهوم دے او هغه دواړه حدیثونه منطوق دی او منطوق راجح وی د مفهوم نه۔

**تکمیل** : دا خبره پیژندل ضروری دی چه ذکر د فرج سره یو ځائے کول په غیر د داخلولو نه صرف د دواړو په ملاقات سره، په دے سره هم غسل نه واجبیږی۔ تر څو چه دخول د رأس الحشفه نه وی راغلے۔ دا وجه ده چه په احادیثو کښے د حشفے د غائب کیدو ذکر هم راغلے دے او دارنګه کومو احادیثو کښے چه مس ذکر شویدے د هغے نه ادخال او ایلاج مراد دے نفس ختان د ختان سره ملاوول ندی مراد ځکه چه د زنانه دختنه ځائے د فرج په بره طرف کښے وی او په حالت د جماع کښے هغے سره ذکر نه لګیږی نو د علماؤ پدے اتفاق دے چه که سړے ذکر د زنانه د ختان ځائے سره ملاؤ کړی او ذکر دا خل نکړی نو

پړے سره غسل نه واجبيږي۔ اود اهم اجماعي مسئله ده ۔ كما قال صاحب التحفة (١/ ١١٠) والشوكاني في النيل (١/ ٢٧٨) نقلا عن ابن العربي ۔

**حكمت د غسل** : شريعت د جنابت نه روستو ولے غسل كول فرض كړيدي۔ نو ددے فائده اصل كښے راجع ده انسانانو ته۔ ځكه چه مني وتو سره انسان كښے سستي او بدني ضعف پيدا كيږي ددے د اعادے دپاره شريعت اووئيل چه غسل اوكړه ددے وجه نه شيخ بسام فرمائي : واما المني فهو عبارة عن مادة مكوّنة من جميع اجزاء البدن ولذا نرى الجسم يتأثر بخروجه ولا يتأثر بخروج البول توضيح الاحكام (١/ ٢٩٠) يعني مني هغه مادے ته وائي چه جوړيږي د ټول اجزاؤ د بدن نه دا وجه ده چه ددے په وتو سره جسم متأثر كيږي او د بول په وتو سره نه متأثر كيږي دارنګه پس د جماع كولو نه د انسان د بدن قوت كښے ضعيف پيدا كيږي خو كله چه په اوبو باندے اولامبي نو بدن ته دوباره دا ورك شوے قوت راواپس شي كوم چه په خروج المني سره ختم شوے وو او هغه سستي ختمه شي او په غسل سره يو نشاط او تازه ګي پيدا شي او طبيبانو دا تصريح كړيده چه د جماع نه پس غسل كول بدن ته خپل قوت راواپس كوي او دا په بدن كښے د وينے په ګردش كښے د تازګي پيدا كولو دپاره ډير فائده مند وي۔ او غسل نه كولو نه ډير اضرار پيدا كيږي۔

٢- دارنګه جنابت حالت كښے په انسان باندے د شيطان تسلط زيات وي ځكه دا د ناپاكئ حالت دے نو شريعت اووئيل چه ددے حالت نه ځان اوباسه چه دشمن درباندے تسلط اونكړي۔ والله اعلم۔

---

٢ - وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : (إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ)۔ رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا مَنْسُوْخٌ.

٣ -وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنه: إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ فِي الْاِحْتِلَامِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَلَمْ أَجِدْهُ فِي الصَّحِيْحَيْنِ .

**ترجمه** : ابـو سعیـد فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلی دی : اوبه د اوبو نه دی، یعنی منی وتلو سره غسل واجبیږی۔ (مسلم) اوامام محیی السنة فرمائی : دا حکم منسوخ دی ، او ابن عباس فرمائیلی دی : اوبه د اوبو نه دی، دا حکم د احتلام په باره کښې دی ۔ او ما دا روایت بخاری او مسلم کښې نه دی موندلی۔

**تشریح** : **اِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ** : د اول ماء نه مراد معروفې اوبه دی، اود دویم ماء نه مراد منی خارجیدل دی ۔ او په دې کښې د علم البدیع نه جناس تام شوی دی ۔ معنیٰ داده : غسل واجبیدل به هله وی کله چه اوبه (منی) د انسان نه خارج شی، نو ددې مفهوم مخالف دا شو چه کله د انسان نه په جماع کښې اوبه خارج نشی نو غسل به واجب نه وی۔

نو دا حکم منسوخ شو په حدیث د سهل بن سعد عن أبیّ بن کعب :

قال : انما کان الماء من الماء رخصة فی أول الاسلام ثم أمرنا بالاغتسال بعد (أخرجه أحمد والدارمی والترمذی وابوداود رقم (۲۱۵) وابن ماجة وصححه ابن خزیمة وابن حبان وقال الاسماعیلی : انه صحیح علی شرط البخاری. وقال الحافظ : انه اسناد صالح لا ن یحتج به. یعنی دا حکم چه په اوبو وتلو سره غسل واجب دی په ابتداء د اسلام کښې رخصت وو بیا مونږ ته ددې نه روستو د غسل کولو حکم اوشو (کله چه دخول الحشفه شوی وی)۔

دارنګه نور آثار او احادیث نیل الأوطار او کتاب الناسخ والمنسوخ د علامه حازمی کښې ذکر شوی دی چه هغه دلیل د نسخ دی۔

لکه روایت د رافع بن خدیج عند أحمد (۱٤۳/٤) کښې دی دا فرمائی : زه د خپلې ښځې سره په جماع کښې مشغول ووم چه رسول الله ﷺ راته آواز اوکړو نو زه بغیر د انزال نه راپاسیدم اوغسل مې اوکړو او بهر را اووتلم۔ نبی ﷺ ته مې خبر ورکړو، نو هغه راته اوفرمائیل : (لا علیك، الماء من الماء) ۔ بیا رافع فرمائی : (ثم أمرنا رسول الله ﷺ بعد ذلك بالغسل) ۔ یعنې : ددې وخت نه روسته مونږ ته رسول الله ﷺ د غسل کولو حکم اوکړو په داسې حالت کښې چه انزال نه وی شوی او دخول الحشفه راغلی وی۔

نو دا دلیل د نسخ دی په قول د صحابی باندې ۔

خو دا حدیث – د أبو سعید – به هله منسوخ شمارلې کیږی چه کله دا یقینی طور

سره معلومه شی چه حدیث د أبو هریرةؓ او عائشةؓ کوم چه ناسخ دے متأخر دے، اودا حدیث د أبو سعیدؓ منسوخ مقدم دے، وهو الراجح۔

اوکه چرے تقدم او تأخر معلوم نشی نو بیا هم حدیث د (الماء من الماء) معارض نشی کیدے د حدیث د ابو هریرةؓ او عائشةؓ سره، وجه داده چه دا حدیث د الماء په دے مسئله باندے دلالت په مفهوم مخالف سره کوی، کما عرفتَ۔ اوحدیث د أبو هریرةؓ اوعائشةؓ دلالت په منطوق سره کوی، اودا قاعده ده چه کله د مفهوم اومنطوق تعارض راشی نو ترجیح منطوق لره وی۔ کما قال الشوکانی (۱/۲۷۷) والأمیر الصنعانی فی سبل السلام (۱/۱۲۹)۔

۳ – یا داچه د حدیث الماء من الماء هیڅ تعارض د حدیث د أبو هریرةؓ او عائشةؓ سره په دے وجه هم نشته، چه عبد الله بن عباسؓ فرمائی : د (الماء من الماء) مطلب دادے چه دا حمل دے په احتلام باندے، معنیٰ داده چه په احتلام کښے یو شخص خوب اووینی او سَحر راپاڅی نو که منی یا د هغے لوندوالے اووینی نو غسل به واجب وی۔ اوکه هیڅ محسوس نه کړی نو غسل پرے واجب نه دے ۔

او هرچه حالت د بیداریٔ کښے د جماع حکم دے نو هغه په دے حدیث کښے نه دے مراد بلکه د هغے حکم په حدیث د ابو هریرةؓ او عائشةؓ کښے ذکر دے چه په نفس غیبوبت د ذکر سره غسل واجب دے، انزال ئے شوے وی اوکه نه وی شوے۔

اوعبد الله بن عباسؓ چه دا جمع بین الروایتین کړے ده نو دا یا د ناسخ حدیث نه خبر نهٔ وو، هغه ورته نه وو رسیدلے، یا ورته رسیدلے وو، او دا ورته معلومه وه چه دا حدیث منسوخ دے لیکن بله مسئله ئے ترے معلومه کړه چه هغه حکم د احتلام دے۔ دے دپاره چه حدیث ضائع نشی۔

او ددے حدیث (الماء من الماء) نورے معانی هم علماؤ ذکر کړی دی چه هغه دومره واضح نه دی، کما ذکر فی المرعاة (۱/۱۲۸)۔

**فائده** : څنګه چه د قرآن کریم بعضے آیتونه بعضے نورو لره منسوخ کولے شی، دغه شان بعضے احادیث بعضے نورو لره منسوخ کولے شی، کما هو معروف ۔

۲ - فقه حنفي (شامي، فتاوئ ودوديه، سقايه شرح شرح وقايه) کښې د احتلام په باره کښې څوارلس صورتونه ذکر کړی دی، هغوی داسې تفصيل کوی : که یو انسان د خوب د بيداريدو نه بعد په کپړه (جامه) باندې لوندوالے اووينی نو پدې کښې څوارلس صورتونه ابن عابدين شامي ذکر کړيدی (۱) اول دا چه په لوندوالی باندې د منی کيدو يقين وی (۲) - د مذی کيدو يقين وی (۳) - د ودی کيدو يقين وی (٤) - اولنو دواړو کښې شك وی (٥) اخيرنو دواړو کښې شك وی (٦) - په طرفينو کښې شك وی چه منی ده که ودی۔ (۷) بيا په پدې هريو صورت کښې به ورته يا احتلام ياد وی يا به نه وی ياد۔ نو څوارلس صورتونه شو۔

پديکښې په لاندينی اووه صورتونو کښې غسل واجب دے : (۱) د منی کيدو يقين وی او خوب ياد وی (۲) د منی کيدو يقين وی او خوب ياد نه وی (۳) د مذی کيدو يقين وی او خوب ياد وی او څلورم نمبر نه تر اوم (۷) نمبر پورې د شك څلور صورتونه کله چه خوب ياد وی نو غسل به واجب وی۔

او لاندينی څلور صورتونو کښې غسل بالاتفاق بينهم واجب ندے (۱) ودی کيدو يقين وی او خوب ياد وی (۲) د ودی کيدو يقين وی او خوب ياد نه وی (۳) د مذی کيدو يقين وی او خوب ياد نه وی (٤) مذی او ودی کښې شك وی او خوب ياد نه وی۔

او لاندينی صورتونو کښې اختلاف دے (۱) منی او مذی کښې شك وی او خوب ياد نه وی (۲) منی او ودی کښې شك وی او خوب ياد نه وی (۳) درې واړو کښې شك وی او خوب ياد نه وی پدې صورتونو کښې د طرفينو په نيز احتياطا غسل واجب دے ليکن امام ابويوسف په نيز غسل واجب نه دے للشك فی وجود الموجب۔ کذا فی تحفة الاحوذی (۱۱۲/۱) ودرس ترمذی (۳٤۳/۱)۔

صاحب د نور الايضاح په کښې د انتشار خبره هم کړيده چه کله انسان نرئ اوبه اووينی نو که د خوب نه مخکښې آله منتشر وه نو غسل به واجب وی او که د خوب نه مخکښې انتشار نه وی نو غسل واجب نه دے۔ مراقی الفلاح ص (۲۲)۔

دا تول د متأخرينو متفقهه ؤ **تعمقات** دی چه په دين کښې هيڅ أساس او بنياد نه

لرى، محض ذهن تيزي ده، بلكه حكم د احتلام دادے كوم چه عبد الله بن عباسؓ په دے حديث كښے بيان كړو ـ هغه دا چه انسان د شپے خوب اووينى او سَحر راپاڅى نو كه منى يا د منى لوندوالے ئے اوليدلو نو غسل به كوى او كه نه وى نو نه به ئے كوى۔ آسان حكم دے۔

وَلَمْ أَجِدْهُ فِي الصَّحِيْحَيْن : دا اعتراض د صاحب المشكاة په مصابيح والا باندے صحيح نه دے، چه دا قول د ابن عباسؓ په صحيحينو كښے نشته، نو تا ولے په أحاديث صحيحه ؤ كښے راوړو ؟۔

وجه داده چه مصنفؒ د مصابيح، د ابن عباسؓ قول د روايت د مسلم د توجيه دپاره ذكر كړے دے، او دامقصود الباب نه دے، نوكه دا په صحيحينو كښے نه وى موجود، څه مضر نه دے، ځكه دا شرط په مقاصدو د باب كښے صاحب المصابيح ساتلے دے نه په ذكر د أقوالو كښے تَبْعاً۔

---

٤ – وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ : قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ : يَا رَسُوْلَ اللهِ، اِنَّ اللهَ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ اِذَا احْتَلَمَتْ ؟ قَالَ : نَعَمْ، اِذَا رَأَتِ الْمَاءَ. فغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَجْهَهَا وَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَوَ تَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ ؟ قَالَ : نَعَمْ، تَرِبَتْ يَمِيْنُكِ ! فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

٥ – وَزَادَ مُسْلِمٌ بِرِوَايَةِ أُمِّ سُلَيْمٍ : اِنَّ مَاءَ الرَّجُلِ غَلِيْظٌ اَبْيَضُ وَمَاءَ الْمَرْأَةِ رَقِيْقٌ أَصْفَرُ، فَمِنْ أَيِّهِمَا عَلَا اَوْ سَبَقَ يَكُوْنُ مِنْهُ الشَّبَهُ).

**ترجمه** : ام سلمهؓ فرمائى : ام سليمؓ عرض اوكړو : يا رسول الله ! الله تعالىٰ د حق وئيلو نه شرم نه كوى آيا د زنانه چه كله احتلام اوشى (اودس پرے واوړى) نو په دے باندے غسل لازم دے ؟ رسول اللهﷺ اوفرمائيل : هاؤ، كله چه اوبه اووينى۔ نو ام سلمےؓ خپل مخ پټ كړو او عرض ئے اوكړو : يا رسول الله ! آيا د زنانه ګنے هم احتلام كيږى ؟ (يعنے د سړى غوندے اوبه ئے وى او اوځى ؟)، نبى ﷺ ورته اوفرمائيل : هاؤ، ستا ښے لاس دے په خاورو

کښې ککړ شي، که داسې نه وې نو بيا د هغې بچې د هغې مشابه کيدې څنګه شو ؟ (بخاري، مسلم) او مسلم په روايت د ام سليمؓ سره زيات کړي دي چه د سړي اوبه ټينګې او سپينې وي، او د ښځې اوبه نرمې او زيړې وي، نو دې کښې چه د چا مني غالبه شي يا مخکښې والے اوکړي نو د بچي مشابهت هغې سره وي.

## تعارف : د أم سليم رضي الله عنها :

دا ام سليم بنت ملحان أنصاريه صحابيهؓ ده، د انس بن مالكؓ والده ده، خپل نوم ئې سهله يا رميثه يا رميله دے، ډيره غوره صحابيه ده، په کنيه باندې مشهوره ده څوارلس (۱٤) احاديث ترې نقل شوي دي، په جاهليت کښې د مالك بن نضر ښځه وه. هغه نه أنس پيدا شو. کله چه د اسلام زمانه راغله نو دې اسلام قبول کړو او خاوند ته ئې هم اسلام پيش کړو، ليکن هغه ورته غصه شو اوشام ته ترې لاړو هلته مړ شو. بيا د هغې نه پس د أبو طلحهؓ سره ئې نکاح اوکړه. اول کښې خو ابو طلحهؓ ددې خِطبه اوکړه (د نکاح پيغام ئې ورته راوليږلو)، ابو طلحهؓ دغه وخت مشرك وو. نو دې انکار اوکړو چه تر څو پورې ابو طلحهؓ اسلام قبول کړې نه وي نو نکاح نشي کيدے. نو ابو طلحهؓ اسلام قبول کړو او نکاح ئې اوشوه. بيا د أبو طلحهؓ نه د ام سليمؓ يو هلك پيدا شو چه ابو طلحهؓ ته ډير ګران وو، خو هغه وفات شو نو ډير سخت غمژن شو. بعضې وائي دا أبو عمير صاحب النغير وو. بيا د هغې نه پس عبد الله بن أبي طلحه پيدا شو، نو الله ورله په ده کښې برکت واچولو، دده نه پس بيا لس اولاد پيدا شو، يو په کښې اسحق بن عبد الله بن أبي طلحه وو، چه دا ډير لوئې فقيه اوګرځيدلو اودې ټولو به دده نه علم زده کولو. د ام سليمؓ کور ته به نبي کريم ﷺ ډير تلو راتلو، ډيره اخلاقي کورنۍ وه. أم سليمؓ به فرمائيل : ماته رسول الله ﷺ داسې دعاء کړې ده چه نور هيڅ نه غواړم هغه دعاء ما دپاره کافي ده. په خلافت د عثمانؓ کښې وفات شوې ده. رضى الله تعالىٰ عنها .

**تشريح** : اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ : أم سليمؓ د خپل تپوس نه - کوم چه د حياء سره تعلق لري - مخکښې د تمهيد په طور باندې دا مقدمه کيخودله چه الله تعالىٰ د حق بيانولو نه حياء نه کوي، نو مونږ له هم پکار دي چه په حق مسئلو کښې حياء او شرم

اونـه کـړو، چـه دا تپـوس د حيـاء سره تعلق لری چه د سړو په مخامخ داسے مسائل وړاندے کول د زنانـه د شـان سره مناسب نه دی، ليکن دا دين دے په دے وجه ددے په تپوسلو کښے حياء او شرم نه کوم ـ ليکن زمونږ د زمانے د عوامو دا مزاج التـه جوړ شوے دے، چه خپله بـه ئے کـورتـه دګمـراهئ او فحاشئ عريانئ سامانونه راننه کړی وی، ټی، وی- وی سی آر- کيبـل وغيـره دګمـراهـئ سامانونه به ورکړه وی دابه ورته د بے حيايئ کار نه ښکاری- زنانـه بـه ئے بازارونـو کښے ګـرځـی راګرځی- خو که د قرآن او سنت کښے د زنانه ؤ کومه مسئلـه راشی نو بيا به په علماؤ باندے اعتراض کوی چه دا قچر مُلا دے لاؤډ سپيکر پر بند کړئ په مسجد کښے د زنانو داسے د حياء او شرم خبرے کوی ـ نو دا د عوامو بے وقوفی او د دين نـه لـرے والے دے- دا د شيطان وسوسه وی چه انسان ته نيك کار بد ښکاره کړی او بد ورته ښه ښکاره کړی ـ

**فَغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَجْهَهَا** : دا قـول يا د زينبؓ دے چه دام سلمۃؓ نه روايت کوی، يا په خپله د ام سلمه دے، ليکن ځان ئے غائب فرض کړے دے او التفات ئے کړے دے-

**سوال** : پـه روايت د مسلـم کښـے د أنسؓ نه داسے نقل دی چه دا کار د عائشۃؓ نه واقع شوے وو، او دلته أم سلمۃؓ ذکر ده، ددے تعارض څه توفيق دے ؟-

**جواب** : د أم سليـمؓ د تپـوس پـه وخت کښے عائشۃؓ او أم سلمۃؓ دواړه حاضرے وے نو کيدے شی چه دواړو مخ پټ کړے وی -

**أَوَ تَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ ؟** : **سوال** : ام سلمۃؓ دا تپوس ولے اوکړو آيا په زنانه ؤ څه احتلام نه راځی ؟ **جواب** : ددے څـو وجـوهـات دی (۱) بعضے وائی : د نبی ﷺ په ازواج مطهرات باندے شيـطـان نـه راتـلـو- ليـکـن دا جـواب خـطـاء دے، وجه داده چه أم سلمۃؓ وغيرها خو سخکښے د نبـی ﷺ بـی بـی نـه وه، نـو آيا پـه هغه حالت کښے هم پرے د شيطان راتللو امکان نه وو ؟-

۲ – دويـمـه تـوجيه داده چه زنانو باندے هم احتلام راځی خو غالباً د زنانو طبيعت يخ وی، نـو شيـطـان ورلـه ډير نه راځی، په ډير کم کوز زنانو باندے احتلام راځی، نو رے اکثرے ددے نـه نـاخبـره وی- نـو أم سلمۃؓ هم په هغه زنانو کښے وه چه طبيعت کښے ئے يخوالے وو،

نو احتلام ئې نه پيژندلو ځکه ئې داسې تعجب اوکړو۔

**تَرِبَتْ يَمِيْنُكِ** : ددې الفاظو په معنیٰ کښې ډير اقوال علماؤ ذکر کړي دي ۔علامه ابن العربيؒ د ترمذي په شرح کښې لس اقوال راوړي دي۔ أصح داده چه ددې معنیٰ داده چه ستا لاسونه دې په خاورو ککړ شي يعنې ته دې فقيره او خواره شې، خو دا بيا عرب صرف د انکار او زجر او ملامتيا دپاره استعمالوي، او اصل معنیٰ ئې نه وي مراد چه ښيرې دي۔ لکه په هره ژبه کښې داسې قسم الفاظ استعماليږي، لکه پښتو کښې (خوارشې، غرق شې) استعماليږي۔

**فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا** : دا جواب دې په لازم سره، يعنې که ددې نطفه نه وې نو بچي به ئې نه پيدا کيدلې،خو نطفه ئې شته دې ځکه بچي راوړي او د هغې په وجه د مور پلار سره بچې مشابه کيږي۔ اوهر کله چه نطفه شته نوا حتلام ئې هم ځکه کيږي ۔حاصل داچه : اولاد پيدا کيدل لازم دي د نطفې سره، او د نطفې د وجود سره د احتلام موجود والې هم ضروري دې۔ ځکه احتلام لازم دې د نطفې سره۔

دا دليل دې چه ولد د نارينه اوزنانه د دواړو د اوبو نه پيدا کيږي ۔کما قال الله تعالى : ﴿من نطفة أمشاج﴾۔ اوکله چه د سړي مني مخ کښې رحم ته لاړه شي نوولد د هغه سره مشابه وي، اوکه د زنانه مني مخکښې لاړه شي نو هغې سره مشابه وي۔

**فَمِنْ أَيِّهِمَا عَلَا أَوْ سَبَقَ يَكُوْنُ مِنْهُ الشَّبَهُ** : دې کښې ډير صورتونه جوړيږي : ۱ – يو دا چه کله د نارينه مني عالي (بره) شي او د زنانه مني رحم ته مخکښې لاړه شي نو غالباً ماشوم جينئ پيدا کيږي، خو دپلار سره مشابه وي۔

۲ – اوکله د سړي مني عالي هم شي اورحم ته هم مخکښې لاړه شي نو غالباً هلك د پلار سره مشابه وي۔

۳ – اوکله د زنانه مني عالي هم شي او رحم ته هم مخکښې لاړه شي نو جينئ وي او د مور سره مشابه وي۔

٤ – اوکله د زنانه مني عالي شي او د سړي مني مخکښې رحم ته لاړه شي نو هلك د مور سره مشابه شي۔

۵ - پنځم صورت دادے چه د سړی منی مخکښے لاړه شی او د دواړو منی برابره وی، يو طرفته زيادت نه وی، نو ماشوم هلك وی او د يو سره هم پوره نه وی مشابه ـ

٦ - شپږم صورت ددے عکس دے ـ چه د زنانه منی مخکښ لاړه شی او د دواړو منی يو برابر وی، يو طرفته هم زيادت نه وی نو ماشوم جينۍ وی او د يو سره هم پوره مشابه نه وی۔

اودا مشابهت بيا په صورت کښے هم وی او په مزاج اوطبيعت کښے هم وی۔

اود دے صورتونو بيان په احاديثو سره ثابت دے ـ لکه په حديث د بخاری بشرح الفتح (۲۱۸/۷) باب الهجرة کښے په قصه د اسلام د عبد الله بن سلامؓ کښے دی (اذا سبق ماء الرجل ماء المرأة نزع الولد، واذا سبق ماء المرأة ماء الرجل نزعت الولد)۔

او په حديث د مسلم کښے په روايت د عائشهؓ کښے دی (اذا علا مائها ماء الرجل أشبه الولد أخواله، واذا علا ماء الرجل مائها أشبه أعمامه)۔

دے حديث کښے د علو نه مراد سبقت دے (لأن من سبق فقد علا شانه فهوعلو معنوی، قاله الحافظ) ـ نو علو علامه د مشابهت ده او سبقيت علامه د تذکير او تانيث ده ـ فتح الباری (۲۱۹/۷) ـ

**فائده عجيبه** : شيخ عبد الله البسام فرمائی : پدے حديث کښے اشاره ده قانون الوراثه ته (عند الأطباء) او هغه دا چه اولاد کله د مور مشابه وی او کله د پلار، ځکه چه هغه عوامل چه هغه سبب د مشابهت وی په هغے کښے انتقال راشی د زنانه رحم ته بيا دا يو اساسی ماده اوګرځی او ددے په اعتبار سره ميراثی صفات پيدا شی نو هر يو بچے د خپل مور پلار نه ميراث وړی نو کوم صفت چه په مور کښے وی او بچے د هغے مشابه وی نو بچی کښ هم هغه صفت پيدا کيږی او کوم صفت چه په پلار کښ وی (مثلا بهادری، بزدلی) او بچے د هغه مشابه وی نو هغه کښ هم دغه صفت پيدا کيږی او يوائے صرف په اولادو کښ نه بلکه دا کله دومره اوږد شی چه په ډيرو پشتونو (نسلونو) کښ تاثير اوکړی يعنی په ځکته نمسو، کړوسو وغيره کښ د نيکونو او نياګانو خويونه وی، د هغوی پشان حسن، شکل، اخلاق، او استعدادونه بدنی، نفسی او اخلاقی پيدا شی. او دے ته

اشاره شویده پدے حدیث کښے (عَسٰی اَنْ یَکُوْنَ نَزَعَهٗ عِرْقٌ – متفق علیه) او دے اکتشاف په دغه حدیث کښ یوه معجزه راپیدا کړه. د نبی علیه السلام یو مختصر لفظ کښے دومره معنی پرته وی. توضیح الاحکام (۲۹۷/۱)

دکتور طبیب محمد علی البار فرمائی : د نبی علیه السلام پدے یوه مختصره کلمه کښے قانون الوراثة ته اشاره ده چه خلاصه ئے دا ده چه صفات وراثی دوه قسمه دی (۱) سرسری ښکاره صفات (۲) پټ صفات چه نه ښکاری. کله چه په یو د ابوین کښ ښکاره صفات وی نو ددے په نیم اولادو کښ ښکاره کیدل کافی دی او که په ابوین کښ پټ صفات وی نو په اولادو کښ نه ښکاری مګر هله چه دا صفت په مور او پلار دواړو کښ موجود وی اګرکه د هغوی نه فی الحال نه ښکاره کیږی – نو دا په څلورمه حصه د اولادو باندے ښکاره کیږی او ربع ثانی بالکل ددے صفاتو نه خالی وی.

انظر توضیح الاحکام (۱۹۸/۱).

---

٦– وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ : کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ بَدَأَ فَغَسَلَ یَدَیْهِ ثُمَّ یَتَوَضَّأُ کَمَا یَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ یَدْخُلُ اَصَابِعَهٗ فِی الْمَاءِ فَیُخَلِّلُ بِهَا اُصُوْلَ شَعْرِهٖ ثُمَّ یَصُبُّ عَلٰی رَأْسِهٖ ثَلَاثَ غَرَفَاتٍ بِیَدَیْهِ، ثُمَّ یُفِیْضُ الْمَاءَ عَلٰی جَسَدِهٖ کُلِّهٖ. مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ. وَفِیْ رِوَایَةٍ لِمُسْلِمٍ : یَبْدَأُ فَیَغْسِلُ یَدَیْهِ قَبْلَ اَنْ یُدْخِلَهُمَا الْاِنَاءَ ثُمَّ یُفْرِغُ عَلٰی شِمَالِهٖ فَیَغْسِلُ فَرْجَهٗ ثُمَّ یَتَوَضَّأُ.

**ترجمه** : بی بی عائشه رض فرمائی : رسول الله ﷺ چه به د غسل د جنابت (یعنی ناپاکئ لرے کولو دپاره د غسل) اراده اوکړه، نو غسل به ئے داسے شروع کولو چه مخکښے به ئے خپل دواړه لاسونه (مړوندونو پورے) اووینځل، بیا به ئے اودس کولو څنګه چه مانځه دپاره اودس کولے شی. بیا به ئے خپلے ګوتے په اوبو کښے ننویستے او د خپلو ویښتانو په بیخونو کښے به ئے خلال کولو، بیا به ئے په خپل لاس سره په سر باندے درے لپے واچولے، بیا به ئے په خپل ټول بدن باندے اوبه واړولے. (بخاری، مسلم)، او د مسلم یو

روایت کښې دي : شروع به ئې داسې کوله چه دواړه لاسونه به ئې اووینځل، بیا به ئې د خپل ښي لاس په ذریعه په ګس باندې اوبه را واړولې نو خپل فرج به ئې اووینځلو، بیا به ئې اودس کولو۔

**تشریح** : اِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ : په دې حدیث او راتلونکي حدیث کښې د غسل کیفیت او طریقه بیانیږي ۔

د غسل نه مخکښې اودس کول بالاتفاق سنت او مستحب دي، واجب او ضروري نه دي۔ که یو شخص بغیر ددې اودس نه غسل اوکړي بیا هم غسل ئې اداء شو۔ مګر أفضلیت او سنیت ترې پاتې شو۔ البته د امام داود ظاهري رائې داده چه په غسل د جنابت کښې اودس کول واجب دي، وهو الراجح عند صاحب المرعاة (١٣٢/٢)۔ ځکه چه د ﴿حَتّٰى تَغْتَسِلُوا﴾ آیت کښې د اغتسال نه مراد اغتسال شرعي دې، او ددې کیفیت نبي ﷺ عملًا دا بیان کړې دې چه اودس ئې د غسل نه مخکښې کړې دې، نو ددې مجمل غسل بیان نبي ﷺ اوکړو، نو شرعي غسل دا دې چه اودس ئې په ابتداء کښې اوکړې شي نو هله به عمل په آیت راځي اوکه ابتداء کښې اودس اونکړې شي نو دا شرعي غسل ندې ددې نه بغیر جنابت نه زائل نه کیږي۔

بیا دا خبره زده کول پکار دي چه که یو شخص په ابتداء د غسل کښې اودس اوکړو او اودس ئې مات نشي نو دوباره اودس کولو ته ضرورت نشته، ځکه په دې کښې اتفاق دې چه دوه اودسونه کول غیر مشروع عمل دې، بلکه وضوء بعد الغسل بدعت عمل دې۔

ثَلَاثَ غَرَفَاتٍ بِيَدَيْهِ : د جمهورو علماؤ مذهب دادې چه سر وینځل په غسل کښې درې کرته دي، او په بدن باندې یو ځل اوبه اچول دي ۔او درې ځله په بدن باندې اوبه اچول په هیڅ صحیح یا ضعیف حدیث کښې نه دي ثابت، بلکه طریقه داده چه په سر به درې ځله اوبه اچوي او په ټول بدن به یو ځل اوبه واړوي، لکه په دې حدیث کښې چه څنګه ذکر ده۔ بیا د یو ځل اوبو اچولو مطلب دانه دې چه هسې یو ځل به اوبه پرې واچوي نو دا کافي دي، نه بلکه مطلب دادې چه په ټول بدن باندې دیوې لوټې کوزې نه اوبه اچول کافي دي، بار بار لوټې کوزې ډکول او په بدن باندې راړول – اګر که هغه لوند شوې وي –

صحیح نه دی۔ صرف بدن یو ځل لوندول کافی دی۔ په بدن دے دومره اوبه واچوی چه تر خپو پورے لوند شی، نو بیا دوباره اوبه اچول نشته۔

۲ – صرف د احنافو رائے داده چه په غسل کنبے به یو ځل په سر اوبه اچوی، بیا به په بنۍ اوګه، او دریم ځل به په ګسه اوګه باندے اوبه اچوی۔ لیکن دا طریقه د نبی کریم ﷺ نه نه ده ثابت۔او تثلیث په غسل کنبے سنت نه دے۔ دلیل او حکمت دادے چه جنابت خو ظاهری نجاست نه دے چه درے ځل پرے اوبو اچولو سره پاك شی،بلکه دا نجاست معنوی دے، لکه حدیث کنبے دی ( ان المؤمن لا ینجس)، که جنب وی او اوبو کنبے لاس اووهی نو دا نجس نه دی، کله چه ظاهری نجاست ئے په لاس باندے نه وی۔

**مسئله** : بعضے علماء فرمائی : په غسل د جنابت کنبے په سر باندے درے ځله اوبه اچول مستحب دی، اګرکه په یو کرت اچولو باندے سر لوند شی خو تکرار مسنون دے لکه چه په دے حدیث کنبے ذکر شوی دی۔

۲ – او بعضے نور علماء فرمائی چه درے ځله اوبه اچول مستحب نه دی۔ او ددے روایت مطلب دادے چه نبی کریم ﷺ هره غرفه (لپه) د سر په اطرافو باندے اچولے ده، نو ددے سره غرض استیعاب د سر دے یو ځل، او تکرار مقصود نه دے۔

---

۷ – عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ : قَالَتْ مَيْمُوْنَةُ : وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ ﷺ غُسْلًا فَسَتَرْتُهُ بِثَوْبٍ وَصَبَّ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ صَبَّ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ صَبَّ بِيَمِيْنِهٖ عَلٰى شِمَالِهٖ فَغَسَلَ فَرْجَهٗ فَضَرَبَ بِيَدِهِ الْاَرْضَ فَمَسَحَهَا ثُمَّ غَسَلَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهٗ وَذِرَاعَيْهِ ثُمَّ صَبَّ عَلٰى رَأْسِهٖ وَاَفَاضَ عَلٰى جَسَدِهٖ ثُمَّ تَنَحّٰى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ فَنَاوَلْتُهٗ ثَوْبًا فَلَمْ يَأْخُذْهُ فَانْطَلَقَ وَهُوَ يَنْفُضُ يَدَيْهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَلَفْظُهٗ لِلْبُخَارِيِّ .

**ترجمه** : ابن عباس ؓ وائی : ام المؤمنین بی بی میمونه ؓ اوفرمائیل : ما د رسول الله ﷺ دپاره اوبه کیخودلے، او په یو جامه باندے مے پټ کړو، په خپل دواړو لاسونو باندے ئے

اوبه واچولے، هغه ئے اووينځل، بيا ئے په خپل ښی لاس سره په گس بانديے اوبه واچولے او خپل عورت ئے اووينځلو، بيا ئے خپل گس لاس په زمکه اومږلو او هغه ئے اووينځل، بيا ئے خله کنگال کړه، پوزه کښے ئے اوبه واچولے او مخ لاسونه ئے تر څنگلو پورے اووينځل، بيا ئے په خپل سر اوبه واچولے او ټول بدن بانديے ئے اوبه اوبهيولے، بيا (هغے ځائے نه) اخوا شو (چرته ئے چه غسل کړيے وو) او خپلے دواړه خپے ئے اووينځلے۔ بيا ورته ما جامه ورکړه خو هغه ئے قبوله نه کړه، او په داسے حال کښے روان وو چه دواړو لاسونو نه ئے اوبه څنډلے ۔(بخاري، مسلم او الفاظ د بخاري دی)۔

**تشريح** : فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ : **سوال** : په دے روايت او دارنگه په روايت د بخاري کښے داخبره ده چه قدمونه روستو وينځل شوی دی د غسل نه، او په تير شوی روايت د عائشةؓ کښے دی (ثم يتوضأ كما يتوضأ للصلاة)، يعنے قدمونه به ئے د اوداسه سره وينځل۔ نو دا ظاهر کښے تعارض معلوميږی ددے څه جمع او توفيق دے ؟۔

١ – **جواب** : روايتِ دعائشةؓ حمل دے په مجاز بانديے يعنے مراد د داوداسه نه اکثر اودس دے، سيوا د خپو وينځلو نه، نو تعارض نشته يعنی۔ خپے ئے روستو وينځلی دی، په دواړو حديثونو کښں۔

٢ – **جواب** : دا چه دواړه حديثونه حمل دی په دوه قسمه حالاتو بانديے، کله به نبی کريم ﷺ قدمونه د اوداسه سره وينځل، کله چه به گنده ځائے کښے نه وو ولاړ، مثلا په تخته يا کانړی يا اوچت ځائے کښے به وو، چه خپے به نه گنده کيدلے نو خپے به ئے د اودس سره اووينځلے۔ اوکله به ئے روستو وينځلے؛ کله چه به په داسے مکان کښے وو چه اوبه به په کښے جمع کيدلے، خپے به نجس کيدلے۔ دا وجه ده : د امام مالكؒ هم دا مذهب دے چه کله انسان په پاك ځائے کښے وی نو قدمين به مخکښے وينځی (يعنے اوداسه سره) اوکله چه پاك ځائے کښے نه وی، نو مستحب داده چه قدمين به روستو وينځی۔ لکه چه خپے روسته وينځل اکثری طريقه د نبی کريم ﷺ وه۔ وهو الراجح۔

لکه حافظ ابن حجر او امام نووی فرمائی : چه هيڅ يو روايت کښں تصريح پدے نده راغلے چه نبی ﷺ خپے اوداسه سره مخکښں وينځلی دی، بلکه صرف احتمالی روايات

شته لکه ( يتوضأ كما يتوضأ للصلاة) او بل طرفته د عائشې روايت کښې صراحت ددې خبرې دې چه خپې ئې د غسل کولو نه روستو وينځلې دی ( ثم أفاض على سائر جسده ثم غسل رجليه ) او ددې روايت بل شاهد هم شته چه ابو سلمه د عائشې نه روايت کوی هغه دا چه ( فاذا فرغ غسل رجليه) يعني کله به چه فارغ شو نو خپې به ئې اووينځلې.

فتح الباری (١/٤٣١) وتحفة الاحوذی (١/٣٦٧).

٢ - د شوافعو دوه قوله نقل دی : أصح او مشهور قول دادې چه اودس به کامل کوی.

وهو ينفض يديه : ١ - دا حديث دليل دې په دې خبره چه لاسونه څنډلِ جواز لرى، امام بخاری رحمه الله په دې باب تړلې دې : باب نفض اليدين . او بل حديث چه ددې معارض راغلې دې (لا تنفضوا أيديكم في الوضوء، فانها مراوح الشيطان) أخرجه ابن حبان في الضعفاء . نو دا حديث ضعيف جدا دې، د معارضې قابل نه دې، اودا حديث الباب متفق عليه قوى حديث دې.

٢ - دا حديث دليل دې چه غُسَالَةُ البدن طاهر ده، يعنې د بدن نه چه کومې اوبه په نورو اندامونو باندې لګى نو نجس نه دى. ځکه د لاس په څنډلو سره ضرور څاڅکی په بدن لګيږی.

٣ - اودس نه پس اندامونه اوچول بهتر نه دی، لکه چه دا مسئله مخکښې تيره شوه.

---

٨ - وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : اِنَّ امْرَأَةً مِنَ الْاَنْصَارِ سَأَلَتِ النَّبِيَّ ﷺ عَنْ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيْضِ فَاَمَرَهَا كَيْفَ تَغْتَسِلُ ثُمَّ قَالَ : خُذِیْ فِرْصَةً مِنْ مِسْكٍ فَتَطَهَّرِیْ بِهَا، قَالَتْ : كَيْفَ اَتَطَهَّرُ بِهَا ؟ فَقَالَ : تَطَهَّرِیْ بِهَا. قَالَتْ : كَيْفَ اَتَطَهَّرُ بِهَا ؟ قَالَ : سُبْحَانَ اللهِ ! تَطَهَّرِیْ بِهَا، فَاجْتَذَبْتُهَا اِلَیَّ فَقُلْتُ : تَتَبَّعِیْ بِهَا اَثَرَ الدَّمِ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .

**ترجمه** : عائشه فرمائی : د انصارو يوې زنانه د رسول الله ﷺ نه د خپل حيض نه د غسل متعلق تپوس اوکړو، نو نبی ﷺ هغې ته د غسل کولو حکم اوکړو چه څنګه

غسل اوكړي، بيا ئے اوفرمائيل : د مشكو يوه ټكړه واخله او هغے سره پاكي حاصله كړه۔ هغے اووئيلے : دے سره څنګه پاكي حاصله كړم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : دے سره پاكي حاصلهٔ كړه، هغے بيا تپوس اوكړو: دے سره څنګه پاكي حاصله كړم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : سبحان الله ! (الله پاكے دے) ته دے سره پاكي حاصله كړه۔ بي بي عائشهؓ فرمائي : نو ما هغه ځانته راخكله او ورته مے اووئيل : كوم ځائے چه د وينے اثروي هغے باندے دا كيږه كيده۔ (بخاري، مسلم)۔

**تشريح** : كَيْفَ تَغْتَسِلُ :أى أمرها كيفية الغسل :

خُذِيْ فِرْصَةً مِنْ مَسْكٍ : فرصه لفظ په كسره د فاء سره دے، د وړئ يا مالو چو ټوټے ته وائي، يا هغه ځرمن چه په هغے باندے وړئ لګيدلے وي ۔

مَسْكٍ : ۱ – چا وئيلي دي چه دا لفظ په فتح د ميم سره دے، نو ځرمنے ته وائي، او وجه دا بيانوي چه كه مشك مراد شي، نو هغه خو ډير ګران قيمت والا شے دے، هغه دا صحابيهؓ څنګه پيدا كړي، سره د غربت او فقر د هغوئ نه ۔ ليكن دا خبره صحيح نه ده، وجه داده چه په هغه زمانه كښے مشك ډير استعماليدل نو دومره ګران قيمت ئے نه لرلو۔ او په دے زمونږ دور كښے ځكه ګران دي چه دا طبيبان په دوايانو كښے اچوي چه هغه مقوي د قوتِ باه دي۔ نو په دے وجه دا ګران شوي دي ۔ نو اصح داده چه ددے نه مراد مشك دي، اودا مسك لفظ په كسره د ميم سره دے، او دا قول ځكه راجح دے چه ددے تفسير په روايت د عبد الرزاق كښے داسے راغلے دے ( خذى فرصة من ذريرة) ، ذريره خوشبوئي ته وائي۔ بل روايت كښے دي (فرصة ممسكة)، يعنے هغه ټكړه چه مشك پرے لګيدلے وي

بيا دا خوشبوئي استعمالول مستحب دي، وجه داده چه كله زنانه د حيض موده تيره كړي نو هغه بدبويه شوے وي،نو كله چه غسل اوكړي نو كيدے شي چه د هغے د بدن د بعضے حصے نه بد بوئي راځي، نو زنانه به خوشبوئي را واخلي او د خپل اندام، بغاندو وغيره سره به ئے اولګوي، دے دپاره چه كومه بد بوئي وي هغه ختمه شي اوخاوند ترے نفرت اونه كړي۔ خو نن صبا دور كښے زنانه عطرونه نشي لګولے ځكه چه په دے عطرونو كښے كحول او تيزاب وي، چه اندام سوزوي، خصوصا نرم اندام، نو داسے اوچ

عطر دې استعمال کړي، يا دې په داسې طريقه عطر استعمال کړي چه ضرر ورته اونه رسي. لکه مالو چو کښې دې اولګوي او هلته دې ئې اوتړي، خو صابون وغيره تقريبا ددې په ځائې کار ورکوي. ځکه غالباً صابن خوشبويه وي.

**الغرض** : د نبي کريم ﷺ غرض دادې چه زنانه پاکي او نظافت اختيار کړي، او د خاوند د نفرت نه بچ شي.

سُبْحَانَ اللهِ! : دا د تعجب کلمه ده، چه نبي ﷺ ددې زنانه نه تعجب اوکړو چه دومره معمولي مسئله ده او ستا دماغ پرې نه خلاصيږي، او نبي ﷺ ورته تشريح هم نشوه کولې ځکه ورته بار بار همدغه لفظ ذکر کوي چه (تطهري بها)، (١) يو خو نبي ﷺ کښې حياء زياته وه (٢) دويم دا چه هسې يو سړې د پردئ زنانه سره دا قسم خبرې نشي کولې، په نسبت ددې چه سړو سره ئې اوکړي، ځکه دا کار ډير ګران وي، چه زنانه ته اووائي چه داسې داسې ځائې کښې استعمال کړه، ځکه نبي ﷺ په دغسې اجمالي طريقه سره پوهه کوله.

فَاجْتَذَبْتُهَا : نو هلته عائشةؓ ناسته وه فرمائي چه دا زنانه ما ځان ته راخکله او تشريح مې ورته اوکړه چه په کوم ځائې وينه لګيدلې وي نو په هغه ځائې خوشبوئي اولګوه. ددې نه دا فائده معلومه شوه چه رسول الله ﷺ ډيرې بيبيانې ددې وجې نه کړې وې چه خلقو ته دعوت اوکړي او د زنانو مسائل ورته بيان کړي، ځکه بعضې داسې مسائل دي چه زنانه ؤ ته سړې د هغې پوره طور سره تشريح نشي کولې .

**فائده** : په غسل د جنابت او غسل د حيض کښې په کيفيت کښې څه ډير فرق نشته، سيوا د فرصه ممسکه استعمالولو نه، چه دا به په غسل د حيض کښې استعمالوي، يعنې د غسل نه به ئې روستو استعمالوي. ځکه چه په دې سره بد بوئي د حيض ختميږي چه هغه سبب د نفرت د خاوند جوړيږي. او بل فرق لږ روسته راروان دې.

تَتَبَّعِيْ بِهَا اَثَرَ الدَّمِ : يعنې فرج باندې اولګوه اوکومې جامې ته چه د وينې اثر رسيدلې وي هلته به ئې اولګوي. ليکن که په نرم اندم اولګي نوانسان سيزي، نو عطر دې استعمال کړي، يا دې په جامو اولګوي، يا خوشبويه صابن ددې په ځائې کافي کيږي .

**٩ – وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ : قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنِّي امْرَأَةٌ اَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِيْ اَفَانْقُضُهُ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ ؟ فَقَالَ : لَا، اِنَّمَا يَكْفِيْكِ اَنْ تَحْثِيَ عَلٰى رَأْسِكِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ ثُمَّ تُفِيْضِيْنَ عَلَيْكِ الْمَاءَ فَتَطْهُرِيْنَ ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

---

**ترجمه** : ام سلمةؓ فرمائی : ما عرض اوکړو : یا رسول الله ! زه یوه داسې ښځه یم چه د خپل سر ویښته مضبوط تړم، آیا د جنابت د غسل دپاره به دا پرانیزم ؟ نبی ﷺ اوفرمائیل : نه، تا پاره دا کافی ده چه په خپل سر باندې درې لپې اوبه واچوې او بیا په خپل ټول بدن باندې اوبه واچوې پاکه به شې .(مسلم).

**تشریح : ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ : مسئلة : فرق بين غسل الحيض والجنابة :**

د غسل الحيض حکم دادې چه دا ډیره موده پس راځی، نو ټول اندامونه وینځل ضروری دی، که چوټې وی نو هغه لمدول به هم ضروری وی، تردې چه اوبه د ویښتو بیخونو ته اورسی .

او غسل الجنابت کښې زنانه دوه قسمه دی (١) یو هغه دی چه ټول ویښته راټول کړی اویو چوټې ترې جوړه کړی، لکه د ښار زنانه، نو ددې حکم دادې چه ددې ټول سر وینځل فرض دی، ځکه حرج او ګرانتیا په کښې نشته .

(٢) دویم هغه زنانه دی چه ډیرې کونځې کوی، لکه د کلو او باندو زنانه، نو حکم دادې چه که زنانه کونځۍ او چوټې وغیره اونه پرانیزی نو جواز لری، او پرانستل ئې ضروری نه دی کله چه بیخونو د ویښتو ته اوبه رسوی.

**دليل** : ځکه په دې پرانستلو کښې حرج دې او حرج په شریعت کښې مدفوع (ختم شوې) دې. که کونځۍ اوچې پاتې شی نو باك نه لری، لیکن شرط دادې چه اصول الشعر (د ویښتو بیخونه) لمدول به ضروری وی، کما فی الحدیث (اذا بلغ الماء أصول شعرك).

او غسل الجنابت چونکه زر زر مکرر کیږی، لهذا په دې کښې شریعت سهولت کړې دې نو چوټې وینځل که پاتې شی نو باك نه لری.

٢ – دويم دليل ددے خبرے دپاره چه په غسل د جنابت کښے کونځئ پرانستل ضروری نـه دی، حدیث د عائشةؓ دے چه دیته د عبد الله بن عمرو بن العاصؓ دا خبره را ورسیدله چه عبد الله بـن عـمروؓ زنانو ته داحکم کوی چه په غسل کښے به کونځئ پرانیزی، نو عائشےؓ اووئیل : تـعـجـب دے په عبد الله بـانـدے چه دا حکم ورکوی، نو بیا دے ورته دا حکم هم اوکړی چه سرونه اوخروئ (لقد كنت أغتسل أنا ورسول الله ﷺ من اناء واحد وما أزيد على أن أفرغ على رأسي ثلاث افراغات). الحديث. أخرجه مسلم (١٥٠/١) وأحمد عن عبيد بن عمير . یـعـنـی مـا او نبی علیه السلام به شریك لامبل او صرف درے ځل اوبه به مے په سر اچولے۔

د عائشے رضی الله عنها مطلب داوو چه د ویښتو اوکونځو پرانستل ضروری نه دی، بلکه بیخونو ته اوبه رسول ضروری دی۔

اود عبد الله بن عمروؓ د حدیث نه جواب دادے چه داحکم ورکوی نو یا خو دا بناء دے په استحباب او احتیاط باندے، نه په وجوب باندے۔

(٢) اویـا په وجوب باندے حمل دے خو دا دده مذهب وو، او حدیث د عائشةؓ او أم سلمةؓ ورته نه وورسیدلے چه (انما يكفيك أن تحثي على رأسك ثلث حثيات)، نو ځکه ئے زنانو ته دا حکم ورکولو۔

اصل مسئله خو دغه شوه خو پدے مسئله کښے هم څه نا څه اختلاف شته۔

د جمهور علماؤ مذهب دادے (ومنهم الائمة الثلاثة) چه زنانه دپاره په غسل د جنابت او حیـض دواړو کښے دا واجب نـدی چه ویښته (کونځئ) به پرانیزی بلکه صرف دا ورله کـافی دی چه درے ځله پرے درے لپے اوبه واچوی۔ او دا قول د مفتی الدیار السعودية شیخ عبد العزیز بن بازؒ هم دے۔

٢- ابراهیم نخعی وائی چه په دواړو کښے به ئے پرانیزی که غسل د جنابت وی او که د حیض کما فی النیل (٣١٢) ۔

٣- حسن بـصـری او طـاوس وائـی په غسل الجنابة کښے به کونځئ نه پرانیزی او په حیـض کښے به ئے پرانیزی۔ او دا مشهور قول د امام احمد دے کما فی التحفه (١٢٠٨/١)

وتوضیح الاحکام (۱/۳٦۰) وهو قول ابن الحزم والشیخ الالبانی فی تمام المنة۔
نو د ائمه اربعه ؤ اتفاق دے پدے کښې چه د جنابت په غسل کښې پرانستل ضروری ندی کما قال صاحب المغنی۔

**دلائل** : د ابراهیم نخعی قول دپاره خو څه خاص دلیل نشته سوی ددے نه چه عقلی دلیل وائی چه شریعت په غسل کښې تول بدن او ویښته وینځل ضروری کړیدی او کونځئ خو ددے نه مانع دی نو ځکه به ئے په دواړو غسلونو کښې پرانیزی لیکن هغه ته د زنانو دپاره د رخصت حدیث ندے رسیدلے دے۔

دجمهورو سره دلیل پدے چه په دواړو کښې پرانستل واجب ندی دا دے چه په بعض روایات د حدیث د ام سلمه کښې د جنابت سره حیض هم ذکر شویدے داسے تپوس شویدے (انی امرأة اشد ضفر رأسی افأنقضه للحیض والجنابة قال : لا) رواه مسلم۔

لیکن ددے روایت په باره کښې حافظ ابن القیم فرمائی : الصحیح فی حدیث ام سلمة الاقتصار علی ذکر الجنابة دون الحیض ۔ شیخ البانی هم فرمائی چه پدے روایت کښې د حیض ذکر شاذ دے او ندے ثابت ۔

او د امام احمد **دلیل** : حدیث د عائشه دے چه بخاری او مسلم کښې راغلے دے کله چه عائشه حائضه شوه نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل : (انقضی رأسك وامتشطی) او په روایت د ابن ماجه وغیره کښې باسناد صحیح داسے دی (انقضی شعرك واغتسلی) نو دلته ورته نبی علیه السلام حکم اوکړو چه سر اوسپړه او غسل اوکړه۔ دلیل دے چه حائضه زنانه باندے کونځئ سپړل واجب دی ۔

لیکن ددے حدیث په باره کښې علامه صنعانی په سبل السلام (۱/۱۳۹) کښې وائی چه دا حدیث د حج په موقعه کښې وئیلے شویدے ځکه چه عائشے د عمرے احرام تړلے وو نو بیا حائضه شوه مخکښې د دخول د مکه نه نو نبی ﷺ ورته حکم اوکړو چه سر اوسپړی او کومنز ئے کړی او غسل اوکړی د احرام د حج دپاره او هغه خو لا تر اوسه د حیض نه پاکه شوے نه ده نو دا غسل صرف د تنظیف او صفائی په خاطر شویدے او دا د حیض غسل نه دے نو دا حدیث معارض نه دے د حدیث د ام سلمه سره انتهی۔

حافظ فتح الباري كښې فرمائي د روايتينو مينځ كښې تطبيق داسې كيدې شي چه په حديث د عائشه كښې چه كوم امر ( انقضي ) راغلې دې هغه به حمل شي په استحباب باندې ۔ او دا قول د امام زركشي هم دې كما في الانصاف وتوضيح الاحكام (١/٣٦٠) او دا تطبيق امام شوكاني هم غوره كړيدې فرمائي : راجيب بان الخبر ورد في مندوبات الاحرام والغسل في تلك الحال للتنظيف لا للصلاة والنزاع في غسل الصلاة. النيل (١/٣١٣) ۔ دارنګه علامه صنعاني فرمائي : دليل په عدم نقض حديث د ابن عمر دې كما في مسلم (١/١٥٠) لكه مخكښې تير شو چه ده به زنانو ته حكم كولو چه په غسل كښې كونځۍ اوسپړي نو عائشې پرې رد اوكړو او ظاهر دا ده چه ابن عمر به زنانو ته په غسل د جنابت او حيض دواړو كښې د كونځۍ سپړلو حكم كولو اګرچه عائشې په جواب كښې د جنابت د غسل ذكر كړو۔ انتهى ۔

نو ثابته شوه چه حائضه زنانه دپاره په غسل د حيض كښې كونځۍ وغيره سپړدل مستحب دي ۔

دا خو د زنانو متعلق حكم دې، او ديته استثناآت شرعيه وائي۔

اود سړو په غسل د جنابت كښې حكم دادې چه كه د سړي ګنړ ويښته وي او تړلي ئې وي د كونځو پشان نو په ده باندې لازم او واجب دي چه ويښته به پرانيزي او ظاهر او باطن دواړه به لمدوي۔ د وجې د ډيرو احاديثو نه، يو دوه حديثونه د ابو هريرةؓ دي او يو حديث د ثوبانؓ دې (كما في عون المعبود : ١/٩٤) چه صحابوؓ د نبي ﷺ نه په دې باره كښې تپوس اوكړو (فقال : أما الرجل فلينشر رأسه فليغسله حتى يبلغ الماء أصول الشعر، وأما المرأة فلا عليها أن لا تنقضه)، يعنې سړې به ويښته پرانيزي او سر به وينځي تردې چه اُوبه د ويښتو بيخونو ته اورسيږي، او په ښځه باندې كونځۍ پرانيزل نشته۔

**درجة الحديث** : رواه ابو داود۔ حافظ ابن قيمؒ فرمائي : (رواه ابوداود من حديث اسماعيل بن عياش وهذا اسناد شامي و حديثه عن الشاميين صحيح) نو دا صحيح حديث دې اود سړي او زنانه د غسل فرق په كښې ذكر دې۔ وكذا قاله الشوكاني في النيل (١/٣١٢)۔

١٠ - وَعَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ إِلَى خَمْسَةِ أَمْدَادٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : انس ؓ فرمائی : نبی ﷺ به په یو مُد اوبو باندے اودس کولو، او په یو صاع (اوګی) اوبو باندے به ئے غسل کولو، تر پینځو اوګو پورے۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ : په دے خبره کښے اتفاق دے چه د اوداسه او غسل اوبو لره داسے حد معین نشته چه د هغے نه کمے زیاتے جائز نه وی۔ دا وجه ده چه احادیث هم مختلف راغلی دی۔ لکه دا خبره امام ترمذیؒ د امام شافعیؒ، أحمدؒ او اسحٰق نه نقل کړیده۔ او علامه مبارکفوریؒ په تحفة الأحوذی (١/٦١) کښے فرمائی : چه دا قول راجح او معتبر دے، وجه داده چه د نبی کریم ﷺ نه په اوداسه او غسل کښے مختلف اقسام او مقدارات په اوبو استعمالولو کښے نقل دی، کله ئے کمے استعمال کړی دی، او کله ئے د حاجت مطابق زیاتے استعمال کړے دی۔ احادیث په کښے مختلف راغلی دی۔ په دے حدیث د أنس ؓ کښے دی (يتوضأ بالمد ويغتسل بالصاع الى خمسة أمداد)، او په روایت د أبوداود (١/١٣) کښے دی چه نبی کریم ﷺ په داسے لوښی اودس اوکړو چه دوه ثلثه (حصے) د مُد په کښے ځائیدل۔ (باناء فيه قدر ثلثي المد)۔

او په روایت د عائشه ؓ کښے دی (كما في أبي داود) چه ما او رسول الله ﷺ به د یو لوښی نه غسل کولو چه هغے ته (فرق) وئیل کیدو او درے صاع به په کښے ځائیدل۔ دا تول احادیث د لیل دے په دے خبره چه نبی کریم ﷺ کله زیادت کړے دے او کله کمے د حاجت مطابق۔

او یو (فرق) شپارس رطل جوړیږی نو درے صاع شو، په یو نیم باندے عائشے ؓ غسل کړے دے او په یو نیم باندے نبی ﷺ۔

او هرچه په دے حدیث کښے دا مقدار راغلے دے چه په یو مُد سره ئے اودس کولو او په یو صاع (دوه کلو پنځه سوه یا دوه کلو یوسل شپږ اویا ګرامه) یا زیات نه زیات پنځه مده (دوه نیم کلو) اوبو سره به ئے غسل کولو۔ نو دا صرف د افضلیت دپاره دے، او تحدید او مقداریت په کښے معین نه دے، بلکه أکثر او غالب اندازه د استعمالولو د اوبو ددے مقدار

مطابق وه. نو په دې باندې عمل أفضل او مستحب دے، اوکه حاجت زياتوالی ته پيښ شی نو زيادت هم جائز دے، نو درميانه به چليږی داسے به هم نه کوی چه هسے اندامونه غوړ کړی، اوهيڅ اوبه تو بے نه کړی، او ډیرے اوبه به هم نه تو ئے کوی چه هسے ئے په ځان راړوی .اودا د جمهورو علماؤ مذهب دے. امام ابوعبيدؒ په کتاب الاموال (٤٦٠) کښې فرمائی : وكان النبی ﷺ لايزيد على صاع ونصف وهو ثمانية ارطال ولا ينتقص في الغسل من الصاع وهو خمسة ارطال وثلث) يعنی نبی عليه السلام په غسل کښې د يو نيم صاع نه زيادت ندے کړے او د يو صاع نه ئے کموالے نه دے کړے.نو ددے په درميان کښې چليدل بهتر دی.

او په دے کښې رد دے په بعضے احنافو او ابن شعبان مالکی باندے چه دوئ ددے حديث مقدار په اوداسه او غسل کښې ضروری کړيدے او زيادت او نقصان ئے حرام ګڼړلے دے.

او وجه د غلطئ ددے تا اوپيژندله.

## المسئلة الثانية : مقدار الصاع والمد :

د صاع اومد په مقدار کښې اختلاف واقع شوے دے :

١ - د امام مالكؒ، شافعیؒ، ابو يوسفؒ او حجازينو مذهب دادے چه يو مُد رطل او ثلث رطل دے، يعنے يو صحيح او ايك بټه تين (١/٣، ١) رطل يو مد کيږی . بناء په دے باندے صاع په دے حساب سره پنځه رطل او يو ثلث رطل جوړيږی . يعنے پنځه صحيح او ايك بټه تين (١/٣، ٥) رطل يو صاع وی. نو مقدار د يو صاع نبوی (دوه کلو پنځه سوه ګرامه (٢٥٠٠) كما قال الشيخ البسام فی التوضيح (١/١٧٨).

او بعضے وائی دوه کلو يوسل شپږ اوويا ګرامه (٢١٧٦)جوړيږی كما قال يوسف القرضاوی فی فقه الزكوه (٢/٩٤٢) او مد خپله اندازه امتداد اليدين المعتدلتين ده كما فی القاموس نو په دغه مقدار يو مد تقريبا نيمه کلو وی.

٢ - **دويم قول** : د امام ابو حنيفهؒ، محمدؒ او عراقينو دے چه يو مُد دوه رطل. او يو صاع آته (٨) رطل دے. نو څلور مد يو صاع کيږی . صاحب د عَرف شذی او امام بيهقیؒ (كتاب المعرفه) کښې په دے باره کښې د امام ابو يوسفؒ او امام مالكؒ مناظره نقل کړيده

چه امام ابو یوسف" یوه ورځ مدینے ته لاړو، دامام مالك" او اهل مدینه نه ئے تپوس اوکړو چه ستاسو صاع کوم مقدار کښے دے ؟ امام مالك" کورته لاړو اوصاع ئے ورته راوستو چه دا د رسول الله ﷺ صاع دے (چه دا پنځه رطل او ثلث رطل وو)، نو ابو یوسف" اووئیل : په دے څه دلیل دے ؟۔ امام مالك" د صحابو" نوسو اوځامنو ته اووئیل چه صبا له صاع راوړئ۔ امام ابویوسف" فرمائی : چه ما اوکتل پنځوس ځامن د صحابو" خپل خپل صاعونه راوړل چه دا هغه صاعونه دی چه زمونږ پلارانو به پر دے باندے پیمانه کوله په زمانه د رسول الله ﷺ کښے ۔ امام ابو یوسف" فرمائی : ما چه هغه اندازه کړه نو هغه پنځه رطل او ثلث رطل وو، نو ما دَ امام ابو حنیفة" د رائے اومذهب نه رجوع اوکړه ځکه چه حجت راته ښکاره شو، او بیائے اووئیل : که زما صاحب - ابو حنیفة" - ژوندے وے نو هغه به هم رجوع کړے وے لکه چه ما اوکړه ۔ (فرأیت أمرا قویا وترکت قول أبی حنیفة فی الصاع)۔

او د کتاب الأموال ص (٤٦٢) په حاشیه کښے دی چه د امام محمد" نه هم رجوع نقل ده (وکذا فی الشامی : ١/ ١٧٠)۔ او د احنافو سره هیڅ قوی دلیل نشته، سیوا د قول د مجاهد" نه چه معانی الآثار کښے امام طحاوی" نقل کړے دے (قال دخلنا علی عائشة فاستسقی بعضنا فأتی بعس - القدح الکبیر - قالت عائشة : کان النبی ﷺ یغتسل بمثل هذا. قال مجاهد : فحزرته فیما أحزر ثمانیة أرطال، تسعة أرطال، عشرة أرطال)۔

یعنے : مجاهد" فرمائی : مونږ عائشے" ته ورغلو نو داوبو مطالبه مو ترے اوکړه، نو یوه غټه کاسه راوړے شوه۔ عائشے" اوفرمائیل : نبی ﷺ ددے په مثل باندے غسل کولو، مجاهد فرمائی : ما چه اندازه کړه نو هغه آته رطله یا نهه رطله یا لس رطله اوختله۔

نو په دے روایت کښے هم شك دے یقینی معلومات بیا هم اونشو او باقی مرفوع روایات هم ضعیف دی۔

او په نسائی (١/ ٤٨- رقم ٢٢٠) کښے موقوف روایت شته لیکن هغه هم صریح ندے لکه داسے الفاظ دی : عن موسی الجهنی قال مجاهد : اتی باناء یسع ثمانیة ارطال فقال حدثتنا عائشة ان رسول الله ﷺ کان یغتسل بمثل هذا ۔ نو دے روایت کښے مثل لفظ راغلے

دے چه صريح ندے په مقدار کښے۔

دا وجه ده امام ابو عبيدؒ په کتاب الأموال (١/٤٦٢) کښے فرمائي : عراقينو د صاع په آته رطل کيدو باندے ځکه قول کړے دے چه دوئ د نبی ﷺ دا حديث آوريدلے دے (كان يغتسل بالصاع، وسمعوا في حديث آخر انه كان يغتسل بثمانية أرطال وفي حديث آخر انه كان يتوضأ برطلين فتوهموا أن الصاع ثمانية أرطال لهذا)۔ يعنے : چه نبی ﷺ په يو صاع غسل کړے دے او بل حديث ئے دا آوريدلے دے چه په آته رطله به ئے غسل کولو، او بل حديث دے چه اودس به ئے په دوه رطله کولو، نو په دے چه دوئ دا تو هم اوګمان اوکړو چه صاع آته رطله دے۔ بيا فرمائي : ددے سره د دوئ قول مضطرب هم دے، نو صاع ئے ددے اندازے نه هم کم کړے دے۔

او هرچه حجازين دی نو په دوئ کښے هيڅ اختلاف نشته، عالم او جاهل ټول ئے پيژني چه خمسه أرطال و ثلث رطل دے. او دا صاع د نبی ﷺ صاع دے چه نسل در نسل را روان دے۔ او ما (ابوعبيد) چه کله دا صاع وزن ته واړولو نو د دوئ په قول کښے ډير تفاوت نشته۔ او د اهل عراق په قول کښے د صاع ترمينځه په وزن کښے ډير تفاوت دے۔ نو ددے نه ما معلومه کړه چه صاع د اهل حجاز معتبر دے۔

او بيا په حديث سره ثابته شوه چه نبی ﷺ فرمائي : (المكيال مكيال اهل المدينة، والميزان ميزان اهل مكة). قال في تلخيص الحبير : رواه البزار واستغربه، وابوداود والنسائي وصححه ابن حبان والدارقطني والنووي. وهو حديث صحيح كما في صحيح ابي داود۔

او دغه شان حديث د ابن عمر عن النبی ﷺ هم نقل دے۔ او دا مذهب ئے په درے وجهو راجح کړے دے۔

نو بناء په دے باندے د جمهورو مقدار څومره دے ؟ نو د يو صاع مقدار دوه کلو او پنځه سوه يا دوه کلو يو سل شپږ اوويا ګرامه دے، يعنے تقريبا پاؤ باندے دوه کلو دے۔

د احنافو په نيز يو صاع تقريبا درے يا پاؤ باندے درے کلو جوړيږی۔

او د لغت عربی په لحاظ ئے معلومات داسے دے : چه د معتدل سړی د غنمو وغيره يوه ډکے لپے ته مد وائی۔ نو يو صاع څلور مُده دے، او مد ته مُد ځکه وائی چه (لامتداد

اليدين فيه) په دې کښې دواړه لاسونه اوړديږي. امام نووي فرمائي : قال جماعة من العلماء الصاع اربع حفنات بکفي رجل معتدل الکفين. يعني د معتدل سړي څلور لپې يو صاع جوړيږي. نو چه يو صاع (٢٥٠٠) ګرامه شي نو يو مد به (٦٢٥) ګرامه جوړيږي، چه دا څلورمه حصه د يو صاع ده.

ابن حجر عسقلاني په فتح الباري کښې تطبيق کړې دې چه په باب د زکات او عشر او صدقه الفطر کښې د جمهورو په قول عمل پکار دې، او په باب د اوبو کښې چه د اوداسه يا د غسل دپاره اوبه استعمالوي نو په قول د احنافو عمل پکار دې، نو نيم کلو يو مُد دې. زيات وضاحت کتاب الأموال (٤٦٢) او تحفة الأحوذي (١/ ٦٠) کښې کتلې شئ.

**خلاصه** : دا چه د اوداسه او غسل د اوبو معينه او مقرره اندازه معلومه نه ده، خو غالبه اندازه په غسل کښې داده چه د انسان ټول بدن پرې لوند شي او اوبه ترې اوڅاڅي. دومره کمې هم نه وي چه بدن پرې پوره لوند نشي، او احتمال د اوچ پاتې کيدو په کښې پاتې شي، او دومره زياتې هم نه وي چه د اسراف حد ته اورسيږي. او مستحب او أفضل په کښې هغه مقدار دې کوم چه په دې حديث د أنس کښې ذکر دې. يعنې په اودس کښې يو مد او په غسل کښې پنځه مدونو پورې. او دغه شان په اوداسه کښې به هم دومره اوبه استعمالوي چه نه ډيرې کمې وي، چه اندامونو نه اوبه اونه څاڅي او اوچ پاتې کيدو امکان وي. او دومره زياتې به هم نه کوي لکه د سوسے والو پشان چه په دوه لوټو باندې ئې هم ګذاره نه کيږي.

---

١١ - وَعَنْ مُعَاذَةَ قَالَتْ : قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا : كُنْتُ اَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مِنْ اِنَاءٍ وَاحِدٍ بَيْنِيْ وَبَيْنَهٗ فَيُبَادِرُنِيْ حَتّٰى اَقُوْلَ : دَعْ لِيْ دَعْ لِيْ، قَالَتْ : وَهُمَا جُنُبَانِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : معاذه وائي : عائشې اوفرمائيل : ما اورسول الله ﷺ به د يو لوښي نه شريك غسل کولو، چه زما اووده ترمينځه به پروت وو. نو رسول الله ﷺ به - اوبو اخستو کښې - مانه تادي کوله، تردې چه مابه اووئيلې : ما دپاره اوبه پريده، ما دپاره اوبه پريده. بي

بی معاذةؒ فرمائی : عائشهؓ او رسول الله ﷺ به دواړه جنب (ناپاکئ حالت کښې) وو۔ (بخاري، مسلم)۔

## تعارف د معاذه :

د دې نوم معاذه بنت عبد الله العدويه دې، أم الصهباء البصرية العابدة. ثقة، حجة تابعيه ده۔ د خاوند ابو الصهباء د مرګ نه پس په بستره نه ده اوده شوې، تردې چه وفات شوه۔ امام ذهبیؒ فرمائی : چه دې به د شپې عبادتونه کول، ويښه به وه، او دا به ئې وئيل : (عجبت لعين تنام وقد علمت طول الرقاد فی القبور)، تعجب دې په هغه سترګه چه خوبونه کوی او په دې يقين لری چه په قبر کښې اوګده خوبونه راروان دی۔ دعائشےؓ او علیؓ نه احاديث نقل کوی۔ په سنه (٨٣) هـ کښې وفات شويده۔

**فوائد الحديث** : ١ – د ښځې اوخاوند په يو ځائې لمبل جائز دی، اګرکه برېنډ وی۔ او په دې باندې امام نوویؒ په شرح د مسلم (١٤٨/١) کښې او طحاوی او قرطبی اجماع د مسلمانو نقل کړې ده، البته ابو هريرةؓ او بعضې نورو په کښې اختلاف کړې دې۔

٢ – که سړې مخکښې اولامبی او زنانه د هغې نه پاتې شوو اوبو سره اولامبی جواز لری، په دې کښې هم اتفاق دې۔

٣ – زنانه اولامبی او د هغې نه پاتې شوو اوبو باندې سړی لره لمبل ناجائز دی په نيز د احمدؒ او اسحقؒ باندې لکه ددې تفصيل به په آخر د باب (مخالطة الجنب (٢.١) حديث د الحكم بن عمرو کښې راشی ان شاء الله تعالی۔

٤ – په يو ځائې لامبلو کښې د سړی کتل زنانه ته اود زنانه کتل سړی ته دواړه جائز دی ۔ اګرچه برېنډوی۔ دليل په دې باندې دا حديث دې۔

٢ – بل حديث د عطاء دې چه د عائشةؓ نه ئې تپوس اوکړونو هغې ورته دا حديث په جواز کښې ذکر کړو۔ (كما فی ابن حبان : ٤٣٩/٧، رقم : ٥٥٥٠)۔

بل حديث د معاويه بن حيده دې قال : قلت يا رسول الله عوراتنا ما نأتي منها وما نذر ؟ قال : احفظ عورتك الا من زوجتك او ماملكت يمينك وسنده حسن وصححه الحاكم. آداب الزفاف ص (٣٩٥)۔

٣ - هدايه كتاب الكراهية كښې دي : ابن عمرؓ فرمائي : استكمالا للذة كتل جواز لري. دا مسئله به په دويم جلد د مشكات كتاب النكاح كښې تفصيلا راشي. غرض په دې مسئله كښې دادې چه چا يوه مقوله وئيلې ده او حديث ئې ترې جوړ كړې دې چه عائشةؓ فرمائي ( ما رأيت منه ولا رأى مني) يعني العورة - چه نه ما د رسول الله ﷺ عورت ليدلې دې او نه هغه زما عورت ليدلې دې (لكه دا ئې په تلخيص او مختصر المعاني كښې د استهجان الذكر په مثال كښې راوړيدې او عائشةؓ ته ئې منسوب كړې دې) خو دا حديث نه دې او نه د عائشةؓ نه نقل دې لكن اخرجه الطبراني في الصغير ان عائشة قالت ما رأيت عورة رسول الله ﷺ قط. وفي سنده بركة بن محمد الحلبي ولا بركة فيه فانه كذاب وضاع - نو دا موضوعي حديث دې آداب الزفاف ص (٣٧) وهناك روايات بهذا المعنى كلها باطلة انظر الضعيفة رقم (١٩٥).

اوكه صحراء كښې لامبي كله چه څوك نه وي نو جائكې، يا لنګ وغيره اچول أفضل دي - ٥ - د جنب لاس منډل په اوبو كښې او د هغې نه لپه راخستل جواز لري، او په باقي اوبو باندې هم غسل جائز دې. او نارينه او زنانه دواړه په دې كښې برابر دي.

٦ - په حالت د جنابت كښې دارنګه په برېنډه باندې د غسل په وخت د ضرورت خبرې اترې كول جائز دي. ٧ - دارنګه د جنب سرې په اوبو كښې لاس وهلو سره اوبه نه مستعملې كيږي، اوكه مستعملې شي نو طاهر مطهر دي -

---

## الفصل الثاني - دويم فصل

١٢ - عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ : سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَنِ الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا، قَالَ : يَغْتَسِلُ، وَعَنِ الرَّجُلِ الَّذِىْ يَرٰى اَنَّهٗ قَدِ احْتَلَمَ وَلَا يَجِدُ بَلَلاً قَالَ : لَا غُسْلَ عَلَيْهِ . قَالَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ : هَلْ عَلَى الْمَرْاَةِ تَرٰى ذٰلِكَ غُسْلٌ ؟ قَالَ : نَعَمْ، إِنَّمَا النِّسَاءُ شَقَائِقُ الرِّجَالِ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَاَبُوْدَاوُدَ، وَرَوَى الدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجَه اِلٰى قَوْلِهٖ : لَا غُسْلَ عَلَيْهِ .

**ترجمه** : بی بی عائشهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ نه دهغه سړی باره کښې تپوس اوشو چه خوب نه پاڅی او په کپړه باندې د منی لوندوالې محسوس کړی اوخوب – احتلام – ورته یاد نه وی۔ نبی ﷺ اوفرمائیل : غسل به کوی۔ او د داسې سړی باره کښې ترې هم تپوس اوشو چه خوب نه پاڅیدو او احتلام ورته یاد وی، لیکن لوندوالې نه محسوسوی، نبی ﷺ ورته اوفرمائیل : په هغه غسل واجب نه دې۔ بی بی ام سلیمؓ تپوس اوکړو : که ښځه هم دا لوندوالې اووینی نو په هغې غسل واجب دې ؟ نبی ﷺ اوفرمائیل : هاؤ، ښځې هم د سړو پشان دی (په دې معامله کښې)۔ (ترمذی، ابوداود) او دارمی او ابن ماجه دا حدیث (په هغه غسل واجب نه دې) پورې نقل کړیدې۔

**تشريح** : يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا :

١ – دا خو اجماعی مسئله ده چه انسان خوب اووینی او خوب ورته یاد نه وی، نوکه لوندوالې په جامه باندې بیا مومی نو غسل به کوی، اوکه لوندوالې اونه وینی نو غسل پرې نشته، ځکه لوندوالې علامه او دلیل دې د وجوب الغسل او احتلام۔ (کما حکاه ابن المنذر وابن قدامه – مرعاة : ١٣٩/٢)۔

صرف ابن رسلان د امام شافعیؒ نه نقل کړی دی چه غسل واجب نه دې، مگر هله چه کله ورته د خوب بیداریدو نه پس پته اولگی چه ما خوب کښې د چا سره جماع کړې ده۔ اوکه پته ورته اونه لگی نوغسل واجب نه دې۔ خو دا قول درست نه دې۔

اوکه ویښ انسان په جامو کښې لوندوالې اووینی او دا ورته معلومه نه وی چه منی ده که مذی، نو په دې کښې اختلاف دې، صاحب المرعات په نیز وجوباً احتیاطاً غسل ضروری دې، او نور علماء وائی : غسل پرې نشته۔ صحیح خبره دا ده چه غسل پرې نشته ځکه انسان ته ضرور خپل حال معلومیږی۔

شیخ بسام داسې تحقیق کوی : چه کوم سړې یا زنانه د خوب نه پس په جامه یا بدن باندې لوندوالې اووینی نو دده درې حالات دی :

(١) – چه دا یقین وی چه دا منی ده نو صرف غسل به کوی اگرچه احتلام ورته یاد نه وی۔ (٢) – چه دا یقین ئې وی چه مذی ده نو دا نجاست دې وینځل ئې واجب دی او غسل

پرے نشته۔ (٣) - د منی یا مذی کیدو باندے ناپوهه وی نو پدے حال کښ که دده دخوب نه مخکښ د ښځے سره ملاعبه (گپ شپ) لگیدلے وی یا ئے فکر کړے وی یا حالت د انتشار کښ وی نو غالبه دا ده چه دا مذی ده نو صرف هغه جامه یا بدن وینځل واجب دی کوم ځائے ته چه رسیدلے وی او غسل پرے نشته او که د خوب نه مخکښ سبب د خروج المذی نه وی راغلے یعنے دغه مخکنی کارونه نه وی شوی نو پدے صورت کښ په ده باندے غسل واجب دے او د هغه جامے او بدن چه دا ورته رسیدلی وی احتیاطا وینځل واجب دی۔ توضیح الاحکام (١٩٦/١)۔

**فائده** : ١- إِنَّمَا النِّسَاءُ شَقَائِقُ الرِّجَالِ: نه دا معلومه شوه چه په احکام شرعیه ؤ کښے زنانه د نارینه ؤ تابع دی، نو کله چه څه حکم نارینه ؤ ته اوشی، زنانه به په کښے داخلے وی، مگر کله چه د زنانو سره جدا حکم متعلق وی نو بیا د هغے تذکره کوی۔

٢- دارنگه دے نه قیاس هم ثابت شو، او حمل د یو نظیر په بل نظیر باندے په حکم کښے، لکه دلته حمل د زنانو شوے دے په نارینه ؤ باندے په وجوب الغسل کښے په وخت د احتلام کښے لیکن قیاس صرف دوه وقتونو کښ حجت وی (١) د مجتهد دپاره حجت وی په هغه وخت کښے چه دهٔ ته نص صریح ملاو نشی نو ده باندے د حکم شرعی معلومولو دپاره قیاس ضروری دے لکه تحری فی القبلة خو دا صرف د مجتهد دپاره حجت دے نه د بل چا دپاره۔ (٢) دویم په هغه وخت کښ چه کله په یوه مسئله کښ آیت یا حدیث موجود وی او ته په کښ قیاس هم اوکړے نو دا قیاس په درجه د دلیل عقلی کښے دے پس د وجود د دلیل نقلی نه نو دا قیاس هم معتبر دے ځکه چه اصل مسئله کښ خو آیت یا حدیث شته خو دا قیاس صرف د زیاتی معلومات دپاره ذکر کولے شی۔

إِنَّمَا النِّسَاءُ شَقَائِقُ الرِّجَالِ : زنانه د سړو سره مشابه دی په خلقت او طبیعت کښے۔

**درجة الحديث** : شیخ البانی په صحیح سنن ابی داود رقم (٢١٦) کښ وائی :

حدیث حسن الا قول ام سلیم المرأة تری الخ محقق رمضان په تعلیق المشکاة کښے وائی : الحدیث اسناده صحیح اخرجه احمد (٢٥٦/٦) وابوداود (٢٣٦) والترمذی (١١٣) والدارمی (١٩٥/١) واما روایة ابن ماجه (٦١٢) الی قوله لا غسل علیه ضعیفة لان مدارها

علی عبد الله العمری المکبر وهو ضعیف من قبل حفظه وقال الالبانی فی صحیح ابن ماجة رقم (٦١٢) حدیث حسن. نو روایت صحیح دے۔ ددے حدیث قصه په څلورم نمبر حدیث د ام سلمه کښې هم تیره شوه۔

---

١٣ - وَعَنهَا قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ وَجَبَ الْغُسْلُ، فَعَلْتُهُ اَنَا وَرَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَاغْتَسَلْنَا ). رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : اود همدے بی بی عائشةؓ نه روایت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : کله چه د سړی د ختنے ځائے د ښځے د ختنے ځائے نه تجاوز اوکړی (یعنے حشفه) غائب شی۔ نو دواړو باندے غسل واجب کیږی۔ (بی بی عائشةؓ فرمائی) ما او نبی ﷺ داسے اوکړل او مونږ دواړو اولامبل۔ (ترمذی، ابن ماجه)۔

**تشریح** : اِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ : ١- دا حدیث دلیل دے په دے چه په غیر د انزال نه په نفس جماع سره هم غسل واجبیږی، کما مرّ، او عمل او قول د نبی ﷺ دواړه برابر دی ۔

٢ - ختان نه مراد ځائے د ختن (سنتولو) دے په دے کښې دلیل دے چه د وړو جینکو ختنه کول هم سنت عمل دے ځکه د واړو دپاره ختان لفظ استعمال شوے دے۔ د هلك نه به د حشفے په سر زیاتی غوښه پریکوی، او د جینۍ نه به د فرج بره طرفته د بول په سوری باندے یوه پرده ده هغه به پریکوی۔ اودا ختنه کول د ماشومے جینۍ په ډیرو احادیث کښے راغلی دی، او ډیر فوائد لری، زنانه کښے حیاء پیدا کوی، او خاوند ته په کښے لذت پیدا کوی، خو بیا دا خبره یادول ضروری دی چه دا کار هر څوك نشی کولے، بلکه بوډۍ تجربه کاره زنانه دا کولے شی، لکه عربو کښے به دا کار عام وو، بوډۍ گانو به کولو۔

٣ - مصنف پدے مقام کښې لږه خطائی کړیده او هغه داسے چه دلته ئے دوه حدیثونه چه یو مرفوع حدیث دے ( اذا جاوز الختان الختان وجب الغسل ) او بل موقوف حدیث د عائشه دے چه په هغے کښې فَعَلْتُهُ اَنَا وَرَسُوْلُ اللهِ الفاظ دی او دواړه په بیل بیل سند ترمذی نقل کړیدی – مصنف دلته دواړه په یو حدیث کښې راجمع کړل، دا خطائی ده۔

١٤ – وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ، فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ وَأَنْقُوا الْبَشَرَةَ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَالْحَارِثُ بْنُ وَجِيْهٍ الرَّاوِيُّ هُوَ شَيْخٌ لَيْسَ بِذٰلِكَ.

---

**ترجمه** : ابو هريرةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د هر ويښته لاندے جنابت (ناپاکي وي) نو تاسو ويښتان وينځئ او بشره (بدن) پاکوئ ـ (ابوداود، ترمذي، ابن ماجه، او ترمذي وائي : دا حديث غريب دے، اوحارث بن وجيه راوي بوډا سړے دے چه معتبر نه دے ـ (يعني د بوډا والي او د غلبه نسيان په وجه دده روايت قابل اعتماد او قوي نه دے بلکه ضعيف دے ـ

**تشريح** : تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ : دا کنايه ده چه ټول بدن ته اوبه رسول ضروري دي، ځکه جنابت هر اندام ته رسيدلے دے، اودا په حقيقت باندے نه دے حمل، وجه داده چه که د هر ويښته لاندے جنابت شي نو بيا اوبه رسول د ويښتو نه لاندے به هم ضروري وي، او خرمن لمدول به ضروري نه وي، او ويښته وينځل به هم ضروري نه وي، حال دا چه خبره ددے برعکس ده ـ

فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ : الشعر کښے الف لام استغراقي دي يعنے ټول ويښته اووينځئ، بيا ددے حديث د ظاهر نه دا معلوميږي چه ويښته او کونځئ پرانستل ضروري دي، ځکه دهغے سره ويښته نه وينځلے کيږي، مگر چه کله ئے اوسپړي، او دا حکم نارينه اوزنانه دواړو دپاره دے، ليکن د زنانو دپاره په نورو احاديثو کښے رخصت راغلے دے چه که زنانه کونځئ اونه سپړي نو هم څه حرج نشته، لکه مخکښے ذکر شو ـ نو دا حکم به – دنورو حديثونو په وجه – صرف سړو ته شامل وي ـ او دغه شان حکم په حديث د عليؓ کښے هم را روان دے په هغې کښے هم دا تحقيق دے ـ

وَأَنْقُوا الْبَشَرَةَ : ١ – دا دليل دے د مالکيه ؤ دپاره چه په غسل کښے دلك (مږل) واجب دے، ځکه أمر راغلے دے په پاکوالي د بشره باندے او دا د دلك او مږلو نه بغير نه

حاصلیږی ـ ۲ – بشره : په فتح د باء او شین بسره، ظاهری څرمن د انسان ته وائی ـ

۳ – اودا حدیث دلیل دے په دے چه په غسل د جنابت کښے مضمضه او استنشاق واجب دی، ځکه په پوزه کښے ویښته، او د خلے دننه حصه هم د بشره نه حساب ده، نو وینځل ئے واجب دی ـ

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (٢٤٨) ـ امام ابوداودؒ دے حدیث ته ضعیف وئیلے دے او امام ترمذیؒ ورته غریب وئیلے دے، ځکه په دے کښے حارث بن وجیه یا وجبه ضعیف جدا راوی دے، قاله الحافظ۔ امام ابوداودؒ فرمائی : والحارث حديثه منكر وهو ضعيف۔ امام شافعیؒ فرمائی : الحديث ليس بثابت۔ امام بیهقیؒ فرمائی : اهل علمو کښے امام بخاریؒ او امام ابواودؒ ورته منکر حدیث وئیلے دے ـ

وضعفه الالبانی فی ضعیف سنن ابی داود رقم (٣٦)۔

---

١٥ – وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (مَنْ تَرَكَ مَوْضِعَ شَعْرَةٍ مِنْ جَنَابَةٍ لَمْ يَغْسِلْهَا فُعِلَ بِهَا كَذَا وَكَذَا مِنَ النَّارِ، قَالَ عَلِيٌّ : فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ، فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ ثَلٰثًا. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ، إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يُكَرِّرَا : فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ .

**ترجمه** : علیؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چاچه د جنابت په غسل کښے د یو ویښته هومره ځائے هم اوچ پریخودلو چه هغه ئے اونه وینځلو، نو هغه ته به داسے داور عذاب ورکولے شی۔ علی رضی الله عنه فرمائی : په دے وجه ما خپل سر سره دشمنی اوکړه، ما خپل سر سره دشمنی اوکړه (چه اومے خرئیلو) درے ځله ئے دغسے اووئیل۔ (ابوداود، احمد، دارمی) خو احمد دا الفاظ (ما خپل سر سره دشمنی اوکړه) مکرر نه دی ذکر کړی۔

**تشریح** : عَادَيْتُ رَأْسِيْ : ددے حدیث نه أفضلیت د سر خرئیلو نه معلومیږی، بلکه صرف دلیل د جواز دے۔

یا دا چه : دا رائے د علیؓ ده، او ویریدلے دے د حدیث نه، نو د احتیاط په بناء باندے ئے سر خرئیلو چه هسے نه کوم ویښته رانه اوچ پاتے شي ـ ورنه د رسول الله ﷺ عامه طریقه د سر ویښته ساتل وو۔

۲ – بیا د سړی دپاره د سر په ویښتو لمدولو کښے گنجائش نشته ځکه په ده باندے د سر ویښته پریخودل واجب نه دی، او د زنانه دپاره سر ویښته ساتل واجب دی، نو ځکه ورته شریعت په غسل کولو کښے گنجائش هم ورکړو۔

**درجة الحديث** : اخرجه ابوداود رقم (٢٤٩) وابن ماجة وفی اسناده عطاء بن السائب اختلط كما فی ارواء الغليل (١٦٦/١) وسمع منه حماد بعد الاختلاط ورجاله ثقات ورواه احمد من هذا الوجه رقم (٧٢٧) ولكن الحافظ قال فی التلخيص وفی الباب عن علی مرفوعا من ترك موضع شعره من جنابة لم يغسلها فعل به كذا وكذا وقال اسناده صحيح اخرجه ابوداود وابن ماجه لكن قيل ان الصواب وقفه علی علی رضی الله عنه انتهی قال الشيخ البسام : قلت ولا يضر وقفه حيث له حكم الرفع لانه لا مجال للرأی فيه توضيح الاحكام (٣٢٣/١) ولكن سماع حماد عن عطاء السائب قد ثبت بعد الاختلاط ايضا كما ثبت قبل الاختلاط فلا يعلم هل سمع هذا الحديث قبل الاختلاط او بعده وقد صحح الحافظ اسناده بدليل ان سماع حماد عن عطاء قبل الاختلاط ولكن الشيخ الالبانی قال قد سمع حماد عن عطاء بن السائب بعد الاختلاط ايضا. فهذه علة هذه الرواية۔

---

١٦ – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الْغُسْلِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَاَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : عائشهؓ فرمائی : نبی ﷺ به د غسل کولو نه پس اودس نه کولو۔ (ترمذی، ابوداود، نسائی، ابن ماجه)۔

**تشریح** : لايتوضأ بعد الغسل : كه د غسل نه پس په شهوت سره د ذكر مسح اوشی یا څه شے د بول یا مذی وغیره خارج شی نو دوباره اودس کول ضروری دی، اولنے اودس په دے کارونو سره ماتیږی۔ اوکه داسے نه وی بلکه ابتداء کښے ئے اودس کړے دے نو

دوباره اودس کول بدعت دی۔ کما مرّ۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذی باسناد حسن صحیح. والبيهقي باسانيد جيدة ۔

---

١٧ – وَعَنْهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَغْسِلُ رَأْسِهِ بِالْخِطْمِيِّ وَهُوَجُنُبٌ يَجْتَزِئُ بِذٰلِكَ وَلَا يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ . رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : عائشهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ چه به جنب وونو خپل سر به ئے په خطمی سره وینځلو، په همدے به ئے کفایت کولو او دوباره به ئے په خپل سر باندے خالصے اوبه نه اچولے۔ (ابوداود)۔

**تشريح** : بِالْخِطْمِيِّ : دا سپین بوټے دے ځکونه کوی، پخوانو خلقو به د پاکوالی دپاره استعمالولو، دا حدیث دلیل دے په دے چه په غسل الجنابت کښے په خطمی یا صابون باندے سر وینځل مستحب دی ۔

وَلَا يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ : مطلب دادے چه کله یو انسان په غسل د جنابت کښے سر لوند کړی اوصابون وغیره پرے اووهی او هغه زګونه په سر کښے پریدی او دوباره اوبه پرے وانه چوی نو دا هم جائز ده، دوباره اوبه اچول ضروری نه دی په سر باندے کله ئے چه نور بدن لوند کړے وی۔ ځکه غسل اوشو اګرکه صابون یا نکریزے پرے پاتے وی۔

٢ – یا مطلب دادے چه نبی ﷺ به د خطمی بوټے اوبو کښے اچولو او اوبه به ئے اوخوټ کولے اوبیا به ئے دغه اوبو باندے اولامبل او ددے نه پس به ئے نورے خالص اوبه پرے نه اچولے ، بلکه په همدغه اوبو به ئے اکتفاء کوله اولکه څنګه چه عام خلق نن صبا د صابن اوبو وغیره نه پس خالص اوبه استعمالوی، داسے کار به نبی ﷺ نه کولو ۔ يجتزئ بذلك ای یکتفی بذلك۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعیف اخرجه احمد (٦/ ٧٨) وابوداود (٢٥٦) واللفظ له واخرجه البيهقي في الكبرى (١/ ١٨٢) والدارقطنی فی سننه (٢/ ٢٢٦)۔

---

١٨ – وَعَنْ يَعْلٰى ؓ قَالَ : إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ رَأٰى رَجُلًا يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ

فَصَعِدَ الْمِنبَرَ فَحَمِدَ اللهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ اللهَ حَيِيٌّ سِتِّيْرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَالتَّسَتُّرَ، فَاِذَا اغْتَسَلَ اَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَتِرْ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَفِيْ رِوَايَتِهٖ : قَالَ : إِنَّ اللهَ سِتِّيْرٌ، فَاِذَا اَرَادَ اَحَدُكُمْ اَنْ يَغْتَسِلَ فَلْيَتَوَارَ بِشَيْءٍ ).

**ترجمه** : يعلی فرمائي : رسول الله ﷺ يو سړے اوليدلو چه په ميدان کښے ئے برېنډ لامبل۔ نبي ﷺ (وعظ دپاره) منبر ته اوختلو، د الله حمد او ثناء ئے اووئيله، بيا ئے اوفرمائيل : بيشکه چه الله تعالیٰ حياناك او پرده اچونکے دے (په عيبونو د بندګانو باندے)، هغه حياء او پرده پوشي خوښوي، نو کله چه په تاسو کښے څوك غسل کوي نو ځان دے پټ کړي۔ (ابوداود، نسائي) اود نسائي په روايت کښے داسے دي چه نبي ﷺ اوفرمائيل : الله تعالیٰ ډير زيات پرده اچونکے دے، هرکله چه تاسو کښے څوك د لامبلو اراده اوکړي نو هغه له پکار دي چه په څه شئ سره ځان پټ کړي۔

## تعارف : د يعلیٰ رضي الله عنه :

دده مکمل نوم يعلی بن أميه بن أبي عبيدة التميمي أبو صفوان المکی دے، د قريشو حليف دے، دده نسبت کله والدے ته کيږي، يعلی بن منيه وئيلے کيږي، مشهور صحابی دے، په فتح د مکه کښے مسلمان شوے دے، حنين او طائف او تبوك غزا ته د رسول الله ﷺ سره حاضر شوے دے، ابو بکر صديق رضي الله عنه په حلوان علاقه باندے ګورنر مقرر کړے وو، او عمر فاروق رضي الله عنه په بعضے حصه د يمن باندے ګورنر مقرر کړے وو، مګر عمر رضي الله عنه ته دا خبره اورسيده چه ده خپل ځان دپاره چراګاه جوړه کړے ده، نو دا پيغام ئے ورته اورسولو چه پياده مدينے ته راشي، نو پنځه ورځے يا شپے پياده مزل ئے اوکړو، نو دعمر فاروق رضي الله عنه د شهادت نه خبر شو نو بيا سور شو۔ او عثمان رضي الله عنه په جند باندے عامل مقرر کړے وو، کله چه د عثمان رضي الله عنه د شهادت نه خبر شو نو د هغه د مدد دپاره راغلو او زبير رضي الله عنه او عائشة رضي الله عنها سره ملګرے شو ۔ ټول (٤٨) احاديث ترے نقل دي ۔(٥٠) هجري پورے ژوندے وو۔

٢ – بل يعلیٰ بن مُرّة صحابی دے، دلته کتاب کښے مطلق يعني يعلیٰ ذکر دے نو دواړو ته شامل دے ځکه دواړه صحابه دي، عادلان دي۔

**فوائد الحديث** : ١ - د نبي ﷺ عادت مبارك داوو چه كله په يو بيان او تقرير كښې به ئې د يو شخص اصلاح كوله نو خبره به ئې عامه كوله، دې دپاره چه هغه انسان اونه شرميږي او نور خلقو ته هم د هغې نه فائده ملاؤ شي ـ دا د وجه د حياء د هڅې ئه.

٢ - فائده : د (فحمد الله، وأثنىٰ عليه) دوه مطلبه دي :

١ - يو دا چه خطبه ئې اووئيله او تقرير ئې اوكړو.

٢ - دويم دا چه د خطبې نه پس به ئې د الله تعالىٰ احسانات اوكمالي صفات ذكر كړل ـ

٣ - سِتِيرٌ : دا د الله تعالىٰ د اسماء حسنىٰ نه يو اسم او نوم دې. او هرچه سَتار دې نو دا په احاديثو كښې چرته نشته، اګرچه ددې معنىٰ هم صحيح ده، چه هغه پرده اچونكې او پرده وركونكې ذات دې، مګر دا په دعاء كښې نشي وئيل كيدې، او په جمله خبريه كښې استعماليدې شي، مثلا داسې وئيلې شي چه الله سَتار - يعنې پرده اچونكې ذات - دې. او په دعاء كښې به داسې نه وائي چه : يا سَتار ! ما باندې پرده واچوه ـ وجه داده چه د الله دپاره به د ځانه نومونه نشي كيخودلې، (لكه خدائې يا خلائې يا ګاډ وغيره) ځكه ددې نه منع راغلې ده ـ

٤ - فَلْيَتَوَارَ بِشَيْءٍ : يعنې ځان دې پټ كړي په څه شي سره، مثلا جانګې، څادر، پناه ځائې وغيره ـ ددې نه معلومه شوه چه په غسل كښې ځان پټول واجب دي كله چه ستا خواته څوك موجود وي. بيا كه د غسل او تستر (ځان پټولو) تعارض راشي، دواړه نشي كيدې، مثلا يو شخص جنب دې، د غسل اراده لري خو هلته خلق موجود دي، نو دلته به دا شخص عورت نه ښكاره كوي، بلكه ترجيح به زيات واجب لره وي كوم چه پرده ده. او دغسل په ځائې به تيمم اووهي. ځكه د غسل نائب شته چه تيمم دې اود ستر العورت نائب نشته.

**درجة الحديث** : الحديث صحيح ذكره الالباني في صحيح ابى داود (٢/٧٥٨) رقم (٤٠١٢) وقال الشوكاني الحديث رجال اسناده رجال الصحيح فالحديث صحيح ورواه احمد (٤/٢٢٤) وابوداود (٤٠١٢) والنسائي رقم (٣٠٦- ٣٩٣) ـ

---

## الفصل الثالث - دريم فصل

١٩ - عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ قَالَ : اِنَّمَا كَانَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةً فِيْ أَوَّلِ الْإِسْلَامِ ثُمَّ نُهِيَ عَنْهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ .

---

**ترجمه** : أبيّ بن كعبؓ فرمائي : دا حكم (چه غسل صرف د مني وتلو نه پس واجب كيږي) د اسلام په شروع كښې د آسانۍ په وجه وو. بيا دې نه منع اوكړې شوه.(يعنې دا حكم منسوخ شو).

**تشريح** : رُخْصَةً فِيْ أَوَّلِ الْإِسْلَامِ : دا حديث دليل دے د جمهورو علماؤ دپاره چه (الماء من الماء) دا حكم په ابتداء د اسلام كښې وو، بيا په حديث د عائشةؓ باندے منسوخ شو چه كله يوختان د بل ختان نه تير شي نو غسل واجب شو، انزال شوے وي اوكه نه .او دليل پرے دا حديث د أبي بن كعبؓ دے. اودا صحيح حديث دے، ترمذيؒ ورته حسن صحيح وئيلى دى . او أبوداودؒ پرے سكوت كړے دے، وصحّحه ابن خزيمة وابن حبان وقال الاسماعيلى : انه صحيح على شرط البخارى وصحّحه رمضان فى تعليق المشكاة (١/ ٢٠٤) وقال ابن حجر اسناده حسن .باقي كلام په تلخيص الحبير او تعليق الترمذى د أحمد شاكر (١/ ١٨٤) كښې اوګوره .

---

٢٠ - وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : جَآءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ : اِنِّي اغْتَسَلْتُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَصَلَّيْتُ الْفَجْرَ فَرَأَيْتُ قَدْرَ مَوْضِعِ الظُّفْرِ لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءُ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : لَوْ كُنْتَ مَسَحْتَ عَلَيْهِ بِيَدِكَ أَجْزَأَكَ ). رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : على رضى الله عنه فرمائي : يو سړے نبي ﷺ ته راغے او عرض ئے اوكړو: ما د جنابت نه غسل اوكړو، او د صبا مونځ مے اوكړو، بيا مے (په خپل بدن كښې) د نوك هومره ځائے داسے اوليدلو چه هغے ته اوبه نه وے رسيدلے. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل : كه چرے تا په هغے باندے خپل لاس راخكلے وے نو دا به تا دپاره كافي وو. (ابن ماجه).

**تشريح** : لَوْ كُنْتُ مَسَحْتَ عَلَيْهِ بِيَدِكَ أَجْزَأَكَ :

حاصل د جواب د نبي عليه السلام دا دے چه که تا د غسل په وقت کښې په هغه ځائے کوم چه اوچ پاتے شوے وو – لوند لاس راخکلے وے یا دِے هغه معمولي شان وینځلے وے نو دا به کافي کیدو او ستا غسل به پوره شوے وے او که تا ته ددے ځائے د اوچ پاتے کیدو احساس روستو شوے وی نو تالره دا پکار وه چه هغه ځائے دِے د وینځلے وے اګرکه معمولي شان ولے نه وی، لیکن هرکله چه تا په هغې باندے لوند لاس رانخکلو او په دغه حالت کښې دے مونځ اوکړو نو دغه مونځ دِے ندے شوے او ددے قضاء راوړه او دغه ځائے اووینځه ( طیبي مرقات) علامه طیبي فرمائي : دا معنی معلومیږی د لو نه ځکه چه دا راځی دپاره د امتناع د ثاني د وجے د امتناع د اول نه نو اجزاء ( کافي کیدل) منفي دی د وجے د نه مسح کولو د هغه شخص نه اوچ ځائے لره۔

**فوائد الحديث ومسائله** : ١ – اوداسه کښې موالات واجب او ضروري دے ۔او په غسل کښې موالات واجب نه دے۔ دا حدیث پرے دلیل دے۔

٢ – په ابن ماجه رقم (١٤٤) کښې د ابن عباس ﷺ بسند ضعيف او په مغنی (٢٥٤/١) کښې د علاء بن زیاد ﷺ او ابن أبي شیبه (٤١/١) کښې حدیث دے چه نبي ﷺ نه په غسل کښې د اوګې نه اوچت یو ځائے اوچ پاتے شوے وو، نو نبي ﷺ د سر د ویښتو په لوندوالي سره هغه ځائے لوند کړو ۔ (وأخرجه احمد) دارنګه ترتیب په وینځلو د اندامونو کښې هم ضروري نه دے په غسل کښې، لیکن د سر نه ابتداء کول (پس د اوداسه نه) اولیٰ او أفضل دی، د نبي ﷺ سنت عمل دے، کما مرّ۔

٢ – **مسئله** : په بے اودسئ باندے د شوی مانځه اعاده په اتفاق د علماؤ سره ضروري ده، برابره خبره ده که عمدا وی اوکه سهوا یانسیانا، ځکه چه اودس شرط دے دمانځه دپاره، او چه کله شرط نه وی نو مشروط هم نه وی۔ دغه شان اودس د مانځه دپاره چابی ده، چه چابی نه وی نو تاله نه کولاویږی، دارنګه که په جنابت کښې مونځ اوکړے شی نو هم د هغې اعاده ضروري ده ۔

**دلیل** : یو دا حدیث دے۔ دویم په ابن أبي شیبه کښې آثار دی ۔

بیاکه امام د بې اودسۍ یا د جنابت په حالت کښې مونځ اوکړي، نو آیا امام به مقتدیانو ته حال وائی اوکه نه؟ دغه شان د مقتدیانو مونځ اوشو که نه؟ نو پدې مسئله کښې اختلاف دې :

١ – نو د امام ابو حنیفهؒ او احنافو رائې داده چه د مقتدیانو خبرول ضروري دي، ځکه د امام مونځ متضمن دې مانځه د مقتدیانو لره اود مقتدیانو مونځ د امام د مانځه تابع دې صِحَّةً وَفَسَادًا، نو کله چه د امام مونځ اونشو چه اصل دې نو د مقتدیانو مونځ به په طریقه اولیٰ نه کیږي. نو د مقتدیانو خبرول ضروري دي۔

٢ – ائمه ثلاثهؒ فرمائی : امام به ځانله مونځ را اوګرځوي، او د مقتدیانو خبرول نشته، ځکه چه د امام مونځ جدا دې، اود مقتدیانو مونځ جدا دې، د امام د مانځه په فساد سره د مقتدی مونځ نه فاسدیږي، کله چه مقتدی ته پته اونه لګی ۔ البته امام مالکؒ فرمائی : چه که امام عمداً او قصداً بې اودسه مونځ اوکړي، نو اعاده د مقتدیانو هم ضروري ده، او خبرول د هغوئ هم ضروري دي، او په نسیان کښې د مقتدیانو د مانځه اعاده هم لازم نه ده، او امام لره د مقتدیانو خبرول هم ضروري نه دي۔ دلیل په دې باندې احادیث مرفوعه او آثار د صحابه کرامو ؓ دي ۔ بعضې دادي :

١ – صحیح بخاری (٩٦/١) کښې دي :

عن أبی هریرة مرفوعا : یصلون لکم فان أصابوا فلکم ولهم، وان أخطأوا فلکم وعلیهم۔

ابن منذرؒ فرمائی : دا حدیث رد کوي په هغه چا باندې چه وائی : د امام مونځ چه کله فاسد شي نو د مقتدی مونځ هم فاسدیږي ۔

امام بغویؒ په دې باندې استدلال کوي چه د مقتدیانو مونځ صحیح دې کله چه امام ئې بې اودسه مونځ کړې وي، صرف په امام باندې اعاده ضروري ده، په مقتدیانو نشته۔ کذا فی النیل (٢١٤/٣) شرح السنه (٤١٤)۔

٢ – **دلیل** : عمل د خلفاء راشدینو رضی الله عنهم دې، لکه : مطیع بن الأسود فرمائی : عمر بن خطاب رضی الله عنه خلقو ته د سَحر جمع اوکړه، بیا ما او هغه خپلې زمکې ته لاړو، کله چه یو لښتی باندې کیناستو او اودس ئې کولو نو په ورون باندې ئې د

احتلام مني اوليدله، نو وي فرمائيل : د احتلام مني زما په ورون ده او زه پرې نه يم پوهه شوې، بيا ئې اوفرمائيل : کله چه ما غوړي (وازدې) اوخوړې او عمر مې ډير شو نو مانه مني اوځي او زه پرې نه پوهيږم. بيا ئې غسل اوکړو او د سَحر مونځ ئې دوباره اوکړو، او هيڅوا ته ئې د مانځه راګرځولو حکم اونه کړو.

(ابن أبي شيبة : ٢/ باب الجنب يعيد الصلاة، البيهقي : ٢/٣٩٩، المحلی : ٣/١٢٢).

٣ – **دليل** : عثمان رضی الله عنه خلقو ته – په هيره سره – د جنابت په حالت کښې مونځ اوکړو. کله ئې چه صبا کړو نو په جامه ئې احتلام اوليدلو، وې فرمائيل : زه بوډا شوې يم، قسم په الله ! زه جنب کيږم او بيا نه پوهيږم. بيا ئې خپله مونځ را اوګرځولو او مقتديانو ته ئې د اعادې حکم اونه کړو (بيهقي : ٢/٤٠٠).

٤ – ابن عمر رضی الله عنه خلقو ته بې اودسه مونځ اوکړو نو خپله ئې اعاده اوکړه او خلقو ته ئې د اعادې حکم اونه کړو. (تمهيد : ٢/١٨٤، لابن عبد البر).

٥ – علي رضی الله عنه فتویٰ : (أنه يعيد ولا يعيدون).

ترجمه : صرف امام به مونځ راګرځوی، مقتديانو باندې اعاده نشته. (المنتقی لابی البرکات بشرح نيل الأوطار : ٣/٢١٣، والمحلی : ٣/١٢١).

امام ابن حزمؒ فرمائی : د عمر فاروقؓ، ابن عمرؓ او سعيد بن جبيرؒ نه هم نقل دی چه دوئ دا فتویٰ ورکوی چه امام به د خپل مونځ اعاده اوکړی او مقتديانو باندې اعاده نشته کذا في السنن الکبری للبيهقي (٢/٤٠٠) . ابن حزم په المحلی (٣/١٣١) کښې فرمائی : د عمرؓ او ابن عمرؓ روايت ډير صحيح دې، او د هيڅ يو صحابي نه د دوئ خلاف نه دې ثابت. او روايت د علیؓ – چه په هغې کښې د اعادې حکم دې – ډير ضعيف دې ځکه په هغې کښې په ټولو سندونو کښې عباد بن کثير ضعيف او غالب بن عبيد الله مجهول راوي دې. او ابن حزمؒ فرمائی : دا قول د ابراهيم نخعیؒ او حسنؒ او عطاءؒ هم دې. ابن عمرؓ د ماښګر مونځ – په هيره سره – د بې اودسئ په حالت کښې اوکړو، نو خپله ئې اعاده اوکړه او ملګروئې اعاده اونه کړه.

٦ – ابن خزمؒ فرمائی : وعمدتنا في هذا الباب حديث أبي بکرة : أن رسول

دخل في صلاة الفجر فكبر فأومأ اليهم ان مكانكم، ثم جاء ورأسه يقطر فصلى بهم، فلما قضى الصلاة قال : انما أنا بشر مثلكم، واني كنت جنبا. (ذكره أبوداود : ١/٣٥) والبيهقي (٣٩٧/٢) فقد اعتدوا بتكبيرهم خلفه وهو عليه السلام جنب. المحلى : ١٢١/٣).

**يعنے : نبي ﷺ ته د تكبير افتتاح نه پس جنابت را ياد شو، صحابو ته ئے اشارے سره اوفرمائيل : په خپل ځائے ولاړ اوسئ، بيا راغلو او سر نه ئے اوبه څڅيدلے، مونځ ئے اوكړو، مونځ نه پس ئے اوفرمائيل : زه ستاسو پشان انسان يم، زه د جنابت په حالت كښے ووم. نو صحابو هغه تكبير معتبر اوشمارلو كوم چه نبي ﷺ د جنابت په حالت كښے كړے وو.**

**دا واقعه ډير كرتے راغلے ده، يو ځل د تكبير افتتاح نه مخكښے، دويم ځل د تكبير افتتاح نه پس راغلے ده. انظر في ذلك فتاوى الدين الخالص (٢١٤/٥).**

**٧ - بل دليل دادے چه الله تعالىٰ فرمائي : ﴿ لا يكلف الله نفسا الا وسعها ﴾ ، او زمونږ په وسع كښے دا نشته چه د امام د طهارت نه ځان خبر كړو.**

**نو دا احاديث او آثار دليل دے چه كله امام - په هيره سره - د بے اودسئ په حالت كښے مونځ اوكړي نو امام به مونځ را اوګرځوي او مقتديانو باندے مونځ راګرځول نشته.**

**اوكوم مرفوع حديث كښے چه دي (صلى جنبا، فاعاد وأعادوا)، يعنے نبي ﷺ د جنابت په حالت كښے مونځ اوكړو، نو خپله ئے هم اعاده اوفرمائيله او صحابو ته ئے هم د اعادے كولو حكم اوكړو. نو دا ضعيف جدا روايت دے، في اسناده ابو جابر البياضي وهو متروك.** (التقريب)، والسنن الكبرى (٤٠١/٢) وكان يحيى بن معين يقول ابوجابر البياضي كذاب.

**او د علي رضي الله عنه په أثر كښے دي : (أنه صلى جنبا، فأعاد وأمرهم فاعادوا)، چه علي د جنابت په حالت كښے خلقو ته مونځ اوكړو، نو خپله ئے د مانځه اعاده اوكړه او مقتديانو ته ئے هم د اعادے حكم اوكړو، نو هغوئ اعاده اوكړه.**

**نو دا روايت ضعيف منقطع دے - فيه حبيب ابن أبي ثابت ولم يسمع عن عاصم، كما في السنن الكبرى (٤٠١/٢).**

**بله داچه ددے مخالف فتوىٰ د علي رضي الله عنه مخكښے تاسو اوليدله.**

**دا خو د بے اودسئ مسئله وه، خو كه :**

٣ - يو امام يا ځانله مونځ كونكے په نجاست كښې مونځ اوكړي او پته ورته نه وي، يا ئے قبله خطا كړه پس د تحري او سوچ كولو، نو دده مونځ صحيح دے، بيرته راګرځول ئے نشته دے، ځكه استقبال د قبلے او نجاست سره مونځ كول عند الجهالت ساقطيږي.

**١ - دليل** : أبوداود (٦١/١) كښې د أسود عامريؓ په روايت كښې دي چه رسول الله ﷺ په يو ځادر كښې د سَحر مونځ اوكړو، د مانځه نه پس ورته يو صحابي عرض اوكړو: يا رسول الله ! په دے ځادر كښې وينه ده، نو رسول الله ﷺ هغه را اونيوله او يو غلام ته ئے وركړه او بعضے بيبيانو ته ئے اوليږله. او نبي ﷺ دوباره مونځ اونه كړو. اونه صحابوؓ.

**٢ - دليل** : حديث د خلع النعال دے : چه د نبي ﷺ په پيزار كښې ګندګي وه او په مانځه كښې ئے اوويستله، صحابوؓ هم خپل پيزارونه اوويستل، سلام نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائيل : تاسو ولے خپل پيزار اوويستل ؟ زما پيزار كښې ګندګي وه، جبرئيل ماته راغلو چه پيزار اوباسه. (أبوداود : ١٠٧/١).

نو دلته نبي ﷺ د مونځ اعاده اونه فرمائيله. ځكه چه په ابتداء د مانځه كښې هغه په ګندګئ باندے خبر نه وو. ددے نه معلومه شوه چه اودس ډير ضروري شرط دے، دا په نسيان سره هم نه دے معاف، ليكن نجاست د نسيان په صورت كښې معاف دے. لكه ددے مسئلے تفصيل په ( المغني ٧٥١/١، نيل الأوطار ١٢١/٢، فتاوى الدين الخالص ٤٩٤/٣، ٢١٥/٥، مجموع الفتاوى لشيخ الاسلام ١٨٦/٢٢، تمام المنة صـ ٥٥، المجموع شرح المهذب ٢٦٠/٤، الموطأ ٣٥/١، المحلى ١٢١/٣)، كښې كتلے شئ.

**درجة الحديث** : رواه ابن ماجة رقم (٦٦٤) باسناد ضعيف جدا فيه محمد بن عبد الله ضعيف قال الالباني اسناده ضعيف فيه عدة علل بينتها فى ضعيف ابى داود رقم (٣٧).

---

٢١ - وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِيْنَ وَالْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ سَبْعَ مَرَّاتٍ وَغَسْلُ الْبَوْلِ مِنَ الثَّوْبِ سَبْعَ مَرَّاتٍ، فَلَمْ يَزَلْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَسْأَلُ حَتّٰى جُعِلَتِ الصَّلَاةُ خَمْسًا وَغُسْلُ الْجَنَابَةِ مَرَّةً وَغُسْلُ الثَّوْبِ مِنَ الْبَوْلِ مَرَّةً ).

رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ .

**ترجمه** : ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی : (مخکښې) پنځوس مونځونه فرض وو، جنابت نه لامبل او کپړې نه متيازې وينځل اووه ځله فرض وو، بيا نبی ﷺ تخفيف (او آسانتيا) دپاره دعا غوښتله تردې چه مونځونه پنځه شو، او د جنابت نه غسل او د متيازو نه کپړه وينځل يو ځل پاتې شو- (ابوداود)-

**تشريح** : **فوائد** : ١ - نسخ د حکم په دوه قسمه ده (١) يو هغه ده چه عمل پرې شوې وی او د عمل نه روسته منسوخ شی- (٢) دويمه هغه ده چه عمل په هغه حکم نه وی شوې، لکه پنځوس مونځونه وغيره ابتداء کښې فرض شو بيا په دې باندې د عمل کولو نه مخکښې منسوخ شو، پنځه مونځونه پاتې شو، ديته نسخ قبل العمل وائی، او دا په دې حديث کښې ذکر ده-

٢ - وَغُسْلُ الْجَنَابَةِ مَرَّةً : يعنې يو ځل اوبه اچول په ټول بدن باندې فرض او ضروری دی، او هرچه په سر باندې درې کرتې اوبه اچول دی نو هغه سنت عمل دې، او دا (مره) د هغې منافی نه دې، ځکه ددې نه فرض مراد دې او تثليث په سر کښې سنت دې-

وَغُسْلُ الثَّوْبِ مِنَ الْبَوْلِ مَرَّةً : ١ - دا حديث د امام شافعیؒ وغيره دپاره دليل دې چه جامه په يو ځل وينځلو سره هم پاکيږی، او درې ځله وينځل مستحب دی- او هرچه احناف دی نو د هغوئ په نيز درې ځله وينځل واجب دی په نجاست غير مرئيه کښې، دوئ تفصيل کوئ چه که نجاست مرئی - په سترګو ښکاره کيدو والا - وی، نو د هغې د پاکولو طريقه داده چه عين او ذات د نجاست به زائل کوی، که په هر څو ځلو وينځلو سره وی، او که غير مرئی وی نو دومره حد پورې به وينځی چه غالب ګمان ئې راشی چه پاک شو، او ددې اندازه درې کرتې ده، ځکه غالب ګمان په درې ځله وينځلو سره حاصليږی نو ځکه ئې درې ځل وينځل واجب ګنړلی دی-

**دليل** : دا پيش کوی چه حديث کښې دی (اذا استيقظ احدکم من منامه فلا يغمسن يده فی الاناء حتی يغسلها ثلاثا- کذا فی الهداية : ١/٧٨) والبحر الرائق (١/٤٦٨)-

په دې حديث کښې درې ځله لاس وينځل ذکر دی، کله چه انسان د خوب نه بيدار شی

ځکه دلته هم نجاست متوهم معنوی دے نه ظاهری۔ لیکن ددے استدلال نه جواب دادے چه د جامه وغیره نه نجاست غیر مرئیه درے وینځلو قیاس په دے حدیث باندے صحیح ندے چه ګنے خوب نه بیداریدو نه پس لاس درے ځل وینځل واجب دی نو عام نجاست معنوی به هم درے ځل وینځل واجب وی، دا قیاس ځکه صحیح نه دے۔ وجه داده چه د خوب نه بیداریدو کښے درے ځله لاس وینځل حکم تعبدی دے، دا وجه ده چه که په لاس هیڅ نجاست هم نه وی، نو بیا هم درے ځل لاس وینځل واجب او فرض دی، نو دا حکم په دغه ځائے پورے خاص دے او قاعده کلیه نه ده، نو دا حکم غیر معقول المعنی شو په دے باندے قیاس کول درست نه دی۔

او هرچه نجاست غیر مرئیه دے نو دا حقیقی نجاست دے متوهم ندے نو په دے کښے د تثلیث الغسل د اثبات دپاره بل نص پکار دے، او هغه نشته۔

٢- علامه باجیؒ او علامه ابن تیمیهؒ فرمائی : حدیث د باب النظافت نه دے، نه د باب النجاست نه، یعنے په حدیث کښے تثلیث او درے والے د نظافت دپاره راغلے دے، نه د نجاست لرے کولو دپاره۔ نو قیاس د ازاله د نجاست غیر مرئیه په دے باندے صحیح نه دے۔ مرعات (١٤٦/٢)۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود : دا حدیث امام ابوداودؒ راوړے او سکوت ئے پرے کړے، لیکن دا حدیث ضعیف السند دے، ځکه په دے کښے أیوب بن جابر الیمامی دے چه ابن معین، ابن مدینیؒ، نسائیؒ، ابو زرعهؒ، ابو حاتمؒ، ابن حاتمؒ او یعقوب بن سفیانؒ ورته ضعیف وئیلے دے۔

او کومو علماؤ چه دده توثیق کړے دے، لکه امام احمدؒ فرمائی : حديثه يشبه حديث أهل الصدق. امام بخاریؒ په تاریخ أوسط کښے فرمائی : هو أوثق من أخيه محمد ۔ نو ددے جواب دادے چه دا توثیق په مقابله د جرح کښے نا منظور دے، ځکه چه اکثر جارحین دی، او کم موثقین دی۔

٢ - دویم : ددے توثیق نه دا نه معلومیږی چه دا حدیث دے مقبول شی، بلکه که نور روایات ئے شواهد راغلل نو دده روایت به حسن درجه کښے شی، مګر دلته دا حدیث

ضعيف جدا دے، داوجه ده چه شيخ البانیؒ په ضعيف أبی داود (٢٤/١) رقم (٢٤٧) کښے ورته ضعيف وئيلے دے، دارنګه په دے کښے يوبل أضعف راوی هم دے، وهو عبد الله بن عصم۔ وضعفه الشيخ رمضان (٢٠٥/١).

٣ - بله وجه دادهٔ چه په هيڅ روايت کښے دا خبره نشته چه د معراج په شپه رسول الله ﷺ ته دا خبره شوے وه چه غسل الجنابت او غسل الثوب ډير ځله دے او بيا يو ځل ته نقل شوے دے نو دا روايت د باقی ټولو رواياتو نه مخالف هم دے چه په هغے کښے صرف دمانځه په باره کښے خبره ذکر ده، نه د جنابت او غسل الثوب باره کښے۔ نو دا حديث معلول بعلّةٍ شو۔

*** *****

# باب مخالطة الجنب وما يباح له

## دجنب د احكامو بيان

## جنب سره د يوځائے كيدو
## او جنب دپاره چه كوم څيزونه جائزې دی د هغے بيان

**مناسبت** : د باب د ما قبل سره دادے چه دا باب دفع د يو وهم دے، هغه دا چه د جنب دپاره خو غسل كول واجب او ضرورى دى، نو غسل به كوى مگر يو شخص دے چه لا تر اوسه ئے غسل نه وى كړے نو د هغه دپاره به هر شئ ته نزدے كيدل حرام وى، نو كوم كارونه ورله په دے وخت كښے مباح دى او كوم ندى مباح ؟ نو په دے باب كښے هغه ذكر كوى۔

٢ – **د باب معنىٰ** : باب دے په بيان د ګډون د جنب سړى او زنانه كښے او هغه كارونه چه ده له مباح او جائز دى، يعنے چه جنب د چا سره كينى يا خوراك كوى، مصافحه كوى، مزل كوى، وغيره نو دده احكام بيانوى چه آيا دا كارونه كول جائز دى اوكه نه ؟ نو په دے باره كښے حديثونه ذكركوى ۔

٣ – د جنب لفظ اطلاق په واحد تثنيه اوجمع، مذكر مونث ټولو باندے كيږى ، په ضمه د جيم او نون سره استعماليږى۔ كله دده جمع هم راځى او تثنيه هم۔ جنبان، جنوب او اجناب وئيلے كيږى۔ او هرچه جنابت دے نو دا اسم او نوم دے د دغه ناپاكئ حالت دپاره۔ په اصل كښے جنابت په معنىٰ د بُعد او لرے والى سره راځى او جنب هم منع شوے دده نه چه مونځ اوكړى او د مانځه ځائے دارنګه نوروعباداتو ته راتګ اوكړى بلكه دده نه به ورانده وى ۔

## الفصل الأول - اولنے فصل

١ - عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : لَقِيَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَأَنَا جُنُبٌ فَاَخَذَ بِيَدِيْ فَمَشَيْتُ مَعَهٗ حَتّٰى قَعَدَ فَانْسَلَلْتُ فَاَتَيْتُ الرَّحْلَ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ، وَهُوَ قَاعِدٌ، فَقَالَ : اَيْنَ كُنْتَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ ! فَقُلْتُ لَهٗ . فَقَالَ : سُبْحَانَ اللهِ ! اِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجُسُ ). هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ وَلِمُسْلِمٍ مَعْنَاهُ وَزَادَ بَعْدَ قَوْلِهٖ : فَقُلْتُ لَهٗ : لَقِيْتَنِيْ وَأَنَا جُنُبٌ فَكَرِهْتُ أَنْ أُجَالِسَكَ حَتّٰى اَغْتَسِلَ. وَكَذَا الْبُخَارِيُّ فِيْ رِوَايَةٍ أُخْرٰى .

**ترجمه** : ابو هريرهؓ فرمائي : رسول الله ﷺ ماسره په داسے حال کښے ملاؤ شو چه زه جنب ووم، زما لاس ئے اونيولو او زه هغه سره روان شوم ترڅو چه هغه کيناستلو، نو زه ترے غلے شان اووتم، خپل کور ته راغلم او غسل مے اوکړو، بيا ورته راغلم او هغه لا ناست وو۔ وے فرمائيل : ابو هريره چرته وے ؟ ما ورته واقعه ذکر کړله (چه زه جنب ووم ځکه لاړم) نبي اوفرمائيل : سبحان الله ! مؤمن ناپاک نه وی۔ ددے روايت الفاظ د بخاری دی۔ مسلم ددے پشان روايت نقل کړيدے او دا الفاظ ئے مزيد نقل کړی دی چه : هغه اووئيل : زه د ناپاکئ حالت کښے ووم، ځکه دا راته مناسب معلوم نشوه چه تاسو سره کينم څو پورے چه اونه لامبم۔ دغسے د بخاری يو بل روايت کښے هم دا الفاظ منقول دی۔

**تشريح** : ابو هريره رضی الله عنه د نبی عليه السلام نه روستو شو او کور ته واپس شو او د پيغمبر ﷺ ملګرتيا ئے پريخوده او اجازه ئے هم وانخسته ددے وجه دا ده چه ابو هريرهؓ دا ګمان اوکړو چه نبی عليه السلام به زما پدے کار باندے خوشحاله شی ځکه ده ته دا پته وه چه پيغمبر خو مونږ ته په طهارت او نظافت باندے حکم کوی او تيزی راکوی۔ ليکن نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل چه ته پدے ګمان کښے تيروتے ئے ځکه چه جنابت خو څه ظاهری ګندګی نه ده مؤمن سړے په حالت د جنابت کښے هم پاك دے ځکه چه دا معنوی ناپاکی ده او پدے حالت کښے جنب سړے د خلقو ناسته پاسته کولے شی او دا خيال کول چه جنب سړے به هيڅ څيز له ګوتے نه وړی او نه به چاسره کينی نو دا په دين

کښې سختی پیدا کوی اګرکه صفائی ښه شے خو دلته د نبی علیه السلام تعجب ځکه اوکړو چه د ابو هریره پدے کار نظریه جوړه شویده۔

**فوائد** : ١ - استاذ له د شاګرد لاس نیول او په هغه باندے په مزل کښې تکیه لګول جائز دی ۔ ٢ - دا لاس ئے د ابو هریرةؓ د شفقت او محبت په نیت نیولے دے۔ نو په دے کښې اشاره ده شفقت د رسول الله ﷺ ته ۔

٣ - **فَانْسَلَلْتُ** : زه پټ اووتلم، ددے نه نفی د علم الغیب معلومیږی چه نبی علیه السلام د ابو هریره په پټ وتلو خبر نشو۔

٤ - **سُبْحَانَ اللّٰهِ!** : د تعجب دپاره ئے وئیلے ده چه ستا دا عقیده ساتل چه په جنابت سره انسان نجس کیږی، ظاهرا دا خو د تعجب خبره ده۔ دا ښکاره مسئله پتا باندے پته پاتے شوے ده! ۔ ٥- ددے حدیث نه دا ثابته شوه چه کله سړے د مشرانو او دیندارو خلقو، علماؤ ملاقات ته ځی یا ورسره ملګرتیا کوی نو پکار ده چه دا په کامل حالت او ښائسته صفاتو باندے متصف شی دے دپاره چه دده نه هغوی ته تکلیف اونه رسی۔

**اِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجُسُ** : دا باب د کرم او سمع دواړو نه استعمال دے په جیم باندے فتحه او ضمه دواړه وئیل جواز لری۔

**سوال** : هر کله چه مؤمن نجس نه دے نو د غسل کولو حکم ولے شوے دے ؟۔

**جواب** : ١ - دا حکم تعبدی دے، د نجاست په وجه نه دے۔ شارع ورته دا حکم کوی چه غسل اوکړه، اګرچه ستا بدن ګنده نه دے۔ نو دے کښې به ډیر حکمتونه وی ۔

٢ - یا معنیٰ داده چه المؤمن لا ینجس بالجنابة۔ یعنے مؤمن د جنابت په وجه داسے نجس نه دے چه ددے په وجه د مصافحے کولو او ورسره د مزل کولو او کیناستلو نه منع شوے وی۔ بلکه دا معنوی نجاست دے دا کارونه ورسره منع نه دی۔ نو په دے باندے دا فائده مرتبه شوه چه پس خورده او جوته او خوله او لاړے د مؤمن وغیره پاکے دی۔ فبطل مسئلة البیر جحط۔ دا بے دلیله قیاسی مسئله ده۔ او د (ان المؤمن لا ینجس) دا مغنی نه ده چه که په مؤمن باندے ګندګی پریوځی نو هم نه پلیتیږی۔ دغه شان مړی له غسل ورکول دا حکم تعبدی دے، د نجاست په وجه نه دے اګرکه مړے بالکل پاك وی هم ې س د

مړګ نه به غسل ورکولے شي. امام بخاريؒ تعليقا د ابن عباس نه نقل کړي دي (ان المسلم لا ينجس حيا ولا ميتا) ---- بيا دلته دا اوونيل شو چه مؤمن نه نجس کيږي نو

## د کافر حکم به څه وي ؟

نو په دے کښې اختلاف دے. ١ - دا کثرو علماؤ رائے داده چه کافر هم ظاهرا - د بدن په لحاظ - په حالت د جنابت کښې پاك دے اګرچه د خارج نه نجاست ورته عارضيږي لکه د مؤمن پشان. خو په اعتبار د اصل سره پاك دے. او هرچه تخصيص د نبي ﷺ دے د مؤمن په دے حديث کښې چه (ان المؤمن لا ينجس) نو ددے ډير وجوهات دي. (١) يو داچه دلته خطاب مؤمن ته دے (وهو أبو هريرة)، نو ځکه ئے هغه ذکر کړو (فخرج مخرج الخطاب)، ورنه د کافر حکم هم دغه دے. (٢) دويم په دے کښې اشاره ده چه دکفارو نه به انسان داسے ځان سچ کوي لکه د ظاهري ګندګئ نه، نو په دے کښې د کافرو نه نفرت او دهغوئ سپکوالے دے (٣) دريم داچه : کافران ځان د پليتو نه نه ساتي، هميشه د جنابت په حالت کښې وي، د پاکئ خيال نه ساتي. نو هغوئ په اعتبار د اصل سره پاك دي مګر ځان ئے نجس کړے دے، او هرچه مؤمن دے نو هغه د پاکئ خيال ساتي نو په جنابت حالت کښې هم هغه پاك دے.

(٤) اشاره ده چه مومن نه ظاهراً نجس دے اونه باطناً، او هرچه کافر دے نو هغه اګرچه ظاهراً پاك دے مګر باطناً په اعتبار د عقيدے سره پليت دے، وهذا هو الراجح.

او **دلائل** په طهارت د بدن د کافر باندے ډير دي، بعضے دادي :

١ - چه ثمامه بن أثال په حالت د کفر کښې رسول الله ﷺ په مسجد نبوي کښې تړلے وو، که دا ظاهرا د بدن په لحاظ نجس وے نو مسجد کښں دده تړل جائز نه وو.

٢ - دويم دليل شريعت کښې د اهل کتابو زنانه ؤ سره نکاح جائز ده، نو يو شخص چه د کتابيه زنانه سره نکاح اوکړي، نو دے مؤمن ته به د هغے د بدن خوله، جوته، پس خورده وغيره رسيږي، نو پکار ده چه هغه په ده بيا حرامه شي او دا هيڅ کله نه ده حرامه، معلومه شوه چه کافر نجس نه دے ظاهراً.

**سوال** : قرآن کريم کښې دي : ﴿ انما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد الحرام

الآية﴾ التوبة - (٢) دارنګه ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : (من صافح مشركا فليتوضأ)، ددې نه معلومه شوه چه مشرك او كافر نجس دې۔

**جواب** : دادې چه دا نجاست معنوي دې په اعتبار د عقيدې سره دې، نه په اعتبار د ظاهري بدن سره، ځکه ډير کفار دی چه د ظاهري صفائي ډير خيال ساتي، شيمپو او صابن وغيره استعمالوي، اود ابن عباسؓ غرض هم تغليظ او سختي کول دی د مشرکانو سره، او د هغوئ نه تجنب او اعراض مقصود دې۔

**فَكَرِهْتُ أَنْ أُجَالِسَكَ** : دا د أبو هريرهؓ أدب دې په باره د نبي ﷺ کښې، ليکن نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : چه داسې أدب، أدب نه دې، چه د هغې په وجه سره انسان په دين کښې غلو اوکړي ۔

**٢ - وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷛ قَالَ : ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ﷛ أَنَّهُ تُصِيبُهُ الْجَنَابَةُ مِنَ اللَّيْلِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ ﷺ تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ ثُمَّ نَمْ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

---

**ترجمه** : ابن عمرؓ فرمائي : عمر فاروق رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه ماته د شپې جنابت کيږي (يعني احتلام يا جماع سره غسل واجب کيږي) نبي ﷺ اوفرمائيل : اودس اوکړه او ذکر وينځه او بيا اوده شه (متفق عليه)۔

**تشريح** : توضأ واغسل ذكرك ثم نم : د جنب دپاره په احاديثو کښې څلور طريقې ذکر دی (١) **يو**، داوده کيدو نه مخکښې غسل کول، او دا بهتره طريقه ده، او د صحت او طب په لحاظ هم په کښې فوائد شته دې، انسان ته بيرته طاقت را واپس کيږي، او دا طريقه په روايت د مسلم (١٤٤/١) کښې راغلې ده، عبد الله بن أبي قبيس د عائشېؓ نه د رسول الله ﷺ د طريقې په باره کښې تپوس اوکړو چه آيا د غسل نه مخکښې به رسول الله ﷺ اوده کيدو ؟ عائشېؓ ورته اوفرمائيل : (ربما اغتسل فنام، وربما توضأ فنام) ۔ يعنې کله به ئې د اوده کيدو نه مخکښې غسل کولو، اوکله به ئې صرف أودس اوکړو بيا به اوده شو ۔

٢ - **دويمه طريقه** دا چه : صرف اودس اوکړي، او بيا اوده شي ۔ (کما في البخاري : ٣٥/١، ومسلم :١٢٥/١)، او دا هم ښه طريقه ده، ځکه مجمع الزوائد (٢٧٤/١) کښې يو

حديث دے چه کله انسان اودس اوکړی اوده شی، که ده له مرګ راشی نو ده جنازے ته جبرئيل او ملائکة المقربين حاضريږی ـ قال : رواه الطبرانی بسند فيه عثمان بن عبد الرحمن الحرانی الطرائقی وثقه يحيى بن معين وقال ابوحاتم صدوق وقال ابن عدى لا باس به يروى عن مجهولين۔

**٣ - دريمه طريقه** : چه تيمم اووهی، اګرکه اوبه موجودے وی۔ او دا طريقه په حديث د بيهقی (١/٢٠٠) کښے قال الحافظ : اسناده حسن (٣٣/١) عن عائشة، او مجمع الزوائد (٢٧٤/١) باب فيمن أراد النوم والأکل والشرب وهو جنب، کښے راغلے ده۔

**٤ - مفضوله طريقه** داده : چه د اودس يا تيمم کولو نه بغير اوده شی، هيڅ اوبه او خاوره مسه نه کړی، اودے باره کښے يو روايت د عائشةؓ دے په (موطأ امام محمد : ١/٧١، الترمذی : ١/٣٢، ابن أبی شيبة : ١/٤٥، ابن ماجة : ١، رقم : ٥٨١، بيهقی : ١/٢٠٠، وهو حديث صحيح)، امام محمدؒ وائی (وهذا أرفق بالناس)۔

٢ - دارنګه ام سلمةؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به د جنابت په حالت کښے اوده شو بيا به را بيدار شو، بيا به اوده شو، (رواه احمد ورجاله رجال الصحيح، کذا فی مجمع الزوائد : ١/٢٧٥، والعرف الشذی، وآداب الزفاف للألبانی ص :٤١)۔ خو په دے طريقو کښے اودس درميانه کيفيت دے۔

## المسألة الخلافية :

**دخوب** نه مخکښے د **جنب** دپاره **اودس** کولو په حکم کښے اختلاف دے :

امام نوویؒ په شرح د مسلم (١/١٤٤) کښے فرمائی :

**١** - داؤد ظاهریؒ او ابن حبيب مالکیؒ په نيز وضوء قبل النوم واجب دے، استدلال کوی په دے روايت د ابن عمرؓ باندے چه په دے کښے رسول الله ﷺ عمرفاروقؓ ته أمر اوکړو چه اودس اوکړه (توضأ واغسل ذکرك ثم نم)۔ متفق عليه۔ او أمر د وجوب دپاره وی۔

دارنګه مسلم (١/١٤٤) کښے دی چه عمر فاروقؓ د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو (أيرقد أحدنا وهو جنب ؟ قال : نعم، اذا توضأ)۔ (يعنے آيا مونږ کښے يو تن د جنابت په حالت کښے اوده کيدے شی ؟ وے فرمائيل : هاؤ، کله چه اودس اوکړی)۔ نو رسول الله ﷺ اودس

شرط کړو د خوب کولو دپاره، نو دا دليل د وجوب دے۔

**٢ - دویم** قول د جمهورو دے چه د خوب نه مخکښے اودس کول د جنب دپاره مستحب دی، او واجب نه دی، اودا تاسو چه کوم احادیث ذکر کړل نو په دے کښے أمر د استحباب دپاره دے، اودليل او قرينه په دے باندے داده چه نبی ﷺ نه نورے طریقے هم نقل دی، کما مرّ۔ چه د تیمم یا اودس کولو نه بغير هم اوده شوے دے۔

دارنګه حدیث د ابن خزیمه (١٠٩/١) باب رقم (١٧١) او أبو عوانه او ابوداود رقم (٣٧٦٠) کښے دی، نبی ﷺ فرمائی :

(انما أمرت بالوضوء اذا قمت الى الصلاة) وسنده على شرط البخارى.

او په دے سره تطبيق د ټولو احادیثو هم راځی ځکه چه په حدیث د ام سلمه او عائشةؓ کښے دی (ينام ولا يمس ماء) ۔ او بل روايت د عائشةؓ دے (توضأ وضوئه للصلاة) متفق عليه، او دارنګه حدیث د عمرؓ (أيرقد أحدنا وهو جنب ؟ قال : نعم، اذا توضأ) ، کښے د اودس ذکر دے

نو **تطبيق** دا شو چه اودس مخکښے د خوب نه په حالت د جنابت کښے کول مستحب دی، او واجب نه دی، نو کله ئے پریخودل هم شته کما مرّ، فتدبر، نو هیڅ تعارض نشته۔ اوس د اودس کولو څه حکمت دے؟ په کومو احادیثو کښے چه امر په اودس کولو راغلے دے نو ددے څو حکمتونه دی (١) یو دا چه په دے سره په نجاست کښے تخفیف او آسانی راځی، لکه ددے تائید په حدیث د شدّاد بن اوسؓ کښے راغلے دے، كما رواه ابن أبى شيبة (١/ ٦٠) بسند رجاله ثقات : (قال : اذا أجنب أحدكم من الليل ثم أراد أن ينام فليتوضأ، فانه نصف غسل الجنابة)۔ يعنے دا نيمائی غسلِ جنابت دے۔

٢ – دویم حکمت دادے چه په یو د دوه طهارتونو کښے اوده شی په دے هیره سره چه هسے نه خوب کښں مړ نه شی۔

٣ – یادا چه په دے سره دوباره جماع کولو کښے نشاط اود طبیعت تازګی راځی۔ او ددے حکمتونو نه هم معلومیږی چه دا حکم استحبابی دے۔

**۳ - وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا كَانَ جُنُبًا فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ، تَوَضَّأَ وُضُوئَهُ لِلصَّلَاةِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

---

**ترجمه** : عائشهؓ فرمائي : نبي ﷺ به چه کله جنب وو اود خوراك يا د خوب اراده به ئے اوکړه نو د مانځه داودس پشان اودس به ئے اوکړو- (بخاري، مسلم)-

**تشريح** : فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ :

## د جنب دپاره د خوراک نه مخکښ د لاس وينځلو حيثيت او اختلاف

په دے حديث کښے استحباب د اوداسه دے دپاره د جنب، کله چه اراده د خوراك يا دخوب کوی، ليکن د خوب په باره کښے اودس مؤکد دے، په نسبت سره اودس کولو ته دپاره د خوراك-

او په روايت د ابوداود (۳۳/۱) او نسائي (۵٤/۱) کښے دی (غسل يديه)، يعنے جنب سړے به د خوراك دپاره لاس وينځی، هغے کښے اودس نه دے راغلے- اوعام اوقاتو کښے (بغير د حالت د جنابت نه) طعام دپاره لاس وينځلو کښے اختلاف دے-

۱ - علامه منذری په الترغيب (۱۵۱/۳) کښے فرمائي : کرهه سفيان الثوری والشافعی ومالك بن انس والبيهقی - او د سفيان ثوریؒ نه امام ترمذیؒ نقل کړی دی چه طعام ته لاس وينځل بدعت دے (٦/٢)- او ددے قول د دليل دپاره علامه منذریؒ د ابن عباسؓ مرفوعا روايت راوړے دے (انما أمرت بالوضوء اذا قمت الى الصلاة الخ) - او په دے باره کښے هيڅ حديث نشته، دا وجه ده چه شيخ الاسلام ابن تيميهؒ په فتاوی (٥٦/١) کښے فرمائي : والأمر دائر بين الكراهة والاستحباب، فتركه أولیٰ) - يعنے خوراك دپاره غسل اليدين بعضے علماء مکروه ګڼړی، او بعضے نور ورته مستحب وائی، اود شريعت قانون دادے چه کله په يو شئ کښے د کراهت او استحباب احتمال راشی نو د هغے پريخودل ضروری وی- د نبی ﷺ نه په دے باره کښے هيڅ صحيح حديث نه دے ثابت-

۲ - **قول ثانی** : دادے چه لاس وينځل د طعام دپاره مستحب دی، دے قول والا سره

هیڅ دلیل نشته، سیوا د قیاس نه۔

البته شیخ البانیؒ په سلسلة الأحادیث الصحیحة (٣٩٠) والضعیفة (١/٢٠٠) کښې فرمائي : ما یو حدیث پیدا کړے دے چه نسائي (٥٤/١) او ابوداود (٣٣/١) کښې د عائشهؓ نه مرفوعا نقل دے (کان اذا أراد أن ینام وهو جنب توضأ، واذا أراد أن یاکل غسل یدیه)۔

لیکن شیخ البانیؒ په دے استدلال کښې خطاء شوے دے، ځکه چه په دے حدیث کښې د جنابت قید دے، یعنې د جنابت په حالت کښې به ئې چه کله د خوراك اراده اوکړه نو لاسونه به ئې وینځل، کما مرّ۔ او د جنابت په حالت کښې د خوراك دپاره لاس وینځل د ابن عمرؓ په نیز واجب دی، کما حکی ابن سید الناس في شرح الترمذي ۔ (نیل : ٢٧١/١)۔ او جمهور ورته واجب نه وائي، مګر مضبوط سنت ئې ګڼړی ۔

لیکن أصح داده چه د خوراك نه مخکښې د غیر جنب دپاره لاسونه وینځل نه دی پکار ، مګر کله چه ګنده وی، نو بیا لاس وینځل ضروری وی ، او مکروه نه دی۔ زیات تحقیق په ، مرقات (١٨٤/٨، الترغیب والترهیب : ١٥٠/٣، عرف الشذیٰ ٦/٢ کښې اوګوره ۔

---

٤ ـ وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( اِذَا أَتَى اَحَدُكُمْ أَهْلَهُ ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يَعُوْدَ فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوْءً ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ابی سعید خدریؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : کله چه پتاسو کښې څوك خپلې بی بی ته راتګ اوکړی (جماع ورسره اوکړی) او بیا دوباره هغې ته د راتلو (یعنې جماع کولو) اراده اوکړی، نو هغه له پکار دی چه د دواړو ترمینځه اودس اوکړی۔ (مسلم)۔

**تشریح : ـ د دوه ځل جماع کولو مینځ کښې د اودس کولو حکم**

**مسئله** : کله چه یو کړتے جماع کولو نه پس دوباره جماع کولو اراده وی نو اودس کولو څه حکم دے ؟ نو په دے کښې اختلاف دے ؟۔

١ ـ اهل ظواهرؒ او ابن حبیب مالکیؒ رائے داده چه د دوه جنابتونو ترمینځ اودس کول واجب او فرض دی، دلیل : استدلال کوی ددے حدیث نه، چه نبی ﷺ أمر کړیدے په

اودس کولو باندې، او أمر د وجوب دپاره وي. او دوئ هيڅ علتونو له اعتبار نه ورکوي.

٢ – د جمهورو علماء رائې داده چه أمر د استحباب دپاره دې، او اودس کول مستحب دی، او قرينه په دې باندې داده چه په حديث د حاکم، ابن خزيمه او ابن حبان کښې په همدې روايت د أبو سعيد کښې ورسره علت ذکر شوې دې (فانه أنشط للعود)، يعنې د دوباره جماع کولو دپاره انسان قوی او تازه کيږی).

نو دا حديث معلول بعلة دې، نو اودس کول واجب نه دی.

٢ – دويم دليل په استحباب د اوداسه باندې حديث د أبو رافع دې، كما يأتي في الفصل الثالث. وحديث أنس الأتي متصلا (يطوف على نسائه بغسل واحد).

٣ – دريم دليل حديث د ابن عباسؓ دې (انما أمرت بالوضوء اذا قمت الى الصلاة).

٤ – څلورم دليل : حديث د عائشةؓ دې چه طحاوی ص (٩٨) راوړې دې (قالت : كان النبي ﷺ يجامع ثم يعود ولا يتوضأ)، يعنې نبي ﷺ به دوباره جماع کوله او اودس به ئې نه کولو. نو د اهل ظواهرو قول د دووه وجهو نه ضعيف شو، يو ددغه علت ذکر کولو دوجې نه، دويم روستو د حديث د انسؓ او أبو رافعؓ د وجې نه، کما يأتي.

**فائده** : فليتوضأ بينهما وضوء : کښې ئې صرف په (فليتوضأ) باندې اکتفاء اونه کړه بلکه (وضوء) مفعول مطلق ئې ورسره زيات کړو، اشاره ده دېته چه مراد د اوداسه نه هغه اودس دې کوم چه د مانځه دپاره کيږی، لکه دا په روايت د بيهقي او ابن خزيمه (١٠٨/١) باب رقم (١٦٩) کښې ذکر دې. او وضوء لغوی نه دې مراد، چه صرف لاس وينځل دی. څکه مفعول مطلق ئې د تاکيد دپاره ذکر کړو، نو په دې کښې رد دې په هغه چا چه ددې وضوء نه ئې وضوء لغوی مراد کړې دې.

---

٥ – وَعَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَطُوفُ عَلٰى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : انسؓ فرمائي : نبي ﷺ به په يو غسل سره خپلو بيبيانو سره صحبت کولو. (مسلم).

**تشريح**: يَطُوْفُ عَلٰى نِسَائِهٖ بِغُسْلٍ وَاحِد :

**مسائل الحديث** : ۱ – حديث کښې طاقت د نبي ﷺ ته اشاره ده چه حقوق د بيبيانو په ښه طريقه سره پوره کولے شي۔

۲ – د هرے جماع نه پس غسل ضروري نه دے، کما مرّ، ځکه دلته نبي ﷺ نه دے کړے، اګرچه په حديث د ابو رافعؓ کښې راځي چه هرے جماع سره ئے غسل هم کړے دے، هغه په استحباب باندے محمول دے، اودا حديث بيانا للجواز دے۔

۳ – فقهاؤ کښې دا مشهوره ده چه خاوند به د ښځو تر مينځ په قسم (نمبر) کښې يوه يوه شپه نمبر ګدی، نو په هغوئ باندے په دے حديث سره اشکال راغلے دے چه نبي ﷺ څنګه په دے وخت کښې په يوه شپه کښې تولو بيبيانو ته نزدے شوے دے ! نو بيا ئے ددے نه جوابونه کړي دي۔

۱ – چا دا جواب کړے دے چه نبي ﷺ باندے د بيبيانو ترمينځ قسم واجب نه وو۔

۲ – بعضے وائي : رسول الله ﷺ چه دا کار کړے دے نو دا په سفر د حج کښې وو، او په سفر کښې قسم واجب نه دے۔

۳ – يائے د نمبر والا نه ئے اجازت غوښتلے دے ۔

۴ – ښه جواب ابن حزم ظاهريؒ کړے دے چه أے فقهاؤ ! ستاسو دا خبره د اصل نه ضعيفه ده چه په قسم کښې به يوه يوه شپه مقرروی. د الله د رسول ﷺ نه دا نه ده ثابته چه هغه شپه مقرر کړے وی، بلکه رسول الله ﷺ عدل فرمائيلے دے چه عدل به کوی، او دا عدل کله په شپه سره وی، کله په ګينټه يا دوه ګينټو سره وی، او دلته نبي ﷺ عدل کړے دے، او کوم روايت کښې چه بيتوتت لفظ راغلے دے هغه بنا بر أغلب دے، دپاره د أسانئ دے، ځکه چه يوه يوه ګينټه يا نيمه نيمه شپه تيرول انسان ته ګرانه وی، خوب ئے خرابيږی ۔او دا د عدل کولو يو قسم دے چه شپه تيره کړی، يا دوه دوه شپے۔

---

۶ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَذْكُرُ اللهَ عَلٰى كُلِّ أَحْيَانِهٖ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَحَدِيْثُ ابْنِ عَبَّاسٍ سَنَذْكُرُهٗ فِيْ كِتَابِ الْأَطْعِمَةِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى.

**ترجمه** : عائشة فرمائي : نبي ﷺ به په خپل هر حالت کښې د الله ذکر کولو۔ (مسلم)۔ اود ابن عباس حديث به ان شاء الله مونږ په كتاب الأطعمة کښې ذکر کړو۔ ( ځکه هلته مناسب دے )۔

**تشريح** : يَذْكُرُ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ أَحْيَانِهٖ :

**مناسبت** د حديث دادے چه په حالت دجنابت کښې د الله ذکر کول جائز دی، ځکه چه نبي ﷺ به په هر وخت کښې ذکر کولو اګرچه جنب به وو۔ البته د جماع په حالت کښې يا د بول وبراز په حالت کښې ذکر کول مکروه دی۔ نو دا وختونه ددے (كل أحيانه) نه مستثنیٰ دی ۔او په (كل أحيانه) کښې د کل نه مراد کل عرفي دے، يعنې عامو اوقاتو کښې، نو ددے نه دا نه لازميږی چه ګنې نبي ﷺ به د بول وبراز په حالت کښې ذکر کولو۔ او دا قسم کلام په هره ژبه کښې وی، فلانے سړے دا کار هر وخت کوی، او دے نه مراد دا وی چه اکثرئے کوی ۔

٢ - **فائده** : دا حديث دليل دے په دے چه نبي ﷺ به د بے اودسئ په حالت کښې هم د الله ذکر کولو۔ نو د هغه علماؤ خبره ضعيفه ده چه دا وائی : د اوداسه نه مخکښې (بسم الله) وئيل ځکه واجب نه دی چه په دے کښې د الله نوم او ذکر دے، او دليل دا پيش کوی چه رسول الله ﷺ باندے يو صحابي أبو الجهيم سلام واچولو، او نبي ﷺ په حالت د بولو کښې وو، کله چه فارغ شو، نو په ديوال ئے تيمم اووهلو، او بيائے د سلام جواب ورکړو، او دائے اوفرمائيل : چه زه د بے اودسئ په حالت کښې ووم (وكرهتُ أن أذكر الله الا على طهارة - أبوداود) ۔ ځکه مے جواب در نه کړو۔ دا استدلال طحاوی کړيدے او خطاء شويدے۔

وجه د ضعف داده چه د نبي ﷺ طبيعت دا وو، چه هغه به د الله ذکر په طهارت او پاکئ حالت کښې خوښولو، ليکن د أمت د آسانئ دپاره ئے بغير د طهارت حالت نه هم د الله ذکر کړے دے، نو ددے نه دا نه لازميږی چه ګنې (بسم الله) وئيل په ابتداء د اوداسه کښې ځکه واجب نه دی، چه په ابتداء د اوداسه کښې انسان لا اودس نه وی کړے او پاك نه وی . لهذا دا استدلال بعيد او خطاء دے، كما عرفتَ۔

## الفصل الثاني - دويم فصل

٧ - عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ : اِغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ ﷺ فِيْ جَفْنَةٍ فَأَرَادَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَنْ يَتَوَضَّأَ مِنْهُ، فَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! اِنِّيْ كُنْتُ جُنُبًا فَقَالَ : اِنَّ الْمَآءَ لَا يُجْنِبُ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه، وَرَوَى الدَّارِمِيُّ نَحْوَهُ.

٨ - وَفِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ عَنْهُ عَنْ مَيْمُوْنَةَ بِلَفْظِ الْمَصَابِيْحِ.

---

**ترجمه** : ابن عباس ؓ فرمائی : د نبی ﷺ ځينے بيبيانو د يو خانك نه غسل اوكړو، رسول الله ﷺ اراده اوكړه چه د هغے نه اودس اوكړی، نو هغے بی بی اوونيل : يا رسول الله ! زه جنبه ووم (اوما دے سره غسل كړيدے)، نبی ﷺ اوفرمائيل : اوبه خو نه جنبی كيږی (يعنے د جنبی لاامبلو يا دهغه څه اندام باندے پريوتو سره اوبه نه ناپاكه كيږی). (ترمذی، ابوداود، ابن ماجه). او دارمی هم داسے روايت نقل كړے دے. او شرح السنه كښے ابن عباس ؓ نه او هغویٔ د بی بی ميمونے ؓ نه دمصابيح پشان الفاظ روايت دی.

**تشريح** : اِغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ ﷺ فِيْ جَفْنَةٍ :

١ - ددے نه مراد ميمونه رضی الله عنها ده چه د ابن عباس ؓ خاله (ترور) ده، لكه دا په روايت د دارقطنی كښے مصرح ده. ٢ - (فی جفنةٍ) نه مراد (من جفنةٍ) دے، يعنے لاس سره به ئے د خانك نه اوبه راخستے او داسے نه ده چه دننه په خانك كښ ناسته وی.

٣ - د جنب په لاس داخلولو سره اوبو ته نجاست سرايت نه كوی.

٤ - حديث دليل دے په دے مسئله چه سړی دپاره د زنانه نه پاتے شوو اوبو باندے اودس كول جواز لری، اودا د جمهورو مذهب دے، لكه ددے تحقيق فصل ثالث كښے راروان دے. او جمهور دا حديث ناسخ گنړی ددغه حكم.

اِنَّ الْمَآءَ لَا يُجْنِبُ : ٥ - دا لويه فائده او قاعده كليه ده، ځكه ( الماء) كښے الف لام استغراقی دی، نو دا دليل دے په دے چه ټولے اوبه پاكے دی، كه هر څه په كښے پريوتی وی،

مګر کله چه یو د اوصاف ثلاثه د هغې په نجاست سره بدل شي، نو بیا به نجسې وي، کما یأتي تحقیق المسألة تفصیلا في باب المیاه ان شاء الله تعالی۔

**درجة الحديث** : اسناده صحیح اخرجه ابوداود (٦٨) والترمذی (٦٥) وقال حسن صحیح وابن ماجة (٣٧٠)۔

---

١ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ يَسْتَدْفِئُ بِيْ قَبْلَ أَنْ اَغْتَسِلَ ). رَوَاهُ ابْنُ مَاجه وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهٗ وَفِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيْحِ.

**ترجمه** : عائشهؓ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه کله د جنابت غسل اوکړو، نو بیا به هغه زما د غسل کولو نه مخکښې ما پورې (جوختیدلو سره) ځان ګرمولو۔ (ابن ماجه) او امام ترمذيؒ هم دغسې روایت نقل کړې دې او شرح السنه کښې دمصابیح دلفظ پشان روایت منقول دې۔

**تشریح** : ثُمَّ يَسْتَدْفِئُ بِيْ : یعنې ما باندې به ئې ځان ګرمولو، استدفاء د دفء نه دې ګرمایش ته وائي۔ د حدیث مطلب دادې چه عائشهؓ فرمائي : نبي ﷺ چه به کله د همبسترئ کولو نه فارغ شو نو مانه به ئې مخکښې غسل کولو، بیا چونکه د یخنئ په موسم کښې د غسل کولو په وجه انسان یخني محسوسوي، دې وجې نه نبي ﷺ چه به کله اولامبل، نو بیا به راغې او خپل اندامونه مبارك به ئې زما د بدن سره یو ځائې کړل، دې دپاره چه تود شي۔ نو دې حدیث نه معلومه شوه چه :

١ – د جنب بدن او خُرمن پاکه ده، ځکه چه ظاهر داده چه نبي ﷺ د عائشهؓ په بدن باندې ځان ګرم کړې دې اګرچه دا احتمال هم شته چه په جامه ئې ځان مرلې وي، لیکن غالبا ګرمي په بدن سره حاصلیږي، ځکه بدن ګرم وي نو انسان په دې سره زر ګرمیږي، او بله داچه دلته د جامې ذکر هم نشته، بلکه دا د جنابت نه پس د بربنډ والي حالت معلومیږي - (طیبي)۔

٢ – دا حدیث دلیل دې په دې چه مستعملې اوبه بالکل پاکې دي، ځکه چه د نبي ﷺ

د اندامونو نه د ځان ګرمولو په وخت کښې به ضرور لوندوالے او څاڅکی د عائشہؓ په بدن لګيدلے وی، یا د هغې په جامو باندے لګیدلے وی، اوبیا به نبی ﷺ نه بیرته را نقل شوے وی۔ اود اپه هیڅ حدیث کښې نشته – نه په صحیح اونه په ضعیف کښې – چه نبی ﷺ به هغه اندامونه وینځل کوم چه به د عائشہؓ د بدن سره د ځان ګرمولو په وخت لګیدلی وو۔ معلومه شوه چه مستعملے اوبه پاکے دی۔

بیا ددے ځان ګرمولو په حکم کښې خوب کول هم دی، چه سړے اولامبی او د ښځے د غسل نه مخکښے هغې سره اوده شی۔ دا هم جائز ده۔ کما قال به الترمذی، او دا اتفاقی مسئله ده۔

**درجة الحديث** : حسنه القاری، وقال الترمذی : هذا حديث ليس به بأس، ولكن فی سنده حريث بن عمرو الفزاری، وقد ضعفه أكثر العلماء، قال البخاری : فيه نظر، وقال الحافظ فی التقريب : ضعيف، وقال ابن العربی : حديث لم يصح، ولم يستقم، فلا يثبت به شئ. شرح الترمذی : ۱۹۱/۱ . وقال الالبانی فی تعليق المشكاة (۱۴۳/۱) رواه ابن ماجة فی سننه رقم (۵۸۰) وسنده ضعيف فيه شريك عن حريث. فقوله فی المرقات (۳۳۳/۱) وسنده حسن – غير حسن وقول الترمذی ليس به بأس غير صحيح – لان فيه كل البأس كما عرفت من حال حريث وحسبك دليلا قول البخاری فيه وهو – شيخ الترمذی – فيه نظر۔

او معنی ددے حدیث د نورو ځایونو د دین نه معلومه ده۔

---

۱۰ – وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ فَيُقْرِئُنَا الْقُرْآنَ وَيَأْكُلُ مَعَنَا اللَّحْمَ، وَلَمْ يَكُنْ يَحْجُبُهُ – اَوْ يَحْجِزُهُ – عَنِ الْقُرْآنِ شَيْءٌ لَيْسَ الْجَنَابَةَ ). رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَرَوَى ابْنُ مَاجَه نَحْوَهُ.

**ترجمه** : علیؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به د بیت الخلاء نه را اووتلو او (د اودس کولو نه به ئے مخکښے) مونږ ته قرآن لوستلو۔ او (هغه وخت به ئے) مونږ سره غوښه خوړله۔ نبی ﷺ به د جنابت نه سیوا بل هیڅ شئ د قرآن لوستلو نه منع کولو۔ (أبوداود۔ نسائی۔ او ابن ماجه ددے پشان روایت نقل کړیدے)۔

**تشريح :** كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ فَيُقْرِأُنَا الْقُرْآنَ :

دے حدیث نه دوه مسئلے معلومیږی : (۱) بے اودسۍ باندے د قرآن کریم تلاوت کول جائز دی۔ (۲) لیکن د قرآن کریم تلاوت د جنابت په حالت کښے کول جائز نه دی ۔ نبی ﷺ به نه کولو۔ تفصیل داسے دے :

## مسئله : بے اودسۍ سره قرآن لوستل څه حکم لری ؟

نو اول دا چه په یادو د حفظ نه لولی، نو په دے کښے اتفاق دے چه د بے اودسۍ په حالت کښے قرآن کریم لوستل جائز دی، اودا د قرآن کریم بے أدبی نه ده، هاؤ، د افضلیّت خلاف خبره ده، او رسول الله ﷺ چه دا عمل کړے دے نو دا د أمت د آسانتیا دپاره، اود نبی ﷺ دپاره مفضول شئ باندے عمل کول أمت ته دخودنے دپاره د هغه په حق کښے أفضل دی۔

**حکمت** په کښے دادے چه قرآن کریم ډیر لوستلے کیږی، که هر وخت دے دپاره اودس کول ضروری شی نو مسلمانان به په حرج او تنګسیا کښے پریوځی۔ د بے أودسۍ په حالت کښے قرأت کول شاه ولی الله صاحبؒ په حجة الله کښے هم ذکر کړیدی ۔

## د بے اودسۍ په حالت کښ د قرآن کریم تلاوت کولو حکم

۲ – دویمه مسئله : د بے اودسۍ په حالت کښے قرآن له لاس وروړلو کښے اختلاف دے

۱ –ابن عباسؓ شعبیؒ او ضحاکؒ ابن حزمؒ، امام بخاریؒ، وغیره فرمائی چه بے اودسه شخص قرآن کریم راخستے شی۔ دوئ **دلیل** دا بیانوی چه په دے باره کښے د نهی او منع هیڅ حدیث نه دے ثابت، او اصل برائتِ أصلیه دے۔

۲ – دویم **دلیل** : مسلم رقم (۱۷۷۳) بخاری (۳/۱) کښے حدیث د هرقل کښے دا الفاظ دی (فقرأ فاذا فيه بسم الله الرحمن الرحيم، ويا أهل الكتاب تعالوا، الآية)، نو هرقل د قرآن کریم آیت لاس کښے اخستے دے او هغه ئے لوستلے دے، حال دا چه هغه کافر وو، او کفار د جنابت نه ځان نه پاکوی۔او دیو آیت او ټول قرآن حکم یو شان دے په احترام کولو کښ۔

۲ – **قول ثانی** : د جمهورو أئمه أربعهؤ دے چه بے اودسه شخص قرآن نشی مسه

کولے، دے باره کښې ډير دلائل دي، بعضے د هغے نه دادي :

۱ - **اول دليل** : دارقطني (۱۲۱/۱) کښې د ابو بکر بن محمد بن عمرو بن حزم عن أبيه عن جده په روايت نقل دي چه رسول الله ﷺ اهل يمن ته خط اوليږلو او په هغے کښې ئے ورته داسے اوفرمائيل : (لا يمس القرآن الا طاهر)، ورجاله ثقات۔ دا حديث اګرچه مرسل دے مګر طبراني (۳۲۲/۱) اوحاکم (۴۸۵/۳) او بيهقي (۸۸/۱) کښې دا په ګڼړو طريقو اوسندونو سره نقل دے، چه بعضے د بعضو دپاره مقوي او مؤيد دي۔ دا وجه ده اسحقؒ ورته صحيح وئيلے دے، او امام احمدؒ پرے استدلال کړے دے۔ دارنګه شيخ البانيؒ ورته په ارواء الغليل (۱۵۸/۱) کښې صحيح وئيلے دے، وکذا في التلخيص۔

نو معلومه شوه چه بے اودسه شخص دپاره قرآن مسه کول منع دي۔ او د طاهر معنی په مؤمن سره کول لکه بعضو کړيده - بعيد دي ۔

۲ - **دويم دليل** : موطأ مالك (۴۲/۱) رقم (۵۹۱) او بيهقي (۸۸/۱) او طحاوي (۶۱/۱) د مصعب بن سعد بن أبي وقاصؒ په روايت نقل کړی دي چه ما خپل پلار سعد بن أبي وقاصؓ ته قرآن نيولے وو (هغه راته قرأت کولو)، نو ما خپل ذکر اوګرولو، نو ماته سعدؓ اوفرمائيل : لاړشه اودس اوکړه، ځکه چه تا ذکر مسه کړو۔

نو دا واضح مؤيد دے چه سعد رضي الله عنه هم بے اودسئ سره قرآن کريم مسه کول نا جائز ګڼړل، ځکه خپل ځوئے ته د اودس حکم کوي۔

۳ - **بل روايت** : اثر د سلمان فارسيؓ دے، علقمهؒ فرمائي : مونږ د سلمانؓ سره سفر کښې وو، هغه قضائے حاجت اوکړو، مونږ ورته اووئيل : اودس اوکړه چه د قرآن د يو آيت په باره کښې درنه تپوس اوکړو، هغه اوفرمائيل : (سلوني فاني لست أمسه)، مانه تپوس اوکړئ ځکه زه خو قرآن له ګوتے نه وړم۔ (فقرأ علينا ما أردنا ولم يكن بيننا وبينه ماء)، رواه الداقطني (۱۲۳/۱) عن سلمان بأسانيد رجالها ثقات. ذكره في الدين الخالص :۲/ ۴۱۳) والحاكم (/ ۱۸۳) والسنن الكبرى (۸۸/۱)۔

۴ - قرآن کريم نه استدلال کوي ﴿ لا يمسه الا المطهرون ﴾ ، په دے کښې يو تفسير دادے چه ضمير منصوب قرآن ته راجع شي او د مس نه ظاهري مس (لاس لګول) مراد

شی، اود مطهرون نه اودس والاخلق مراد شی۔ اوجمله خبریه په معنیٰ د جمله انشائیه سره شی۔ نو معنیٰ دا جوړیږی (ګوتے دے قرآن ته نه وروړی مګر هغه خلق چه پاك - په اوداسه کښیے - وی)۔

دا استدلال مونږ ځکه روستو کړو چه دا لګ غوندے بعید دے د سیاق نه۔

اودا **قول راجح** دے ځکه په دے کښیے أدب او تعظیم د قرآن دے۔ او الله فرمائی :

﴿ ومـن یـعـظـم شعائر الله فانها من تقوی القلوب ﴾ الحج آیت (٣٢) د الـلـه د شعائرو تعظیم او أدب کول د زړونو د تقویٰ سبب دے، او دا دوه آثار په کښیے هم دی د صحابوؓ۔ امام بخاریؒ وغیره پرواز چونکه ډیر اوچت دے، په دے وجه د هغه په نیز مرفوع صحیح روایت نشته، او دا آثار د صحابوؓ دی۔ او اثر د صحابی حجت ندے۔ فتح الباری (٣٦٧/١)۔

**وَيَـأْكُلُ مَعَنَا اللَّحْمَ** : دے کښیے اشاره ده چه د غوښیے خوړلو نه روستو تلاوت کولو دپاره اودس کـول ضروری ندی بلکه بغیر د اودس او مضمضیے نه هم تلاوت د قرآن کریم جائز دے۔

**وَلَمْ يَكُنْ يَحْجُبُهُ - أَوْ يَحْجِزُهُ - عَنِ الْقُرْآنِ شَيْءٌ لَيْسَ الْجَنَابَةَ :**

یعنیے د قرآن کریم نه به هیڅ شی نه منع کولو مګر جنابت به منع کولو۔

لیـس الـجـنـابـه : لیـس د د ادواتو د استثناء نه دے په معنی د غیر سره او شیٔ کښیے چه کـوم عـمـوم دے نو دے نه مراد هغه حالات دی چه د قرآن کریم لوستل په کښیے جائز وی او تـول حالات ندی مراد ځکه د بول او غائط په حالت کښیے قرآن لوستل منع دی۔ او دا خبره عقلا معلومه وه پدے وجه ئے صرف جنابت ذکر کړو۔

## مسئله : آیا جنب قرآن لوستے شی ؟

٢ - دویم قسم : د جنب دپاره قرآن لوستلو کښیے هم اختلاف دے :

١ - **اول قول** : د بـعـض عـلـماؤ دے لـکـه امام بـخاریؒ، ابن حزمؒ، ابن المنذرؒ، داؤد ظاهریؒ او طبریؒ : دویٔ وائی جنب سړے وی که زنانه د قرآن کریم تلاوت کولے شی۔ اوپه دے مدعیٰ باندے دوه درے دلائل بیانوی :

١ - **اول دلیل** داچه په منع د قرأت کښیے هیڅ حدیث صحیح نه دے ثابت، او اصل

برائت أصلیه دے، اوکه دا کار حرام وے نو نبی ﷺ به ددے بیان کړے وے.

**۲ - دویم دلیل** : امام بخاریؒ په خپل صحیح (۱/٤٤) کښے : باب تقضی الحائض المناسك کلها الا الطواف بالبیت ، کښے آثار نقل کړی دی فرمائی : (ولم یر ابن عباس بالقرائة للجنب بأسا. وقال ابراهیم : لا بأس أن تقرأ الآیة)، یعنے ابن عباسؓ جنب دپاره قرآن کریم لوستل جائز ګڼړی. او ابراهیم نخعیؒ په یو آیت لوستلو کښ باك نه ګڼړی.

**۳ - دریم دلیل** : مخکښے حدیث د هرقل تیر شو چه هغه په حالت د کفر کښے د نبی ﷺ خط لوستلے وو، کوم چه مشتمل وو په آیتِ قرآنیه باندے. حال داچه کفار د جنابت نه د غسل کولو پرواه نه ساتی. او د یو آیت تلاوت کول او د ټول قرآن تلاوت کول په حکم کښے یو برابر دی . او دویٔ راتلونکی روایت د ابن عمرؓ ته ضعیف وائی، یعنے ( لا تقرأ الحائض ولا الجنب شیئا من القرآن)، رواه الترمذی وفی اسناده اسماعیل بن عیاش وهو ضعیف فی الروایة عن الحجازیین وهذامنها.

**۲ - قول ثانی** : دادے چه د جنب دپاره د قرآن تلاوت کول مکروه دی، او حرام نه دی (وهو الأحوط عندی). او په دے باندے **دلائل** دادی :

**۱ - اول** : دا حدیث الباب دے چه امام ترمذیؒ رقم (۱٤٦) ، ابوداوُدؒ (۲۲۹)، ابن ماجهؒ (۵۹٦)، طحاویؒ (۱/۷۰) اوابن حبانؒ په خپل صحیح (۲/۸۵) او بغویؒ په شرح السنه (۱/۵۳۱) کښے راوړے دے: (عن علی کان رسول الله ﷺ لا یحجبه عن القرآن شئ لیس الجنابة) . او ددے حدیث راویان ثقات دی، سیوا د عبد الله بن سلمه نه چه شاګرد د علیؓ دے، دده په آخر عمر کښے حافظه خرابه شوے وه. دا وجه ده ابن حجر عسقلانیؒ فتح الباری (۱/۳۲٤) کښے فرمائی : حقه خبره داده چه دا حدیث د قبیلے د حسن نه دے، او صالح دے دپاره د دلیل. لیکن دلالت په تحریم باندے نه کوی، ځکه دا مجرد فعل دے، یعنے ترك محضه دے او دا دلالت په حرمت نه کوی. ځکه کیدے شی چه نبی ﷺ ته په دے حالت کښے تلاوت خوند نه ورکولو، او په افضلیت ئے عمل کولو، نو د نبی ﷺ په دے حالت کښے قرآن نه لوستل دلیل د حرمت نه دے.

**۲ - دلیل** : حدیث د أبو الجهیمؓ کښے دی چه نبی ﷺ ده ته د سلام نه ورکولو په

جواب کښې اوفرمائیل کله چه هغه په بولو مشغول وو: (انی کرهت أن أذکر اللّٰه الا علی طهر) متفق علیه . وأخرجه الطحاوی : ٦٨/١۔

دا حدیث دلیل دے چه نبی ﷺ د اللّٰه ذکر په حالت د بے أودسۍ کښې بد او مکروه ګنړلے دے، نو د قرآن کریم تلاوت کول به په طریقه اولیٰ سره په حالت د جنابت کښې مکروه وی، ولے چه دا خو لوئی ذکر دے د اللّٰه ۔ دا حدیث دلیل د کراهت دے، ځکه د نبی ﷺ طبیعت دا وو چه بے اودسۍ کښې به ئے ذکر نه خوښولو۔ اګرچه د بے اودسۍ په حالت کښې ترے ذکر کول هم ثابت دی، (یذکر اللّٰه علی کل أحیانه)۔

۳ - **دلیل** : مجمع الزوائد (٢٧٦/١) والمرعات (١٥٥/٢) کښې قولی حدیث راغلے دے چه نبی ﷺ نه تپوس اوشو چه جنب به قرآن وائی ؟ وے فرمائیل : (لا، ولا آیة)۔ وسنده صحیح ورجاله موثقون۔ یعنې یو آیت به هم نه لولی۔

٤ - **دلیل** : طحاوی (٦٩/١) کښې د عمر، علی، ابن عباس، ابن عمر او سلمان - رضی اللّٰه عنهم - نه نقل کړی دی (انهم کرهوا قرائة القرآن للجنب)، یعنې : دوئ به د جنب دپاره قرآن کریم لوستل مکروه ګنړل ۔

وصح عن عمر - رضی اللّٰه تعالیٰ عنه - أنه کان یکره أن یقرأ القرآن وهو جنب۔ (رواه البیهقی فی الخلافیات، باسناد صحیح. مرعاة :١٥٥/٢)۔

٥ - **قیاسی دلیل** : د جنابت نجاست زائل کول آسان دی، هیڅ مشقت په کښې نشته، نو څه وخت روستو دے تلاوت اوکړی، کله چه بنه ځان پاك کړی۔ په خلاف د حیض او نفاس د حالت نه چه دا د انسان په وسع او اختیار کښې نه وی۔ کما یأتی. کذا فی فتاوی الدین الخالص (٤١٤/٢، والمجموع شرح المهذب : ١٥٩/٢، والارواء : ٢٤١/٢، وتمام المنة ص : ١١٢، والدارقطنی : ١١٧/١۔

**فائده** : د جنب دپاره د قرآن د لوستلو د کراهیت په باره کښې روایتونه صحیح دی، لیکن د امام بخاریؒ پرواز اوچت دے، د هغه په شرائطو برابر نه دی، دے وجے نه دے له هغه اعتبار نه ورکوی۔

## د حائضے او نفساء زنانه د قرآن لوستلو حکم

٣ - دريم : دحائضې اونفاسې زنانه دپاره قرآن لوستل حفظاً ونظراً، نو دا هم اختلافي مسئله ده :

١ - **اول قول** : د امام بخاريؒ، امام مالكؒ، قول قديم د امام شافعيؒ، طبريؒ، ابن المنذرؒ او داود ظاهريؒ دې : چه د حائضې او نفساء دپاره قرآن لوستل جواز لري، ورجحه ابن تيميةؒ وابن الحزمؒ **دلائل** ددې قول دا دي :

١ - **اول دليل** : امام بخاريؒ فرمائي : باب تقضي الحائض المناسك كلها الا الطواف بالبيت ـ ٤٤/١ ... بيا ئې دعائشېؓ روايت راوړې چه دا د حج په سفر كښې حائضه شوه، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : (فافعلي ما يفعل الحاج، غير أن لا تطوفي بالبيت حتى تطهرين).

او قرأت د قرآن كريم د حاجيانو په اعمالو كښې بهتر عمل دې، او دلته ئې صرف د طواف استثناء اوكړه، نه د بل شئ، نو دا دليل دې چه قرأت د حائضې او نفساء دپاره جائز دې. ځكه دا د بيان ځائې دې او قرأت نه منع اونشوه. او دا يو دليل هم كافي دې.

٢ - **دويم دليل** : امام بخاريؒ مسنداً او معلقاً (٤٤/١) دأم عطيةؓ نه روايت راوړې :

(قالت : كنا نؤمر أن يخرج الحيض فيكبرن بتكبيرهم، ويدعون .... الحديث).

يعنې : مونږ حائضه زنانو ته به د حيض په حالت كښې دا امر كيدې شو چه عيدګاه ته اووځو، او د سړو سره تكبيرونه اووايو او دعاګانې اوكړو.

**طريقه** د استدلال ددې حديث نه داسې ده : چه د قرأت د قرآن او د تكبيرونو او دعاګانو ترمينځ په تكريم كښې هيڅ فرق نشته. حال دا چه دلته د حائضې دپاره دا اجازه اوشوه چه په حالت د حيض كښې تكبير او دعاء اوكړي، اودې دعاګانو كښې به قرآني دعاګانې غوښتل هم راځي، نو قرآن به په دې حالت كښې لوستلې شي. نو دا دليل شو ددې خبرې چه د حائضې او نفساء دپاره د قرآن كريم تلاوت كول جائز دي. او بل طرفته د منع دليل نشته، ځكه د دعاء القرآن احترام او د قرآن احترام دواړه ضروري دي.

٣ - **دريم دليل** قياسي عقلي :

شيخ الاسلام ابن تيميةؒ په فتاوی (١٩١/٢٦) كښې فرمائي : د نبي ﷺ په زمانه كښې به زنانه حائضې اونفاسې كيدلې، نو كه د مانځه پشان د قرآن قرأت هم په هغوئ حرام

وي نو دا به نبي ﷺ ضرور بالضرور أمت ته بيان کړي وي، او أمهات المؤمنين به زده کړي وي، او دا به ئي بيا امت ته را نقل کړي وي. هرکله چه په دې باره کښې هيڅ نهي نشته، نو معلومه شوه چه دا حرام نه دي.

٤ - دارنګه حائضې او نفاسې زنانه ته وينه راتلې خو دهغې په کښې اختيار نه وي چه د ځانه ئې دفع کړي، نو د هغې نه به ډير درسونه تيريږي (چه که چرې طالب العلمه وي) او د نورو شاګردانو نه به روستو پاتې کيږي، دغه شان که چرې مدرّسه وي نو په تعليم کښې به اهمال او نقصان واقع شي. لهذا زنانه په قرأت د قرآن کښې ډير حاجت لري. او شريعت کښې ددې منع هم نه ده راغلې. نو مونږ پرې ولې د عبادت او علم او تعليم دروازه بنده کړو، او د ځان نه شارعان جوړ کړو.

٥ - **الزامی دلیل** : احناف نيم آيت او تقطيع د آيت (نيم نيم آيت لوستل) او سعيد بن جبير او ابراهيم نخعي مکمل آيت تلاوت کول د حائضې دپاره جائز کړي دي، كما رواه البخاری (١/٤٤) والدارمي (١/١٨٩) والطحاوي (١/٧١). نو يو آيت يا نيم آيت ټول د قرآن حصه ده، نو په فرق باندې دليل پکار دې، او هيڅ دليل نشته، بلکه د يو آيت او نيم آيت احترام به هم هغه شان واجب وي څنګه چه د ټول قرآن احترام واجب دې، نو دوئ له هم دا پکار دي چه قائل شي په جواز د قرأت د قرآن د حائضې دپاره. دارنګه احنافو قرآني دعاګانې لوستل هم د حائضې دپاره جائز ګنړلي دي، نو په دې هم هيڅ دليل نشته، او هيڅ فرق نشته په مابين د قرآن او د دعاء د قرآن کښې په احترام کولو کښې، ولې چه دواړه قرآن واجب الاحترام دي.

٦ - دارنګه محلی د ابن حزم (١/٩٥) کښې د عثمان رضي الله عنه او سعيد بن المسيب اثر نقل دې چه حائضه زنانه سجده تلاوت کولې شي، نو دا دليل دې چه قرآن هم لوستلې شي. فتدبر!.

٢ - **القول الثانی** : امام احمد، شافعي، او ابو حنيفة په نيز حائضه او نفاسه دپاره قرآن لوستل حرام دي، البته امام ابو حنيفة د قرأت د مادون الآية قائل دې، کما مر.

١ - **اول دليل** : راتلونکې حديث (١١) د ابن عمر مرفوعا دې (لا تقرأ الحائض ولا

الجنب شيئا من القرآن) رواه الترمذي : (١/٣٤)۔

ليكن ددينه **جواب** دادے چه حافظ عسقلانیؒ په فتح الباری (١/٣٤٤) کښے فرمائی : حديث د ابن عمرؓ په ټولو طرقو سره ضعيف دے، نو قابل د استدلال نه دے، او امام احمدؒ فرمائی : انـه حديث باطل۔ او ترمذیؒ هم ضعيف کړے دے، كمـا يأتي. فيه اسماعيل بن عياش. وقال ابن تيمية : ضعيف باتفاق أهل العلم.وضعفه الالبانی۔

**٢ - دويم** : أثـر د جـابـر بيهـقـی (١/٣٠٩) او دارقطنی (١/١٢١) کښے راوړے دے فرمائی : (لا يقرأ الحائض ولا الجنب والنفساء القرآن)۔

**جواب** : دا أثـر هـم ضـعيف دے، پـه دے کښے ابن أبی أنيسه راوی ضعيف او کذاب دے، او هـرچـه مرفـوعـا نقل دے نو په هغے کښے محمد بن الفضل متروك او وضاع راوی دے۔ انـظـر التـعـليق المغنی علی سنن الدارقطنی (١/١٢١)، دا وجـه ده عـلامه ابن الحزم په الـمـحـلـی (١/٩٥) کښے فـرمائی : پـه منع کښے چه څو مره احاديث راغلی دی هغه ټول ضعيف دی، قابل د استدلال نه دی۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود والنسائي وروى ابن ماجة نحوه :

دا حـديث ترمذی مختصرا ذکر کړے دے او فرمائيلی دی : هذا حديث حسن صحيح۔ دارنگه ابن حبان، ابن السکن، بغوی په شرح السنه کښے اوحاکم او ذهبی هم ورته صحيح وئيلی دی۔

حـافـظ ابـن حـجر فتح الباری (١/٣٢٤) کښے فرمائی : بعض علماؤ ددے روايت بعض راويانـو تـه ضـعيف وئيلی دی مگر حقه خبره داده چه دا حديث د قبيلے د حسن نه دے، او قـابـل دے دپاره د احتـجـاج او دليل نيولو۔ اوکومو علماؤ چه ورته ضعيف وئيلے دی، لکه امـام احـمـدؒ وغيـره، نـو هغه د عبد الله بن سلمه المرادی الکوفی په وجه، چه دا په آخری عـمـر کښے دحافظے په لحاظ سره کمزورے شوے وو، ليکن دا راوی صدوق دے، کما قال فی الـمـرعاة(٢/١٥٤) او ددے حديث په معنیٰ بل متابع موجود دے، او هغه جيد الاسناد دے، امـام احـمـدؒ پـه خپـل مسـنـد (١/١١٠) کښے ذکـر کړيدے په روايت د علیؓ او هغه قولی روايت دے، چـه په هغے سره د روايت نه د خطائی شبهه ختميږی، او هغه دا چه علی رضی

الله عنه د نبي ﷺ د اوداسه حكايت اوكړو، بيا ئې د قرآن كريم تلاوت اوكړو، بيا ئې اوفرمائيل : (هذا لمن ليس بجنب، فاما الجنب فلا، ولا آية) .ليكن شيخ الباني په ارواء الغليل ٢/ ٢٤٤ رقم (٢٨٥) كښ او امام نووي ورته ضعيف وئيلې دې لكه امام نووي په المجموع (١٥٩/٢) كښ د ترمذي تصحيح نقل كولو نه پس تعقيب كوي وائي :

وقال غيره من الحفاظ المحققين هو حديث ضعيف وضعفه الشافعي والبيهقي۔

او شيخ الباني وائي چه قولي روايت د عليؓ چه په مسند احمد كښ نقل شويدې هغه ددې حديث الباب متابع نشي جوړيدې بلكه هغه هم ضعيف دې د هغې په سند كښ ابو الغريف راوي دې چه سوي د ابن حبان نه بل چائې توثيق ندې كړې، بيا وائي چه ددې تحقيق نه دا ثابته شوه چه راجح دا ده چه دا متابع حديث موقوف دې په عليؓ او كه بالفرض د هغه نه صحيح ثابت شي بيا هم دا شاهد نه ګرځي د مرفوع حديث۔ انتهى۔ نو دا روايت مختلف فيه شو۔

---

١١ - وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ ) . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : ابن عمرؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائيلي دي : حائضه او جنب به د قرآن هيڅ حصه نه لولي ۔ (ترمذي)۔

**تشريح** : حديث كښې مسئله مخكښې تيره شوه۔

**درجة الحديث** : دا حديث ضعيف جدا دې۔ حافظ ابن حجر فتح الباري (١/ ٣٤٤) كښې فرمائي : اما حديث ابن عمر فضعيف من جميع طرقه. وقال احمد : انه حديث باطل۔

او امام ترمذيؒ هم ضعيف كړې دې، او د امام بخاريؒ نه ئې ددې تضعيف نقل كړې دې۔ كما في تحفة الأحوذي. وقال ابن تيمية : ضعيف باتفاق أهل العلم ۔ ځكه په دې كښې اسماعيل بن عياش دې، او دده روايت د اهل حجاز او عراق نه نه دې صحيح، اودلته ئې د حجازينو نه روايت كړې دې، او ابن أبي حاتم فرمائي : حديث اسماعيل بن عياش هذا خطأ۔

١٢ - وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( وَجِّهُوْا هٰذِهِ الْبُيُوْتَ عَنِ الْمَسْجِدِ فَإِنِّيْ لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : عائشهؓ فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ددې كورونو دروازې د مسجد طرف نه واړوئ، ځكه زه د جنب او حائضې ښځې دپاره مسجد حلال نه ګنړم. (رواه أبوداود).

**تشريح** : فَإِنِّيْ لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ :

د بعضې كوټو دروازې مسجد نبوي طرفته وې چه دهغې نه به خلق مسجد ته داخليدل او په كښې تيريدل به، نبي ﷺ ورته أمر اوكړو چه ددې دروازې بل طرفته واړوئ چه جنب اوحائضه زنانه په مسجد كښې تير نشي.

**مسئله** : د حائضه په باره كښې خواتفاق دې چه مسجد ته نشي راتلې.

١ - يو دليل دا حديث دې. ٢ - دويم : مسلم كښې حديثِ عائشه دې :( ان حيضتك ليست في يدك) روسته باب الحيض كښې رائحي. اود جنب باره كښې تفصيل دې :

١ - امام ابو حنيفهؒ فرمائي : جنب دپاره مسجد ته راتلل اوتيريدل كه په اوداسه كښې وي كه بې اودسه وي، لګ ساعت دپاره وي، كه ډير ساعت دپاره ټولو احوالو كښې داخليدل حرام دي.

**١ - دليل** اطلاق ددې حديث دې، چه دا حديث مطلق دې ټولو احوالو ته شامل دې.

**٢ - دويم دليل** : حديث د علي رضي الله عنه دې لكه روستو راوان دې (لا تدخل الملائكة بيتا فيه صورة ولا كلب ولا جنب). دا حديث هم مطلق دې. (وسنده صحيح دون زيادة جنب كما سيأتي).

٢ - امام شافعيؒ، مالكؒ فرمائي : مسجد كښې تيريدل ورله جائز دي، خو ډير ايساريدل ورله ناجائز دي. دوئ استدلال كوي د آيت ﴿ ولا جنبا الا عابري سبيل ﴾ نه، علامه شوكانيؒ فرمائي : عبور په ځائې د مانځه كښې كيږي نه په مانځه كښې، نو معنىٰ د آيت به داشي (ولا تقربوا مواضع الصلاة حال كونكم جنبا الا حال عبوركم المسجد من جانب الى جانب) اودا تفسير د ابن مسعودؓ دې. دويم تفسير د علي رضي الله عنه نه نقل

دے چه (عابرى سبيل) نه مراد مسافرين دى، يعنے مسافر خلقو له د جنابت په حالت كښے په مسجد كښے ايساريدل جائز دى، لكه طالبان وغيره. ليكن دا تفسير دلته مقصود نه دے.

٣ - امام احمدؒ او يحيىؒ فرمائى : جنب دپاره مسجد ته داخليدل جائز دى، كله چه اودس اوكړى او بغير د اوداسه نه ناروا دى .

**دليل** : ١ - أصحاب صفه به مسجد كښے اوسيدل او نبى ﷺ ورته أمر نه دے كړے چه په حالت د جنابت كښے به نه پاتے كيږى.

٢ - **دليل** : نور آثار ابن أبى شيبه (١٤٦/١) كښے راوړى دى.(كان أصحاب رسول الله ﷺ يدخلون المسجد ويتوضؤن وهم جنب). (ابن أبى شيبه وقرطبى). نو په دے كښے ډير ګنجائش دے چه جنب اودس اوكړى بيا مسجد ته داخل شى، اوكه اودس اونه كړى نو بيا به ددے حديث د لاندے راځى .

**درجة الحديث** : رواه ابوداود (٢٣٢) والبيهقى فى السنن الكبرى (٢/٢٤٢) :

دے حديث ته بعض علماؤ ضعيف وئيلے دے، د وجے د افلت بن خليفه نه، لكه ابن حزم فرمائى : افلت مجهول الحال دے. ليكن صحيح خبره داده چه دا حديث حسن يا صحيح دے، ډيرو علماؤ افلت ته ثقه وئيلى دى، لكه امام احمدؒ فرمائى : لابأس به. ابو حاتمؒ فرمائى : هو شيخ. ابن حبانؒ فرمائى : ثقه دے، البدر المنير كښے فرمائى : هو مشهور ثقة.

او دے حديث ته ابن خزيمةؒ او ابن القطانؒ صحيح وئيلے دے. ليكن شيخ البانىؒ ورته ضعيف وئيلے دے. ارواء الغليل (٢١٠/١) رقم (١٩٣) كښے بخارى نه نقل كوى چه عند جسرة عجائب، يعنے په دے روايت كښے جسره راويه هم ده، او هغه ضعيف ده، حافظ ورته په تقريب كښ لينه وئيلے ده، مګر جسره ته عجلى ثقه تابعيه وئيلے ده، او ابن حبان ئے هم توثيق كړے دے. او ددے حديث دپاره بل شاهد هم شته د أم سلمةؓ په روايت (كما فى الطبرانى وابن ماجة) اګرچه ابو زرعةؒ فرمائى : حديث دعائشةؓ صحيح دے دهغه روايت نه بيهقىؒ فرمائى : كه دا حديث صحيح شى نو محمول به شى په ډير ايساريدلو باندے او هرچه تيريدل دى نو د هغے جواز په كتاب الله سره ثابت دے (كذا فى الارواء : ٢١٠/١).

١٣ - وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ وَلَا كَلْبٌ، وَلَا جُنُبٌ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

---

**ترجمه** : علي ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ملائك هغه كور ته نه داخليږي چه په هغې كښې تصوير يا سپے يا جنب وي۔ (أبوداود، نسائي)۔

**تشريح** : لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا : د ملائكه نه مراد د رحمت او بركت ملائك دي، نه كراما كاتبين او ملك الموت۔ ځكه هغه په هر وخت كښې انسان سره وي، هيڅ حال كښې نه جدا كيږي، او هر وخت ورته راتلے شي ، ورنه كه دا سے نه وے نو بيا كومو كورونو كښے چه تصاوير دي د هغے اوسيدونكي به نه مړه كيدے او نه به د هغوي اعمال ليكلے كيدلے۔

**قيصه** : يو ماجن مُلا دا حديث آوريدلے وو، نو هغه به ځان سره سپے ګرځولو او دا به ئے وئيل چه ملك الموت به هم زما خواته نه راځي، نو زه نه مرم، چا ورته اووئيل : سپے خو هم مري، د هغه نه روح څوك اخلي ؟ هغه هم ملائك دي، نو تا به د سپو ملائك وژني۔ معلومه شوه چه صرف د رحمت ملائك به جدا وي، او حفظه ملائك انسان سره هميشه وي۔ ﴿ما يلفظ من قول الا لديه رقيب عتيد﴾، حديث كښے دي (فان معكم من لا يفارقكم، فاكرموهم)۔

د صُوْرَةٌ: نه مراد هغه تصاوير دي چه په كورونو كښے ديوالونو ته زوړند شوے وي، يا په ميزونو پراته وي او خلق د هغے قدر او احترام كوي۔ كه د انسانانو تصاوير وي اوكه د حيواناتو، مګر هغه تصويرونه چه د ونو بوټو يا د ځايونو وي، يا د حيواناتو او انسانانو وي خو ليكن د خپو لاندے كيږي، يا د ماشومانو د لوبو دپاره وي او د هغے بيعزتي كيږي، نو هغه باك نه لري۔ او د تصاوير والو كور ته ملائك ځكه نه راځي چه دا كور مشابه دے د بوتانو د كور سره۔

وَلَا كَلْبٌ : د سپي نه مراد هغه دے چه د څوكيدارئ، يا د كلو بيزو ساتنے، يا د ښكار دپاره نه وي۔ ورنه دا قسم سپي ساتل جائز دي۔

وَلَاجُنُبٌ : ددې دوه معانې دي : ١- امام بخاريؒ ددې معنىٰ كوي : باب كينونه الجنب في البيت اذا توضأ، يعنى كه اودس اوكړي نو بيا ملائك راځي، كما مرّ.

٢ - دويم : كه انسان غسل اونه كړي نو گنهگار نه دے، كما مرّ الحديث. خو د بهتر مجلس نه به محروم وي چه د ملائكو مجلس دے، دارنګه ملائك به ئے جنازے ته هم نه حاضريږي كه مړ شو، كما تقدم.

ددے مثال داسے دے لكه يو شخص مشكوة درس كوي او بل شخص اوده پروت دے نو دا شخص چه مشكوة ته نه حاضريږي گنهگار نه دے، خو د ډير خير نه محروم دے.

٣ - او يا د جنب نه مراد هغه دے چه د مونځ وخت هم پرے په جنابت كښے تيريږي، سست وي، جنابت زر نه زائل كوي، نو بيا دا مجرم دے، د مغضوب عليهم صفت په كښے راغلے دے، بيا ملائك دده خوا كښے څه كوي ؟.

نو غرض په حديث كښے تيزي وركول دي جنب ته چه په تادئ سره صفائي اوكړه او دے دپاره چه پے ځايه تاخير اونه كړے.

**درجة الحديث** : رواه ابوداود (٢٢٧) والنسائي (١/١٤١) واحمد (١/٨٣- ١٠٧- ١٣٩- ١٥٠) والدارمي (٢/٢٨٤) : په دے حديث كښے عبد الله بن نجي راوي دے، امام بخاريؒ فرمائي : فيه نظر. ليكن أكثر علماؤ دده توثيق كړے دے، لكه عجلي، ابن حبان او نسائي. او امام ابوداؤدؒ پرے سكوت كړے دے. حافظ عسقلانيؒ فرمائي : مقبول دے، يعنے كله چه ددے متابع موجود شي نو مقبول دے، نو دا حديث خو يا حسن دے او يا صحيح. وضعفه الالباني في المشكاة (١/١٢٤). وضعيف الجامع الصغير (٦٢٠٣).

او په روايت د بخاري او مسلم كښے د ابو طلحه نه په هغے كښے (لاجنب) لفظ نشته. نو دليل دے چه دے راوي څه نقصان كړيدے او حافظ چه لفظ د مقبول استعمال كړي مراد ئے دا وي چه لين الحديث دے الا عند المتابعة. لكن قال الشيخ الالباني الحديث صحيح دون قوله (ولا جنب) صحيح الجامع (٧٢٦٢).

---

١٤ - وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( ثَلٰثَةٌ لَا تَقْرَبُهُمُ

الْمَلَائِكَةُ : جِيفَةُ الْكَافِرِ، وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ، وَالْجُنُبِ إِلَّا أَنْ يَتَوَضَّأَ ).
رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه** : عمار بن یاسرؓ فرمائی : رسول الله ﷺ او فرمائیل : درے کسه دی چه (درحمت) ملائك هغوئ له خواته نه راځی : (۱) د کافر بدن (۲) هغه کس چه خلوق خوشبوئے لګونکے وی (۳) جنب شخص څو پورے چه اودس اونه کړی۔ (أبوداود)۔

**تشریح** : جِيفَةُ الْكَافِرِ : یعنے بدن د هغه شخص چه کافر وفات شوے وی، مراد د جیفه نه مړ دے، د ابوداود په روایت کښے داسے دی : (ان الملائکة لا تحضر جنازة الکافر) ۔ یعنی ملائك د کافر سرې جنازے ته نه حاضریږی۔

وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوق : خلوق هغه خوشبوئی ته وائی چه زعفران په کښے اچولے شوے وی، خلوق داسے رنګ دے لکه د ګونګی سترګه، زیړوالے پکښے وی۔ دا وجه ده بل روایت کښے دی (ولا المتضمخ بالزعفران) یعنے هغه شخص چه ککړ شوے وی په زعفرانو باندے، یعنے ځان پورے ئے د زعفرانو خوشبوئی لګولے وی۔ او ملائك ده ته ځکه خواله نه راځی چه ده ځان پورے داسے شے (زعفران) مږلے دے کوم نه چه نهی (منع) راغلے ده۔ ځکه نبی ﷺ د سړو دپاره د زعفرانو خوشبوئی لګولو منع فرمائیلے ده۔ نو دا شخص په ګناه باندے مشتمل دے، ځکه ملائك ورله خواله نه راځی۔ او په دے کښے دیته هم اشاره ده چه یو سړے به د زعفران خوشبوئی دے دپاره لګوی چه زیب او زینت ورته حاصل شی اومعزز ښکاره شی، لیکن د سنت خلاف کولو سره دغه انسان نجس دے، اود سپی نه هم زیات خسیس دے، چه ملائك ورته خواله نه راځی، چه د خیر الهام ورته اوکړی ۔

إِلَّا أَنْ يَتَوَضَّأَ : کښے اشاره ده چه جنب کله اودس اوکړی نو دے سره ئے نیم جنابت ختم شی۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود : دا حدیث منقطع دے، امام منذریؒ فرمائی : الحسن لم یسمع من عمار، لیکن د حدیث رجال ثقات دی، نو دا حدیث حسن درجه کښے دے۔ (کما فی الترغیب : ۱/۹۱). والصحیح انه حدیث حسن کما فی صحیح ابی داود رقم (۴۱۸۰)و آداب الزفاف (۳۸)۔

١٥ - وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِی بَکْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ أَنَّ فِی الْکِتَابِ الَّذِیْ کَتَبَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ: أَنْ لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ). رَوَاهُ مَالِکٌ وَالدَّارِقُطْنِیُّ .

**ترجمه** : عبد الله بن أبی بکر بن محمد بن عمرو بن حزمؒ فرمائي : رسول الله ﷺ چه کومه هدايت نامه عمرو بن حزمؓ دپاره ليکلے وه، هغے کښے دا (حکم هم) وو چه قرآن کريم ته دے پاك خلق لاس وروړي۔ (مالك، دارقطني)۔

**تعارف : د عبد الله بن أبی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم :**

دا ثقه تابعي دے، د انس او سالم بن عبد الله شاګرد دے، او امام زهريؒ او امام مالكؒ او سفيانينوؒ استاذ دے۔ امام مالكؒ فرمائي : کان کثير الحديث، وکان رجل صدق ومن أهل العلم والبصيرة وقال احمد : حديثه شفاء ۔ په سنه (١٣٥) يا (١٣٠) کښے على اختلاف القولين د (٧٠) کالو په عمر وفات شوے، هيڅ اولاد ئے نه وو۔ او دده نيکه عمرو بن حزم صحابي دے، او غزوه خندق ته په پنځلس کلنۍ کښے حاضر شوے دے۔ رضی الله تعالیٰ عنه ۔

**تشريح** : فِی الْکِتَابِ الَّذِیْ : دا خط او کتاب نبي عليه السلام د عمرو بن حزم دپاره ليکلے وو کله ئے چه هغه د يمن اطرافو کښې په يو ښار عامل مقرر کړے وو او ليږلو وقت کښې ئے ورته دغه خط ورکړو چه دے کښې د فرائض او صدقات او دياتو مسائل او احکام ليکلے شوي وو چه بعضے د هغے نه دا مسئله وه کوم چه دلته ئے راوي بيانوي۔

أَنْ لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ : دا طهارت، طهارتِ صغریٰ او کبریٰ دواړو ته شامل دے، نو أدب دادے چه قرآن ته د بے اودسۍ او د جنابت په حالت کښے لاس ور نه وړے شي۔ کما مرّ۔ اګرچه په حدثِ اصغر کښے ابن عباسؓ، ضحاكؒ، شعبيؒ او امام بخاريؒ او ابن حزمؒ اختلاف کړے دے ۔

**درجة الحديث** : رواه مالك (١/٩٩) والدارقطني (١/١٢١- ١٢٢) والحاكم (١/٣٩٥) بسند صحيح : دا حديث امام مالكؒ مرسلا را وړے دے، او ابو داودؒ هم په مراسيلو

کښې ذکر کړې دې۔ وقد تقدم انه حدیث صحیح کما فی الارواء (۱/۱۵۸) والتلخیص (۱۷/٤) وله طرق وشواهد ذکرها الزیلعی فی نصب الرایة (۱/۱۹٦) تعلیق المشکاة للشیخ رمضان (۱/۲۱۰)۔

---

۱٦ - وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ اِنْطَلَقْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِیْ حَاجَةٍ فَقَضَى ابْنُ عُمَرَ حَاجَتَهٗ وَكَانَ مِنْ حَدِيْثِهٖ يَوْمَئِذٍ أَنْ قَالَ : مَرَّ رَجُلٌ فِیْ سِكَّةٍ مِنَ السِّكَكِ، فَلَقِیَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ وَقَدْ خَرَجَ مِنْ بَوْلٍ اَوْ غَائِطٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتّٰى اِذَا كَادَ الرَّجُلُ أَنْ يَتَوَارٰى فِی السِّكَّةِ ضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِيَدَيْهِ عَلَى الْحَائِطِ وَمَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهٗ ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرٰى فَمَسَحَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ وَقَالَ : اِنَّهٗ لَمْ يَمْنَعْنِیْ أَنْ اَرُدَّ عَلَيْكَ السَّلَامَ اِلَّا اَنِّیْ لَمْ اَكُنْ عَلٰى طُهْرٍ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

**ترجمه** : نافع وائی : زه د ابن عمرؓ سره د قضائے حاجت دپاره لاړم، ابن عمرؓ خپل حاجت پوره کړو، او په دغه ورځ ده دا حدیث بیان کړو چه یو سړے د کوڅو نه په یوه کوڅه کښې تیریدلو، نو رسول الله ﷺ سره په داسے حالت کښې ملاؤ شو چه رسول الله ﷺ د بولو یا غائطو نه را اووتلو۔ هغه سړی پرے سلام واچولو، نبی ﷺ د سلام جواب ورنه کړو، تردے چه نزدے وه چه سړے په کوڅه کښې غائب شی نو رسول الله ﷺ په دیوال باندے لاس اووهلو او بیا دواړه لاسونه ئے خپل مخ مبارك پورے راخکل، بیا ئے بل ځل دیوال مسح کړو، او خپل دواړه څنګلے ئے مسح کړے، بیا ئے د هغه سړی د سلام جواب ورکړو۔ او وے فرمائیل : زه تاله د سلام جواب درکولو نه صرف دے خبرے منع کړم چه زه په اودس کښې نه ووم۔ (أبوداود)۔

**تشریح** : **فوائد** : ۱- بول کونکی باندے سلام اچول جائز نه دی۔ ۲ - سوال په حدیث د عائشۀ کښې تیر شوی دی چه رسول الله ﷺ به په هر حالت کښې د الله ذکر کولو، او دلته فرمائی : ما څکه د سلام جواب درنه کړو چه طهارت کښې نه ووم ؟۔

ددے **جواب** مخکښے اوشو، هغه دا چه ذکر د الله بيانا للجواز شوے دے، نو دے کښے عمل بالرخصه دے، او خپل طبيعت د رسول الله ﷺ دا وو، چه بے اودسئ په حالت کښے به ئے ذکر نه کولو، نو دلته عمل دے په عزيمت باندے.

٢ – د زړه مختلف احوال دی، کله د انسان طبيعت نشاط او تازګئ کښے وی، نو د الله تعلق او محبت زيات وی، نو الله صرف د پاکئ په حالت کښے يادوی، اوکله دومره نشاط او تازګی نه وی نو بيا ئے د بے اودسئ په حالت کښے هم يادوی. نو دا د زړه په کيفياتو باندے بناء دے.

٣ – الرجل نه مراد ابو الجهيمؓ دے لکه بل روايت کښے ذکر شوے دے.

٤ – فائده : په ديوال باندے تيمم وهل جواز لری.

٥ – په بحر الرائق کښے علامه ابن نجيم حنفی ددے حديث نه په دے مسئله استدلال کړے چه که انسان په اوبو قادر وی نو هم تيمم وهل ورله جائز دی خو په مستحب اوداسه کښے، نه په واجب کښے. مثلا غسل نه پس اوده کيدو دپاره. ليکن ددے خلاف امام نووی فرمائی : نبی ﷺ په دے حال کښے اوبه نه موندلے، ورنه په اوبو باندے قادر شخص دپاره تيمم د فرض او نفل دواړو دپاره جائز نه دے. برابره خبره ده چه په وخت کښے تنګی وی که فراخی، د اختر مونځ وی اوکه د جنازے.

او په دے حديث باندے امام بخاریؒ باب تړلے : باب التيمم فی الحضر اذا لم يجد الماء وخاف فوت الصلوات. اشاره کوی چه دا حديث په باره د هغه چا کښے دے چه اوبه نه مومی. اودا قول د جمهورو دے. دامام ابو حنيفهؒ قول دادے چه د جنازے او اختر مانځه دپاره – کله چه وخت کم وی – سره د قدرت نه په اوبو باندے تيمم وهل جائز دی. او امام طحاویؒ ورله په دليل کښے دا حديث ذکر کړے چه دلته نبی ﷺ نه د سلام جواب ورکول فوت کيدو نو په دے وجه ئے تيمم اووهلو، نو په دے سره به د هغه شئ دپاره تيمم وهل جائز وی دکوم دپاره چه د سره خلف نه وی، چه هغه جنازه او اختر مونځونه دی.

ليکن دا استدلال د دوه وجهو نه **خطاء** دے : ١ – يو دا چه خبره زمونږ په فرض اوداسه کښے ده او حديث کښے مستحب اودس ذکر دے، ځکه دسلام د جواب ورکولو دپاره اودس

كول واجب نه دى، نو دا قياس مع الفارق دے ځكه علة الحكم په طرفينو كښ يو نه دے۔

٢ - دويم دا چه په دے حديث كښے خو دا خبره نشته چه نبی ﷺ اوبه موندلے په حالت د تيمم كښے بلكه خبره بالعكس ده كما مر في قول النوویؒ۔

٣ - دريم دا چه : اصل مسئله مونږ نه منو چه اخترونو دپاره ځكه تيمم جائز دے چه ددے خلف نشته ـ ولے نشته ! بلكه كه جماعت فوت شی نو د اختر مونځ يوائځے هم كيږی۔ د عبد الله بن مسعود نه نقل دی فرمائی : من فاته العيد مع الامام فليصل اربعا - اخرجه سعيد بن منصور باسناد صحيح)۔

٢ - انس بن مالك نه نقل دی : (كان انس اذا فاته العيد مع الامام جمع اهله فصلى بهم مثل صلاة الامام فی العيد. اخرجه البيهقی) يعنی انس نه به چه كله د اختر مونځ فوت شو نو خپل كور والا به ئے راجمع كړل او هغوی ته به ئے د اختر مونځ اوكړو۔ عطاء بن ابی رباح فرمائی : من فاته العيد يصلی ركعتين ويكبر. رواه ابن ابی شيبة ) چا نه چه د اختر مونځ فوت شی نو دوه ركعاته به اوكړی او تكبيرونه به پكښے اووائی۔

٣- دارنګه د اختر مونځ د نورو مونځونو پشان دے نو قضاء ئے هم شته او دا قول د امام احمدؒ، ثوریؒ، شافعیؒ، نخعیؒ، مالكؒ، اوزاعیؒ، ابوثورؒ، ابن المنذرؒ دے او امام بخاریؒ (١٣٤/١) پرے باب تړلے دے باب اذا فاته العيد يصلی ركعتين .انظر فی ذلك فقه السنة (٢٨١/١) والمرعاة (٦٤/٥) وفتاوی الدين الخالص (٣٠٠/٦)۔

دغه شان جنازه خو څه فرض عين نده كله چه اودس نه وی نو په نه كولو باندے انسان ګناهګار ندے۔ او جنازے او اختر مانځه ته د تيمم په باره كښے چه كوم آثار د ابن عمر او ابن عباس راغلی دی هغه ټول ضعيف دی۔انظر فتاوی الدين الخالص (٤٢١/٢) والبيهقی (٢٣٠/١) ۔

ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرٰی : ددے نه احنافو استدلال كړے دے چه تيمم كښے دوه ضربتين دی، دپاره د مخ او لاسونو تر څنګلو پورے۔

ليكن دا استدلال صحيح نه دے ځكه د (ضربتين) او (ذراعين) ذكر په دے حديث كښے منكر دے، لكه روسته به راشی۔ دا وجه ده علماء فرمائی : د نبی ﷺ نه عملا تيمم

ترځنګلو پورې نه دې ثابت، البته د ابن عمرؓ نه نقل دې۔ تفصيل راراون دې۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (٣٣٠) والدارقطني (١/١٧٧) والبيهقي في الكبرى (١/٢٠٦) : ددې حديث سند ضعيف دې، ځکه په دې کښې محمد بن ثابت العبدی ضعيف راوی دې، ابن معينؒ، ابو حاتمؒ، امام احمدؒ او امام بخاریؒ ضعيف کړې دې، امام بخاریؒ فرمائي : ايوب او عبيد الله او نور شاګردانو دده نه خلاف کړې دې ځکه هغوئ دا حديث د نافع عن ابن عمر موقوف ګرځولے، چه دا د ابن عمرؓ عمل دې، نه د نبي ﷺ۔

امام ابوداودؒ خپله فرمائي : ولم يتابع أحد محمد بن ثابت في هذه القصة على ضربتين عن النبي ﷺ، ورووه عن فعل ابن عمر۔

امام خطابیؒ معالم السنن کښې فرمائي : حديث ابن عمر لا يصح، لان محمد بن ثابت ضعيف جدا لا يحتج بحديثه۔

**تنبيه** : په دې باب کښې مختلف قسم حديثونه نقل دی، په بعضو حديثونو کښې دادی چه نبي ﷺ د بول نه فارغ شو، بيا پرې سلام واچولو، هغه جواب ورنه کړو تردې چه تيمم ئې اووهلو، او علت هم ذکر دې، لکه په دې حديث کښې دا ذکر دې۔

په روايت د ضحاكؒ عن نافع عن ابن عمر کښې دی چه په نبي ﷺ باندې په حالت د بول کښې سلام اچول شوې دې۔ او روستو روايت د مهاجر بن قنفذؓ کښې دی چه په حالت دبول کښې سلام اچول شوې۔ نو هغه اودس نه پس جواب ورکړې، او په روايت د ابن الهادؒ عن نافع عن ابن عمر کښې هم هغه شان قصه ده کومه چه په دې حديث کښې ذکر ده۔ مګر فرق دادې چه په هغې کښې علت هم نه دې ذکر او د ضربتين او ذراعين ذکر هم نشته، بلکه (مسح وجهه ويديه) لفظ ذکر دې، او دغه روايت ته امام منذریؒ حسن وئيلې دې، او هغه مطابق دې د روايت د أبي الجهيمؓ سره کوم چه امام بخاریؒ اومسلمؒ ذکر کړې دې۔ نو په دې کښې تطبيق دادې چه حديث د محمد بن ثابت خو ضعيف دې، او حديث د مهاجر بن قنفذؓ يوه قيصه ده۔ او حديث د ابن الهادؒ بله قيصه ده۔ نو دا حمل دې په متعدد قيصو باندې۔ کله ئې جواب نه دې ورکړې أدبا، اوکله ئې جواب د تيمم نه پس ورکړې دې، اوکله ئې داودس نه روسته جواب ورکړې دې۔

١٧ - وَعَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ ﷺ ( اَنَّهُ اَتَى النَّبِيَّ ﷺ وَهُوَ يَبُوْلُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتّٰى تَوَضَّأَ ثُمَّ اعْتَذَرَ اِلَيْهِ قَالَ : اِنِّىْ كَرِهْتُ اَنْ اَذْكُرَ اللّٰهَ اِلَّا عَلٰى طُهْرٍ ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ .

**ترجمه** : مهاجر بن قنفذؓ نه روايت دے چه دے نبی ﷺ ته په داسے حال کښے راغے چه هغه بول کول، سلام ئے پرے واچولو خو نبی ﷺ د هغے جواب ورنه کړو، تردے چه اودس ئے اوکړو او بيا ئے ورته دا عذر اوکړو: چه ما دا بده اوګنړله چه په بے اودسۍ باندے دالله ذکر اوکړم ۔( أبو داود)۔

**تعارف : د المهاجر بن قنفذ ﷺ :**

مهاجر ئے لقب دے خپل نوم ئے عمرو دے، او د پلار نوم ئے خلف دے او قنفذ ئے لقب دے۔ حافظ په اصابه (٤٦٦/٣) کښے ليکی : كان أحد السابقين الى الاسلام، کله چه د هجرت اراده ئے اوکړه، مشرکانو اونيولو او عذاب ئے ورکړو۔ آخر ترے اوتختيدلو او مدينے ته راغلو، نبی ﷺ اوفرمائيل : هذا المهاجر حقا، دا يقينی مهاجر دے۔ عثمان رضی الله عنه په فوج مشر کړے وو، د بصرے اوسيدونکے او په هغے کښے وفات شوے دے۔

**فائده** : دا حديث هم دليل دے چه په جنابت حالت کښے قرآن لوستل مکروه دی۔

فلم يرد عليه : دا دليل دے چه د سلام جواب د ضرورت په بناء روستو کول هم جائز دی، دلته نبی ﷺ د اودس کولو نه پس د سلام جواب ورکړے دے۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (١٧) واحمد (٣٤٥/٤) و(٨٠/٥، ٨١) وصححه ابن حبان واورده الهيثمی فی موارد الظمآن رقم (١٨٩) وصححه الحاکم والذهبی وسنده صحيح صححه الألبانی فی صحيح السنن رقم : ١٣، وقال النووی فی الأذکار : هذا حديث صحيح۔

١٨ - عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ : كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُجْنِبُ ثُمَّ يَنَامُ ثُمَّ يَنْتَبِهُ ثُمَّ يَنَامُ . رَوَاهُ أَحْمَدُ .

**ترجمه**: أم سلمهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به د جنابت په حالت کښے اوده کيدلو، بيا

به راوېښ کېدلو او بيا به اوده کېدلو۔ (أحمد)۔

**تشريح** : ثُمَّ يَنَامُ : **فوائد** : ١ – نبی ﷺ نه کله کله – بيانا للجواز – دا طريقه هم نقل ده کومه چه په دے حديث کښې ذکر ده چه بغير د اوداسه نه د جنابت په حالت کښې اوده شوے دے، لکه مونږ دا حديث په کيفياتو د جنب کښې پيش کړو۔

٢ – دويم دا هم ضروری نه ده چه يو انسان د جنابت په حالت کښې اوده شی او بيا د شپے راپاڅی نو غسل به کوی، بلکه بيرته هم په دغه حالت کښې اوده کېدے شی، خو چه کله د تهجدو يا د صبا وخت رانزدے شی نو غسل دے اوکړی۔

**درجة الحديث** : رواه أحمد (٣٩٨/٦) وسنده ضعيف لكن عند احمد (٣٠٦/٦) طريق اخرى عنها بلفظ كان رسول الله ﷺ يمس اهله من الليل فيصبح من غير احتلام فيغتسل ويصوم) وسنده حسن. فالحديث صحيح۔

---

١٩ – وَعَنْ شُعْبَةَ قَالَ : اِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ ﷺ كَانَ اِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ يُفْرِغُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلٰى يَدِهِ الْيُسْرٰى سَبْعَ مِرَارٍ ثُمَّ يَغْسِلُ فَرْجَهٗ فَنَسِىَ مَرَّةً كَمْ اَفْرَغَ فَسَأَلَنِىْ فَقُلْتُ : لَا أَدْرِىْ فَقَالَ : لَا أُمَّ لَكَ، وَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَدْرِىَ ؟ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوْئَهٗ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ يُفِيْضُ عَلٰى جِلْدِهِ الْمَاءَ ثُمَّ يَقُوْلُ : هٰكَذَا كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَتَطَهَّرُ . رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : شعبهؒ فرمائی : ابن عباسؓ چه به کله د جنابت نه غسل کولو نو په خپل ښی لاس سره به ئے په ګس لاس باندے اووه کرته اوبه واچولے، بيا به ئے عورت اووينځلو، يو ځل ترے دا هير شو چه څو ځله ئے اوبه واچولے نو ما نه ئے تپوس اوکړو، ما عرض اوکړو، ما ته ياد نه دی، هغه اوفرمائيل : مور دے مړه شه ! ته د ياد ساتلو نه څه شئ منع کړے ؟ بيا به ئے د مانځه د اودس پشان اودس اوکړو، بيا به ئے په خپل ټول بدن باندے اوبه واچولے، بيا به ئے فرمائيل : رسول الله ﷺ به داسے ځان پاکولو۔ (أبوداود)۔

**تعارف : د شعبه** بن دينار الهاشمی المدنی :

د ابن عباس آزاد کړه غلام وو، او د هغه شاګرد وو، اودا هغه مشهور محدث شعبه نه دے ځکه هغه شعبه بن الحجاج دے ثقه دے۔

**تشریح** : سَبْعَ مِرَارٍ : په دے روایت کښے د لاس وینځل په غسل کښے اووه کرتے راغلی دی، لیکن دا حدیث ضعیف دے، د صحیح احادیثو - چه په هغې کښے درے ځله وینځل ذکر دی - معارضه نشی کولے ۔اودا جواب قوی دے، اوکه حدیث ثابت شی نو جواب دادے چه د :

٢ - ابن عباسؓ دا عمل په ابتداء د اسلام حمل دے، لکه مخکښے باب الغسل فصل ثالث آخر کښے د ابن عمرؓ حدیث کښے ناسخ تیر شوے دے، خو ابن عباسؓ باندے ناسخ پټ پاتے شوے دے۔

٣ - یا دا چه ابن عباسؓ ته نسخ معلومه وه لیکن د هغه دا رائے وه چه یو شے منسوخ شی نو استحباب بیا هم باقی وی۔

٤- دے حدیث نه استعانت په اوداسه کښ ثابت شو۔ ٥- د غسل په وقت کښ خبرے کول ترے ثابت شو ٦- عادتی خیرے جواز لری۔ ٧- مسائل شرعیه په حالت د اوداسه او غسل کښ بیانولو جواز ترے ثابت شو۔ ٨- په وخت د تعلیم ورکولو کښ شاګرد ته په خبره نه یادولو باندے زورنه ورکول ترے ثابت شو۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود (٢٤٦) بسند ضعيف، فيه شعبة بن دينار، قال المنذرى : شعبة هذا مدنى مولى ابن عباس. وهو اضعف موالى ابن عباس، لا يحتج بحديثه، وضعفه الجمهور. والحديث بظاهره منكر ايضا۔

---

٢٠ - وَعَنْ اَبِىْ رَافِعٍ رضي الله عنه قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلٰى نِسَائِهٖ يَغْتَسِلُ عِنْدَ هٰذِهٖ وَعِنْدَ هٰذِهٖ، قَالَ : فَقُلْتُ لَهٗ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَلَا تَجْعَلُهٗ غُسْلًا وَاحِدًا آخِرًا ؟ قَالَ : هٰذَا أَزْكٰى وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : ابو رافعؓ فرمائی : رسول الله ﷺ یو ورځ په خپلو ټولو بیبیانو باندے اوګرځیدلو (او جماع ئے ورسره اوکړه) چه د هرے یوے بی بی سره (دجماع کولو نه پس) به

ئې جدا جدا غسل کولو، ابو رافع وائی : ماته ورته اووئیل : یارسول الله ! تاسو په آخر کښې یو غسل ولې اونه کړو؟ نبی ﷺ اوفرمائیل : دا کار ښه پاکول کوی او ډیر مزیدار دے او بدن ښه صفا کوی۔

**تشریح** : په دے حدیث کښې د نبی ﷺ بل عمل ذکر دے په باب د غسل کښې او داهم د تنوع فی العبادات د قبیلے نه دے، یعنے کله په دے باندے عمل کول، چه ډیر جنابتونو دپاره یو غسل اوکړی، اوکله په دے باندے چه د هر جنابت دپاره جدا جدا غسل اوکړی، او دا په کښې ډیر بهتر دے، نبی ﷺ ئے پخپله فائده بیان کړه چه (هذا أزكىٰ وأطيب أطهر)۔

او دا تعارض نه دے بلکه په مختلف اوقاتو کښې داسے اعمال شوی دی، دپاره د آسانئ دامت۔ اکثرو علماؤ ته یو حدیث اورسی بیا ورته بل حدیث اورسی نو هغوئ ترے تعارض جوړ کړی، بلکه جمع پکار ده چه دواړه اعمال په جدا جدا وختونو باندے حمل دی۔

**أَزْكَى وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ** : دریے واړه الفاظ مترادفه دی، یوه معنیٰ لری، مګر لږ فرق دے، ازکی أی أکثر أجرا وثوابا۔ أجرئے ډیر دے۔ (أطيب) : ألذ وأحلىٰ وأجود عند النفس۔ په نفس باندے مزیدار لګی، تشاط ورسره پیدا کیږی ۔ (اطهر) : أی أنظف وأحسن۔ حسن او پاکی پیدا کوی په نفس کښے۔

٢ – علامه طیبی داسے فرق کوی چه د تطهیر استعمال د ظاهر سره تعلق لری، او د تزکیه او تطییب استعمال د باطن سره، یعنے تطهیر د بد اخلاقو د ازالے دپاره دے او تزکیه او تطییب د خائسته اخلاق حاصلولو دپاره دے، نو ګویاکه مطلب دا شو چه هرے جماع سره جدا جدا غسل کولو سره بد اخلاق – غصه وغیره – لرے کیږی، اوښه اخلاق – حلم، تقوی وغیره – ورسره حاصلیږی ۔ یعنے تخلیه او تحلیه ورسره حاصلیږی ۔ یاد ظاهر او باطن دواړو پاکی ورسره راځی۔

**درجة الحديث** : رواه أحمد وأبو داود : واسناده حسن، كذا قال الألباني فی صحيح السنن (١/١) رقم (٢١٥)۔

٢١ – وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو ﷺ قَالَ : نَهَى رَسُولُ اللهِ ﷺ أَنْ يَتَوَضَّأَ

الرَّجُلُ بِفَضْلِ طُهُوْرِ الْمَرْأَةِ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه وَالتِّرْمِذِيُّ، وَزَادَ : اَوْقَالَ : بِسُؤْرِهَا. وَقَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

**ترجمه** : حکم بن عمرو فرمائی : رسول الله ﷺ ددے نه منع کړیده چه سړے دے د زنانه په پاتے شوو اوبو باندے اودس اوکړی ۔ (أبوداود، ابن ماجه، ترمذی)۔ او ترمذی زیاتی نقل کړی دی چه یا نبی ﷺ د ښځے د اودس نه پاتے شوو اوبو نه منع اوفرمائیله ۔او ترمذی وئیلی دی : دا حدیث حسن صحیح دے۔

## تعارف : د الحکم بن عمرو رضی الله عنه :

دا د غفار قبیلے نه صحابی دے، ډیر احادیث ترے نقل دی، ابتداء کښے په بصره کښے اوسیدلو، د زیاد د طرفنه د خراسان والی – گورنر – هم پاتے شوے دے، او بیا په مرو کښے – چه د خراسان په مضافات کښے علاقه ده – اوسیدلو او هلته په (٤٥) یا (٥٠)، یا (٥١) کښے وفات شو۔ رضی الله تعالیٰ عنه ۔

**تشریح** : نَهٰی رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَنْ يَتَوَضَّأَ الخ :

پدے مقام کښے یو څو مسئلے دی ۔

١ – **اوله مسئله** دا ده : چه سړی دپاره د سړی نه پاتے شوو اوبو باندے اودس او غسل کول هم جائز دی دلیل حدیث د ابن خزیمه (٥٦/١) کښے د جابر بن عبد الله واقعه ذکر ده فرمائی چه زه بیمار شوم نو رسول الله ﷺ او ابوبکر زما پوښتنے ته راغلل او په ما باندے بے هو شی راغلے وه (فتوضأ فصبه علی فافقت ) نو نبی ﷺ اودس اوکړو او د اوداسه اوبه ئے په ماباندے را واچولے نو زه بیدار شوم۔ واخرجه الشیخان ایضا. او پدے حدیث باندے امام ابن خزیمه باب تړلے دے باب اباحة الوضوء من فضل وضوء المتوضئ ۔

٢– حدیث د جابر او حدیث د انس دے چه مونږ په سفر اووتلو د مانځه وقت راغلو اوبه نه وے نو نبی علیه السلام لگے اوبه طلب کړے چه په یوه پیاله کښے وے نو هغی کښے ئے گوتے مبارکے کیخودلے او خلقو ته ئے اووئیل اودسونه شروع کړے۔ دارنگه (ان الماء طهور لاینجسه شئ ) او (ان الماء لا یجنب) والا احادیثو د عموم نه استدلال ددے مسئلے دپاره کیدے شی۔

۲- **دويمه مسئله** : په دے مسئله كښے اتفاق دے چه زنانه دپاره د سړي په پاتے شوو اوبو باندے اودس او غسل كول جائز دي لكه دا اتفاق امام نووي نقل كړيدے په شرح مسلم (١٤٨/١) كښے ۔ اګرچه حافظ د هغه تعقيب كړيدے چه طحاوي پدے كښے اختلاف ثابت كړيدے۔

ددے قول **دليل** : يو دا چه احاديث د نهي منسوخ دي دليل د نسخ حديث د ابن عباس دے چه بعض بے بيانو د نبي عليه السلام په يو خانك كښے غسل اوكړو نو نبي ﷺ د هغينه د اودس كولو اراده اوكړه نو دے ورته اوويل : يارسول الله ! زه جنبه ووم ، نبي ﷺ ددے په جواب كښے اوفرمائيل : (ان الماء لا يجنب) دا دليل دے چه مخكښے نبي عليه السلام نهي كړے وه مطلقا او بيائے پدے الفاظو سره منسوخ كړه۔ دارنګه كله چه د سړو دپاره د زنانه باقي مانده اوبه استعمالول عند الجمهور جائز دي (كما سيأتي) نو د زنانو دپاره د سړو اوبه استعمالول خو به په طريق اولى جائز وي۔ لكه دے خبرے ته سبل السلام كښے هم اشاره شويده چه (ويقاس عليه العكس لمساواته له) ۔

۳- **دريمه مسئله** : آيا سړي دپاره د زنانه په پاتے شوي اوبو باندے اودس او غسل كول جائز دي او كه نه ؟ نو پدے كښے اختلاف دے ۔

۱- امام احمدؒ او اسحقؒ فرمائي : چه كله زنانه يوائے اودس اوكړي او اوبه ترے پاتے شي نو په هغے باندے سړي دپاره اودس كول جائز نه دي، يعني مكروه دي۔

او دا قول د عمر فاروق رضي الله عنه، عبد الله بن سرجسؓ، او حكم بن عمروؓ او جويريهؓ او ام سلمه - رضي الله عنهم- او د سعيد بن المسيبؒ او حسن بصريؒ هم دے ۔

دوئ او امام احمد استدلال كوي په دے حديث الباب ( حديث حكم بن عمرو ) باندے۔ چه پدے روايت كښے سړے منع شويدے د پاتے شوو اوبو د زنانه نه۔

۲- جمهور علماء ( مالك ابو حنيفه، شافعي او په يو قول كښے امام احمدؒ ) فرمائي چه دا ټول مخكني صورتونه بلا كراهت جائز دي ۔ او د جمهورو قول ته علامه صنعاني هم ترجيح وركړيده فرمائي : والاظهر جواز الامرين. سبل السلام (٢٩/١) ۔

استدلال كوي په روايت د ابن عباس بروايه الترمذي ( ١٩/١) (ان الماء لا يجنب) كما

مر۔

دا دلیل دے چه د نهی حکم مخکښے وو او روستو پدے الفاظو منسوخ شو چه اوبه نه پلیتیږی۔ او دغه شان نبی ﷺ به د خپلو بی بیانو سره شریك لامبل لکه حدیث د میمونه کښے دی چه دے او نبی علیه السلام به د یو لوښی نه شریك لامبل او د یو بل پاتے شوے او مستعملے اوبه به ئے استعمالولے او دغه شان حدیث د عائشه هم دے کما فی مسلم (١٤٨/١)۔ او پدے کښے د خلوت دپاره څه تاثیر نشته۔

دا حدیث صریح دے په جواز کښے اودا ناسخ دے د حدیث الباب دپاره۔ او میمونه رضی الله عنها یوائے دا اوبه استعمال کړے وے، روستو بیا نبی ﷺ استعمال کړے۔ نو دا عمل او قول د نبی علیه السلام ناسخ دے د دغه حدیث د نهی۔

اودامام احمدؒ د استدلال نه **جواب** دا ورکوی چه دغه حدیث د حکم بن عمرو ضعیف دے لکه دا جواب امام نوویؒ کړیدے شرح مسلم (١٤٨/١) خو دا جواب صحیح ندے ځکه چه حدیث د حکم هم صحیح دے هیڅ ضعف پکښے نشته حافظ فتح الباری کښے فرمائی : (ولقد اغرب النووی بذلك وله شاهد عند ابی داود والنسائی انتهی (وهو حدیث حمیده الحمیری الذی یأتی متصلا)۔

٢- دویم **جواب** دا دے چه دغه حدیث کښے کومه نهی راغلے ده نو د انهی تنزیهی ده، یعنے د انسان د طبیعت په تقاضا شوے ده، لکه دا خبره حافظ عسقلانیؒ کړے ده۔ دا وجه ده علامه انورشاهؒ لیکی : دا نهی په حقیقت کښے د باب د معاشرت سره تعلق لری، چونکه زنانه عموما د سړی په نسبت د نظافت او طهارت اهتمام کم کوی په دے وجه ددے په پاتے شوو اوبو استعمالولو سره سړی ته طبعا تکلیف رسی۔ او دا کار د زوجینو په مابین کښے د سوءِ معاشرت سبب جوړیږی، په دے وجه ددے نه منع اوشوه، ورنه دا نهی د تحریم دپاره نه ده۔

٣- علامه خطابیؒ د دواړو حدیثونو جمع کولو دپاره یوه بله توجیه کړے ده، هغه دا چه کومو حدیثونو کښے چه نهی راغلے ده، نو ددے نه مراد هغه اوبه دی چه د اندامونو نه په کښے څاڅکی پریوتی وی، ځکه بیا اوبه مستعملے شوے، او کومو حدیثونو کښے

چه جواز دے، د هغے نه هغه اوبه مراد دی چه مستعملے نه وی۔ لیکن جمهور د علامه خطابیؒ دا جمع او تطبیق بنه نه ګنړی ځکه دا ډیره بعیده ده۔ او بله دا چه مستعملے اوبه هم پاکے دی کما هو القول الراجح۔

٢ – دارنګه نبی ﷺ (الماء لا یجنب) کښے تعمیم کړے دے دا په کښ نشته چه مستعملے وی او که نه۔ بنه جواب هغه دے چه حافظ ابن حجرؒ ذکر کړے دے چه نهی د تنزیه ده، که د چا طبیعت ئے بد ګنړی نو اودس دے په دغه اوبو نه کوی، اوکه د چا طبیعت ئے بد نه ګنړی، نو اودس دے پرے کوی۔

بِسُؤْرِهَا : پدے حدیث کښے د سؤر لفظ نه معنی لغوی یعنی جوټه نه ده مراد بلکه د اودس یا غسل نه پاتے شوے اوبه مراد دی، دلته صرف د راوی شك واقع شویدے چه نبی علیه السلام د سؤر لفظ وئیلے دے یا د فضل لفظ ئے وئیلے دے او مطلب د دواړو یو دے لکه تحقیقی خبره هم دا ده چه ترمذی دا حدیث د محمد بن بشار او محمود بن غیلان نه روایت کوی نو د محمود شك واقع شو په (سؤر او فضل) لفظ کښے او محمد بن بشار شك ندے کړے نو لفظ د سؤر غلط دے د اوهامو د محمود بن غیلان نه دے انظر الترمذی (١٩/١)۔

**درجه الحدیث** : وسنده صحیح اخرجه ابوداود رقم (٨٢) والترمذی (٦٣-٦٤) والنسائی (١٧٩/١) وابن ماجة (٣٧٣) وصححه ابن حبان ایضا قال الالبانی : قلت وسنده صحیح (تعلیق المشکاة ١٤٦/١) وتبعه رمضان (٢١٢/١)۔

---

٢٢ -- وَعَنْ حُمَيْدِ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ : لَقِيْتُ رَجُلًا صَحِبَ النَّبِيَّ ﷺ أَرْبَعَ سِنِيْنَ كَمَا صَحِبَهُ أَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ : نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ بِفَضْلِ الرَّجُلِ اَوْ يَغْتَسِلَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ الْمَرْأَةِ. زَادَ مُسَدَّدٌ : وَلْيَغْتَرِفَا جَمِيْعًا. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَزَادَ اَحْمَدُ فِيْ اَوَّلِهٖ : نَهٰى أَنْ يَمْتَشِطَ أَحَدُنَا كُلَّ يَوْمٍ أَوْ يَبُوْلَ فِيْ مُغْتَسَلِهٖ. وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَه عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسَ.

**ترجمه** : حمید حمیری‌ؒ فرمائي : زه یو سړي سره ملاؤ شوم چه د ابو هریرهؓ پشان څلور کاله د نبي ﷺ سره ملګرے پاتے شوے وو، هغه اووئیل : نبي ﷺ دے نه منع فرمائیلے ده چه ښځه د سړي د غسل نه پاتے شوو اوبو سره اولامبي، یا سړے د ښځے د غسل نه پاتے شوو اوبو سره اولامبي۔ مسدد راوي دا الفاظ زیاتي نقل کړي دي : دواړه دے ترے چونګونه راخلي۔ (أبوداود، نسائي) او احمدؒ ددے روایت په شروع کښے دا الفاظ زیاتي نقل کړي دي : چه نبي ﷺ دے نه هم منع فرمائیلے ده چه په مونږ کښے یو سړے هره ورځ ګومنځ کوي او د لامبلو په ځائے کښے متیازے کوي۔ او ابن ماجه دا روایت د عبد الله بن سرجسؓ نه نقل کړے دے۔

## تعارف : د حمید الحمیري :

حمیر قبیلے ته منسوب دے، د عبد الرحمن ځوئے دے، د ابن عباسؓ او ابو هریرهؓ شاګرد دے، جلیل القدر تابعي، ثقه شخص دے، د خپل عمل او فضل په بناء به د بصرے امام یادیدلو ۔

**تشریح** : أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ بِفَضْلِ الرَّجُلِ الخ :

جمهورو دے حدیث ته منسوخ وئیلے دے، امام احمدؒ وائي : یو طرف جائز چه زنانه د سړي نه پاتے اوبه استعمال کړي، خو ددے عکس صحیح نه دے۔

بیا که دا حدیث منسوخ نشي نو وجه د نهي داده چه سړي دپاره د زنانه پاتے اوبه استعمالول ځکه نه دي پکار چه اوبو کښے مستعملے اوبه پریوتے وي، او دا اګرکه طاهرے دي او نجس نه دي لیکن شرعا د غسل اوبو کښے مطلوب احتراز دے د مستعملے اوبو نه، او غالبا زنانه د پاکئ متعلق احتیاط کم کوي، نو سړے منع شو ددے نه چه د زنانه استعمال کړے اوبه استعمال کړي، او زنانه منع شوه ددے نه چه د سړي استعمال کړے اوبه استعمال کړي، ځکه چه د زنانه د طبیعت تقاضا داده چه هغوئ سړو ته دکم پاکي کونکو په نظر ګوري، نو اول کښے لحاظ د نفس الأمر اوشو، او په دویم کښے د زنانو د ګمان، دے دپاره چه زنانه د طهارت باره کښے وسوسے پیدا نشي، او په شریعت کښے دا خبره مطلوب ده چه د تطهر متعلق وسوسے نه انسان محفوظ شي۔ نو ښځه ئے ځکه منع کړه د اودس

کولو نه په باقی مانده اوبو د سړی باندے ، قطعاً للوسوسة۔
نو کـه د یوے زنانه وسوسے نه پیدا کیږی نو هغے دپاره د سړی په پاتے شوو اوبو باندے غسل کول بالکل صحیح او جائز دی۔

**فائده** : د ښځے او سړی دواړو په یوځائے باندے غسل او اودس کول اتفاقی دی د علماؤ ترمینځ مګر صرف ابن المنذر د ابو هریره نه نقل کړیدی چه هغه به ددے کار نه منع کوله او ابن عبد البرّ د بعض کسانو نه ددے حکایت کړیدے کذا قاله الشوکانی۔ د اتفاقی صورت دلائل ډیر زیات دی چه عائشے او نبی علیه السلام به په شریکه غسل کولو لکه چه دا حدیث مخکښے تیر شویدے۔ او د ابوداود په روایت د ام صبیه جهنیه کښے دی : ( قالت اختلفت یدی وید رسول الله ﷺ فی الوضوء من اناء واحد) ۔ یعنی زما او د نبی علیه السلام لاسونه به ګډوډ کیدل په وخت د اودس کولو کښے د یو لوښی نه۔ او په روایت د ابن عمر کښے دی : ( کان الرجال والنساء یتوضؤن فی زمان رسول الله ﷺ من الاناء الواحد) ۔ یعنی په زمان د رسول الله ﷺ کښے به سړو او ښځو د یو لوښی نه اودسونه کول۔ حافظ په فتح الباری کښے وائی ددے ظاهر دا دے چه دوئ به په یو حالت کښے د لوښی نه اوبه راخستلے۔ انظر النیل (٣٤/١)۔

**درجة الحدیث** : رواه ابوداود (٨١) والنسائی (١٣٠/١) قال الحافظ فی بلوغ المرام اسناده صحیح وصحح الشیخ الالبانی فی صحیح ابی داود وتعلیق المشكاة (١٤٧/١). فالحدیث اسناده صحیح. وله شواهد قویة ایضا ذکرها الشوکانی فی النیل (٣٢/١) ۔

* * * * * * * * *

# باب احكام المياه

باب دے په بیان د احکامو د اوبو کښې چه کومے اوبه پاکے دی اوکومے نجسے دی ؟۔

**مناسبة الباب** : واضح دے چه جنب سړے به په کومو اوبو سره غسل کوی، نو دهغه اوبو تعیین کوی۔

۲ – دارنګه مخکښې اودس بیان شو، دلته وائی اودس به په کومو اوبو سره کوی۔

مِيَاهٌ: جمع د مَاءٌ ده، همزه په هاء سره بدله شوه، او جمع ئے ځکه ذکر کړه چه د اوبو ډیر اقسام او انواع دی، او د هریو جدا جدا احکام دی۔

لکه (۱) ماء السماء (۲) ماء البئر (۳) ماء البحر (٤) ماء العین (٥) ماء السیول (٦) الماء المستعمل (۷) الماء القلیل (۸) الماء الکثیر (۹) الماء المشمس – نمر ګرمے کړے اوبه – (۱۰) ماء الحوض فی الصحراء (۱۱) الماء المستعمل بسور السباع و البهائم۔

په دے ټولو اقسامو کښې **مرکزی اقسام څلور** دی۔

(۱) – **یو قسم ماء مطلق** دی، ددے حکم دادے چه دا پخپله هم طاهرے دی او بل شے هم پاکوی، مطهرے دی، دا بیا ډیرو اوبو ته شاملیږی :

۱ – د باران، واورے اوګلئ اوبه۔ ۲ – ماء البحر، لکه (هو الطهور ماؤه و الحل میتته) رواه الخمسة. ۳ – ماء زمزم۔ ٤ – هغه اوبه چه رنګ ئے بدل شوے وی په یو ځائے کښې د ډیر پاتے کیدو سره، یا د وُنو په پاڼو سره، نه دګندګئ په وجه سره، دا ټولے اوبه پاکے دی، ماء مطلق کښې داخل دی، او ﴿ فلم تجدوا ماء ﴾ ورته شامل دے، ددے اوبو په موجودګئ کښې تیمم وهل صحیح نه دی، بلکه ددے استعمال واجب دے۔

(۲) – **دویم قسم** : الماء الذی خالطه شئ طاهر : هغه اوبه چه پاك شے ورسره یو ځائے شوے وی، لکه د صابون او زعفرانو او اوړو او خاورو اوبه شوے، ددے حکم دادے چه په دے اوبو سره هم پاکوالے راځی، تر څو پورے چه د مطلق اوبو نوم ورته شامل وی۔

**دلیل** : میمونہؓ او رسول الله ﷺ د یو خانك او قصعے نه غسل اوکړو، چه په هغے

کښې اثر العجين ( د اوړو اثر) وو. رواه النسائي وسيأتي قبل الفصل الثالث.

٢ - کله چه د رسول الله ﷺ لور زينب ؓ وفات شوه، نو رسول الله ﷺ أم عطية ؓ ته حکم اوکړو چه دا په هغه اوبو اولمبوئ چه بيرے په کښې اچولے شوے وي، نو په دے حديثونو کښې هغه اوبه ذکر دي چه په هغې کښې اختلاط د پاك شي راغلے وي، خو د مطلق اوبونوم ورته شامل دے نو دا هم پاکونکي دي.

(٣) - **دريم قسم** : الماء الذى لا قته النجاسة : هغه اوبه چه نجاست ورسره ملاؤ شوے وي، ددے دپاره دوه حالتونه دي : ١ - **يو** هغه چه په دے نجاست سره د اوبو خوند، رنګ، بوئي بدل شي، نو په دے اوبو سره پاکوالے مطلقا ناجائز دے. او دا اتفاقي مسئله ده. کما قال ابن المنذر وابن الملقن. الاجماع لابن المنذر ص ( ٣٣- رقم ١٠)، مختصر البدر المنير ص (١٨) لابن الملقن. المجموع شرح المهذب (١/ ١١٠) للنووىؒ، المغني لابن قدامة (١/ ٣) الروضة الندية (١/ ٨) للصديق حسن خان.

٢ - **دويم حالت** : چه په دے نجاست سره هيڅ يو صفت د درے صفاتو نه نه وي بدل شوے، بلکه اوبه په خپل اطلاق باندے باقي پاتے وي، نو دا قسم اوبه طاهر او مطهرے دي، لګيے وي که ډيرے.

**دليل** : حديث د ابو سعيد خدرىؓ أبوداود (٦٦) ترمذى (١/ ٥٩، رقم ٦٦) نسائي ١/ ٨٤ رقم ٣٢٧، بلوغ المرام ص (٣) کښې دبئر بضاعه په باره کښې دے : (الماء طهور لا ينجسه شئ).

(٤) - **څلورم قسم** : ماء مستعمل دي، يعنے هغه اوبه چه د اودس کونکي يا غسل کونکي د بدن نه جدا شي، ددے حکم دادے چه دا د ماءِ مطلق پشان دي، طاهر او مطهر دي. کذا في فقه السنة. دا خو اقسام د اوبو شو.

اوس دا مسئله چه کومے اوبه پاکے دي أوکومے نا پاکے دي ؟ دا مسئله په اول حديث ددے باب کښې بيانيږي .

## په طهوريت اونجاست د اوبو کښے اختلاف دے :

په دې خبره اتفاق دې چه اوبه تولو نجاساتو لره پاکونکی دی۔
خو اختلاف په دې خبره کښې دې چه اوبه په کوم وخت کښې پلیتیږی؟
نو په دې باره کښې یو څو اقوال دی:

**۱ - اول قول** : د امام مالک" او اهل ظواهر" دې، دوئ وائی: تولې اوبه طاهرې اومطهرې دی، مګر هغه اوبه چه خوند، رنګ، بوئی کښې ئې تغیر راشی، په سبب د وقوع النجاسه سره، لږې وی که ډیرې (لا بسبب الطاهر کالتراب والأوراق ومرور الزمن الکثیر علیه)۔ اودا قول علامه عبد الحی اللکنوی په التعلیق الممجد ص (٦٢) کښې راجح ګرځولې دې نو قلیل او کثیر یو شان دی۔ وهو الحق الذی لا محید عنه۔

**۲ - دویم قول** : د امام ابو حنیفة" او شافعی" دې چه لږې اوبه پلیتیږی په نجاست واقع کیدو سره" او ډیرې اوبه نه پلیتیږی په وقوع د نجاست سره، مګر کله ئې چه خوند، رنګ، بوئی بدل شی نو بیا به ډیرې اوبه هم پلیتې حسابیږی۔ نو ګویاکه په ډیرو اوبو کښې د درې وارو ائمه ؤ اتفاق شو چه نه پلیتیږی۔ کله چه یو د اوصاف ئې متغیر نشی۔

بیا د ابو حنیفة" او شافعی" په خپل مینځ کښې په تعیین د لږو او ډیرو اوبو کښې اختلاف دې (۱) امام شافعی" فرمائی: زه لږې او ډیرې اوبه په قلتین (دوه چاټو) سره معلوموم، که د قلتین نه کم وی نو دا قلیلې دی، اوکه قلتین یا قلتین نه بره وی نو ډیرې دی بیا به خوند، رنګ، بوئی ته کتلې شی که دا ئې د نجاست په وجه بدل شوی وی نو نجس دی او که نه وی بدل شوی نو پاکې دی۔ اوکه د قلتین نه کمې وی نو پلیتې دی۔

(۲) او د ابو حنیفة" او دهغه د اصحابو په قلیل او کثیر کښې دولس روایات نقل دی۔ لکه صاحب د تحفة الأحوذی (۱/٦٧) په حواله د التعلیق الممجد ذکر کړې دی۔

مشهور په هغې کښې څلور اقوال دی (۱) یو قول دا چه تعیین د قلیل او کثیر رائې د مبتلٰی به ته سپارلې شوی دی، (اودا د امام صاحبٓ عادت وو، چه اکثر داسې مسائل به ئې رائې د مبتلٰی به ته حواله کول)۔ نوکه د هغه په اجتهاد ډیرې معلومیدلې نو ډیرې به حسابیږی او پلیتې به نه وی۔ الا اذا تغیر أحد اوصافه۔ اوکه د هغه په اجتهاد کمې وی نو کمې به حسابیږی او پلیتې به وی۔ اګرکه اوصاف ثلاثه ئې نه وی متغیره شوی۔ اودا قول

ئې په در مختار (۱۲۸/۱) کښې معتبر ګرځولې دې، او دا ظاهر الروایت دې، او بحر الرائق کښې وائي : دا معمول به قول دې، او د اکثرو مشائخو نه نقل دې۔

لیکن په دې باندې متأخرینو احنافو رد کړې دې چه عوام په ډیرو اولګو څه پوهیږي د هغوئ ګمانونه متفرق دي، بعضو ته به ډیرې اوبه لګې ښکاري، او بعضو ته به لګې اوبه ډیرې ښکاري، نو هغوئ په دې نه پوهیږي ترڅو پورې چه تا ورته خودلي نه وي چه دا لګې دي او دا ډیرې دي۔ نو ددې دپاره یوه منضبطه قاعده بیانول پکار دي چه هغې ته رجوع کوي۔

(۲) نو دویم قول دا کوي : چه ډیرې اوبه هغه لوئي حوض ته وائي چه د یو طرف په خوزلو سره ئې بل طرف نه خوزیږي۔ دا هم یو روایت د امام ابو حنیفة نه دې چه صاحب قدوریؒ راوړیدې۔ لیکن د اخوزول هم نه دي معلوم چه کوم قسم خوزول او په څه سره خوزول دي؟ نو په دې کښې درې قوله نقل دي : ۱ – یو دا چه په اودس کولو سره۔ ۲ – دویم په غسل کولو سره۔ ۳ – دریم په لاس وهلو سره۔ یعنې چه یو طرف کښې لاس وهي یا غسل یا اودس کوي، نو بل طرف نه خوزیږي، نو دا ډیرې اوبه دي، او که خوزیدلې نو دا کمې اوبه دي۔

(۳) دریم مشهور قول عشر فی عشر دې : یعنې لس په لسو کښې څلورو طرفونو ته، یعنې څلویښت ګزه څلورو طرفونو ته وي، نو دا مقدار زیاتې اوبه دي، او که ددې نه کمې وي نو کمې دي۔ بیا دا په کومو ګزونو معلومولې شي؟ نو وائي : بذراع الکرباس۔ وهو ست قبضات فوق کل قبضة أصبع قائم۔ (البحر والخانیة، وفي المحیط : انه یعتبر في کل زمان ومکان ذراعهم۔ رد المحتار : ۱۳۱/۱)۔ ذراع الکرباس اندازه دا ده چه شپږ څله د لاس څلور واړه ګوتې موټې کړي او غټه ګوته ترې جدا اودروي۔ کرباس د وړئ کپړې ته وائي۔ ۲ – یا ذراع المساحة سره معلومولې شي چه وهو سبع قبضات فوق کل قبضة اصبع قائمة۔ ۳ – یا د هرمکان او زمان خپل ذراع مراد دې۔

**اعجوبه** : دا د احنافو یوه عجیبه مسئله ده چه که اوبه نهه دیرش (۳۹) ګزه وي نو په یو څاڅکي متیازو سره ټولې پلیتیږي، خو چه څلویښت ګزو ته اورسیږي نو بیا په کښې

دَړئ متیازے واچوه هیڅ نه پلیتیږی !! دا تناقض او د صریح عقل خلاف خبره ده، اکثر قیاسونه چه د نص نه ماخوذ نه وی داسے وی !!۔

(٤) – بل قول دادے چه تعیین د قلیل او کثیر دادے چه ثمانیة فی ثمانیةٍ ۔ یعنے آته گزه اوگده او آته گزه پلن حوض وی په څلور طرفونو کښے نو دا کثیرے اوبه دی، او ددے نه چه کمے وی نو هغه قلیل دی۔

اوس دا اختلاف ولے راغلے دے ؟ نو ددے وجه داده چه ابو سلیمان الجوزجانی د امام محمدؒ نه د ډیرو اوبو باره کښے تپوس اوکړو چه ډیرے اوبه څومره دی ؟ هغه ورته اوویل : کمسجدی هذا۔ یعنے زما مسجد کچ کړئ۔ روستو بیا ابو سلیمان د امسجد کچ کړو نو دننه طرفنه آته په آتو کښے وو۔ او د بهر طرفنه عَشْرٌ فی عَشْرٍ وو۔ نو متأخرینو د احتیاط په بناء باندے لس په لس قول غوره کړو۔

دا خو د طول مقدار دے او عمق کښے هم څو اقوال کوی ١ – بعض وائی چه څلور کولاوے گوتو په اندازه به جور وی ٢ – بعض وائی یو لویشت۔ ٣ – بعض وائی یو گز . ٤ – بعض وائی دوه گزه۔ ٥ – هدایه ملا وائی : یکون بحال لاینحسر بالاغتراف : یعنی دومره اندازه جور وی چه په لاس سره اوبه راخستو باندے ئے زمکه نه ښکاره کیږی۔ الدر المختار (١/١٢٨–١٣١)۔

لیکن د احنافو ددے ټولو اقوالو دپاره هیڅ **دلیل نشته** ، نه د کتاب الله نه، اونه د سنت رسول الله ﷺ نه ، او نه د اجماع او نه د قیاس صحیح نه ۔ سیوا د أدلة عامه نه لکه صاحب د شرح وقایه د (عَشْرٌ فِیْ عَشْرٍ) دپاره دا دلیل راوړے چه نبی ﷺ منع کړے ده د کنستو د کوهی نه د بل کوهی په خوا کښے کم د څلویښت گزونه، دے دپاره چه دا کوهے د هغه بل کوهی نه اوبه رانه کاږی، او اوبه ئے کمے نشی، نو شریعت دا حد گرځولے دے په دے مقام کښے۔ نو وائی مونږ دا حد گرځوو د قلیل او کثیر دپاره۔

لیکن په دے باندے ابن عابدین په رد المحتار (١/١٢٨) کښے رد کړے دے۔ فرمائی : ( ورده فی البحر بان الصحیح فی الحریم انه اربعون من کل جانب) یعنی حدیث کښے چه څلویښت گزه ذکر دی نو د هغے صحیح مطلب دا دے چه د هر طرف نه به څلویښت

څلویښت ګزه وی او زمونږ مدعی خو دا ده چه مجموعه به څلویښت ګزه وی۔ نو حدیث زمونږ د مدعی خلاف دے۔

دارنګه فرمائی : ( والتقدیر بعشر فی عشر لا یرجع الی اصل یعتمد علیه) یعنی پدے باره کښے مونږ سره هیڅ داسے دلیل نشته چه اعتماد پرے اوکړو۔ بیا وائی : دا خبره رایه د مبتلٰی به ته سپارلے شویده ( بناء علی عدم صحة ثبوت تقدیره شرعاً. والیه رجع محمد) آهـ څکه چه دا اندازه شرعا نده ثابته۔ او دے ته امام محمد هم رجوع کړیده (١٢٨/١) ۔

(٢) – او امام بغویؒ په احنافو باندے داسے رد کوی : وقدر بعض اصحاب الرأی الماء الکثیر الذی لاینجس بان یکون عشرة اذرع فی عشرة اذرع وهذا تحدید لایرجع الی اصل شرعی یعتمد علیه، شرح السنة (٥٩/٢) ۔یعنی د بعض اصحاب الرأی دا تحدید د لس په لسو کښ هیڅ شرعی اصل نه لری چه په هغے اعتماد اوکړے شی۔

(٣) دغه شان امام نوویؒ په المجموع (١٧٤/١) کښ هم وئیلی دی۔ (٤) علامه شوکانیؒ فرمائی : وللناس فی تقدیر القلیل والکثیر اقوال لیس علیها اثارة من علم فلا نشتغل بذکرها. نیل الاوطار (٤٠/١)۔

(٤) – علامه ابن قدامه فرمائی : ولیس معهم نص ولا اجماع المغنی (٤٠/١)۔

د احنافو سره په دے تحدید نه نص شته او نه اجماع۔

(٥) محدث الهند شاه ولی الله صاحب وائی فرمائی : وبالجملة فلیس فی هذا الباب شئ یعتمد به ویجب العمل به. حجة الله (١٨٥/١) ۔یعنی خلاصه دا چه پدے باب کښے د احنافو سره هیڅ دلیل نشته چه اعتماد پرے اوکړے شی۔

او د اول قول دپاره چه هغه ظاهر الروایت دے چا استدلال ذکر کړے دے په حدیث د استیقاظ باندے، کما مرّ فی اول باب سنن الوضوء، او حدیث د ولوغ الکلب او حدیث النهی عن البول فی الماء الدائم۔ چه په ولاړو اوبو کښے د بول نه څکه منع راغله چه اوبه پلیتیږی په وقوع د نجاست سره۔

لیکن ددے حدیث تحقیق دادے چه په دے حدیث کښے رسول الله ﷺ دانه دی

فرمائيلي چه تاسو بول په هغه ولاړو اوبو کښې مه کوئ چه عشرا في عشر ته نه وي رسيدلي. اوکه چرې عشرا في عشر ته رسيدلي وي، نو بيا بول کولو سره اوبه نه پليتيږي، دا خبره حديث کښې نشته. بلکه حديث کښې د هر قسم اوبو کښې د بول کولو نه منع راغلې ده، لګې وي اوکه ډيرې، عشرا في عشر وي اوکه کمې وي، بلکه د منع حکمت دادې چه په دې بول کولو سره جمع بين الافراط والتفريط راځي، ځکه چه اوبو کښې متيازې کول او بيا بيرته په هغې غسل کول افراط او تفريط دې، او په دې حديث کښې دا خبره نشته چه دا اوبه پرې پليتې شوې، بلکه يو حکمت ئې دغه شو، دويم حکمت دادې چه طبعا د انسان بول بد ګنړلې شي، او بدبويه وي. نو کيدې شي چه دا اوبه به بل مسلمان استعمال کړي، نو اګرچه نجس به نه وي ليکن د هغه طبيعت باندې دا ډير بوج جوړيږي، چه هغه داسې اوبه استعمال کړي چه بول په کښې شوې وي اګرکه ډير لوئې حوض ولې نه وي . حاصل دا چه : دا عام حديث دې اوپه مدعىٰ باندې صريح نه دې، ځکه عشرا في عشر مسئله په دې کښې نشته، بلکه د مدعىٰ سراسر خلاف دې. ځکه د لس په لسو نه زياتو اوبو ته هم دا منع شامل ده نو هغې سره به څه کوې ! فتدبر فيه !.

## استدلالات الأئمة :

دويم مذهب د امام شافعيؒ دې چه هغه په قليل او کثير کښې په قلتين سره فرق کوي. د اپه حديث د ابن عمرؓ کښې را روان دې. اول حديث د فصل ثالث دې. چه په هغې کښې دا الفاظ دي (اذا كان الماء قلتين لم يحمل الخبث)، په بل روايت کښې د ابوداود کښې دي (لاينجس).

طريقه د استدلال داسې ده : چه په دې حديث کښې د قليل او کثير اوبو ترمينځه تحديد شوې دې چه کله اوبه دوه قلتينو (چاټو) ته اورسي نو د پليتئ واقع کيدو په وجه نه پليتيږي . دې نه معلومه شوه چه که د قلتينو نه کمې وي نو بيا د پليتئ واقع کيدو په وجه پليتيږي .

## اعتراضات الحنفية او د هغې جائزه :

احناف پدې حديث باندې څو اعتراضونه کوي :

(١) - **اول** : داچه دا حديث سنداً، متناً او معنیً مضطرب دے۔ سندا خو ځکه مضطرب دے چه ددے حديث درے راويان دی :

١ - يو روايت د وليد بن كثير دے، دده په استاذانو كښ اختلاف دے :

١ - كله دا محمد بن جعفر بن الزبير الأسدی عن عبد الله بن عبد الله بن عمر نه نقل كوی۔ ٢ - اوكله د محمد بن عباد بن جعفر المخزومی عن عبد الله بن عمر نه روايت كوی۔ ٣ - اوكله د ابن عمرؓ ځوئے عبد الله يا ديږی، كله عبيد الله۔ ٤ - اوكله زهری عن سالم عن ابن عمر نقل كيږی۔ ٥ - او كله موقوف علی ابن عمر نقل كيږی، كما فی أبی داود۔ اوكله مرفوع وی، كما فی الترمذی۔

او متناً اضطراب دادے چه په بعض روايتونو كښے (اذا كان الماء قلتين لم يحمل الخبث) راغلی، او په بعضو كښے (قلتين او ثلاثا) وارد دے، كما فی الدارقطنی وابن عدی۔ دارنګه په بعضو كښے (أربعين قلة) الفاظ راغلی دی۔ كما فی الدارقطنی۔ او په بعضو كښے (أربعين دلواً) راغلی دے۔

او د اضطراب فی المعنیٰ تشريح داده چه د (قلة) لفظ ډيرے معنے دی، لكه صاحب د قاموس اللغات نقل كړی دی : ١ - د غر سر۔ ٢ - منګے۔ او دے كښے هم تفاوت دے، بعضے واړه او بعضے غټ وی۔ ٣ - د انسان قد ته هم وائی۔ نو د (قلة) تعيين په عربیٔ كښے نشته۔ نو اے شوافعو ! تاسو كومه معنیٰ مراد كوئ ؟ نو په دے حديث عمل نشی كيدے۔

٢ - او صاحب هدايه پرے داسے اعتراض كړے دے چه د (لم يحمل الخبث) معنیٰ داده چه (هو يضعف عن احتمال النجاسة) يعنے كله چه اوبه دوه چاټو ته اورسی او پليتی په كښ واقع شی نو هغه اوبه كمزورے دی، پليتی نشی پورته كولے، نو نجسے دی۔

ليكن دده دا اعتراض بے ځايه دے، او دا تاويل ئے **غلط** دے، وجه داده چه روايت د أبوداود او ابن حبان كښے داسے لفظ راغلے دے (لاينجس) يعنے نه پليتيږی، او دارقطنی (٢٢/١) كښے څوارلس (١٤) ځائے د (لم ينجسه او لاينجس) الفاظ موجود دی۔ خو د صاحب **هدايه** ډير تعلق د احاديثو سره نه وو، ځكه ئے داسے غلط تاويل كړے دے چه د بل روايت

سره صریح مخالف دے۔ ٢- دویمه وجه داده چه حافظ عسقلانیؒ فرمائی : که چرے دا معنیٰ شی نو بیا د قلتین قید هیڅ معنیٰ نه جوړیږی ځکه چه که ددے نه کمے اوبه وی نو هغه په طریقه أولیٰ سره پلیتی نشی پورته کولے۔ نو دا قید د قلتین بیا ولے لګوی ؟ فتدبر۔ اوس احنافو ته **جوابونه** دادی :

احنافو چه په حدیث د (قلتین) باندے کوم اعتراضونه کړی دی، هغے باره کښے شیخ رشید احمد ګنګوهی په الکوکب الدری (٤٣) کښے فرمائی :

وأنت تعلم أن كل ذلك تعسف۔

یعنے : زمونږ اعتراضونه ضعیف دی، او په تکلف بناء دی۔ او بیائے د هغے جوابونه ورکړی دی۔ په حدیث کښے هیڅ قسم اضطراب نشته ځکه اضطراب هله حدیث ضعیف کوی چه د هغے جمع نشی کیدے، یا ټول طرق صحیح وی، او دلته جمع هم کیدے شی او بعضے طرق ضعیف هم دی، چه تشریح ئے داده :

چه اضطراب په سند کښے نشته، ځکه چه ولید بن کثیر دا حدیث د محمد نه آوریدلے دے، یعنے محمد بن جعفر او محمد بن عباد نه، او بیا محمد بن جعفر د دواړو ځامنو د عبد الله بن عمرؓ نه آوریدلے دے، چه عبد الله او عبید الله دی۔ او دا دواړه ثقه، ثبت راویان دی۔ نو ولید بن کثیر کله د محمد بن جعفرعن عبد الله بن عبد الله بن عمر نه روایت نقل کوی، اوبل کرتے د محمد بن جعفر عن عبید الله بن عبد الله بن عمر المصغر نه روایت کوی۔او کله ولید د محمد بن عباد عن عبد الله بن عبد الله بن عمرؓ نه روایت کوی، نو په دے کښے هیڅ تکلف نشته، ټول ثقه راویان دی، نو دا اضطراب قادح نه دے په صحت د حدیث کښے، او دا جمع امام نوویؒ کړے ده چه صاحب د بحر الرائق (٨١/١) ترے نقل کړیده۔ (كذا في أبكار المنن : ١٤)۔

حافظ ابن حجرؒ په تلخیص (١٨/١) کښے فرمائی : دا اضطراب صحت د حدیث ته مضر نه دے، ځکه نتیجه ددے اضطراب به دا راوځی چه په دے کښے انتقال د یو ثقه نه بل ثقه ته راغلے دے او دا مضر نه دے۔

لیکن بیا فرمائی : دا توفیق به هله کیږی کله چه ټولے طریقو ته صحیح اووئیلے شی،

لیکن صواب او حق خبره داده چه دا حدیث په روایت د ولید بن کثیر عن محمد بن عباد بن جعفر عن عبد الله بن عبد الله بن عمرؓ المکبر ـ وعن محمد بن جعفر بن الزبیر عن عبید الله بن عبد الله بن عمرؓ المصغر نقل دے، او دا په کښے صحیح سند دے، باقی خطاء دی۔ هاؤ ! یو دریمه طریقه هم صحیح راغلے ده (رواها الحاکم) د حماد بن سلمه عن عاصم بن المنذر عن عبد الله بن عبد الله بن عمر عن أبیه، دیته ابن معینؒ صحیح وئیلے ده۔ نو بناء په دے باندے د جمع طریقه ذا شوه چه نور سندونه ضعیف دی او صرف دا درے سندونه صحیح دی، نو اضطراب ختم شو۔ او ددے اضطراب فی السند تحلیل امام دارقطنی ډیر په ښه انداز کړیدے او عظیم آبادی د هغه تحسین کړیدے۔ التعلیق المغنی (١٧/١)۔

٢ – او هرچه اضطراب فی المتن دے، هغه هم نشته تردے چه عمل پرے اونه کړے شی، بلکه کوم روایت کښے چه (أربعین قلة) راغلے هغه ضعیف جدا دے، په سند کښے ئے قاسم بن عبد الله العمری دے، امام احمدؒ فرمائی : دا موضوعی حدیثونه جوړوی، دروغژن دے، حدیث ئے خلقو پریښے دے۔

اوکوم روایت کښے چه (قلتین، او ثلاثًا) په شك سره راغلے، نو دا شك یا د حماد نه واقع شوے یا د عاصم بن المنذرؒ نه، ما سیوا د دوئ نه چه کوم راویان د عبید الله بن عبد الله نه نقل کوی، هغه قلتین بغیر د شك نه ذکر کوی، نو روایت د شك بیا راجع کیږی روایت د قلتین ته، کوم چه بے شك دے۔

٢ – او علامه سندیؒ فرمائی : چه په دے روایت کښے هم شك نشته بلکه تحدید په قلتین سره ددے دپاره نه دے چه زیادت پرے منع دے، بلکه دادے دپاره دے چه د قلتین نه نقصان منع دے، نو د قلتین مقدار نه به کمے نه وی، او که زیاتے شی هر څومره چه وی، هغه منع نه دی۔

دارنګ روایت د (أربعین دلواً) هم ضعیف دے کذا فی الدارقطنی (٢٧/١) نو صحیح روایت د (قلتین) پاتے شو، او اضطراب معنوی هم نشته، ځکه (قلة) اګرچه مشترك ده په ما بین د سر د غر او سر د سړی او منګی کښے مګر رأس الجبل او رأس الرجل دلته نشی

مراد کیدې، وجه داده چه دلته مقصود تحدید دې، او په هغې سره تحدید نه حاصلیږی، نو معلومه شوه چه دلته به مراد منګې وی، او د هغه منګی په یو حدیث کښې تعیین راغلې دې (مـن قـلال هَجَر)۔ یعنې د هجر علاقې منګې مراد دې او هجر په یمن کښې یوه علاقه ده چه هلته نه به دا منګی راوړلې شو بعضې وائی چه دا مدینې ته نزدې علاقه وه۔

دا حدیث اګرچه د مغیره بن صقلاب – متکلم فیه – راوی په وجه ضعیف دې، مګر د نورو مؤیداتو لکه د اجماع په وجه معمول به دې۔ وجه داده چه د صحابوؓ په دور کښې د هجر منګی مشهور وو، نبی ﷺ به هغـه په تشبیه کښې ذکر کول، لکه په حدیث د معراج کښې دی (واذا بنقها مثل قلال هجر – والبنقة هیَ الحرة ) دارنګه عربو دا په خپلو اشعارو کښې ذکر کول، او دا غټ منګی وو، د چاټو پشان۔ عربو پیژندل۔

بلـه دا چه نبی ﷺ خو د بیان دپاره راغلې وو، هغه مبهمې خبرې نه کوی، چه صحابهؓ پرې نه پوهیدل، نو هغوئ ته د (قلتین) مقدار معلوم وو چه د هغې امام شافعیؒ اندازه لګولې ده، اندازه ئې پنځه سوه رطله ده۔ کـذا فی مـجـمـع البحار، کما فی نیل الاوطار (٣٨/١) والروضة الندیة ص (١٣) او د یوې چاټې د اوبو اندازه (٩٠) لیټر او د دواړو چاټو (١٨٠) لیټره جوړیږی۔

امـام نـوویؒ پـه الـمجموع (١٧٩/١) کښې فرمائی : قـال الـخـطابی قلال هجر مشهورة الـصنعة معلومة المقدار لاتختلف کما لا تختلف المکاییل والصیعان المنسوبة الی البلدان قال وقـلال هجر اکبرها واشهرها لان الحد لایقع بالمجهول وقال الشیخ ابوحامد فی تعلیقه : قال ابـواسـحق ابراهیم بن جابر صاحب الخلاف : سألت قوما من ثقات هجر فذکروا ان القلال بها لا تختلف ، وقالوا قایسنا قلتین فوجدناهما خمسمائة رطل. انتهیٰ۔

نو دا **حدیث د قلتین** سـنـدا، متنا او معنی **صحیح** دې، او عـام عـلماؤ لکه امام تـرمـذیؒ، ابـوداودؒ، ابن حجر عسقلانیؒ، عبد الحی لکهنویؒ، رشید احمد ګنګوهیؒ، شاه ولـی الله دهلویؒ ورته صحیح وئیلې دې۔ لکه شاه صاحب په حجة الله البالغه (١٤٧/١) کښې فرمائی : (وحـدیث القلتین أثبت من ذلك کله بغیر شبهة). وصححه الالبانی فی ارواء الـغـلیـل (١/٦٠– رقم ٢٣) و الشوکانی فی نیل الأوطار (١/٣٧) وابن الجوزی فی التحقیق

(٣٣/١). شيخ الاسلام ابن تيميه فرمائي : اكثر اهل العلم بالحديث على انه حديث حسن. كذا في توضيح الاحكام (١٢٩/١)۔

**فائده** : صاحب هدايه (٣٥/١) ددے حديث نه دويم جواب دا كړے چه (ضعفه أبوداود) دے روايت ته أبوداود ضعيف وئيلے دے، نو په دے خبره كښے **خطاء** شوے دے، لكه دده دا خطائي محققينو احنافو هم منلے ده، ځكه چه په دے روايت كښے أبوداود هيڅ ضعف نه دے بيان كړے، بلكه دا د صاحب هدايه خطائي شمارلے شي، لكه داخبره محققينو كړے ده۔ وذكره في درس ترمذى (٢٧٢/١) هغه بيا عذر بيان كړے ليكن هغه هم غلط دے۔

## اوس دلائل د اول مذهب :

چه تولے اوبه طاهرے مطهرے دي، او د قليل او كثير فرق نشته، مگر كله چه يو د درے اوصافو نه ئے متغير شي نو بيا به نجس وي۔

**١ - اول دليل** : آيت : وينزل عليكم من السماء ماء ليطهركم به۔ الانفال آيت (١١) ددے آيت نه معلوميږي چه ترڅو اوبو ته اوبه وئيلے كيږي او نور اجزاء پرے غالب نه وي نو دا خپله هم پاكے دي او نور څيزونه به پرے هم پاكيږي۔

**٢- دويم دليل** : حديث د أبو سعيد الخدريؓ دے (أخرجه الترمذى : ٢٠/١، وابوداود : ١١/١، باسناد صحيح) فصل ثاني كښے را روان دے : چه نبي ﷺ نه تپوس اوشو (أنتوضأ من بئر بضاعة، وهي بئر يلقى فيها الحيض ولحوم الكلاب والنتن ؟ فقال رسول الله ﷺ : ان الماء طهور لا ينجسه شئ)، وكذا أخرجه البيهقى : ٢٥٧/١، والنسائى وأحمد)۔

په دے حديث كښے (الماء طهور) كښے الف لام استغراقي دي، يعنے تولے اوبه پاكے دي ځكه په دے كښے نبي ﷺ داسے نه دي فرمائيلي چه (ان هذا الماء طهور) چه الف لام عهدي شي۔ بلكه په طريقه د قاعده كليه سره ئے اوفرمائيل، دے دپاره چه په امت باندے آساني شي، اوكه الف لام عهدي وے نو بيا پكار ده چه په (ان هذا الماء) سره تعبير شوے وے۔

بلکه دا چه اصولی شرعی قاعده ده چه العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب نو دلته عام الفاظ استعمال شویدی اګرکه تپوس د کوهی په باره کښې شویدے۔

اوکومو علماؤ چه دا خبره کړیے ده چه دلته رسول الله ﷺ د اوبو خلقت بیانوی چه اوبه طبعا پاکے دی، او په نجاست عارضی سره پلیتیږی، نو دا خبره صحیح نه ده، ځکه چه دا سوال د صحابوؓ دلالت کوی په دے خبره چه هغویٔ خلقت د اوبو پیژندلو چه پاکے دی، خو دائے نه پیژندل چه آیا په وقوع د نجاست سره پلیتیږی که نه ؟۔

دارنګه جواب د نبی ﷺ په طریقه د عموم سره ددے خبرے دلیل دے چه هر قسم اوبه پاکے دی۔ او ستاسو چه کوم شک دے چه دے کوهی ته خو ګندونه پریوځی نو دا شک صحیح نه دے، بلکه دا اوبه پاکے دی، په همدے حالت کښې هم۔ دارنګه صحابو د اوداسه متعلق تپوس کړیے وو چه ددے کوهی د اوبو نه اودس کول جائز دی ؟ نو که د نبی علیه السلام تخصیص ددغه کوهیٔ د اوبو مراد وے نو داسے جواب پکار وو چه توضئوا منها فانه طهور۔ ددے کوهی اوبه پاکے دی اودسونه ترے کولے شئ، بلکه نبی علیه السلام په جواب کښې عامه خبره ذکر کړه چه هر قسم اوبه پاکے دی په هیڅ شی نه پلیتیږی ( مګر چه خوند، رنګ او بوئی ئے د نجاست په وجه بدل شی) نو دا کوهے هم پدے ګندونو پریوتو سره ندے پلیت۔

شوافع دا وائی چه دا اوبه د قلتین نه زیاتے وے، ځکه نبی ﷺ ورته اوویلے (ان الماء طهور) نو (ان الماء) کښې چه کوم عموم دے هغه خاص شوے دے په (قلتین) سره، لأن الخاص یقضی علی العام ویبینه الخ۔

٢ - **دویم دلیل** : ترمذی، ابوداود، ابن ماجه د ابن عباسؓ نه راوړے دے لکه مخکښې په مسئله وضوء بفضل المرأة کښې تیر شو، چه (اغتسل بعض أزواج النبی ﷺ فی جفنة فأراد رسول الله ﷺ أن یتوضأ منه، فقالت یا رسول الله ! انی کنت جنبا، فقال : ان الماء لا یجنب) وسنده صحیح۔

نو دلته صراحت راغلے چه هیڅ اوبه نه پلیتیږی۔ او ددے (ان الماء لا یجنب) نه معلومه شوه چه مخکښې حدیث کښې (الماء طهور لا ینجسه شئ) کښې الف لام

استغراقی دی نه عهدی۔

**٣ - دلیل** : بیهقی (١/٢٥٨) د ابو سعید خدری نه روایت کړے (قال : کنا مع رسول الله ﷺ فأتینا علی غدیر فیه جیفة، فتوضأ بعض القوم وأمسك بعض القوم، حتی یجئ رسول الله ﷺ فجاء النبی ﷺ فی أخریات الناس، فقال : توضئوا واشربوا فان الماء لا ینجسه شئ)۔

په دے حدیث کښے هم د حدیث د بئر بضاعه پشان الفاظ دی، دلیل دے چه هلته الف لام استغراقی یا جنسی دی، عهدی نه دی۔

که څوك اووائی چه دا اوبه عشرا فی عشر وے، او هغه خو پاکے دی اګرچه نجاست په کښے پریوځی۔ ددے **جواب** دا دے چه د اخبره د آخر د حدیث سره سمون نه خوری ځکه چه الماء کښے مطلق ماء ذکر دی، که عشرا فی عشر وی اوکه ددے نه کمے وی، یعنے هر قسم اوبه نه پلیتیږی۔ فتدبر!

بل دا چه په دے څه دلیل دے چه دغه حوض عشرا فی عشر وو؟۔ دارنګه نبی ﷺ دلته خاص جواب ورنکړو چه ان هذا الماء لاینجس بهذه الجیفة بلکه لا ینجسه شئ کښے ئے په عام لفظ سره تعبیر اوکړو او نکره په سیاق د نفی کښے دلالت په عموم کوی، نو معنی دا شوه چه اوبه په هیڅ شی سره نه پلیتیږی اګرکه مردار حیوان یا نور ګند پکښې پریوتے وی (تردے چه درے صفتونو کښے ئے یو صفت بدل شی)۔

**٤ - دلیل** : بیهقی (١/٢٥٩) کښے د عمر فاروق رضی الله عنه واقعه نقل کړے ده (أنه ورد حوض مجنة فقیل : یا أمیر المؤمنین ! انما ولغ الکلب فیه آنفا، فقال : انما ولغ الکلب بلسانه فشرب وتوضأ) ۔ دا حدیث هم دلالت کوی په دے چه اوبه په نجاست پریوتو سره نه پلیتیږی ترڅو پورے چه اوصاف ثلاثه ؤ کښے ئے یو صفت بدل شوے نه وی۔

**٥ - دلیل** : بیهقی (١/٢٥٩) د سعید المسیبؒ اعلم التابعین قول ذکرکړے دے چه دا فرمائی : (ان الماء طهور کله لا ینجسه شئ)۔

٦ - دارنګه امام زهریؒ نه نقل دی (الغدیر تموت فیه الدابة قال :الماء طهور ما لم یتغیر طعمه او لونه او ریحه)۔

**٧ - دلیل** : ابن عباسؓ فرمائی : (أربع لا ینجس : الانسان، والماء، والثوب،

والأرض)۔ بل روایت کښې دی (الماء لا یجنب)۔
دا ټول احادیث او آثار صریح دی په استدلال کښې۔
**سوال** : دا قید د کوم ځائے نه لګوی چه خوند، رنګ، بوئی ئے نه وی متغیر شوے، دا خو دے مذکوره ټولو حدیثونو کښې نشته، نو تاسو هم په اطلاق ددے احادیثو عمل اونه کړو؟۔ **جواب** : دادے چه مونږ دا قید په دے حدیثونو کښې د دوه وجونه لګولے دے :
۱ - یو د حدیث په وجه ابن ماجه روایت کړے دے او هغه اګرچه ضعیف مرسل دے مګر معنیٰ ئے صحیح ده ، کما فی بلوغ المرام (۲٦) (الا ما غلَب علی لونه او ریحه او طعمه)۔
۲ - دویم په اجماع د مسلمانانو سره د اثابته ده چه کله نجاست په اوبو کښې پریوځي او خوند، رنګ، بوئی ئے بدل شی نو دوئ ورته نجس وائی۔ او ددے اجماع مأخذ دادے چه عقل ددے خبرے ګواهي کوی چه کله د اوبو خوند، رنګ، بوئی بدل شی نو دیته څوك اوبه نه وائی، بلکه دیته نجاست وائی دارنګه قرآن هم ګواه دے ﴿فلم تجدوا ماء﴾ او د نجاست والا اوبو ته ماء نه وئیلے کیږی۔ په دے باندے اطلاق د اوبو نه کیږی۔ نو د ماء مطلق نه اووځی۔ لکه دا اجماع امام شافعیؒ او امام بیهقیؒ بیان کړیده او امام نوویؒ په المجموع ۱/۱۱۰ او ابن المنذر په الاجماع ص (۳۳- رقم ۱۰)، او ابن الملقن په مختصر البدر المنیر ص (۱۸) ۔ او ابن قدامه په المغنی (۱/۳) اونو اب صدیق حسن خان په الروضة الندیة (۱/۸) او شوکانی په نیل الأوطار (۱/۳۵) او المهدی په البحر الزخار ص (۳۱) کښې بیان کړیده۔
بیا شوافع وائی : زمونږ قول راجح دے ځکه چه حدیث القلتین دلیل دے، اوکوم حدیثونه چه تاسو پیش کړل د هغے تخصیص په حدیث القلتین سره شوے دے، بئر بضاعه د (قلتین) نه زیات وے، او (الماء طهور لا ینجسه شئ) نه مراد ما زاد علی القلتین دی۔
لیکن **اول قول راجح** دے چه د مالکیه ؤ قول دے، ځکه چه اصل په أشیاؤ کښې حِل او طهارت دے تردے چه دلیل د نجاست راشي، او دویم نمبر **قوی قول** د شوافعو دے،

د وجې د حديث القلتين نه - او هرچه مذهب الأحناف دے نو دا **ضعيف** او كمزورے دے، د وجې د عدم دليل نه، دوئ سره صرف قياسونه دي. كما عرفتَ.

## اشكال او جواب :

دلته يو قوي اشكال او مهم **اعتراض** په حديث كښې راغلو هغه دا چه حديث د ابن عمرؓ (اذا كان الماء قلتين لم يحمل الخبث) د مفهوم نه معلوميږي چه كله اوبه د قلتين نه كمې وي نو نجاست قبلوي، نو د مفهوم تقاضا داده چه لږې اوبه چه د قلتين نه كمې وي پليتيږي. او حديث د أبو سعيد الخدريؓ (انما الماء طهور لا ينجسه شئ) منطوق دا تقاضا كوي چه هيڅ اوبه نجاست نه قبلوي. لږې وي كه ډيرے. نو تعارض راغلو په مابين د مفهوم او منطوق كښې ؟.

**جواب** : دامسلمه أصولي قاعده ده چه كله د منطوق او مفهوم تعارض راشي نو منطوق لره اعتبار وي په مقابله د مفهوم كښې. نو په منطوق به عمل كيږي، اومفهوم به پريخودلے كيږي. نو حديث القلتين به منو چه دوه چاټئ اوبه په نجاست پريوتو سره نه پليتيږي، خو مفهوم له به اعتبار نه وركوو ( چه دوه چاټو نه كمې وي نو هغه به ګنې پليتې وي)، ځكه چه مفهوم كښې عموم نه وي. اود دغه احاديثو الفاظ عام دي. او اكثر علماء مفهوم له اعتبار وركولو نه منكر دي .

٢ - يا دويم جواب داسے كيږي چه د (قلتين) نه چه بره وي، نو هغې كښې نجاست تاثير نه كوي، او چه قلتين نه كمې وي، نو دا به كله نجاست قبلوي، په دے وجه چه خوند، رنګ، بوئي كښې به ئے تغير راغلے وي. نو بيا د مفهوم القلتين دپاره هغه حديث د (الا ما غيّر لونه الخ) مقيد شو، كوم چه مؤيد بالاجماع دے. اوكله به نجاست نه قبلوي، خو شارع دلته يقينا دا خبره نه ده كړے چه (قلتين) نه چه كمې وي نو هغه به ضرور نجاست قبلوي، بلكه هغه په حكم د مسكوت عنه كښې دے. نو دلائل خارجيه ته به ګورو، كه خوند، رنګ، بوئي كښې ئے تغير راغلے وو، نو دابه د هغه حديث مؤيد بالاجماع په وجه سره نجاست قبلوي. اوكه اوصاف ثلاثه كښې ئے تغير نه وو راغلے، نو بيا نجاست نه قبلوي، د وجې د منطوق د حديث د ابوسعيد خدريؓ نه.

او دے جمع ته علامه شوکانیؒ په السیل الجرار (١/٥٥) کښے اشاره کړے ده (وکذا فی الدین الخالص ٢/٣٠٠)۔
بهر حال د اُمت د آسانئ او د شریعت د حکمت پیشِ نظر قول المالکیه راجح دے۔
لکه چه علامه عبد الحی اللکهنوی هم دے قول ته ترجیح ورکړیده هغه فرمائی :
ولـقد خضتُ فی بحار هذه المباحث وطالعت لتحقیقها کتب اصحابنا المبسوطة و کتب غیرهـم المعتمدة فوضح لنا ما هو الارجح منها وهو الثانی وهو مذهب المالکیة انه لا تنجس الا ما تغیر لونه او طعمه او ریحه. ( التعلیق الممجد –٦٢) ۔
یعنے زه ددے مسئلے د بحثونو د دریابونو مینځ ته ننوتلم او ددے د تحقیق دپاره مے د احناف او غیر احنافو ټول معتمد لوئی کتابونه مطالعه کړل نو ددے نه مونږ ته دا خبره واضح شوه چه راجح قول د مالکیه ؤ دے چه اوبه په هیڅ شی نه پلیتیږی (لږے وی که ډیرے) مگر کله چه خوند، رنګ، بوئی ئے بدل شی (بیا به پلیتے وی)۔
او سعایه کتاب کښے فرمائی : کچرے امام **ابوحنیفه** ته د ( ان الماء طهور لاینجسه شئ) حدیث رسیدلے وے نو هغه به قیاسات او دغه مذکوره تحدیدات پریخودی وے او په حدیث به ئے ضرور عمل کولے۔ نـقـله عنه المبارکفوری فی ابکار المنن فی تنقید آثار السنن ص (١٢) ۔
**تنبیه** : هرکله چه دا ثابته شوه چه ټولے اوبه پاکے دی، او نه نجس کیږی، نو ددے مطلب دا نه دے چه ګندګی په کښے پریوتو اوبو باندے اودس کول خامخا ضروری دی، بلکه مطلب دادے چه که نورے پاکے اوبه نه وی نو ستا دپاره دا سے قسم اوبه استعمالول شرعا جائز دی، اودس په دے اوبو سره هم جائز کیږی۔ د وجے ددے دلائلو مذکورو نه۔ اګرچه بهتر او أفضل دادے چه طهارت او نظافت په داسے اوبو سره حاصل کړے شی چه په هغے کښے هیڅ قسم ګندګی نه وی پریوتی۔

## د کوهیانو د مسائلو شرعی حیثیت

**فائده مهمه** : هرکله چه دا ثابته شوه چه ټولے اوبه پاکے دی، نو په دے باندے بله مسئله تفریع شوه هغه داچه کوم مسئلے چه د کوهیانو په باره کښے فقهاؤ جوړے کړی

دی هغه باطلې او بې ځایه دی. مثلا د دوئ دا مسئله چه که چرګه یا کونتره کوهی ته پریوځی نو څلویښتو نه تر شپیتو پورې بوقې، اوکه مږه یا چینچڼه پریوځی نو شلونه تر دیرشو پورې بوقې به راوباسی، دا تحدیدونه صحیح نه دی، ځکه دا مسائل رسول الله ﷺ أمت ته نه دی بیان کړی، که دا ضروری مسائل وې نو نبی ﷺ به ضرور څه فرمان کړې وې.

او د امام ابو حنیفة نه چه د اخبرې نقل دی، نو هغه د بعض تابعینو تقلید کړیدې په دې مسائلو کښې، چه هغوئ د موقع اومحل مطابق فتوئ ورکړې ده، او دا څه حکم شرعی نه دې، هغه آثار مصنف عبد الرزاق (١/٨٠) اوابن أبی شیبه (١/١٦١) راوړی دی ، لکه عطاء نه نقل دی چه سپې کوهی ته پریوځی نو شل بوقې به ویستلې شی، اوکله چه مړ شی نو بیا به شپیته یا اویا بوقې ویستلې شی.

(٢) د ابراهیم نخعی نه نقل دی چه پیشو پریوځی نو څلویښت بوقې به ویستلې شی.

٣ - د عطاء نه د چرګې باره کښې نقل دی چه یوه بوقه به ویستلې شی، اوکه پړسیدلې وی نو بیا به څلویښت بوقې ویستلې شی.

٤ - د علی رضی الله عنه نه نقل دی چه مږه پریوځی نو دومره اوبه به اوباسی چه غالب ګمان ئې د پاکیدو راشی.

لیکن دا قول هم د احنافو د مذهب خلاف دې، هغوئ ددې نه سیوا د نورو بوقو د عدد تعیین کوی، کما عرفت فی الفقه.

٥ - د امام زهری اثر: قال معمر : سألت الزهری عن دجاجة وقعت فی بئر فماتت، فقال : لا بأس أن یتوضأ منها ویشرب الا أن تنتن حتی یوجد ریح نتها فی الماء فتنزح. أخرجه عبد الرزاق فی المصنف (١/٨١).

دا وجه ده چه شاه ولی الله محدث الهند صاحبٌ په حجة الله البالغة (١/١٤٧) کښې فرمائی: و قد اطال القوم فی فروع موت الحیوان فی البئر والعشر فی العشر والماء الجاری ولیس فی کل ذلك حدیث عن النبی ﷺ ألبتة، وأما الآثار المنقولة عن الصحابة و التابعین کأثر ابن الزبیر فی الزنجی وعلیؓ فی الفارة والنخعی والشعبی فی نحو السنور، فلیست مما یشهد له

المحدثون بالصحة، ولا مما اتفق عليه جمهور أهل القرون الأولىٰ، وعلى تقدير صحتها يمكن أن يكون ذلك تطيبيا للقلوب، وتنظيفا للماء، لا من جهة الوجوب الشرعي، كما ذكر ذلك في كتب المالكية، ودون نفي هذا الاحتمال خرط القتاد. وبالجملة : فليس في هذا الباب شئ يعتد به، ويجب العمل عليه. وحديث القلتين أثبت من هذا كله، بغير شبهة. انتهى۔

يعنے احنافو په كوهي كښې د حيوان مړ كيدو او لسې په لسو كښې او د ماء جارې په مسائلو كښې ډير اوږد والے كړيدے خو پدے ټولو كښې هيڅ حديث د نبي ﷺ نه بالكل ندے ثابت۔ او د صحابه او تابعينو نه چه كوم آثار نقل دي لكه اثر د ابن الزبير په باره د زنجي كښې او اثر د علي په باره د مږه كښې او د نخعي او شعبي په پيشو وغيره كښې نو (اول خو) د محدثينو په نيز باندے دا صحيح ندي ثابت (دويم) دا په اولنو پيړو (زمانو) كښے اتفاقي مسائل ندي (دريم) كه اومنو چه صحيح دي نو بيا ممكن ده چه دے علماؤ دا (تحديدات) د خلقو د زړونو د خوشحالولو دپاره كړيدي، او د اوبو د نظافت په وجه كړيدي، نه ددے وجے نه چه ګنے دا شرعا واجب دي۔ لكه چه داخبره د مالكيه ؤ په كتابونو كښې (هم) ذكر ده۔ او ددے خبرے نفي كولو مخے ته ازغيداره ونه ده يعني دا ثوك نشي نفي كولے۔ (او كه ثوك ئے نه مني نو په ازغو باندے به زخمي كيږي) خلاصه دا چه پدے باب كښې هيڅ داسے دليل نشته چه اعتماد پرے اوكړے شي او عمل پرے واجب شي او حديث د قلتين ددے ټولو نه ښه مضبوط دے بغير د شك نه۔ انتهى۔

اوكه چرے شوافع دا مسائل د مفهوم د حديث القلتين نه ثابت كړي چه نجس دي، نو بيا هم لا څه خبره ده، مګر احناف خو هغه حديث ته هم مضطرب وائي، نو په دے مسائلو ثابتولو كښې هيڅ دليل شرعي نه لري۔ نو دا اعتراض د مقلدينو غلط شو چه وائي قرآن او حديث نيمګړے دے د كو هيانو مسئلے په كښې نشته، مونږ وايو الحمد لله۔ په دے يو حديث (ان الماء طهور لاينجسه شئ) كښې دا ټولے مسئلے حل دي۔

---

## الفصل الأول - اولنے فصل

١ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( لَا يَبُوْلَنَّ أَحَدُكُمْ فِي

الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِیْ لَا یَجْرِیْ ثُمَّ یَغْتَسِلُ فِیْهِ) . مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ. وَفِیْ رِوَایَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ : لَا یَغْتَسِلُ اَحَدُکُمْ فِی الْمَاءِ الدَّائِمِ وَهُوَ جُنُبٌ. قَالُوْا : کَیْفَ یَفْعَلُ یَا أَبَا هُرَیْرَةَ قَالَ : یَتَنَاوَلُهٗ تَنَاوُلًا ).

**ترجمه** : ابو هریره فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : پتاسو کښې دې څوك په هغه ولاړو اوبو کښې چه بهیدونکې نه وی متیازې نه کوی چه بیا په هغې کښې غسل هم کوی. (بخاری، مسلم)، د مسلم د یو روایت الفاظ دادی چه نبی ﷺ اوفرمائیل : تاسو کښې دې یو سړې د جنابت په حالت کښې په ولاړو اوبو کښې غسل نه کوی. خلقو اووئیل : اې ابو هریره! څنګه لامبل پکار دی ؟ هغه اوفرمائیل : هغې نه دې لږې لږې اوبه راخلی (او هغې سره دې د اوبو نه بهر لامبی).

## تشریح - حکمتونه د نهی څه دی ؟

چه شریعت اووئیل په ولاړو اوبو کښې متیازې مه کوئ چه بیا پکښې بیرته غسل هم کوې؟ نو پدې باره کښې :

۱ - بعض علماء وائی : چه د بول کولو نه پس که خوند رنګ بوئی نه ووخراب شوې نو اوبه پاکې دی او د نهی په حکمت مونږ نه پو هیږو او دا حکم تعبدی دې.

۲ - په ولاړو اوبو کښې د بولو او بیا غسل کولو نه ځکه منع شوې ده چه اوس فی الحال خو به په متیازو کولو سره دا اوبه نجسې نشی لیکن صبا له به نجسې شی، چه ستا په لیدو سره به هر څوك متیازې کول شروع کړی، نو بیا به نجسې شی، نو دا منع سدا للذریعة شوې ده. قاله القرطبی فی المفهم . ( طرح التثریب ۲/ ۳۰)

۲ - دویم دا چه دا اوبه بیا په سر باندې اچوی نو د نظافت خلاف ده.

۳ - دریم دا چه : دا منع ده د تکلیف نه چه مسلمانانو ته په دې سره تکلیف رسیږی، هغوئ به دا اوبه څکی اوته به په کښې متیازې کوې نو هغوی به ستا ددې عمل نه کرکه کوی نو تکلیف کښې به شی ځکه چه د انسان بول نه خلق کرکه کوی اګرکه دا په ډیرو زیاتو اوبو کښې ولې نه وی. اوشریعت وائی چه عام خیرن او ګنده څیزونه به هم داسې اوبو ته نه اچوی چه مسلمان ترې فائده اخلی، پاتې لا دا چه په هغې کښې نجاستِ غلیظه ( بول )

اوکړې شي پدې سره خو انسانانو ته ضرور تکلیف رسي.

٤- علامه ابن حزم ظاهري په کښې لا دا وائي چه پدې حدیث کښې نهي ( منع) صرف دغه بائل ( متیازې کونکی) ته شامل ده چه دا به په دغه اوبو کښې غسل او اودس نه کوي بل چاته نده شامله ځکه که بل چاته هم شامل وې نو نبي علیه السلام به د هغې بیان ضرور کړې وې : فلو اراد علیه السلام ان ینهی عن ذلك غیر البائل لما سکت عن ذلك عجزا ولا نسیانا آه. المحلی (۱/۱٤۵) یعنی که منع د بول کونکی نه سیوا بل چاته شامل وې نو نبي ﷺ به چپ نه وې پاتې شوې ځکه هغه د بیان نه عاجز هم نه وو او هیر شوی ترې هم ندی.

بیا د بول په حکم کښې براز او غائط هم د جمهورو علماؤ په نیز داخل دی، صرف داؤد ظاهري د ظاهر د حدیث په بناء وئیلي دي چه غائط منع نه دی، ځکه حدیث کښې بول ذکر دی، کما قال النووی فی شرح مسلم (۱/۱۳۸) والتحفة (۱/۷۲).

لیکن دده قول ضعیف دې وجه د ضعف دا ده چه مقصود په حدیث کښې دا دې چه مسلمانانو ته په بول کولو سره ضرر او نه رسي او دا ضرر لکه څنګه چه په واړه بولو سره رسي نو په غټو بولو سره خو په طریق اولی تکلیف رسي.

۲- دارنګه بول دا په اعتبار د غالب سره وئیلي شویدی. غالبا خلق اوبو کښې واړه بول کوي، نه غټ، نو ځکه ئې واړه بول ذکر کړل ورنه تخصیص د بول احتراز د غائط نه ندې بلکه دا قید اغلبي دې. دارنګه (لاضرر ولا ضرار فی الاسلام) حدیث پرې دلیل دې.

ظاهر ددې حدیث تقاضا کوي چه په وقوع د نجاست سره دې ټولې اوبه پلیتې شي، ځکه چه نبي ﷺ منع اوکړه د متیازې کولو نه په ولاړو اوبو کښې، ځکه چه په بول کولو سره دا اوبه پلیتیږي، نو دا عام دې که لږې اوبه وي اوکه ډیرې. لیکن علامه بدر الدین العیني او ابن دقیق العید اتفاق نقل کړې دې په دې خبره چه عموم ددې حدیث مقید دې، نو احنافو په عشر في عشر یا په رائې د مبتلیٰ بہ سره مقید کړې دې. او شوافعو په قلتین سره مقید کړې دې، چه که قلتین نه کمې وې، نو اوبه پلیتې دي، اوکه زیاتې وې نو هغه په حکم د جاري اوبو کښې دي، نه پلیتیږي، اودلته د قلتین نه کمې اوبه مراد دي.

او مالکیه ؤ په عموماتو سره مقید کړے دے چه ترڅو پورے یو د اوصاف ثلثه ؤ نه وی متغیر شوی، نوکه لګے وی اوکه ډیرے، نه پلیتیږی، اودلته نهی محمول ده په کراهت تنزیهی باندے۔

صرف ددے حدیث متعلق امام احمدؒ د انسان په بول او د نورو حیواناتو په بولو کښے فرق کړے دے، او دائے فرمائیلی دی چه د انسان د بول په وجه ولاړے اوبه پلیتیږی، لګے وی که ډیرے، د وجے د عموم د حدیث نه۔ اود نورو حیواناتو بول کښے تقیید کوی په قلتین سره، پشان د مذهب د امام شافعیؒ۔ یعنی که نورو حیواناتو په ولاړو اوبو کښې بول اوکړل نو دا به هله پلیتے وی چه د قلتین نه کمے وی او که قلتین نه زیاتے وی نو هغه هم ندی پلیتے۔

لیکن **صحیح** خبره داده چه په دے حدیث سره استدلال د احنافو وغیره دپاره صحیح نه دے، ځکه چه دلته نبی ﷺ منع کړیده د افراط او تفریط نه، چه اول په اوبو کښے بول اوکړی او بیا پرے غسل کوی، نو دے کښے د نجاست او غیر نجاست خبره نشته، اونه د عشر فی عشر فرق شته۔ او په دے جواب باندے حکمتونه د نهی دلالت کوی، کما عرفت۔

ثم یغتسل فیه : مستعملے اوبه او د جنب بدن بالاتفاق پاك دے، پاکوالی باندے دلیل دا هم دے چه ابو هریرهؓ ته چا اووئیل چه څه به کوو ؟ هغه ورته اوفرمائیل : (یتناوله تناولا)، یعنے د حوض په غاړه به کینی او په لاس کښے به اوبه راخلی او په سر به ئے اچوی، نوکه څاڅکی اوشی، یا لاس په اوبو کښے داخل کړی نو خیر دے، خو اوبو ته به د غسل کولو په وخت نه ننوځی ځکه دا د نظافت خلاف ده۔

**فائده** : (ثم یغتسل فیه) کښے امام نوویؒ د خپل استاذ علامه ابن مالكؒ نحوی صاحب الالفیه نه درے ترکیبونه نقل کړی دی :

۱ – اول دا چه یغتسل فیه مجزوم دے، او عطف دے په (یبولن) باندے او هغه مجزوم دے په لا ناهیه سره، لیکن د نون ثقیله په وجه منصوب ګرځیدلے۔

۲ – دویم : دا خبر دے دپاره د مبتداء محذوف أی ثم هو یغتسل فیه۔ علامه قرطبیؒ

فرمائی : په دې کښې تنبیه ده په مآل او عاقبتِ حال باندې، یعنې که په دغه اوبو کښې بول اوکړې نو کله به دې اوبو ته محتاج شی، نو دغه اوبو استعمالول به ورله منع شی۔

۳ – دریم ترکیب دادې چه یغتسل منصوبٌ دې په (ان) مقدره ناصبه سره، او ان اګرچه د ثم نه روستو نه مقدر کیږی دجمهورو په نیز، مګر د ابن مالك نحوی ؒ په نیز ثم په معنیٰ د واؤ سره دې چه د هغې نه پس مقدر کیدې شی په معنیٰ د ویغتسل فیه سره دې۔ لکه لا تأکل السمك وتشرب اللبن۔ أی وأن تشرب اللبن۔

بناء په دې ترکیب، منع ده د جمع بین البول فی الماء الراکد والاغتسال فیه، نه.

نو په دې حدیث کښې دا خبره نشته چه اوبه نجسې شوې۔

وفی روایة : لا یغتسل أحدکم فی الماء الدائم وهو جنب۔

---

## مسئلة : حکم الماء المستعمل :

د مستعملو اوبو په طهارت او نجاست کښې د علماؤ اختلاف دې :

۱ – د امام ابو حنیفة ؒ نه محمد ؒ نقل کړی دی چه مستعملې اوبه طاهر غیرمطهر دی۔ او ظاهر الروایت کښې دادی چه (لا یجوز التوضی به) یعنی اودس پرې ندې جائز۔ اود طاهر او نجس حکم په کښې نشته۔

۲ – د امام زفر ؒ په نیز فرق دې، که استعمالونکې اودس د مخکښې نه لری نو مستعملې اوبه طاهر او مطهر دی، اوکه محدث وی نو بیا طاهر غیر مطهر دی۔ اودا یو قول د امام شافعی ؒ هم دې۔

۳ – د علی ؓ، ابن عباس ؓ، ابن مسعود ؓ او ابن عمر ؓ او د امام مالك ؒ، اهل ظواهرو ؒ، قول ثانی د امام شافعی ؒ، حسن بصری ؒ، سعید بن جبیر ؒ، نخعی ؒ، عطاء ؒ، ابن المسیب ؒ، لیث بن سعد ؒ، اوزاعی ؒ، ابن المنذر ؒ قول دادې چه : مستعملې اوبه په هر حال کښې طاهر مطهر دی ـ الاستذکار (۱/۱٦۱) والمحلی (۱/۱٦۸) وهو الحق۔

٤ – د امام ابو یوسف ؒ او یو روایت د امام ابو حنیفة ؒ نه دادې چه مستعملې اوبه نجس دی په نجاست خفیفه سره۔ دا روایت ترې حسن بن زیاد نقل کړیدې۔ هدایة (۱/٤۳) طرح التثریب (۲/۳۰)۔

احنافو په دے حدیث الباب استدلال کړے دے چه دلته منع شوے ده د غسل کولو نه په ولاړو اوبو کښے، اګرچه بول په کښے نه وی کړی، نو دا دِلیل دے چه په حالت د غسل کښے چه کومے اوبه مستعملے شوے هغه نجس دی۔

لیکن علامه شوکانی ؒ (۲۸/۱) ددے (۱) جواب ورکړیدے چه علت د نهی دلته دا نه دے چه دا اوبه مستعملے ګرځی، بلکه کله چه په کښے انسان غسل کوی نو دا اوبه خبیثے ګرځی، نو څوك تربے فائده نشی اخستے، خلق ئے د څکلو دپاره نشی استعمالولے، ځکه چه طبیعت ئے بد ګنړی۔ او ددے خبرے دلیل پخپله قول د ابو هریرة ؓ دے چه (یتناوله تناولًا) یعنی په لاس سره به ئے تربے راخلی او اوبو ته به نه ننوځی۔ ځکه چه دلته نهی د انغماس نه ده، یعنی ځان په اوبو کښں داخلول منع دی ، نه استعمال د هغه اوبو، ولے که داسے نه وے نو بیا به د انغماس او تناول فرق نه وے، نو معلومیږی چه استعمال ئے جائز دے،خو انغماس په کښے نا روا دے، د وجے د خباثت نه، نه د وجے د نجاست نه۔ فتدبر!

۲ - **دویم** داچه : دلیل أخص دے د دعویٰ نه، ځکه دعویٰ کښے دا خبره ده چه هرے مستعملے اوبه د طهوریت نه خارجے دی، او دلیل کښے د جنابت اوبه د طهورت نه وتل دی ۔ ومثله لایفید المطلوب فتدبر!۔

**او راجح مذهب** دادے چه ماء مستعمل پاك او پاكونكی دی، په دے باندے ډیر **دلائل** دی : كما تراها فی المغنی (۴۲/۱) والدین الخالص (۲۹۶/۲) والمحلی (۱۶۹/۱) وفتح المالك علی الموطأ لمالك (۲۹۲/۱) وسبل السلام (۲۲/۱)۔

بعضے د هغے نه دادی چه :

الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وأنزلنا من السماء ماء طهورا ﴾، نو ټولے اوبه طاهر اومطهر دی، سیوا د هغه اوبو نه چه د نجاست په وجه ئے یو د اوصاف ثلثه بدل شوے وی، او ماء مستعمل نجس نه دی، ځکه چه نجاست ورسره نه دے ملاؤ شوے، ځکه بدن د انسان پاك دے، دلیل په دے باندے حدیث د ابو هریرةؓ دے : (ان المؤمن لاینجس) اخرجه احمد (۲۳۵/۲) والبخاری (۷۹/۱) كتاب الغسل، مسلم (۱۹۴/۱).

یعنے هر کله چه مؤمن نجس ندے نو بیا څنګه هغه اوبه چه ده استعمال کړیوی

نجسے دیے شی په استعمال سره !!۔

**۲ دلیل** : امام بخاریؒ (٦٢/١)، بیهقی (٢٣٥/١) د جابرؓ حدیث نقل کړے دے چه هغه فرمائی : زه بیمار شوم، نبی ﷺ زما پوښتنے ته راغے، نو اودس ئے اوکړو او د اوداسه اوبه ئے په ما باندے را وُاچولے ۔۔۔ الحدیث۔

نو دا صریح دلیل دے په دے چه مستعملے اوبه پاکے دی۔

**۳ - دلیل** : د مسور بن مخرمهؓ په حدیث کښے دی : چه صحابوؓ به د نبی ﷺ د اوداسه په اوبو اخستو باندے د یو بل سره جګړے کولے۔ أخرجه البخاری (٢٧٨/١، واحمد : ٣٢٨/٤)، نو دا صریح دلیل دے چه مستعملے اوبه پاکے دی۔

او نبی ﷺ د امت سره په احکامو کښے شریك دے، ترڅو چه دلیل د خصوص رانشی، اودلته دلیل الخصوص نشته۔

٤ - دارنګ صحابوؓ او نبی ﷺ اودسونه کړی دی، او د هغوئ په جامو باندے به ضرور د اوداسه د اوبو څاڅکی لګیدل، او د هغوئ نه دا نه دی ثابت چه هغوئ جامے بدلے کړی یا دغه ځایونه ئے وینځلی وی۔ فتدبر ! کذا قال الامام الشافعی۔

٥ - دارنګ صحابوؓ او د هغوئ زنانو به شریك غسل کولو د خانکونه، او په هغے کښے به د اندامونو اوبه غورځیدلے، او هغوئ به هغه اوبه استعمالولے، لکه عائشهؓ او نبی ﷺ به هم دا کار کولو (حتی قالت عائشة : دع، دع لی)۔

**٦ - عقلی دلیل** : پاکے اوبه د پاك بدن سره لګیدلی دی، نو دے اوبو ته د نجس وئیلو هیڅ وجه نشته۔

دا وجه ده، امام ابن حزمؒ المحلی (١٨٢/١) کښے، او امام ابن تیمیهؒ په فتاوی (٤٨/٢١) کښے فرمائی : چه په مستعملو اوبو اودس کول جائز دی، او دارنګه د جنابت غسل هم پرے جائز دے۔ برابره خبره ده چه نورے اوبه موجودے وی اوکه نه وی موجودے، دغه شان په دغه اوبو ئے د فرضو دپاره اودس کړے وی اوکه د نفلو دپاره، یا ئے پرے د جنابت غسل کړے وے، او برابره ده چه اودس کونکے سړے وی اوکه زنانه۔

او بیا ئے ددے دلیل په ﴿ فلم تجدوا ماء فتیمموا ﴾ سره ذکر کړے چه دا قسم اوبه هم په

ماء لفظ کښې داخل دی، نو که دا موجود وي نو تيمم کول جائز نه دی، ځکه دا هم په (ماء مطلق) کښې داخل دی۔

علامه ابن عبد الهادیؒ په التنقيح على التحقيق (١/٣٢) کښې داسې فرمائي :

والدليل على طهوريته قول النبي ﷺ : الماء لايجنب وقال الماء ليس عليه جنابة. قالوا ولانه غسل به محل طاهر فلم تزل طهوريته كما لو غسل الثوب ولانه لاقى محلا طاهرا فلا يخرج عن حكمه بتادية الفرض كالثوب يصلي فيه مرارا. انتهى۔

يعنې دليل په پاکوالي د مستعملو اوبو دا قول د نبي ﷺ دے چه اوبه نه جنبې کېږي او په اوبو باندې جنابت ( ناپاکي) نه راځي او علماؤ وئيلي دي چه په دغه اوبو پاك اندام د مؤمن وينځل شويدے نو پاکوالے ئے پاتې دے لکه چه سرے کپړه اووينځي. او بله دا چه اوبه د پاك محل سره ملاقات کړيدے نو د پاکوالي د حکم نه به نشي ويستلې چه هغه فرض اداء کول دي ( يعنې پدې باندې فرض - اودس - ادا کولے شي) لکه يوه کپړه چه په هغې کښې بار بار مونځ کولے شي۔

علامه شوکانيؒ هم په نيل الأوطار (١/٢٨) کښې فرمائيلي دي چه مستعملې اوبه طاهر مطهرې دي، او د مخالفينو د شبهاتو جوابونه ئې ورکړي دي، او دا ئې فرمائيلي دي چه مستعملې اوبه د طهوريت نه نه دي وتلې، او باقي دي په خپل اصلي حالت باندې چه طهارت دے، او په دې باندې دليل (خلق الماء طهورا) حديث دے، او حديث د مسح د نبي ﷺ سر لره په هغه اوبو سره چه کومې په لاس کښې باقي پاتې وې. نو ثابته شوه چه مستعملې اوبه طاهرې او مطهرې دي، که دوباره ئې څوك استعمال کړي نو هيڅ حرج په کښې نشته، مګر صرف دومره خبره ده چه که غير مستعملې اوبه ددې نه سيوا ملاويږي نو ددې اوبو استعمالول نه دي مناسب، ځکه چه د نبي ﷺ په زمانه کښې به داسې کار نه کيدلو چه يو سړي دې اودس کړے وي او بل يو سړي دې هغه راجمع کړے وي او اودس دې ئې پرې کړے وي، يائې د ځان له دوباره استعمال کړے وي۔

وجه داده چه په دې اوبو سره ګناهونه زائل شوي دي، نو هغه دې انسان ځان پسې نه راکاږي۔ خو دا مسئله ددې دپاره بيانيږي چه که دې مستعملې اوبو کښې چا لاس وهلے وي

یائے په کښې د خلې اوبه توئے کړے وی نو ددے استعمالول جائز دی۔

## اکمال : مستعملے اوبه په څه سره مستعملے کرځی ؟

په دے کښې اختلاف دے :

۱ – د امام ابو حنیفهؒ او ابو یوسفؒ په نیز په یو د دوه څیزونو سره :

۱ – یا خو په پے اودسئ زائل کولو سره. ۲ – یا په قربت (ثواب) حاصلولو سره.

۲ – او امام محمدؒ وائی : صرف په اقامت د قربت سره مستعملے ګرځی۔

۳ – امام زفرؒ او امام شافعیؒ وائی : اوبه صرف په حدث زائل کولو سره مستعملے ګرځی، فتدبر!

---

۲ – وَعَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ : نَهٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ أَنْ یُّبَالَ فِی الْمَاءِ الرَّاکِدِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : جابرؒ فرمائی : رسول الله ﷺ دے نه منع فرمائیلے ده چه په ولاړو اوبو کښې دے تشے متیازے اوکړے شی ۔ (مسلم)۔

**تشریح** : د راکد نه مراد هغه ولاړے اوبه دی چه نه بهیږی۔ پدے کښې متیازے کولو نه ځکه منع اوشوه چه که چرے اجازه د بول ورکړے شی نو بیا به هر سړے راځی او بول به پکښې کوی نو د ډیرو بولو په وجه به په کښې تغیر راشی ( خوند، رنګ، بوئی به ئے بدل شی) نو نجسے به شی اګرکه ستا پے دے یو کرت بول کولو سره به په هغے کښې تغیر نه وی راغلے خو دا سبب د تغیر ګرځی نو شریعت ځکه منع اوکړه۔

۲ – یا منع ځکه اوشوه چه بول غالبا طبعا بد ګڼړلے شی نو که ډیرو اوبو کښې هم اوکړے شی نو انسانان دا اوبه طبعا بدے ګڼړی اګرکه اوصاف ثلثه ؤ کښې ئے تغیر نه وی راغلے، نو پدے کښې د انسانانو د طبیعتونو لحاظ ساتلے شویدے او د نجاست خبره په کښې نشته۔

---

۳ – وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ یَزِیْدَ ﷺ قَالَ : ذَهَبَتْ بِیْ خَالَتِیْ اِلَی النَّبِیِّ ﷺ فَقَالَتْ : یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ! اِنَّ ابْنَ أُخْتِیْ وَجِعٌ فَمَسَحَ رَأْسِیْ وَدَعَالِیْ بِالْبَرَکَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ

فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهِ فَنَظَرْتُ اِلٰى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : سائب بن يزيدؓ فرمائي : زما خالې (ترور) زه نبي ﷺ ته بوتلم او عرض ئې اوکړو : يا رسول الله ! زما دا خورئيې بيمار دے، نو نبي ﷺ زما په سر لاس راخکلو او ما دپاره ئې د برکت دعاء اوکړه، بيا ئې اودس اوکړو، نو ما د هغوئ د اودس نه پاتے شوو اوبو نه اوڅکلے، بيا زه د نبي ﷺ شا طرفته اودريدم او د هغوئ مُهر نبوت مې د هغوئ د دواړو اوګو ترمينځه اوليدلو چه د ډولۍ د زونډۍ (بټنې) پشان وو.

## تعارف : د سائب بن يزيد ﷺ :

هو السائب بن يزيد بن سعيد بن ثمامة الليثي أو الأسدي أو الهزلي، وړوکے صحابي دے په دويم کال د هجرت پيدا شوے دے، او دپلار سره حجة الوداع ته حاضر شوے دے داوو کالو په عمر باندے. او د ماشومانو سره ثنيّة الوداع مقام ته د نبي ﷺ د استقبال دپاره وتلے وو کله چه نبي ﷺ د غزوه تبوك نه واپس راتلو. ټول اووه (٧) احاديث ترے نقل دي. د مدينے د بازار ګورنر مقرر شوے وو په زمانه د خلافت د عمر فاروق رضي الله عنه کښے. په (٩١) سنه کښے وفات شوے دے. دا په مدينه کښے آخري صحابي دے چه وفات شو.

## مناسبة الحديث :

دا حديث ددے دپاره راوړل شوے دے چه مستعملے اوبه پاکے دي.

**تشريح** : فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ : وَضوء لفظ دلته دوه معنے دي : ١- يو دا چه هغه اوبه چه لوټه کښے پاتے شوي وي د اوداسه نه. ٢ - دويم هغه اوبه چه اندامونه پرے وينځلے شوي وي، او مستعملے شوے وي. بهر حال حديث ددے دپاره راوړے شوے دے چه مستعملے اوبه پاکے دي.

اوس که څوك دا **سوال** اوکړي چه د نبي ﷺ فضلجات وغيره پاك وو، نو د هغه استعمال کړے اوبه به هم پاکے وي په خلاف د أمت ؟

ددے **جواب** دادے چه نبي ﷺ په احکامو کښے د أمت سره شريك دے، هغه به د نجاست سره هغه کار کولو، کوم چه نورئې امت ئې کوي. ترڅو چه دا ثابته نشي چه داکار

د نبي ﷺ پورې خاص دې، او په دې هيڅ دليل نشته. نو دا يو دليل دے دپاكوالی د مستعمل شده اوبو، نو اوبه صرف دوه قسمه دی : (١) طاهرې (٢) نجسې. نور اقسام په كښې نشته چه طاهر غير مطهر وغيره. هغه اقسام صرف عقلی دی.

زِرِّ الْحَجَلَةِ : د زر جمع أزرار ده، تنړئ او بټنې ته وائی كومې چه په جامو او څادرونو باندې وهلے شی، او حجله په فتحے د حاء اوجيم سره، د ناوې ډولئ ته وائی. نو معنیٰ داده : چه د نبي ﷺ خاتم النبوت پشان د بټنې د ډولئ وو. ٢ - بعضو نسخو كښې دا لفظ (رز الحجله) دے په تقديم د راء سره، نو معنیٰ داده چه پشان د اګئ د زركے وه.

د نبي ﷺ د خاتم النبوه په باره كښې مختلف روايات دی، په بعضو كښې (مثل بيضه الحمامه) راغلی، كما رواه جابر بن سمره عند الترمذی.

او بعضو كښې د زركے اګئ مطابق راغلی، او په بعضو كښې د ډولئ د بټنې پشان ذكر كيږی، نو دے كښې هيڅ تعارض نشته، بلكه دا بناء دی په تخمين او اندازے لګولو باندې، بعضے صحابوؓ يو شان اندازه لګولے ده، او د هغے مثال ئے د خپل ذهن مطابق وركړے دے. اوبعضو بل شان اندازه لګولے ده نو جدا مثال ئے وركړے دے په دے كښې هيڅ نقصان نشته.

**فوائد الحديث** : ١ - نيكانو خلقو ته ماشومان د دعاء دپاره بوتلل مستحب دی.

٢ - مستعملے اوبه پاكے دی. ٣ - د نبي ﷺ خوش اخلاقی چه دے ماشوم ورته شا مباركه باندے ګوتے وهلے او هغه ترے نفرت نه دے كړے، بلكه شفقت ئے پرے اوكړو.

٤ - خاتم النبوة (مهر نبوت) نه مراد د غوښے هغه ټوكړه ده چه د نبي ﷺ د دواړو اوګو ترمينځه د زركے د اګئ پشان وه. ديته څكه مهر نبوت وائی چه پخوانو انبياؤ عليهم السلام ته الله تعالى په خپلو كتابونو كښې وئيلی وو، چه آخری پيغمبر را روان دے او د هغه علامه داده چه د اوګو ترمينځه به ئے د غوښے يوه ټكړه وی. په دے وجه نبي ﷺ چه كله مبعوث شو نوعام نصاراؤ به دهغه شا كتله، او پيژندل به ئے چه دا هغه نبي آخر زمان دے، دكوم خبر چه په مخكنو كتابونو كښې وركړے شوے دے، نو دا به د نبوت او رسالت يوه نښه وه.

## الفصل الثاني - دويم فصل

٣ - عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ : سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَنِ الْمَاءِ يَكُوْنُ فِي الْفَلَاةِ مِنَ الْأَرْضِ وَمَا يَنُوْبُهُ مِنَ الدَّوَابِّ وَالسِّبَاعِ فَقَالَ : اِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَابْنُ مَاجه وَفِيْ أُخْرٰى لِأَبِيْ دَاوُدَ : فَاِنَّهُ لَا يَنْجُسُ.

**ترجمه** : ابن عمرؓ فرمائي : رسول الله ﷺ نه د هغه اوبو باره كښې تپوس اوشو چه په ځنګل كښې وي او اكثر ځناور او درنده ګان هغې ته وخت په وخت راځي - نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : كله چه اوبه دوه چاټيۍ وي نو هغه ناپاكي نه قبلوي (يعنے نه ناپاكه كيږي)- احمد، ابوداود، ترمذي، نسائي، دارمي، ابن جه- او د ابوداود په يو بل روايت كښې دي چه نه نجسے كيږي-

**تشريح** : لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ : ددې سره يو قيد اولګوئ چه معنىٰ واضحه شي (لم يحمل الخبث اى اذا لم يتغير أحد اوصافه الثلثة) يعنے دا به هله نجسے وي كله چه خوند، رنګ، بوئي كښې ئے تغير راشي، او دا هله كيږي چه كله ډير حيوانات پكښې بول اوكړي يائے په كښې هميشه كوي، اوكه يو كرت دوه كرت ئے په كښې اوكړي نو اوبو باندے ددې څه فرق نه پريوځي، بلكه اوبه په خپل اصل حالت باندے سپينے مزيدارے پاتے وي، خوند يا رنګ يا بوئي نه وي متغير شوے نو دا پليتے نه دي-

په دې حديث كښې يوه بله مسئله ده چه د حيواناتو د جوټے څه حكم دے ؟-

نو **اول** : په دے كښې اتفاق دے چه د كومو حيواناتو غوښه خوړلے كيږي د هغے جوټه پاكه ده، لكه غوا، ميښه، ګډه، چيلۍ، چرګه وغيره-

**دويم** : غير مأكول اللحم حيوانات دي، نو ددے په جوټه كښې اختلاف دے :

١ - **اول قول** : د امام مالكؒ، شافعيؒ، حسنؒ، عطاءؒ، زهريؒ او ابن المنذرؒ دے : د دوئ په نيز د ټولو حيواناتو جوټه پاكه ده- (المغني : ١/٧٢)-

د دوئ سره په دے باب كښې ډير دليلونه دي (فتاوى الدين الخالص : ٢/٢٩١) كښې

اوګوره)، بعضے **دلائل دادی :**

١ - **اول دلیل** : دا چه (الماء طهور لا ینجسه شئ) قانون دے، چه د اوبو په اوصاف ثلثه کښې یو وصف نه وی بدل شوے اوبه نه پلیتیږی. ترڅو پورے چه دلیل د نجاست رانشی. ٢ - **دویم دلیل** : ډیر احادیث وارد دی په دے کښې چه د سباع البهائم جوټه پاکه ده، لکه روستو حدیث (١٠) د داؤد بن صالح کښې د پیشو جوټے ته عائشے پاکه وئیلے ده. دارنګه حدیث د کبشة کښې ورته پاکه وئیلے شویده، کما سیأتی.

٣ - **روستو** حدیث نمبر (١١) د جابر کښې راځی (وبما أفضلت السباع کلها) اګرچه دا حدیث سندا ضعیف دے. خو د نورو ملګرو سره صحیح معنی ورکوی.

٤ - دارنګه فصل ثالث کښې د عبد بن عبد الرحمن په روایت کښې د عمر رضی الله عنه په عمرو بن العاص باندے رد، او بیا دا وینا چه (فانا نرد علی السباع وترد علینا) أخرجه مالك فی الموطأ (١٧/١) دلیل دے چه د ټولو سباعو جوټه پاکه ده.

٥ - دارنګه حدیث د أبو سعید خدری په باره د حوضونو د مکے او مدینے کښې دلیل دے چه د هر قسم حیواناتو جوټه پاکه ده. په هغے کښې دا الفاظ دی (فقال : لها ما حملت فی بطونها، ولنا ما غبر طهور) رواه ابن ماجة، کما سیأتی فی المشکاة (٥١/٢) وان کان سنده ضعیفا. لیکن کله چه مجموعه احادیث راجمع شی نو معنیٰ ئے صحیح وی.

٢ - **قول ثانی** : د احنافو دے - وهو قول أحمد أیضا - چه د سباع البهائم جوټه پلیته ده، د دوئ سره په دے قول باندے صرف دوه دلیلونه دی :

١ - **یو** مفهوم د حدیث القلتین دے، چه که اوبه د قلتین نه کمے وی نو د سباع او د اوبو په وجه پلیتیږی.

**جواب** : مونږ مخکښے وئیلی دی چه په دے کښې دلیل د نجاست مفهوم دے، او د هغه احادیثو منطوق، دلیل د طهارت دے، اوکله چه د منطوق اومفهوم تعارض راشی، نو ترجیح منطوق لره وی.

٢ - **جواب** : د حدیث القلتین د مفهوم نه استدلال کول هم صحیح نه دی، وجه داده چه هلته نجاست د جوټے په وجه نه دے راغلے، ځکه چه حدیث کښې دا خبره نه ده راغلے

چه د سباع البهائم جوټه پاکه ده او که نجسه ؟ بلکه د (وما ینوبه) لفظ دے، یعنے د حیواناتو بدنونه ناپاك دی غالبا، ګندونه وریورے نختی وي، او اوبو ته داخل شی، بیا کله چه په کښے بول.متیازے هم اوکړي نو په دے وجه پلیتیږي۔ (لکه چه دا د حیواناتو عادت دے چه کله اوبه اوڅکی نو متیازے هم په کښے کوی)۔ په دے کښے د جوټے هیڅ تذکره نشته، او (ینوب) لفظ دلیل دے په هغه څه چه مونږ اووئیل۔ او که صرف خله په کښے اووهی نو جوټه ئے پاکه ده، کله چه تاته یقینی معلومه ده چه نور نجاست په کښے نه دے راغلے، د بول په وجه۔ فتدبر !۔

**تعارض** : په دے مقام کښے د احنافو په قولینو کښے تعارض دے، اوګوره چه په باب د قلیل الماء او کثیر کښے حدیث د قلتین رد کوی۔ اومختلفے بهانے د هغه د غورځولو دپاره جوړوی چه دا حدیث ضعیف دے او مضطرب دے۔ او بیا چه کله تپوس اوشی چه په نجاست د سور البهائم څه دلیل دے ؟ نو بیا دوئ ددے نه استدلال کوی او ښه ئے قوی ګڼړي، دا هم وجه د ضعف ددے قول ده۔

۲ - **دویم دلیل** د احنافو : حدیث د ولوغ الکلب دے چه په هغے کښے اووه ځله وینځلو حکم شوے دے په دے وجه چه نجس دے۔

لیکن ددے نه جواب دادے چه په دغه حدیث کښے د اووه ځلو وینځلو حکم تعبدی دے، او په دے وجه نه دے چه دا نجس دے، لکه دا مذهب د امام بخاریؒ او امام مالکؒ هم دے۔ او دلیل دا وائی چه ښکاری سپے کله د ښکار پسے لاړ شی، په ښکار باندے غاښونه اولګوی، او بیا ئے مالك ته راوړی نو د هغے خوړل بالاتفاق حلال دی، معلومه شوه چه جوټه ئے پاکه دهٔ (فما هو جوابکم فی هذا فهو جوابنا فی ذلك)۔

لیکن **راجح قول** دادے چه د ټولو سباعو (درنده ګانو) جوټه پاکه ده، سیوا د کلب او د خنزیر نه۔

۲ – او هر چه حمار او بغل دے، نو احناف وائی ددے جوټه مشکوك فیه ده، دلیل دا وائی چه د صحابوؓ په دے باره کښے اختلاف دے، بعض صحابهؓ ورته پاکه وائی، لکه ابن عباس (فتح القدیر : ۹۹/۱)، او بعضے ورته نجس وائی، لکه ابن عمرؓ وغیره۔ نو اقوال په

کښې متعارض دی.

دارنګ مونږ قیاس ته رجوع اوکړه نو هغې کښې هم تعارض وو، ځکه چه مونږ ددې غوښې ته اوکتل چه نجس ده، او جوټه خو ددې نه پیدا کیږی، نو دا تقاضا کوی چه جوټه دې هم نجس شی، لیکن بل طرفته مو عَرق (خولې) ته اوکتل نو هغه پاکه ده، ځکه چه نبی ﷺ په دې شیانو سورلی کړې ده، نو دا تقاضا کوی چه جوټه به ئې هم پاکه وی، ځکه د خولې اوجوټې یو حکم دې. نو هر کله چه تعارض د قیاسینو هم راغلو نو زمونږ شك شو په طهارت او نجاست کښې.

لیکن نور علماء په دې باندې رد کوی چه د امام ابو حنیفهؒ په دې باره کښې **شک** شو نو – الی یوم القیامة – د احنافو په دې باره کښې شك شو، او ددې شك نه خو دا نه لازمیږی چه زمونږ دې هم په کښې شك وی ترقیامته پورې. بلکه شریعت کښې داسې مسائل نشته چه د ټول امت دې په کښې شك وی، که چرې د یو عالم شك وی، نو د نورو علماؤ شك نه وی، ضرور به یا نجس وی یا پاکه. نو مونږ چه دلائل مذکوره ۆ ته اوکتل نو مونږ ته دا ثابته شوه چه د خر اوقچر جوټه پاکه ده، ځکه چه د سباع البهائم جوټه پاکه شوه نو د خر او قچر جوټه خو په طریقه اولیٰ سره پاکه ده. اوکه چرې ددې جوټه نجس وې نو الله او رسول ﷺ به بیان کړې وې. (کذا فی فتاوی الدین الخالص : ۱/۲۹۵).

۴ – او هرچه پیشو ده، نو ددې په جوټه کښې احناف وائی : چه دا نجس ده په نجاست خفیفه سره، یعنې مکروه ده. دوئ استدلال کوی په حدیث د ترمذی (۱/۲۷) عن محمد بن سیرین عن أبی هریرة عن النبی ﷺ قال : یغسل الاناء اذا ولغ فیه الکلب سبع مرات، واذا ولغت فیه الهرة غسلت مرة). قال الترمذی : هذا حدیث حسن صحیح.

دغه شان نور احادیث په دارقطنی او ابوداود کښې راغلی دی، چه په هغې کښې د لوښی په وینځلو حکم راغلې دې د جوټې د پیشو نه. او غسل (وینځل) دلیل د نجاست دې.

**جواب** : دا حکم د نجاست په وجه نه دې، بلکه د نظافت حاصلولو دپاره دې، یعنې طاهر خو دې، لیکن نظافت په وینځلو کښې دې. او دلیل په دې باندې (انها لیست بنجس، انها من الطوافین علیکم والطوافات) حدیث دې.

٢ - ائمه ثلاثه ؒ او ابویوسف ؒ په نیز د پیشو جوټه بلا کراهته پاکه ده۔ (وهو القول الراجح المعول علیه)۔ په دې باندې **دلائل** دادي :

**١ - اول دلیل** : روستو حدیث نمبر (٩) د کبشه صحیح حدیث را روان دې چه په هغې کښې د نبي ﷺ فرمان دې (انها لیست بنجس، انها من الطوافین و الطوافات)، دا صریح دې په عدم نجاست کښې۔ او ابو قتادة ؓ ورته لوښې هم راکوږ کړیدې، دپاره ددې چه پیشو ښې اوبه اوڅکې۔ دارنګه روستو حدیث د داؤد بن صالح کښې د عائشة ؓ په روایت هم دغه الفاظ راځي (انها لیست بنجس) ۔ او د کوم ځائې نه چه پیشو خوراك کړې دې د هغه ځائې نه عائشې ؓ هم کړیدې۔

او احناف چه حدیث د ابو هریرة ؓ (فی الدارقطني والمستدرك) پیش کوي چه (الهرة سبع) نو د سبعیت نه دا نه لازمیږي چه جوټه دې هم ناپاکه وي، ځکه دا احادیث دلیل دې چه د پیشو جوټه پاکه ده۔

٢ - علاوه لا دا چه که (سبع) هم شي نو د سبع جوټه هم پاکه ده۔ کما مرّ تفصیلا، فی حدیث أبي سعید فی الحیاض ویأتی)۔

٣ - دارنګه په دغه حدیث د ابو هریرة ؓ کښې مقال هم دې، کما فی النیل (١/٤٥)۔

نو حق قول دادې چه د هرقسم حیواناتو جوټه پاکه ده، او په دې کښې أمت دپاره آسانی ده۔ او دا د شریعت د سماحت سره عین مناسبه خبره ده۔ ددې مسئلې ښه تفصیل فتاوی الدین الخالص (٢/٢٨٨)، نیل الأوطار (١/٤٤)، تحفه الأحوذي (١/٦٧) او المغني (١/٦١) کښې اوګورئ۔

**درجة الحدیث** : رواه أحمد وأبو داود والترمذي والنسائي والدارمي وابن ماجة۔

حدیث القلتین باره کښې حافظ په فتح الباري کښې فرمائي : رواته ثقات، وصححه جماعة من أهل العلم . ابن مندة ؒ فرمائي : هو صحیح علی شرط مسلم۔

یحیی بن معین ؒ فرمائي : الحدیث جید الاسناد ۔ امام بیهقي ؒ فرمائي : اسناد صحیح، موصول ۔ امام حاکم ؒ فرمائي : حدیث صحیح علی شرط الشیخین. ووافقه الذهبي ۔ ملا علی قاري ؒ د طحاوي ؒ نه نقل کوي فرمائي : خبر القلتین صحیح، واسناده ثابت۔

**عبد الحی لکنویؒ په السعایه (۳۷۷/۱) کښې فرمائی :**

والذی یظهر بعد ادارة النظر من الجوانب أن نفس الحدیث صحیح، سالم من المعارضة ومخالفة الاجماع۔

**دارنګه شاه ولی الله صاحبؒ هم ورته صحیح وئیلی دی، کما مرّ۔**

**مولوی رشید احمد صاحب په الکوکب الدری (۷۲) کښې فرمائی :**

وقد اخذ الشافعی فیما اختاره بحدیث جید الاسناد قابل للاعتماد۔

**بیا فرمائی :** ان فی تضعیف سند الحدیث انکار البداهة۔

**شیخ البانیؒ په صحیح أبی داود رقم (۵۸۵٦) کښې ورته صحیح وئیلی دی۔**

**او کومو علماؤ چه ورته ضعیف وئیلی دی - لکه ابن عبد البرؒ په التمهید کښې، قاضی سهیل بن اسحقؒ او ابن العربیؒ - نو هغه د اضطراب فی السند والمتن په وجه دے، او ابن حجرؒ په تلخیص کښې دهغه اضطرابو نو جوابونه ورکړیدی، د ابن دقیق العیدؒ وغیره نه ئے نقل کړی دی۔ اومونږ هم هغه بیان کړی دی۔ اشاره۔ نو حدیث صحیح او متصل دے، اضطراب په کښې نشته۔**

---

**٤ - وَعَنْ أَبِی سَعِیدٍ الْخُدْرِیِّ ﷺ قَالَ : قِیلَ : یَا رَسُوْلَ اللهِ ! ، أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ وَهِیَ بِئْرٌ یُلْقَی فِیهَا الْحِیَضُ وَلُحُومُ الْکِلَابِ وَالنَّتْنُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : إِنَّ الْمَاءَ طُهُوْرٌ لَا یُنَجِّسُهُ شَیْءٌ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِیُّ وَالنَّسَائِیُّ.**

---

**ترجمه :** ابو سعید الخدریؓ فرمائی : نبی ﷺ ته چا عرض اوکړو چه یا رسول الله ! آیا مونږ د بضاعه کوهی نه اودس کولے شو حال داچه دا داسے کوهے دے چه په هغے کښې د حیض د وینے کپړے، د سپو غوښے او ګندګی اچولے شی ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اوبه پاکے دی، هیڅ شے هغه نشی ګنده کولے۔ (ترمذی، ابوداود، نسائی)۔

**تشریح :** أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ : دا حدیث مشهور دے په حدیث د بئر بضاعه

سره، او بضاعه په ضمه د باء، او بعضې وائی کسره هم جائز ده، د یو سړی نوم دے، چه دا کوهے ئے په محلہ د بنی ساعده کښې په مدینه کښې کنستې وو، د هغه په نوم مشهور شوے دے۔

**يُلْقَى فِيهَا الْحِيَضُ** : په کسره د حاء او فتحے د یاء سره، جمع د حیضه ده په کسره د حاء او سکون الیاء سره۔ او دا هغه ټوټو ته وائی چه زنانه ئے په حیض کښې استعمالوی۔

**تنبیه** : په دے کوهی کښې صحابه کرامؓ او دهغوئ زنانهؤ د حیض ټوټے قصدا نه ارتولے ځکه چه صحابهؓ ډیر پاك خلق وو، او د هر انسان پاکی او صفائی خوښه وی، اګرچه کافر ولے نه وی، پا تے لا بیا صحابهؓ چه اشرف المخلوقات بعد الأنبیاء دی۔ نو بناء په دے باندے ددے لفظ دوه معانی دی :

١ – اوله معنیٰ : یلقی یعنے د پخوا زمانے راسے په دے کښے دا ګندونه اچولے شوی دی، دا نه دے پاك شوے، نو د صحابوؓ وهم (ګمان) راغلو چه دابه ناپاك وی نو ځکه ئے تپوس اوکړو. ٢ – دویمه معنیٰ : اوس په کښې غیر اختیاری ګندونه او د حیض ټوټے او د سپو غوښے غورځولے شی، یعنے بادونه او سیلابونه ئے ورغورځوی۔ ځکه دا د بنی ساعده په باغ کښې وو او هغه باغ ته به خلقو دا ګندونه ګذارل نو بیا به بادونو کوهے ته ګذارل او دلیل پدے باندے لفظ د یلقی دے (مجهول صیغه ده) یعنی ورغورځولے شی غیر اختیاری۔

**إِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ** : دا حدیث د امام مالك مستدَل دے، هغه په عموم ددے حدیث استدلال کوی په پاکوالی د تولو اوبو باندے، قلیلے وی که کثیرے، ترڅو چه یو د اوصاف ثلثه ئے نه وی بدل شوے، او الماء کښې الف لام استغراقی او جنسی دی۔ وهو الحق۔

شوافع وائی : دا حدیث عام دے او حدیث د قلتین خاص دے، او (الخاص یقضی علی العام، ویحمل علیه) او خاص بیان دعام کوی، لیکن جمهور ورته جواب ورکوی چه دا حدیث منطوق دے، او حدیث القلتین مفهوم دے، او عند التعارض منطوق لره اعتبار وی۔ او د شوافعو رائے شاه ولی الله صاحبؒ په حجة الله، او علامه عبید الله په مرعاة کښې او ابن القیم په جامع الفقه کښې غوره کړیده۔ لیکن راجح قول د امام مالك او اهل ظواهرو

دے دوجے دلائل مذکورونه۔

او دا حدیث د احنافو د مذهب خلاف دے، چه هغوئ عشر فی عشر، یا رائے د مبتلیٰ په سره نجاست او طهارت د اوبو معلوموی۔ نو هغوئ جوابونه کوی۔

١ - یو جواب دا کوی چه (الماء) کښے الف لام عهدی دی، یعنے خاص اوبه مراد دی چه هغه د بئر بضاعه اوبه دی، یعنے دا اوبه د بئر بضاعه په دغه حالت کښے نه پلیتیږی، او دا تخصیص څکه شوے دے چه دا اوبه ډیرے وے، عشر فی عشر ته رسیدلے۔

او طحاویؒ (١١/١) د واقدی نه نقل کوی چه (کان طریقا الی البساتین)۔

لیکن ددے نه **جواب** دادے چه واقدی باره کښے د علماؤ فیصله ده چه دا کذاب راوی دے (کذا فی میزان الاعتدال) نو روایت له ئے هیڅ اعتبار نشته۔

٢ - **دویم جواب** دادے چه د اخبره چه واقدی نه ثابته ده نو هغه سند باره کښے علامه زیلعیؒ په نصب الرایه (١١٤/١) کښے فرمائی: (وهذا سند ضعیف مرسل) او د واقدی متصل مسند روایت نه دے معتبر، پاتے لا مرسل۔ او درایه (٢٧) کښے حافظ فرمائی: (هذا اسناد واه جدا)۔

٣ - **دریم جواب**: که اومنو چه دا روایت د واقدی نه ثابت دے نو بیا د واقدی د کلام معنیٰ داده چه ددے کوهی نه به اوبه باغونو ته په سانیه سره را نقل کیدے، لکه د آرټ پشان اوبه به ترے را ویستل کیدے، او بیا به د اوښانو په ذریعه باغونو ته اړول کیدلے۔ او دا تاویل او احتمال حق دے، دا وجه ده چه شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ فرمائی:

ولم یکن فی المدینة ماء جار۔

په مدینه کښے د اوبو قلت زیات وو، جاری اوبه په کښے نه وے، بلکه مدینے والو به د لرے علاقو نه لکه سُقیا علاقے نه اوبه راوړلے، او درے ورځے مزل به ئے ورپسے کولو۔

او علامه نور الدین علی سمهودیؒ په وفاء الوفاء(٩٥٨/٣) کښے فرمائی: (لاطباق مورخی المدینة العالمین باخبارها علی تسمیتها بئرا لا کما قال بعض الحنفیة أنها کانت عینا جاریة الی بساتین اذ المشاهدة ترده) انتهی۔ یعنی د مدینے د تولو تاریخ دان علماؤ پدے اتفاق دے چه دا (بئر بضاعه) په کوهی باندے یادیږی او دا سے نه ده لکه چه بعض احناف

وائي چه دا باغونو ته جاري چينه وه ځکه چه مشاهده ددے تردید کوی۔
بل دلیل د عدم جریان دادے چه وفاء الوفاء کښے علامه سمهودیؒ حدیث را وړیدے چه نبی ﷺ بئر بضاعه کښے لاړے توکلے، نوخلقو به په هغے سره تبرك حاصلولو۔او مریضانو به وئیل ( اغسلونی من بئر بضاعة) ۔ اسماء بنت أبی بکرؓ فرمائی : (کنا نغسل المرضی من بئر بضاعة ثلثة أیام فیعافون آهـ) نو که دا اوبه جاری وے نو د تبرك بیا څه معنی جوړیږی ځکه د پیغمبر ﷺ لاړے خو به په اول ځل غورځولو سره سمدست ختمے شوے وے۔ (کذا فی أبکار المنن ص : ٢٤) للشیخ المبارکفوریؒ۔
او دا اوبه عشر فی عشر هم نه وے، ځکه امام ابوداودؒ فرمائی : زه مدینے ته لاړم او بئر بضاعه مے گز کړو په خپل څادر سره او په هغے مے ورخور کړو، نو د هغے د پلنوالی مقدار شپږ گزه وو، او د خپل استاذ قتیبه بن سعیدؒ نه هم نقل کوی فرمائی : چه ما د خپل استاذ نه آوریدلی دی چه فرمائیل : ما د بئر بضاعه د قیّم نه تپوس اوکړو، چه دا اوبه څومره ژورے دی ؟ هغه اووئیل : کله چه زیاتے وی نو نامه ته رسیږی، اوکله چه کمے وی نو ما دون العورة ته رسیږی۔
او امام ابوداودؒ پخپله فرمائی : ما د هغه باغ د څوکیدار نه تپوس اوکړو چه ددے کوهی په بناء (آبادیٔ) کښے د نبی ﷺ د زمانے نه څه تغیر راغلے دے ؟ هغه اووئیل : نه۔
بعض احناف – لکه نیموی په آثار السنن کښے – وائی : چه په دے کوهی باندے دوه سوه کاله تیر شوی دی د نبی ﷺ د زمانے نه را پدیخوا، نو ضرور به په دے کښے تغیر پیدا شوے وی، ورکوتے شوے به وی۔
لیکن دا خبره غلطه ده، د دوه وجهو نه : ١ – یو د امام ابوداودؒ په مذکوره قول سره۔ ځکه هغه د هغے د قیّم نه تپوس کړے دے چه دا خو متغیر شوے نه دے، هغه وئیل نه دے متغیر شوے، أو صاحب البیت أدریٰ بما فیه۔ نو ددے قیّم خبره به راجحه وی۔
ځکه کوهے زر نه خرابیږی، هغه ژور وی، د سیلابونو اوهواگانو او بارانونو نه په أمن وی، نو په آبادیٔ باندے دکوهی قیاس کول صحیح نه دی، کما فعله۔ او ددے تائید په قول د علامه سمهودیؒ باندے کیږی هغه فرمائی : (ومن شاهد بئر بضاعة علم انه کذلك

لانها فی وهدة وحولها ارتفاع)۔ یعنې دا کوهې په اوچته زمکه کښې وو او ګیر چاپیره ددې نه لوړ والې وو، نو بارانونه ئې نشې خرابولې۔ الوفاء (۳/۹۵۸)۔

۲ – دویمه وجه دا ده چه اوبو ته د انسانانو ډیر ضرورت دې، او انسانان د نبی ﷺ د زمانې نه په مدینه کښې زیات شوی دی، نو د قیاس تقاضا هم داده چه کوهې دې نور هم غټ شوې وی۔

۲ – **دویم جواب** احناف ددې حدیث نه دا کوی چه : دا حدیث په دفع د وهم (ګمان) د صحابوؓ کښې وئیلې شوې دې، چه د هغوئ دا وهم وو چه دې کوهی ته به پخوا ګندګی پریوتې وی او غاړو پورې به ئې نختې وی، نو اوبه به دې سره پلیتې ګرځیدلې وی۔ ځکه چه د عشر فی عشر نه کمې اوبه په وقوع د نجاست سره پلیتیږی۔

دویم وهم : دا وو چه په دې کښې خو ګندونه چا نه دی اچولی نو کیدې شی چه هواء وغیره ورته ګندونه غورځولی وی، او حقیقت کښې ورته چا ګندګی نه ګذارله، نو په دې وجه ئې تپوس اوکړو چه دا اوبه به پاکې وی که ګنده ؟۔ او دا د عشر فی عشر خلاف نه دې۔نو نبی ﷺ جواب ورکړو چه هسې شکونه مه کوئ اوبه پاکې دی، ترڅو چه تاسو په کښې ګندګی نه وی لیدلی۔

**جواب** : دادې چه د اخبره صحیح نه ده چه ګندونه ورته یقینا نه غورځیدل، بلکه د (یلقی فیها الحیض) مضارع صیغې نه معلومیږی چه دا ګندونه به وخت په وخت ورغورځیدل، مضارع دلالت په تجدد او حدوث باندې کوی، نو پخوا به هم ورغورځیدل او دې زمانه کښې به هم بادونو ورغورځول، او بیا هم نبی ﷺ حکم اوکړو په پاکئ ددې اوبو باندې، قلیلې وی که کثیرې۔ قطع نظر د بئر بضاعه نه او عام الفاظ ئې ذکر کړل چه ان الماء طهور هر قسم اوبه پاکې دی که د بئر بضاعه اوبه وی او که نورې اوبه وی لکه چه داسې عموم په حدیث د ابن عباس کښې هم راغلی دې ( ان الماء لایجنب ) رواه الترمذی وابوداود بسند صحیح ۔ چه اوبه نه پلیتیږی مګر کله چه خوند رنګ بوئی کښې ئې فرق راشي نو دا دلیل دې چه د نبی علیه السلام مقصد عموم دې او تخصیص د بئر بضاعه نشته ځکه که تخصیص د بئر بضاعه مراد وې نو بیا به بل ځائې کښې داسې نه وئیلې چه

(ان الماء لايجنب) اوبه نه پليتيږي ـ فتدبر!

نو داسې تاويل په حديث كښې ـ چه الفاظ پرې دلالت نه كوي ـ صحيح نه دې ـ پكار ده چه مذهب حديث ته ور اوګرځول شي، نه دا چه حديث خپل مذهب ته په تاويلاتو سره را تاؤ كړې شي ـ فتدبر وانصف!.

٣ ـ **دريم جواب** دا كوي : چه دا حديث سندا ضعيف دې، او ددې دپاره دوه وجې بيانوي، ١ ـ اول دا چه ددې حديث سند كښې عبيد الله بن عبد الله بن رافع بن خديج دې، اوحافظ ابن حجرؒ په تقريب (٣٧٢) كښې فرمائي : دا مستور الحال راوي دې، نو دا يوه وجه د ضعف ده. ٢ ـ دويمه وجه داده چه ابن القطانؒ په كتاب الوهم والايهام كښې وئيلي دي چه ددې حديث په سند كښې اختلاف او اضطراب دې، او دا وجه نيموي په شد او مد سره په آثار السنن كښې ذكر كړيده، او بيائې وئيلي دي (والحق معه).

او هغه اضطراب دادې چه بعض رواياتو كښې عبيد الله بن عبد الله بن رافع بن خديج راځي، او بعضو كښې عبيد الله بن عبد الرحمن، او په بعضو كښې عبد الله بن عبد الله بن رافع، او په بعضو كښې عبد الرحمن بن رافع راځي ـ چه دا سبب د ضعف السند دې ـ (كذا في التحفه ٦٦/١، وأبكار المنن ٢١).

**جواب** : ١ ـ د اول شق نه دادې چه عبيد الله راوي ته امام احمد بن حنبلؒ او يحيى بن معينؒ چه د جرح اوتعديل امامان دي ثقه وئيلي دي ـ او دا حديث ئې صحيح ګڼړلې دې ـ او ابن حبان په ثقاتو كښې ذكر كړيدې، نو ثابته شوه چه ددې امامانو په نيز دا راوي مستور الحال نه دې، بلكه معروف الحال دې، او اعتبار هغه چالره دې چه راوي ورته معلوم وي، نه هغه چاله چه هغه ته مجهول وي، او عارف مقدم وي په غير عارف باندې په اعتبار كښې ـ

٢ ـ د دويم شق نه جواب دادې چه اعتراض د اضطراب السند بې ځايه دې ځكه اضطراب د سند په هغه وخت كښې سبب د ضعف الحديث ګرځي چه كله ټول سندونه په قوت او صحت كښې مساوي او برابر وي، اودلته داسې نه ده، بلكه روايت د عبيد الله بن عبد الله بن رافع بن خديج ـ كوم چه امام ترمذيؒ راوړې دې ـ راجح دې په نورو رواياتو

بانـدے - کـوم چـه دارقـطنـیؒ راوړیـدی - وجـه داده چـه د هغه روایاتو مدار په محمد بن اسحق دے، او په هغه باندے په دے روایاتو کښے اختلاف او اضطراب راغلے دے۔ او هرچه روایت د امام ترمذیؒ دے نودا صحیح السند دے، هیڅ شك شبه په کښے نشته۔ امام ترمذیؒ خپله فرمائی : هذا حدیث حسن، وقد جود أبو أسامه هذا الحدیث ولم یرو حدیث أبی سعید فی بئر بضاعه أحسن مما روی أبو أسامه، آه۔

دارنګه دے حدیث ته امام احمدؒ، ابن معینؒ ابن حزمؒ حاکمؒ، شوکانی، شمس الحق عظیم آبادیؒ، مبارکفوریؒ، احمد شاکرؒ، شیخ البانیؒ او نورو علماؤ هم صحیح وئیلی دی۔ انظر ارواء الغلیل (١/٤٥ رقم - ١٤) الاستذکار لابن عبد البر (١/١٦١)۔

او علامه عبد الحی لکهنویؒ په السعایه (١/٣٦٣) کښے ددے اعتراض ډیر ښه جواب ورکړیدے۔ فراجعه ان شئت۔

---

٦ - وَعَنْ أَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ قَالَ : سَأَلَ رَجُلٌ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ فَقَالَ : یَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّا نَرْکَبُ الْبَحْرَ وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِیْلَ مِنَ الْمَاءِ، فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهٖ عَطِشْنَا أَفَنَتَوَضَّأُ بِمَاءِ الْبَحْرِ ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : هُوَ الطُّهُوْرُ مَاؤُهٗ وَالْحِلُّ مَیْتَتُهٗ). رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِیُّ وَأَبُوْ دَاوٗدَ وَالنَّسَائِیُّ وَابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِیُّ .

**ترجمه** : ابو هریرةؓ فرمائی: یو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو: یا رسول الله ! مونږ په (تریخ) دریاب کښے د کشتۍ په ذریعه سفر کوو، اوځان سره لګے شان اوبه اخلو، که چرے په هغے مونږ اودس اوکړو نو تګی به شو، نو آیا مونږ د سمندر په اوبو اودس کولے شو ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : د سمندر اوبه پاکونکی دی او ددے مرداره حلاله ده۔ (مالك، ترمذی، ابوداود، نسائی، ابن ماجه، دارمی)۔

**تشریح** : سَأَلَ رَجُلٌ : دده نوم عبد الله المدلجی، یا عبید الله العرکی د بنو مدلج قبیلے نه دے او دا کشتی بان وو۔

إِنَّا نَرْکَبُ الْبَحْرَ : فائده : دریاب کښے سفر کول جواز لری دپاره د ضرورت، او بلا

ضرورته سفر نه دے پكار، ځكه نبي ﷺ منع فرمائيلے ده چه تاسو په سمندر كښے سفر مه كوئ (لا تركبوا البحر فان تحت البر نارا) اګرچه په دے حديث كښے كلام دے۔

او دے صحابو په سمندر كښے بے ضرورته سفر نه كولو بلكه د ښكار دپاره سمندر كښے ګرځيدل۔ لكه دا په روايت د حاكم كښے ورسره زيات شوى دى (نريد الصيد)۔

اَفَنَتَوَضَّأُ بِمَاءِ الْبَحْرِ ؟

## د سوال پيدا كيدو وجه او منشأ څه ده ؟

نو ددے يو څو وجوهات دى : ١ – يوه وجه داده چه دوئ ته د سمندر اوبه ګنده اونجسے ښكاره شوے ځكه چه حيوانات په كښے مرى او ميته خو نجس ده نو سمندر مجمع الميتات دے۔ نو دا به هم نجس وى ؟۔

٢ – يا وجه داده چه د دوئ دا ګمان وو چه هركله د سمندر اوبه مالګينے دى، څكل ترے نشى كيدے نو اودس به هم پرے ناجائز وى، ځكه چه اودس غوره دے د اوبو څكلو نه ؟۔ نو ځكه نبي ﷺ جواب وركړو چه اودس او څكلو كښے فرق دے، د انشى څكلے مګر اودس پرے جائز دے۔

٣ – يا وجه داده چه دوئ دا حديث آوريدلے دے (لا تركبو البحر فان تحت البحر نارا، وتحت النار بحرا، مشكاة : ٢)۔

نو دا عذابى اوبه دى اودس به پرے ناجائز وى، ځكه چه اودس خو رحمت دے او دا اوبه اثر د غضب دالله دے۔ نو رسول الله ﷺ ورته جواب وركړو چه خير دے دا اوبه پاكے دى۔

٤ – يا وجه داده چه ددے اوبو خوند، رنګ، بوئى بدل شوے دے، نود دوئ ګمان راغے چه په دے به اودس كول جائز نه وى، نو ځكه ئے تپوس اوكړو، او جواب وركړے شو چه په دے سره اودس وغيره كول جائز دى، ځكه دا تبديلى د نجاست په وجه نه ده راغلے بلكه د زمكے په وجه راغلے ده، فتدبر!

هُوَ الطُّهُورُ مَاؤُهُ : دلته نبي ﷺ په هو الطهور سره جواب وركړو، نه په (نعم) سره، ځكه : ١ – كه په نعم سره ئے جواب وركړے وے نو بيا به د ضرورت په وجه د سمندر په اوبو باندے اودس جائز وے، اوپه غير د ضرورت نه به اودس جائز نه وے۔ ځكه چه سوال د

ضرورت په بناء شوې دې۔ نوجواب به خاص وې د سوال موافق، نو عموم به په کښې نه وې، مګر نبي ﷺ عام قانون ورته بيان کړو چه د سمندر اوبه مطلقا پاکې دي که ضرورت وي او که نه۔ ۲ - دويمه وجه داده چه په نعم سره ئې ځکه جواب ورنه کړو چه بيا به صرف اودس د سمندر په اوبو جائز وې او غسل يا نور نجاست زائل کولو دپاره به نه استعماليدلې، نو نبي ﷺ عام جواب ورکړو د قانون په شکل چه د سمندر اوبه مطلقا پاکې دي، که د اودس دپاره ئې استعمالوئ او که د غسل يا د نورو نجاساتو زائل کولو پاره، نو علت د اوبو دلته طهوريت ذکر شو، چه ترڅو پورې په کښې طهوريت وي نو د هرڅه دپاره ئې استعمالول جائز دي

او بيا دا د ټول امت اتفاقي مذهب دې چه د سمندر په اوبو باندې طهارت حاصليږي۔

سيوا د عبد الله بن عمرؓ او عبد الله بن عمرو بن العاصؓ او سعيد بن المسيبؒ او علامه ابن عبد البرؒ نه چه دوئ ته دا منسوب ده چه د سمندر په اوبو سره طهارت نه حاصليږي، ليکن دا د دوئ اجتهاد دې، او دا حديث ورته نه دې رسيدلې۔ وأيضا لا حجة في قول الصحابي لا سيما اذا عارض المرفوع. انظر النيل (١/٢٠) فتدبر۔

اشکال : **سوال** دادې چه (هو الطهور) کښې هو مبتداء اول او الطهور مبتداء ثاني ده او بيا الطهور معرف باللام هم دې، او ماؤه ئې خبر دې او دا هم معرفه ده۔ او مبتداء اوخبر دواړه چه کله معرفې وي نو حصر او اختصاص پيدا کوي۔ نو دلته معنی داشوه چه صرف اوصرف د سمندر اوبه طاهرې دي، نه نورې اوبه۔ او دا خو صريح البطلان ده ؟۔

ددې **جواب** دادې چه دلته دواړه معرفې راغلې دي د وجې د دفع د شك او وهم د سائلينو نه، نو د هغوئ د وهم ختمولو دپاره تاکيد دې، نو په صورت د معرفه کښې ئې تاکيد اوکړو، او دلته حصر مقصود نه دې۔ يا دلته قصر قلب دې، سائلينو دا اوبه نجس ګنړلې نو دوئ ته اووئيلې شو چه همدا اوبه پاکې دي نو دا قصر دې په نسبت سره د أذهان المخاطبين ته، نه په نسبت د جميع ما عدا سره۔ ۲ - يا ئې دواړه ځکه معرفه راوړل چه دلالت اوکړي په حصر د مسند اليه په مسند کښې، يعنې دا اوبه پاکې دي، او تجاوز نه کوي نجاست طرفته، او دا مطلب نه دې چه نورې اوبه نه دي پاکې، نو قصر په نسبت سره نجاست ته دې، نه

نورو اوبو ته۔فتدبر فیه !۔

٣ – شیخ عبد القاهر فرمائی : کله خبر په دے وجه معرفه راځی چه په دے سره د مبتداء د حالت پیژندنه او شناخت حاصل شی لکه أولئك هم المفلحون۔ او حصر مقصود نه وی۔ تنظیم الأشتات۔

وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ : **سوال** : دا په جواب کښے زیادت دے چه د بلاغت خلاف دے، اوجواب موافق د سوال نه دے۔

**جواب** : دا بعینه د بلاغت موافق دے، او دا زیادت فی الجواب حامل دے نکتے لره۔ اودیته په اصطلاح د اهل بلاغت کښے أسلوب الحکیم وائی۔ ځکه چه رسول الله ﷺ به په جواب ورکولو کښے زیادت کولو په سوال باندے دپاره د تعلیم او بیان، نو دلته دا تپوس کونکے جاهل وو په حکم د اوبو د سمندر باندے، نو ضرور به جاهل وی په حکم د میته د سمندر باندے، او د مفتی دپاره کله زیادت په جواب کښے ضروری وی، کله چه فائده مخاطب ته په دے سره خاصلیږی۔

او دا د نبی ﷺ هوښیارتیا ده چه په دے پو هه شو چه دا خلق په سمندر کښے گرځی نو اوبو ته به هم محتاج وی اوکله کله به خوراك ته محتاج کیږی نو طعام ئے ورته هم اوخودلو چه د سمندر حیوانات اگرچه مړهٔ وی خو پاك او حلال دی۔

٢ – دویمه وجه داده چه ذویٔ ته د اوبو د تپوس شك په دے وجه راغلے وو چه حیوانات په کښے مری، نو دویمه جمله کښے ورته اووئیلے شو چه ستاسو دا وهم صحیح نه دے، ځکه چه میته البحر (ددریاب مرداره) پاکه ده، نو اوبه هم پاکے دی نو د دواړو جمع کول مناسب دی۔

مَيْتَتُهُ : اضافت د میته ضمیر ته دا د قبیلے د اضافت د مصدر نه دے فاعل ته، نو معنیٰ داده : حلاله ده مرداره د سمندر چه سمندر وژلے وی، یعنے په سمندر کښے په خپل مرگ او د دریاب تیزو چپو کښے وژلے شوی وی۔

٢ – یا اضافت د مصدر مفعول ته دے، یعنے حلاله ده مړداوه کړے شوے د سمندر یعنے چه خلقو په کښے وژلے وی، نو ددے دواړو احتمالینو نه مسئلے را اووتلے، هغه دا چه په

دے کښې اتفاق دے چه په سمندر کښې څوك کوم حیوان یا ښکار مړ کړي نو دهغې خوړل حلال دي۔

او چه د سمندر وژلے وي د چپو وغیره په وجه یا دکوم مرض په وجه، نو ددے حلال والي کښې اختلاف دے، او دیته (سمك طافي) وائي۔

۱ – جمهور علماء فرمائي : دا هم حلال دے۔ ۲ – احناف وائي : سمك طافي خوړل مکروه دي، یعنے هغه کب او ماهے چه پخپله مړ وي، یا بل ماهي وژلے وي یا د اوبو چپو وژلے وي او د اوبو سرته را پورته شوے وي۔

احناف استدلال کوي په حدیث د جابرؓ باندے فرمائي : (ما القاه البحر او جزر عنه فکلوه، وما مات فیه وطفا فلا تأكلوه)، دا حدیث مرفوعا هم د جابرؓ نه نقل دے۔ أخرجه ابوداود والدارقطني (٤/٢٦٧)۔

لیکن د مرفوع روایت په سند کښې درے قسمه کلام دے (۱) یو په کښې اسماعیل بن عیاش متکلم فیه راوي دے (۲) دویم په کښې عبد العزیز بن عبید الله، واهي الحدیث دے، او په ترمذي کښې ابو الزبیر عن جابر روایت هم ضعیف دے، قال الترمذي : سألت محمد بن اسماعیل عن هذا الحدیث فقال : لیس بمحفوظ۔

۳ – دارنګه ابن أبي ذئب د ابو الزبیر نه هیڅ روایت هم نه دے نقل کړے، نو منقطع هم دے، کذا في التعلیق المغني علی سنن الدارقطني (٤/٢٦٨)۔

داوجه ده امام ابو زرعةؒ فرمائي : (هذا خطأ انما هو موقوف علی جابر) یعنے دا روایت مرفوعا خطاء دے، اوموقوفا صحیح دے، کما قال الحافظ في الفتح۔

**جواب** : ددے قول دجابرؓ معارض قول د ابو بکر الصدیقؓ موجود دے، هغه فرمائي : (الطافي حلال) کذا ذکره البخاري (٢/٨٢٥) معلقا. ووصله الدارقطني وابن أبي شیبة کما یأتي۔ نو تعارض راغلو بین الموقوفین، نو مونږ قیاس ته رجوع اوکړه (بعد الرجوع الی النصوص العامة) نو قیاس هم دا تقاضا کوي چه دادے حلال شي، ځکه دا ماهي دے او بغیر د ذبح نه خوړلے شي اګرچه په اوچه مړ شي، پاتے لا دا چه په سمندر کښې مړ وي، او د حرمت دپاره هیڅ دلیل نشته، او ستا په لاس وژل او د سمندر په وژلو کښې هیڅ فرق

نشته.

او جمهور استدلال كوی د ډيرو احاديثو او آثارو نه كوم چه امام بخاریؒ (٨٢٥/١) را وړی دی.

**١ - يو قول** د أبو بكر صديقؓ دے په روايت د ابن عباسؓ عند الدارقطنی (٢٦٩/٤) : السمكة الطافية حلال ـ طحاوی ورسره دا لفظ زياتی كړے دے (لمن أراد أن يأكله) ـ دارنګه د دارقطنی په بل روايت كښے د ابو بكر صديقؓ حديث راوړيدے.

ان الله ذبح لكم ما في البحر، فكلوه كله، فانه ذكی ـ (يعنی درياب كښ وژلے شوی تول حيوانات حلال دی ددے خوړل بغير د ذبح نه حلال دی).

**٢ - دويم** : قول د عمر فاروقؓ دے هغه په دے آيت ﴿احل لكم صيد البحر وطعامه متاعا لكم﴾ المائدة ـ كښے فرمائی : (صيده مااصطيد وطعامه ما رمی به - أی السمك الطافی - أخرجه البخاری) ـ (يعنی صيد نه مراد هغه دے چه انسان ئے ښكار كړی او طعام نه مراد هغه دے چه درياب ئے انسان ته راپورته كړی).

**٣ - دليل** : دا حديث دے (هو الطهور ماؤه والحل ميته).

**٤ - دليل** : واقعه د جيش الخبط كښے جابرؓ فرمائی : مونږ اوګی شو نو سمندر مونږ ته يو ماهے راګوذار كړو، (لم ير مثله يقال له العنبر، فاكلنا منه نصف شهر) بخاری (٨٢٦/٢) ـ (يعنی عنبر ماهی مونږ نيمه مياشت اوخوړلو).

دا واضح صريح دليل دے په دے چه سمك طافی حلال دے.

**المسألة الثانية** : په حديث كښے (ميته) لفظ مطلق راغلے دے، د ماهی وغيره قيد په كښے نشته، نو بناء په دے باندے د سمندر كوم حيوانات پاك دی ؟.

نو په دے كښے اختلاف دے : ١ - احناف وائی : د ماهی د تولو اقسامو نه سيوا (منجد كښے دی چه د ماهی دولس اقسام دی) باقی نور تول حيوانات حرام دی.

٢ - امام احمدؒ فرمائی : تول حيوانات حلال دی سيوا د ضفدع (چيندخ) او تمساح (مګرمچھ) نه. ٣ - امام مالكؒ، ابن أبی ليلیؒ، مجاهدؒ او ثوریؒ فرمائی : هر څه چه په سمندر كښے دی هغه تول حلال دی، بلا استثناء.

٤ – بعض علماء دا وائی چه په اوچه کوم حیوانات حلال دی هغه په سمندر کښې هم حلال دی، اوکوم چه په اوچه کښې حرام دی هغه په سمندر کښې هم حرام دی۔ نو دوئ قیاس کوی په اوچه باندې۔

۵ – د شوافعو نه ډیر روایات نقل دی، امام نووی ؒ فرمائی : ضفدع خو حرام دې، د وجې ددې نه چه ددې د وژلو نه منع راغلې ده۔ او ددې نه په علاوه کښې درې اقوال دی (۱) سمندری حیوانات حرام دی، سیوا د ماهی نه (۲) دویم : د سمندر حیوانات قیاس کوی په اوچه باندې (۳) دریم : أصح الأقوال دا ذکر کوی چه ټول حیوانات د سمندر حلال دی، تردې چه سپې اوخنزیرئې هم حلال دې (٤) او په یو روایت کښې د خنزیر استثناء راغلې ده۔

بهر حال د جمهورو مذهب داشو چه د سمندر ټول حیوانات حلال دی۔ اُو احناف وائی : ټول حرام دی، سیوا د ماهیانو نه۔

**دلائل** : د احنافو دلیل دادې چه په آیت کښې دی ﴿ ویحرم علیهم الخبائث ﴾ (الأعراف)، اود ماهیانو نه علاوه نور حیوانات خبیث دی۔ کذا فی العینی ۔

۲ - **دویم دلیل** : ﴿ حرمت علیکم المیتة ﴾ کښې (میته) مطلق ده، بحری اوبری دواړو ته شامل ده، او ددې نه په حدیث سره صرف دوه میتې مستثنیٰ شوی دی، لکه حدیث د ابن عمر ؓ کښې دی (أحلت لنا میتتان ودمان. فأما المیتان فالجراد والحوت، وأما الدمان فالطحال والکبد). أخرجه ابن ماجة واحمد۔

نو دلته تخصیص دلیل دې په دې چه نور حیوانات حرام دی۔

لیکن جمهور علماء دوئ ته **جوابونه** ورکوی :

(۱) **د اول دلیل نه جواب** دادې چه خبائث هغه دی چه الله او رسول ﷺ ورته خبیث وئیلی وی، نه هغه چه انسانان ورته په خپل عقل سره خبیث وائی، ځکه چه ډیر انسانان داسې دی – لکه مالکیه – چه ډیر حیوانات خبیث نه ګڼړی، او بعضې خلق – لکه وزیرستان والا – داسې دی چه ماهیان هم خبیث ګڼړی، اویا لکه زمونږ ډیر پښتانه خلق د سوئ (خرګوش) غوښه خبیثه ګڼړی۔ نو د انسانانو طبیعتونه مختلف دی، د دوئ په خبیث ګڼړلو سره شې خبیث نه ګرځی، ترڅو چه الله او رسول ﷺ ورته خبیث نه وی

وئیلي. او اللــه او رسول ﷺ دا چرتــه نــه دي وئیلی چه ما سیوا د ماهی نـه نور تول حیـوانـات خبیـث او حرام دي. هـاو ! البتـه دا دلیـل بـه هله تام وی کله چه یو حیوان کښې واقـعی خبـاثت او ضرر موجود وی، لکه مار او خنزیر او سپے او ضفدع وغیره، نو هغه به حرام وی. او د نورو حیواناتو قیاس کول په دے باندے صحیح نه دي.

او دویم دلیل ته **جواب** دادے چه ﴿ حرمت علیکم المیتة ﴾ کښې د میته نه مراد بری (د اوچے) میتـه ده، یعنـے د اوچے میتـه حرام ده، نه د سمندر، او په دے باندے دلیل حدیث د (الحل میتته) دے، یعنـے سمـندری میته اومرداره حلالـه ده. او هرچه (أحلـت لنا میتتان) تـخـصیـص دے نو تاسو پخپله دا قاعده جوړه کړیده چه تخصیص د یو شئ په اسم علمی سره نفی د ما عدا نه کوی، کـمـا فی الـحسامی فی مبحث الوجوه الفاسدة. نـو دلته چه (میتتـان) خاص کـړیدے په حلت سره نـو ددے نـه نه دا نه معلومیږی چه ما سیوا ددے میتتان نه حرام دي. فتدبر !.

عـلاوه لا داچـه میتـه خو مـطـلـق ده، نـو سـمـك طافی تاسو ولے استثناء کوئ؟ دا خو تقیید المطلق دے وهو غیر جائز عندکم !.

**دلائل الجمهور : ١ - اول دلیل** : آیت ﴿ أحل لکم صید البحر وطعامه متاعا لکم ﴾ الآیة (المائدة)، کښې صید عام دے، ماهی او غیر ماهی تولو ته شامل دے، صاحب الهدایه جواب کوی چه صید البحر نه مراد معنیٰ مصدری ده، یعنی احل لکم الاصطیاد فی البحر، یعنـے ښکار کول درله په سمندر کښې جائز دي. لیکن دا جواب صحیح نه دے، وجه داده چه اصـطیـاد (ښـکـار کـول) خو بهر د سمندر نه هم جائز دي (سیوا د حالت د احرام نه)، نو تـخـصیـص د الـبـحر تـه بیـا ضرورت څه دے ؟ بلکه مراد د صید نه مصید دے، یعنے هغه حیـوانـات چه ښکار شوی وی په سمندر کښې، او تخصیص د ما هی په کښې نشتـه. لکه ددے تفسیر عمر فاروقؓ په (ما اصطید) سره کړے دے، کما مر.

او دا دلیل د حلت د سمك طافی هم دے.

**٢ - دویم دلیل** : حـدیث الباب دے (الـحل میتته) کښـے میتـه عـام ده، اوتخصیص پکښې د ماهی نشتـه.

٣ - مشکوة کتاب الذبائح رقم (٣٥٩) کښې دی :
عن جابر قال : قال رسول الله ﷺ : ما من دابة في البحر الا وقد ذکاها الله لبنی آدم۔

٤ - **څلورم دلیل** : قول د ابو بکر صدیقؓ او عمر فاروقؓ مخکښې تیر شو چه (الطافی حلال)۔

٥ - امام بخاریؒ (٨٢٥/٢) آثار راوړیدی چه دلالت کوی په حلال والی د هر سمندری حیوان باندې (قال عمر : صیده ما اصطید وطعامه ما رمی به، أی السمك الطافی)۔

ابن عباسؓ فرمائی : (طعامه میتة الا ما قذرت منها، والجریث لا تأکله الیهود ونحن نأکله)۔

ابو شریح صاحب النبی ﷺ فرمائی : ( کل شئ في البحر مذبوح) ۔ یعنې ټول سمندری حیوانات حلال دی۔

امام شعبیؒ فرمائی : (لولا أن أهلی أکلوا الضفادع لأطعمتهم)۔ یعنې که زما کور والو چیندخان خوړلے نو مابه ورته ورکړی وے (ځکه چه دا ده په نیز حلال دی)۔

لیکن دا خبره خطاء ده، ځکه چیندخان خوړل حرام دی، ځکه چه حدیث کښې دیته خبیث وئیلے شوی دی۔

★ امام حسن بن علی رضی الله عنهما د سمندری سپی د څرمن نه زین جوړ کړے وو، په هغې به کیناستلو۔

★ ولم یر الحسن بالسلحفاة بأسا۔ (حسن بصریؒ په نیز شمشتئ حلاله ده)۔

قال ابن جریج : قلت لعطاء : صید الأنهار وقلات الصید ؟ یعنې د نهرونو او حوضونو ښکار هم حلال دے۔

نو **صحیح مسئله** دا را اووتله چه ټول حیوانات د سمندر حلال دی، **سیوا** د هغه حیوان نه چه خبیث وی، یا په کښې ضرر وی، لکه زهر وغیره په کښې وی، او په دے کښې ډیر حیوانات داخلیږی لکه (١) خنزیر (٢) سپی (٣) چیندخان (٤) ماران، لړمانان (٥) تمساح (مگر مچھ)، **او یا** هغه حیوانات چه د هغې د خوراك نه په نص کښې منع راغلې وی ، هغه هم حرام دی۔ او سمندری انسان د وجے د اکرام د هغه نه خوړل نه دی پکار۔

ومزيد التفصيل يطلب من التحفة وغيرها ـ ددې حديث په باره كښې امام حميدي د امام شافعي نه نقل كړيدي چه فرمائي : هذا الحديث نصف علم الطهارة ـ يعني پدې حديث كښې د طهارت متعلق نيمائي علم دې۔

**درجة الحديث** : اخرجه مالك (١/٢٢ رقم ١٢) والشافعي في الام (١/٣) واحمد (٢/٣٦١) والدارمي (١/١٨٥، ١٨٦) وابوداود (٨٣) والترمذي (٦٩) وقال حسن صحيح والنسائي. فاسناده صحيح. وصححه الالباني۔

---

٧ – وَعَنْ أَبِيْ زَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لَهُ لَيْلَةَ الْجِنِّ : مَا فِيْ اِدَاوَتِكَ ؟ قَالَ : قُلْتُ : نَبِيْذٌ قَالَ تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ وَمَاءٌ طَهُوْرٌ ). رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ وَزَادَ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ فَتَوَضَّأَ مِنْهُ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : أَبُوْ زَيْدٍ مَجْهُوْلٍ.

**ترجمه** : ابو زيد د عبد الله بن مسعودؓ باره كښې نقل كوي چه رسول الله ﷺ ده ته په ليله الجن (پيريانو ته د تقرير په شپه) اوفرمائيل : ستا په بتكى (مشكيزه) كښې څه دي ؟ عبد الله بن مسعودؓ وائي ما عرض اوكړو : د قجورو شربت۔ وې فرمائيل : كجوره پاكه او اوبه پاكونكې دي۔ (ابوداود) او امام احمدؒ او ترمذيؒ دا الفاظ زيات نقل كړي دي چه (نبي ﷺ هغې سره اودس اوكړو) امام ترمذيؒ فرمائي : ابو زيد پته نه لږي چه دا څوك دې۔

**تشريح** : أَبِيْ زَيْد : المخزومي، دا د عمرو بن حريث آزاد كرده غلام دې، ابن عبد البرؒ فرمائي : اتفقوا على أنه مجهول۔ ٢ – امام ترمذيؒ هم فرمائي : دا مجهول الحال راوي دې د محدثينو په نزد۔

نَبِيْذٌ : **د نبيذ معنى** : نبيذ هغه اوبو ته وائي چه كجورې پكښې واچولے شي او خوږوالے پيدا كړي او نرمې وي او نشه نه پيدا كوي، برابره ده كه خوټ كيدلے وي او كه نه۔ ٢–علامه جزريؒ فرمائي : نبيذ هغه شربت ته وائي چه د كجورو، وڅكو، شهد، وربشو او غنمونه جوړيږي۔ مرعات (٢/١٧٨)۔

## مسئله د نبيذ التمر

دلته مسئله د نبيذ التمر بيانيږي، چه آيا په نبيذ باندے اودس کول جائز دي اوکه نه ؟
نو اول نوعيت د مسئلے بيانيږي، بيا ورپسے اختلاف د علماؤ :
١ - کله چه مطلق اوبه ملاويږي نو په نبيذ باندے په اتفاق سره اودس ناجائز دے، کما قال الطحاوي۔ ٢ - حضر کښے پرے اودس ناجائز دے۔ ٢ - خوکله چه مطلق اوبه نه وي او نبيذ موجود وي، نو آيا تيمم به وهي اوکه په نبيذ (شربت) باندے به اودس کوي، اوکه په دے باندے اودس او تيمم دواړه به جمع کوي ؟۔
١ - نو جمهور علماء - ائمه ثلثه - او امام ابو يوسفؒ او په احنافو کښے محققين وائي : تيمم به وهي، او په نبيذ باندے اودس کول جائز نه دي۔
٢ - امام ابو حنيفهؒ نه ډير روايات نقل دي (١) مشهور روايت دادے چه اودس به کوي په دغه نبيذو باندے،او تيمم به نه کوي۔ ځکه دا نبيذ اوبه دي دده په نيز، او دا قول د امام زفرؒ هم دے۔ (٢) دويم روايت - وهو قول محمد - دادے چه که نورے اوبه نه وي نو دواړه به جمع کوي، يعنے اول به تيمم اووهي بيا به په نبيذ باندے اودس اوکړي۔
(٣) او دريم روايت ترے د جمهورو پشان نقل دے ۔

## اختلاف په کوم نبيذ کښے دے ؟

نو د نبيذ څلور قسمه دي : (١) يو هغه نبيذ دے چه انسان ئے اوبو کښے واچوي، خو خوند، رنګ ئے نه دے پريښے۔ (يعني غير مطبوخ غير مسکر غير متغير غير حلو رقيق) نو په داسے اوبو باندے بالاتفاق اودس کول جائز دي۔
(٢) دويم دا چه د کجورو اچولو نه پس سکر (نشه) راولي۔ ( يعنے مطبوخ مسکر غليظ) نو په دے باندے بالاتفاق اودس کول نا جائز دي۔
(٣) دريم : هغه نبيذ چه خوند، رنګ ئے بدل شي، خو خوږ والے پيدا کړي او خوټ کيدلے نه وي۔ ليکن اوبه نرمے وي، په اندامونو باندے بهيدلے شي (يعني غير مطبوخ، غير مسکر، حلو، متغير، رقيق وي)۔
(٤) څلورم دا چه : خوټ کيدلے وي او خوند، رنګ هم پيدا کړي او نرمے هم

وی۔(یعنی مطبوخ، حلو، متغیر، رقیق، غیر مسکر)۔ نو دا دواړه صورتونه د جمهورو او امام ابو حنیفهؒ ترمینځه اختلافی دی۔ احناف وائی چه دے دواړه قسمه نبیذ باندے په سفر کښے اودس کول جائز دی، نه په حضر کښے۔ اوجمهور علماء وائی : نه په سفر کښے جائز دے اونه په حضر کښے۔

**دلائل الطرفین** : ۱ - د احنافو مستدَل دا حدیث الباب د ابن مسعودؓ دے۔ چه ده ته نبی ﷺ په لیلة الجن کښے اوفرمائیل : ستا په مشکیزه کښے څه دی؟ هغه وئیل : نبیذ دی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : دا کجورے مزیدارے او پاکے دی، او اوبه ئے پاکے دی۔ په روایت د ترمذی کښے دی (فتوضأ منه) په هغے سره ئے اودس اوکړو۔ نو نبی ﷺ په نبیذ التمر سره اودس کړے دے، نو دا دلیل دے چه اودس پرے کول جائز دی۔

لیکن **جمهور علماء** په دے حدیث باندے **قوی اعتراضونه** کوی، چه دا اعتراضونه محققینو احنافو هم تسلیم کړی دی۔

**۱ - اول اصولی اعتراض** : او هغه دا چه ستاسو په نیز زیادت په کتاب الله باندے په خبر واحد سره نا جائز دے۔ او تاسو په دے حدیث سره په کتاب الله باندے زیادت اوکړو، ځکه چه ﴿ فلم تجدوا ماء فتیمموا ﴾ کښے ماء مطلق دے اوتاسو په نبیذ التمر سره اودس جائز ګنړئ، سره ددے چه هغه مطلق اوبه نه دی او تاسو پرے زیادت اوکړو چه ( فلم تجدوا ماء ولا نبیذ التمر )، نو نبیذ التمر مو ورسره زیات کړو، حال دا چه دا خبر واحد دے او ورسره ضعیف هم دے۔ !! ددے اعتراض نه د احنافو مخلص نشته۔

امام نوویؒ فرمائی : فمن توضأ بالنبیذ فقد ترك المامور به. المجموع (۱/۲۲).

یعنی چا چه په نبیذ اودس اوکړو هغه د آیت مامور به پریخوده چه آیت کښے دی که اوبه نه مومئ نو تیمم وهئ او دا انسان تیمم نه وهی او په نبیذ اودس کوی کوم چه اوبه ندی نو ده قرآنی حکم پریخودو۔

صاحب هدایه (۴۸/۱) دا دعوی کړیده چه دا خبر **مشهور** دے، او په خبر مشهور سره زیادت په کتاب الله جائز دے عندهم۔ لیکن بیا حاشیه والا په دے اعتراض کړے دے چه دا خبر مشهور نه دے، ځکه د خبر مشهور دپاره خو کم از کم په هره طبقه کښے درے راویان

وی، او ددې خو صرف يو راوی دی چه ابو زيد دی۔ ليکن بيا خپله محشی جواب کوی چه دا خبر مشهور لغوی دی، او بيا غلی شويدی۔

ليکن مونږ وايو دا **جواب** غلط دی، ځکه چه مشهور لغوی خو موضوعی احاديث هم دی، لکه (لولاك لولاك لما خلقت الأفلاك)، چه په عوامو کښی مشهور وی، نو آيا په مشهور لغوی سره زيادت په کتاب الله څنګه جائز کيدی شی؟ وکما قال الزيلعی فی نصب الراية (١٣٨/١). ولا يصح هذا الحديث (ای حديث النبيذ) عن النبی ﷺ وهو خلاف القرآن۔

او محققينو احنافو هم دا اقرار کړی دی چه دا قوی اعتراض دی په مونږ احنافو باندی، چه زمونږ جوابونه ددی د حل نه قاصر دی، او واقعی جواب ددی نشته۔

نو ددی نه معلومه شوه چه دا قاعده خطاء ده، (أبطلها العلامة ابن القيم في الاعلام ٢٩٣/٢) چه زيادت د خبر واحد په کتاب الله باندی نا جائز دی، دا خو معتزلی جراثيم دی او د منکرين سنت غوندی خبره ده، بلکه داسی وئيل پکار دی چه دا زيادت تشريح د قرآن ده۔ او نبی ﷺ د کتاب الله بيانونکی اوشارح دی، نو زيادت په خبر واحد سره په کتاب الله باندی جائز دی، اوپه دی کښی څه نقصان نشته چه زيادت راشی۔

**سوال** : که څوك دا اووائی چه خبر واحد ظنی دی، اوکتاب الله قطعی دی، نو څنګه زيادت دخبر واحد په کتاب الله باندی جائز شی؟

**جواب** : مونږ وايو چه أخبار **آحاد هم يقينی** دی، ځکه چه زمونږ ټول دين په اخبار آحادو سره نقل شويدی۔ الله يو ذات دی، قرآن يو جبرئيل راوړيدی۔ او يوائی محمد ﷺ صحابوؓ ته بيان کړيدی۔ او د يو شخص خبره يقينی ده۔ کله چه په هغه باندی تهمت د دروغو اوخطائی نه وی۔ او په دی باندی هيڅ دليل په شرع کښی نشته چه تاسو د يو سړی خبره ګمانی ګڼړئ، او يقين پری مه کوئ، بلکه شريعت خو دا امر کړيدی چه د مؤمنانو خبره به يقينی ګڼړئ، او دا وجه ده چه دروغژن شخص ته ئی د خيانت نسبت کړيدی کله چه هغه دروغ وائی، او د هغه مخاطب په هغه باندی تصديق او يقين کوی۔ (كبرت خيانة أن تحدث أخاك حديثا هو لك مصدق وأنت به كاذب)۔ نو ددی نه په اشاره

النص سره دا ثابته شوه چه مؤمن به د بل مؤمن په خبره باندې تصديق او يقين کوي۔ نه گمان۔ فتدبر!

ددې مسئلې تفصيل ددې کتاب په اول جلد کښې اوګورئ۔

**٢ - دويم اعتراض :** (چه ضمنا تير شو) دادې چه دا حديث د ډيرو وجهو نه ضعيف السند دې باتفاق المحدثين۔ كما قال في المرقاة (١/٣٤٤) نقلا عن السيد جمال الدين : اجمع المحدثون على أن هذا الحديث ضعيف۔

ددې په سند کښې ابو زيد مجهول الحال راوي دې، چه صرف دا يو روايت ترې نقل دې، لکه دا خبره امام ترمذيؒ ذکر کړيده۔ اوحافظ ابن حجرؒ په فتح الباري (٢٨٢) کښې فرمائي : هذا الحديث أطبق علماء السلف على تضعيفه۔

امام نوويؒ فرمائي : حديث النبيذ ضعيف باتفاق المحدثين

وقال البغوي في شرح السنة : حديثه غير ثابت۔

★ قال ابن حبان في كتاب الضعفاء : ابو زيد شيخ يروي عن ابن مسعود، ليس يُدرٰى من هو، ولا يعرف أبوه ولا بلده، ومن كان بهذا النعت، ثم لم يرو الا خبرا واحدا خالف فيه الكتاب والسنة والاجماع والقياس، استحق مجانبة ما رواه. كذا في التحفة (١/٩٠) ونصب الراية (١/١٣٨)۔

★ امام طحاويؒ په شرح معاني الآثار (١/٧٥) کښې فرمائي :

وليست هذه الطرق طرقا تقوم بها الحجة۔

يعنې : دا حديث په داسې طريقو او سندونو سره نقل دې چه په دې باندې دليل نيول درست نه دي۔د اوجه ده چه د امام طحاويؒ ، ابن نجيم او قاضي خان مذهب هم دادې چه په نبيذ التمر باندې اودس جائز نه دې۔ او يو عقلي دليل ئې دا پيش کړيدې چه دا خبره اتفاقي ده چه په نبيذ الزبيب او سرکه اومرق (شوروا) باندې خواودس جائز نه دې، نو عقل دا تقاضا کوي چه نبيذ التمر دې هم دغه شان شي۔

(٢) دارنګه که نبيذ التمر د اوبو حکم لرلې نو پکار ده چه په وخت د وجود د اوبو کښې هم په دې باندې اودس کول جائز وې، حال دا چه احناف هم په دې حالت کښې په دې باندې

اودس کول جائز نه ګنړی۔ معلومه شوه چه دا د اوبو حکم نه لری۔

(۳) دارنګه که نبیذ التمر د اوبو حکم لرلے نو بیا پکار ده چه په حضر کښې هم ددے استعمال جائز وے۔ هر کله چه دا تاسو هم نا جائز ګنړئ نو ددے نه معلومه شوه چه ستاسو په نیز هم په دے أثر د ابن مسعودؓ باندے عمل نه دے شوے۔ او دا وجه د ضعف د دے حدیث هم ده، چه متروك العمل عند الجميع دے لضعفه۔

بعضے احنافو – لکه عینیؒ او بذل المجهود والا – ددے حدیث نه جواب کوی چه دا حدیث څوارلس متابعات لری، چه د هغے په وجه تقویه پیدا کوی۔ او قابل د استدلال ګرځی۔ بیا ئے هغه راوړیدی۔ وكذا في مفتاح النجاح، بذل المجهود (۱/ ٥٤)۔

نو ددے نه علامه عبيد الله مبارکفوریؒ په المرعاةؒ (۱۸۷/۲) کښې جواب ورکړیدے چه دا متابعات اکثر ضعیف دی۔ او بعضو کښې د سرنه وضوء بالنبیذ ذکر نه دے، نو دا متابعات نه شمارل کیږی۔ بلکه دا ددغه حدیث ضعف نور هم زیاتوی۔ او دا صرف دعویٰ ده، چه د بعضو سندونه هم نشته۔ د کومو چه سندونه شته نو هغه ټول ضعیف دی۔ داوجه ده امام طحاویؒ فرمائی : دا ټولے طریقے ضعیفے او غیر ثابتے دی (لم يثبت له طريق)، كما قدمنا۔

بعضے دا جواب کوی چه د ابو زید دوه شاګردان دی (۱) ابو فزاره راشد بن کیسان (۲) ابو روق عطیه بن الحارث ، اودا صدوق دے۔ نو بناء په دے ابو زید د جهالت نه خارج شو۔

**جواب** : په مصطلح الحديث کښې دا قاعده ذکر ده چه کله د یو راوی نه دوه ثقه راویان نقل اوکړی، او معین ئے کړی، نو د هغه راوی نه جهالت د ذات او عین ختمیږی۔ لیکن عدالت حکم ورله بیا هم نه ثابتیږی، کما في تدريب الراوي (۱/ ۳۱۷) وفتاوى الدين الخالص ۲/ ۳۰۲)۔ او دلته دے شاګردانو ابوزید معین کړے ندے نو هغه شان مجهول پاتے شو۔ په نفس شاګردئ باندے تعیین د استاذ نه راځی او عدالت خو درکنار!۔

دا وجه ده چه دا حدیث بالاتفاق ضعیف دے، هرکله چه هغه ابن حبان ضعیف کړو چه هغه مجاهيل ثقه کوی، نو دلیل دے په ضعف ددے روایت باندے۔ ځکه ابن حبان وائی چه ابوزید به هله مستقيم الحديث وی کله چه دده بره راوی هم ثقه وی او لاندے هم ثقه

وی او دلته ابوزید داسې ندې۔

۳ - **بل اعتراض** : دادې چه دا حدیث منقطع هم دې ځکه چه ابو زید د عبد الله بن مسعودؓ په شاګردانو کښې نه دې ذکر شوې۔ لکه امام بخاریؒ فرمائی : ابو زید مجهول لا یعرف بصحبة عبد الله بن مسعود۔

امام ابن المدینیؒ فرمائی : لم یلق أبو زید عبدَ الله. کذا فی التحفة (۱/۹۱). امام ابوداود فرمائی : کان ابوزید نباذا بالکوفة۔ یعنی ابوزید په کوفه کښې د نبیذو کاروبار کولو نو کیدې شی چه هغه د خپل کاروبار د ترویج دپاره دا حدیث دځان نه جوړ کړې وی۔ ځکه چه دده پخپله ابن مسعود سره ملاقات ندې شوې۔

٤- **اعتراض** : دادې چه دا حدیث د متن اوالفاظو په لحاظ سره هم نه دې ثابت۔ ځکه چه مسلم (۱/۱۸٤) باب القرائة فی الصبح کښې دی چه د ابن مسعودؓ نه علقمة تپوس اوکړو : ته لیلة الجن کښې د نبی ﷺ سره ملګرې وې ؟ نو هغه اوفرمائیل : (لا) زه د رسول الله ﷺ سره نه اوم أرمان دې چه زه ورسره وې نو څنګه به ښه وه (لم أکن مع رسول الله ﷺ وددتُ أن اکون معه)۔

نو ابن مسعودؓ نه ددې مخالفت ثابت شو۔ نو تعارض بین القولین راغلو، او روایت د مسلم قوی دې ددې روایت نه، نو هغې له به ترجیح وی۔

احناف ددې **جواب** کوی چه لیلة الجن واقعه په مکه اومدینه کښې درې درې ځله واقع شویده، نو ابن مسعودؓ په اول ځل نه وو، او باقی ته حاضر شویدې۔ اوکوم روایت کښې چه نفی راغلې ده نو دا اول ځل مراد دې۔ کما رواه أبو نعیم فی دلائل النبوة۔

**جواب** : ددې نه دادې چه د هغه نورو واقعو سندونه نه دی ثابت۔ او یو ځل لیلة الجن سند ثابت دې۔ اوصحابوؓ کښې همدغه یوه مشهوره وه، او همدې ته ابن مسعودؓ نه دې حاضر شوې، لکه مخکښې تیر شو۔

بله وجه داده چه ابن مسعودؓ مطلقا نفی کړیده په حدیث د مسلم کښې، او په اول کرتې پورې ئې نه ده مقیده کړې۔ چه زه اول کرتې لیلة الجن ته نه یم حاضر شوې۔ بلکه مطلقا ئې نفی کړیده۔ معلومیږی چه لیلة الجن یو کرت واقع شویده۔

(۵) - **اعتراض** : بالفرض که اومنو چه حدیث ثابت دے نو بیا وایو چه دا اول او دویم قسم نبیذ وو چه صرف کجورے اوبو کښے اچولے شوے وے او تېنګوالے ئے نه وو پیدا کړے او دا خو اتفاقی صورت دے چه اودس پرے جائز دے۔ پدے باندے دلیل قول د ابو العالیه دے (انبذتکم هذه خبیثة انما کانت زبیبا وماء). کذا فی الدارقطنی۔

یعنی ستاسو نبیذونه خو خبیث دی (نشے والا دی) او د صحابو نبیذ دا وو چه اوبو کښے به ئے اوښکے، کجورے واچولے۔

امام نوویؒ په المجموع (۲۳/۱) کښے دے جواب ته داسے اشاره کوی : (الثالث : ان المراد بقوله : نبیذ ای ماء نبذت فیه تمرات لیعذب ولم یکن متغیرا، وهذا تاویل سائغ لان النبی ﷺ قال ثمرة طیبة وماء طهور فوصف النبی ﷺ شیئین لیس النبیذ واحدا منهما )۔

یعنی د ابن مسعود ددے قول چه دا نبیذ دی مطلب دا دے چه دا هغه اوبه دی چه کجورے په کښے اچولے شویدی او متغیر شوی ندی۔

او دا تاویل ځکه پکار دے چه نبی ﷺ ورته پاکه میوه او پاکے اوبه وئیلی دی نو نبی ﷺ دوه څیزونه بیان کړل چه یو (هم) پکښے نبیذ نه وو (ځانله کجوره هم نبیذ ندی او ځانله اوبه هم نبیذ ندی بلکه خوږے اوبه دی)۔

۶-**اعتراض** : صاحب د بذل المجهود (۵۵/۱) کړیدے هغه دا چه که حدیث النبیذ صحیح هم شی بیا هم عمل په دے نشی کیدے، وجه داده چه دا منسوخ دے په آیت د تیمم سره، ځکه چه دا واقعه د لیلة الجن په مکه کښے واقع شویده، او آیة التیمم په مدینه کښے نازل شویدے۔ نو دا روایت منسوخ دے په دے آیت سره۔

حافظ زیلعی هم داسے خبره کړیده : (فالمذهب الصحیح المختار عندنا هو عدم الجواز موافقة للائمة الثلاثة فلا حاجة الی الاشتغال بحدیث ابن مسعود لان من العلماء من تکلم فیه وضعفه وعلی تقدیر صحته فهو منسوخ بآیة التیمم لتاخرها اذ هی مدنیة وحدیث ابن مسعود مکیة وعلی هذا مشی جماعة من المتاخرین)۔

بعضے احنافو بل دلیل وئیلے دے چه په روایت د حاکم فی المستدرک (۵۰۳/۲) کښے نقل دی ابن مسعودؓ فرمائی : نبی ﷺ اوفرمائیل : (په مکه کښے) ما سره څوک أمر

الجن ته نن شپه حاضرېږي، نو حاضر دے شي، نو په صحابهٔ ؤ کښې ورسره صرف زه حاضر شوم۔

**جواب** : دا حدیث ضعیف السند دے، ددے په سند کښې ابو عثمان بن سنه الشامی مجهول راوی دے۔ ابو زرعهؒ فرمائی : لا أعرفه. کذا فی المرعاة (۱۸۱/۲) ۔ او دا په څوارلس متابعاتو کښې عینی شمارلے دے چه سند ئے ضعیف دے۔ او که بالفرض صحیح هم شي نو نو دا مخالف دے د ددے قول د ابن مسعود نه چه لم اکن لیلة الجن مع رسول الله ﷺ او دا قوی د روایت د حاکم نه۔

۳- علاوه لا دا چه په دغه روایت د حاکم کښې د وضوء بالنبیذ ذکر هم نشته۔فتدبر۔

۷ - **بل اعتراض** : دادے چه دا روایت د ابن مسعودؓ د قرآن خلاف دے، ځکه چه الله تعالیٰ طهوریت په اوبو پورے خاص کړیدے او نبیذ ئے په کښې نه دی ذکر کړی، نو نبیذ ورسره زیاتول خلاف د قرآن دی۔او صحیح حدیث هم نشته۔

زیاته تشریح په فتاوی الدین الخالص (۳۰۴/۲)، تحفة الأحوذی (۹۱/۱)، المغنی (۳۸/۱) ، نیل الأوطار کښې اوګورئ۔

نو ثابته شوه چه په نبیذ التمر باندے اودس کولو کښې هیڅ دلیل نشته، او په دے باندے اودس کول جائز نه دی، اودے قول الجمهور ته امام ابو حنیفهؒ هم رجوع کړیده، اودا ئے آخیرنے قول دے، واختاره الطحاوی، کذا فی البذل والمرعاة (۱۸۱/۲)۔

---

۸- وَصَحَّ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ : لَمْ أَكُنْ لَيْلَةَ الْجِنِّ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ .رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او د علقمهؒ نه دا صحیح ثابته ده چه عبد الله بن مسعودؓ فرمائی : زه په لیله الجن کښې د رسول الله ﷺ سره ملګرے نه ووم۔ (مسلم)۔

## تعارف : د علقمه رحمه الله :

داد عبد الله بن مسعودؓ شاګرد دے، د کوفے اوسیدونکے دے، فقیه او عابد، ثقه اوثبت راوی دے، داد ابن مسعودؓ سره په هیئت او سیرت کښې مشابه وو، د اویا (۷۰) هجری نه

پس وفات شوید ے۔

**تشریح** : ددے روایت سره مخکښې واقعه داسے وه چه مسلم (۱/۱۸٤) کښې راځی عامر د علقمه نه تپوس اوکړو چه آیا ابن مسعود د نبی ﷺ سره لیلة الجن ته حاضر شوے وو نو علقمه اووئیل ما دا تپوس د ابن مسعود کړے وو چه تاسو کښے د رسول الله ﷺ سره څوك لیلة الجن ته حاضر شوے وو ابن مسعود اووئیل نه الخ۔ نو ابن مسعود چه مطلقا دا نفی کوی چه زه د پیغمبر سره دے شپے ته نه اوم حاضر شوے دلیل دے چه هیڅکله ورسره نه وو حاضر شوے ولے که یو کرت وزسره حاضر شوے وے نو علقمه ته به ئے تفصیل کړے وے چه زه اول کرت نه اوم حاضر او روستو ورسره حاضر شوے یم۔

---

۹ – وَعَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَكَانَتْ تَحْتَ ابْنِ اَبِیْ قَتَادَةَ أَنَّ أَبَا قَتَادَ ةَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَسَكَبَتْ لَهٗ وَضُوْءً فَجَاءَ تْ هِرَّةٌ تَشْرَبُ مِنْهُ فَاَصْغٰی لَهَا الْاِنَاءَ حَتّٰی شَرِبَتْ قَالَتْ كَبْشَةُ : فَرَآنِیْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ فَقَالَ : اَتَعْجَبِيْنَ يَا ابْنَةَ أَخِیْ قَالَتْ : فَقُلْتُ نَعَمْ، فَقَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ : اِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ اِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِيْنَ عَلَيْكُمْ اَوِ الطَّوَّافَاتِ ). رَوَاهُ مَالِكٌ وَاَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِیُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِیُّ وَابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِیُّ.

**ترجمه** : بی بی کبشه بنت کعب بن مالك نه – چه د ابو قتادة ؓ د ځوئے ښځه ده – روایت دے چه یوه ورځ د هغے سخر ابو قتادة ؓ هغے ته راغے (بی بی کبشه ؓ وائی) ما دهغه د اودس دپاره یو لوښی کښے اوبه کیخودلے، یوه پیشو راغله هغے نه ئے اوبه څکل شروع کړل، ابو قتادة ؓ هغے طرفته لوښے ښکته کړو (چه آسانئ سره اوبه اوڅکی) نو پیشو اوبه اوڅکلے، بی بی کبشه وائی : ابو قتادة ؓ چه زه اولیدم چه زه تعجب سره هغه طرفته ګورم، نو هغه اووئیل : زما وریرے ! تاته په دے تعجب کیږی ؟ ما اووئیل : هاؤ، ابو قتادة ؓ اووئیل : نبی ﷺ ارشاد فرمائیلے دے : بیشکه چه پیشو ګانے ناپاکے نه دی، ځکه چه دوئ تاسو ته د تلو نکو راتلو نکو نه دی۔ (مالك، احمد، ترمذی، ابو داود، نسائی، ابن ماجه، دارمی)۔

**تشريح** : كَبْشَةَ : دا د عبد الله بن أبي قتاده زوجه ده او د ابوقتادةؓ انګور ده، ابن حبان ورته ثقه وئيلې ده، امام ترمذيؒ ددې حديث ته صحيح وئيلې دی۔

**فوائد الحديث** : ١ - إنګور د سخر خدمت کولې شي او واجب پرې نه دې بلکه د مشر والي په وجه ادبا او د احسان په بدله کښې به خدمت کوي۔ او داسې نه ده چه دا بعينه د مور پلار حق لري. ٢ - په دې حديث کښې مسئله د جوټې د پيشو ده، چه تفصيل ئې مخکښې تير شو ۔ د جمهورو په نيز جوټه ئې پاکه ده، او عند الأحناف مکروه ده، ليکن دا حديث د هغوئ په قول رد دې، چه نبي ﷺ ورته نجس نه ده وئيلې، او کوم ځائې کښې چه ددې د جوټې نه د لوښي يو ځل وينځلو أمر راغلې دې (يغسل مرة، ابو داود، صحيح موقوفا ومرفوعا کما في صحيح ابي داود رقم (٦٥) نو وينځل مستلزم ندی کراهت لره، بلکه هغه وينځل د نظافت د وجې نه دی، نه د نجاست د وجې نه، کما مرّ۔

٣ - **فائده** : د پيشو ذات نجس نه دې، او جوټه ئې پاکه ده، لکه د خر پشان، او کوم حديث کښې چه دا وئيلې شوی دی چه (السنور سبع) اخرجه احمد والدارقطني والبيهقي ، نو ددې معنیٰ داده چه ددې غوښه نه خوړلې کيږي، خوراك ئې حرام دې، ځکه چه دا نور حيوانات خوري، د درندګانو پشان۔ او په هغې کښې د جوټې متعلق هيڅ خبره نشته، کما سبق۔ نو بدن او جوټه ئې پاکه ده، او غوښه ئې حرامه ده۔

اِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِيْنَ عَلَيْكُمْ اَوِ الطَّوَّافَاتِ : دلته اوْ د شك دپاره نه دې، ځکه بل روايت کښې په واؤ سره هم راغلې دې ځکه چه بعضې مذکر دي او بعضې مؤنث دي۔

٤ - الطوافين جمع د طوّاف ده، هغه خادم چا ته وائي چه ډير ګرځي راګرځي۔ علامه ابن الاثير فرمائي : الطائف الذي يخدمك برفق و عناية۔ يعني طوّاف هغه شخص ته وائي چه ستا خدمت کوي په نرمئ او اهتمام سره۔ دا حيوانات ئې مشابه کړل د هغه خادم سره چه په مخدوم باندې ورداخليږي او د هغه نه ګرځي راګرځي۔

٥-په دې روايت کښې علت د طهارت د جوټې حرج راتلل دی په کثرة الطواف سره، يعنې پيشو کور کښې ډيره ګرځي راګرځي، نو ددې نه ځان او لوښي ساتل ګران دي، انسان په حرج کښې واقع کيږي، نو شريعت دا حرج لرې کړو په طهارت د جوټې د دې سره۔

٦- دا حديث او ددې پشان نور احاديث دلالت كوي په يوه لويه قاعده كليه شرعيه باندې چه هغه دا ده (المشقة تجلب التيسير). په كوم شي كښې چه مشقت راځي نو شريعت پكښې آساني پيدا كوي. نو د پيشو نه څيزونه، لوښي ساتل ګران دي نو شريعت ددې جوټه هم پاكه كړه اګركه په لامده څيزونو كښې خوله اووهي.

٧ - دارنګه ددې حديث نه معلومه شوه چه څانله جوټه نه بلكه د پيشو هراندام چه د جامې يا لوښي نه اولګي نو پاك به وي.

بيا نور علماء په دې علت باندې نور طوافين حيوانات هم قياس كوي، لكه مار، لړم، مږه وغيره. نو هغوئ كښې هم دا علت شته دې نو د هغې جوټه هم پاكه ده. او دارنګه قياس ته ضرورت هم نشته بلكه دا معلوميږي د عموم د راتلونكي حديث نه.

او هـمدا خبره صحيح ده، لأن الماء طهور لا ينجسه شئ، الا ما تغير لونه، او طعمه، او ريحه.

**الفائدة الفائقة** : احكام شرعيه د اهل الظواهر په نيز معلول بعلّةٍ نه دي. او د ائمه أربعه ؤ په نيز أكثر احكام معلول بعلّةٍ دي، نو كوم ځائې چه علت موجود وي هلته به حكم هم موجود وي، اوكه علت نه وي موجود نو حكم به هم نه وي موجود.

**درجة الحديث** : رواه النسائي وابوداود وابن ماجة والدارمي وصححه البخاري والعقيلي والدارقطني وابن خزيمة فسنده صحيح.

---

١٠ - وَعَنْ دَاوٗدَ بْنِ صَالِحِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ أُمِّهٖ اَنَّ مَوْلَاتَهَا اَرْسَلَتْهَا بِهَرِيْسَةٍ اِلٰى عَائِشَةَ قَالَتْ : فَوَجَدْتُّهَا تُصَلِّيْ فَأَشَارَتْ اِلَيَّ : اَنْ ضَعِيْهَا فَجَائَتْ هِرَّةٌ فَأَكَلَتْ مِنْهَا فَلَمَّا انْصَرَفَتْ عَائِشَةُ مِنْ صَلَاتِهَا أَكَلَتْ مِنْ حَيْثُ أَكَلَتِ الْهِرَّةُ، فَقَالَتْ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ : اِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ. اِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِيْنَ عَلَيْكُمْ وَاِنِّيْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَتَوَضَّأُ بِفَضْلِهَا . رَوَاهُ أَبُوْدَاوٗدَ .

**ترجمه** : داود بن صالح بن دينارؒ د خپلې مور بي بي نه نقل كوي چه يوه ورځ د هغې

آزادونکے مالکے هغه له حلواء سره عائشےؓ ته اولیږله، د هغه مور وائی : زه چه هلته اورسیدم نو بی بی عائشےؓ مونځ کولو، هغے اشارے سره د هغے ایخودلو دپاره ماته اووئیل. نو ما د حلواء لوښے کیخودلو. دے کښے یوه پیشو راغله او د هغے نه ئے خوراك شروع کړو، بی بی عائشهؓ چه د مونځ نه فارغ شوه، نو پیشو چه د کوم ځائے نه خوراك کړے وو، د هغے ځائے نه ئے خوراك اوکړو، او وے فرمائیل : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : پیشو ناپاکه نه ده، دا خو تاسو ته د تلونکو راتلونکو نه ده. او ما خپله رسول الله ﷺ اولیدو چه د پیشو په جوټه کړو اوبو باندے ئے اودس کولو. (ابوداود).

## تعارف : د داؤد بن صالح بن دینار :

التمار المدنی، مولی الأنصار، امام احمدؒ فرمائی : لا اعلم به بأسا، ابن حبانؒ ورته ثقه وائی، حافظ ابن حجرؒ فرمائی : صدوق من صغار التابعین.

**تشریح** : بِهَرِيْسَةٍ: هریسه هغه حلواء ته وائی چه د ټکولے شوو اوربشو او غوښے نه پخه کړے شوے وی.

اِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ : یعنے ددے پیشو جوټه پلیته نه ده. دا حدیث صریح دلیل دے په دے چه د پیشو په جوټه شوو اوبو سره اودس کول جائز دی، او رسول الله ﷺ پخپله هم په دے سره اودس کړیدے، نو کومو علماؤ - لکه امام ابو حنیفهؒ - چه دیته مکروه وئیلی دی نو دا قول ضعیف دے، او ددے حدیث خلاف دے.

**فائده** : امام طحاویؒ د منځکښے حدیث د ابو قتادةؓ نه دا جواب کړیدے چه (انها لیست بنجس) نه دا نه معلومیږی چه د پیشو جوټه پاکه ده، بلکه دا محمول دے په دے باندے چه کله د جامے وغیره نه پیشو اولګی نو دا به نه وی نجس، او عمل د أبو قتادةؓ دده خپل اجتهاد دے، چه ددے حدیث نه ئے استدلال کړیدے. مګر د امام طحاویؒ دا خبره مردود ده، په دے الفاظ سره چه (رأیت رسول الله ﷺ یتوضأ بفضلها)، ځکه دا نص دے په دے کښے چه نبی ﷺ د هغے جوټه پاکه ګڼلے ده او په هغے باندے ئے اودس کړے دے. او عائشےؓ په هغه ځائے خله ایخے ده په کوم ځائے چه پیشو خله ایخے وه. بعضے خلقو لا دا فرق کړیدے چه کله پیشو مږه یا ګندګئ وغیره تازه خوړلی وی، نو جوټه ئے نجس ده،

اوکه تازه ئے نه وی خوړلی نو پاکه ده، دا هسے اجتهادی فرق دے، او د تازه اود زړو خوړلو منضبط فرق هم ګران دے۔

**فَأَشَارَتْ اِلَيَّ** : ١ – په مانځه کښے تعليم او تعلم جواز لری، او په دے سره مونځ نه فاسديږی، دلته عائشهؓ په لاس يا په سر سره اشاره کړيده۔ دارنګه نبی ﷺ په مانځه کښے ډير تصرفات کړيدی، لکه مار،لړم ئے وژلے دے، دروازه ئے کهلاوه کړيده، د سلام جواب ئے د لاس په اشارے سره ورکړيدے، ماشومه جينئ ئے اوچته کړے ښکته کړيده، مانځه کښے مخے ته تيريدونکی ته به ئے لاس نيولو۔ يو صحابی ته ئے اووئيل (ترّب وجهك) د بهر مانځه نه داخل الصلاة ته فتح ورکړے شويده۔ دا په صورت د (وتعاونوا علی البر والتقویٰ) باندے حمل دی۔

**درجة الحديث** : رواه أبوداود : ددے حديث په سند کښے عبد العزيز بن محمد الدراوردی صدوق راوی دے، وثّقه مالك والنسائی وابن معين، ليکن أم داؤد په کښے مجهوله راويه ده، البته نور احاديث چه زيلعیؒ په نصب الراية کښے ذکر کړيدی، ددے مؤيد کيدے شی۔ او دا روايت پرے قوی کيږی۔ وکما مرّ۔ ليکن البانی صاحب دے حديث ته حسن صحيح وئيلے دے صحيح سنن ابی داود رقم (٧٥) ويشهد له الحديث الذی قبله۔

---

**١١ – وَعَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ : سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنَتَوَضَّأُ بِمَا أَفْضَلَتِ الْحُمُرُ ؟ قَالَ : (نَعَمْ وَبِمَا أَفْضَلَتِ السِّبَاعُ كُلُّهَا). رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.**

**ترجمه** : جابرؓ نه روايت دے چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو : آيا مونږ هغے اوبو سره اودس کولے شو چه خرونو جوټه کړے وی ؟ نبی ﷺ اوفرمائيل : آو، (هغے سره اودس کول جائز دی) او هغه اوبو سره هم اودس کول جائز دی چه درندګانو ټولو جوټه کړے وی۔ (شرح السنه)۔

**تشريح** : نَعَمْ وَبِمَا أَفْضَلَتِ السِّبَاعُ كُلُّهَا : دا حديث د جمهورو د مذهب مطابق دے چه د سباع البهائم (درندګان حيواناتو) جوټه پاکه ده۔ ٢ – دارنګه د هر قسم خرو، قچرو جوټه هم پاکه ده۔ اومشکوك والا خبره خطاء ده۔

دا حدیث عموم کلی دے څکه ئے په جواب کښے زیادت هم اوکړو، په بما افضلت السباع کلها سره څکه خرهٔ خو لا په څائے پریده د هر قسم حیوان درنده جوټه پاکه ده۔ ددے نه سپے اوخنزیر په نورو دلائلو سره خاص شوی دی۔

**درجة الحدیث** : رواه فی شرح السنة : دا حدیث دارقطنی (٦٢/١) او بیهقی فی الکبری (٢٤٩/١) والشافعی فی الام (٦/١) هم راوړیدے، ددے حدیث دوه سندونه دی، لکه دارقطنی ذکر کړیدی :

١- د یو په سند کښے ابرهیم بن محمد بن أبی یحییٰ متروك راوی دے، او :

٢- په دویم کښے ابراهیم بن اسماعیل بن أبی حبیبه ضعیف دے، او دارقطنی دا حدیث ددے دواړو سندونو په وجه ضعیف کړیدے، وفی سند البیهقی داود بن الحصین وابوه ضعیفان۔ لیکن ددے معنیٰ صحیح ده، د شواهدو په وجه۔ او د آثار الصحابةؓ په وجه، چه هغه آثار امام طحاویؒ او امام ابن أبی شیبهؒ او فتاوی الدین الخالص (٢٩١/٢) کښے اوګوره۔ قال الشوکانی : قال البیهقی : له أسانید إذا ضم بعضها الی بعض کانت قویة النیل (٤٥/١)۔

---

١٢- وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ اِغْتَسَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ هُوَ وَمَيْمُوْنَةُ فِيْ قَصْعَةٍ فِيْهَا أَثَرُ الْعَجِيْنِ . رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه .

**ترجمه** : ام هانئ نه روایت دے دا فرمائی : رسول الله ﷺ او میمونهؓ د یو ښانك نه اودس اوکړو چه په هغے کښے د اخکلے ښوو اوړو اثر وو۔ (نسائی، ابن ماجه)۔

**تعارف : د أم هانئ**: رضی الله عنها :

ددے نوم فاخته یا هنده دے، دا د علی رضی الله عنه خپله خور ده، او د أبو طالب لور ده، دا په زمانه د جاهلیت کښے نبی ﷺ او هبیره بن أبی وهب د ابو طالب نه په نکاح اوغوښتله، هغه هبیره ته په نکاح ورکړه، بیا دے د فتح مکه په ورځ اسلام قبول کړو، نو اسلام ددے او ددے د خاوند - هبیره - ترمینځه نکاح ماته کړه، بیا ئے نبی ﷺ مطالبه اوکړه، نو دے ورته اووئیل : زما ستا سره په جاهلیت کښے محبت وو، نو په اسلام کښے خو

خامخا محبت دے، لیکن خبره داده چه زه د ډیرو ماشومانو موریم، نو نبی ﷺ ترے نه عذر قبول کړو۔ ټول (٤٦) احادیث ددے نه نقل دی۔

**تشریح : فِیْ قَصْعَةٍ** : د خانك پشان کاسه ده، په دے حدیث کښے دا مسئله ده چه ټولے اوبه پاکے دی، اګرچه طاهر – یعنے پاك څیز – ورسره ګډ شوے وی۔ او په دے حدیث کښے هغه اوبه ذکر دی۔ (خالطه طاهر) : یعنے چه پاك څیز ورسره ملاؤ شوے وی، د شوافعو په نیز په اوبو کښے تغیر راتلو سره – برابره خبره ده که ملاؤ شوے څیز پاك وی اوکه ناپاك – اوبه پلیتیږی۔ اود اوداسه او غسل دپاره قابل نه وی۔ په دے وجه هغوئ ددے حدیث داسے تاویل کوی چه کاسه یا خانك کښے دومره وړۀ نه پاتے کیږی چه په اوبو کښے تغیر پیدا شی، نو ځکه په دے اوبو باندے نبی ﷺ او میمونهؓ غسل اوکړو۔ لیکن دا قول د دوئ کمزورے دے کماعرفت۔

**درجة الحدیث** : رواه احمد (٣٤٢/١) والنسائی (٤٧/١) وابن ماجة (٣٧٨) : وسنده حسن أو صحیح ورجاله ثقات لکن اعله البیهقی بالانقطاع بین مجاهد وام هانئ کما فی السنن الکبری (١/٧–٨) لکن رواه النسائی (٧١/١) من طریق عطاء قال حدثتنی ام هانئ به وهو متصل وسنده حسن. کذا فی تعلیق المشکاة لرمضان (٢١٨/١)۔

---

## الفصل الثالث - دریم فصل

١٣ – عَنْ یَحْیَی بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ : اِنَّ عُمَرَ خَرَجَ فِیْ رَکْبٍ فِیْهِمْ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ حَتّٰی وَرَدُوْا حَوْضًا ، فَقَالَ عَمْرٌو : یَا صَاحِبَ الْحَوْضِ! هَلْ تَرِدُ حَوْضَکَ السِّبَاعُ ؟ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ : یَا صَاحِبَ الْحَوْضِ ! لَا تُخْبِرْنَا، فَاِنَّا نَرِدُ عَلَی السِّبَاعِ وَتَرِدُ عَلَیْنَا ). رَوَاهُ مَالِكٌ.

١٤ – وَزَادَ رَزِیْنٌ قَالَ : زَادَ بَعْضُ الرُّوَاةِ فِیْ قَوْلِ عُمَرَ : وَاِنِّیْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ یَقُوْلُ : لَهَا مَا اَخَذَتْ فِیْ بُطُوْنِهَا وَمَا بَقِیَ فَهُوَ لَنَا طَهُوْرٌ وَشَرَابٌ ).

**ترجمه** : یحیی بن عبد الرحمنؒ فرمائی : عمر بن الخطابؓ یو یے قافلے سره چه هغے

کښې عمرو بن العاصؓ هم وو روان شو، هر کله چه قافلې واله یو حوض ته اورسیدل نو عمرو بن عاصؓ اووئیل : اې د تالاب مالکه ! آیا ستا دې تالاب ته (اوبو څکلو دپاره) درندګان راځي ؟ (دې آوریدو سره عمر بن خطابؓ) اوفرمائیل : اې د تالاب مالکه ! ته مونږ ته ددې خبر مه راکوه، ځکه چه مونږ په درندګانو راځو او درندګان په مونږ راځي۔ (یعنې کله مونږ اوبو له راځو اوکله درندګان اوبو له راځي)۔ (مالك) او رزین دا زیاتی وئیلې دی چه بعضې راویانو د عمرؓ په دې قول کښې دا زیاتی کړې دې چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلې دی چه فرمائیل ئې : د درندګانو دپاره هغه څه دی چه په خپلو خیټو کښې یوسي، او څه چه باقي پاتې شي هغه زمونږ د څکلو قابلې او پاکونکې دي۔

## تعارف : د یحیی بن عبد الرحمن رحمه الله :

د حاطب بن أبي بلتعه رضی الله عنه نواسې او ثقه تابعيؒ دې، د عثمان رضی الله عنه په دور خلافت کښې پیدا شویدې، او په سنه (١٠٤) هـ کښې وفات شویدې، عثمان، علي اوزید بن ثابت رضی الله عنهم سره ئې ملاقات شوې دې، کثیر الحدیث راوی دې۔

## تشریح : هَلْ تَرِدُ حَوْضَکَ السِّبَاعَ ؟

د **سوال** مطلب دادې چه که درندګان حوض ته راځي نو اودس ترې نه کوو، اوکه نه راځي نو اودس به ترې اوکړو۔ په بل روایت کښې دی چه عمر رضی الله عنه په عمرو بن العاص باندې رد اوکړو چه : یاصاحب المقراة لا تخبره هذا متکلف لها ما حملت في بطونها ولنا ما بقي شراب وطهور .اخرجه الدارقطني بروایة ابن عمرؓ کذا في النیل (١/٤٥ . یعنی اې د حوض مالکه ! ده ته خبر مه ورکوه ځکه چه دا متکلف ( متشدد) دې بلکه مسئله دا ده چه د درنده ګانو نه چه مونږ ته کومې اوبه پاتې شویدی نو دا بالکل پاکې اوبه دی۔ د هغوی په جوټه سره دا اوبه نه خرابیږي۔

فانا نرد علی السباع : یعنې مونږ په غرونو اوکنډوونو کښې د هغوئ څکلې شوې اوبه څکو، اوکله زمونږه حوضونو ته درندګان راځي۔ دا حدیث دلیل دې په طهارت د جوټه د سباع البهائم (درندګانو) او هر قسم حیواناتو باندې۔

**درجة الحدیث** : رواه مالك في الموطا (١/٢٣-٢٤) رقم (١٤) : دا روایت منقطع او

مرسل دے، ځکه يحيیٰ اگرچه ثقه دے ليکن د عمر فاروقؓ نه ئے آوريدل نه دی کړی، او ورسره نه دے ملاؤ شوے، كذا قال البيهقي. وابن عبد الهادي في تنقيح التحقيق (١/٢٤٦) في اسناده انقطاع۔ ليکن دا احتمال شته چه ده به د عمرو بن العاصؓ نه آوريدلے وی، نو بيا د نورو رواياتو سره کار ورکوی۔ هغه ورله تائيد ورکوی۔

---

١٥ - وَعَنْ أَبِیْ سَعِيْدِ الْخُدْرِیِّ رضي الله عنه أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ سُئِلَ عَنِ الْحِيَاضِ الَّتِیْ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ تَرِدُهَا السِّبَاعُ وَالْكِلَابُ وَالْحُمُرُ عَنِ الطُّهْرِ مِنْهَا فَقَالَ : لَهَا مَا حَمَلَتْ فِیْ بُطُوْنِهَا وَلَنَا مَا غَبَرَ طَهُوْرٌ ) . رَوَاهُ ابْنُ مَاجه .

**ترجمه** : ابو سعيد خدریؓ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ نه د هغه حوضونو باره کښے تپوس اوشو کوم چه د مکے او مدينے ترمينځه دی، چه دے ته درندگان، سپی او خره راځی، چه ددے نه اودس کول څنگه دی ؟ نبی ﷺ اوفرمائيل : څه چه د هغوئ خيټو کښے راشی هغه د هغوئ دی، او څه چه باقی پاتے شی هغه زمونږ دپاره پاکونکے دی۔ (ابن ماجه)۔

**تشريح** : عَنِ الطُّهْرِ : دا بدل دے د عن الحياض نه، يعنے د نبی ﷺ نه د حوض نه د اودس کولو متعلق تپوس اوشو، چه ديته درندگان راځی، نو نبی ﷺ جواب ورکړو، چه دا اوبه چه د حيواناتو نه پاتے شوی دی بالکل پاکے دی۔

مَا غَبَرَ : بفتح الباء په معنی د مابقی سره۔

**درجة الحديث** : دا حديث هم سندا ضعيف دے، ځکه چه عبد الرحمن بن زيد بن أسلم راوی په کښے سیئ الحفظ دے۔ ليکن ددے په معنیٰ باندے ډير آثار او احاديث موجود دی، چه ټول راجمع کړے شی نو يوه صحيح معنیٰ ورکوی چه سؤر البهائم پاکه ده۔ برابره خبره ده که لږ اوبه کښے خله اووهی، او که ډيرو اوبو کښے۔

١٦ - وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه قَالَ : ( لَا تَغْتَسِلُوْا بِالْمَاءِ الْمُشَمَّسِ فَإِنَّهُ يُوْرِثُ الْبَرَصَ ). رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِیُّ .

**ترجمه** : عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمائي : په نمر باندې ګرمو شوو اوبو باندې اودس مه كوئ ځكه چه دې سره برګې مرض پيدا كيږي۔ (دارقطني)۔

**تشريح : لَا تَغْتَسِلُوْا بِالْمَاءِ الْمُشَمَّسِ الخ :**

د ماء مشمس (نمر باندې ګرمې شوو اوبو) باره كښې مرفوع احاديث حافظ ابن عبد الهادي په تنقيح التحقيق (٤٤/١) كښې او زيلعيّ په نصب الرايه (١٠١/١) او حافظ په تلخيص الحبير (٢٢/١) او بيهقي (٦/١) كښې راوړيدي، ليكن هغه ټول ضعيف دي، او نه دي ثابت۔ او هرچه موقوف حديث د عمر فاروق رضي الله عنه دې، نو دا هم ضعيف دې، كما يأتي۔ دا وجه ده چه د جمهورو په نيز په هغه اوبو باندې چه نمر ته پرتې وي، نمر وهلې وي، اودس جواز لري۔

٢ – امام شافعي رحمه الله فرمائي : مكروه دي، ليكن روستني شوافع وائي : امام شافعي رحمه الله ورته مكروه ځكه وئيلي چه طبي نقصان په كښې دې هغه داچه برګې مرض پيدا كوي۔ او دا مطلب د عمر فاروق رضي الله عنه هم دې۔ د دين د وجې نه ئې منع نه ده كړې، د الله او رسول ﷺ په نزد ممنوع نه دي۔ يا د عمر فاروق رضي الله عنه مقصد دادې چه تاسو په دې كار هميش والې مه كوئ، هسې نه چه برګي مرض كښې مبتلا نشئ۔ او عمر فاروق رضي الله عنه دا د نبي ﷺ نه نه دي آوريدلي، مرفوعا نه دې ثابت۔ خو راجح داده چه امام شافعي رحمه الله د كراهت نه په يو قول كښې د جمهورو قول ته رجوع كړيده۔

**درجة الحديث** : رواه الدارقطني والبيهقي (٦/١) وابن حبان وسنده ضعيف فيه حسان بن ازهر السلكي لم يوثقه غير ابن حبان وتوثيقه لا يعتد به كثيرا لان من عادته ان يوثق المجهولين وقد روى مرفوعا من طرق كلها واهية راجع التلخيص الحبير (١٢٢)۔

* * * * * * * * * *

# باب تطهير النجاسات

**مناسبت** : مخکښې داوبو احکام بیان شو، اوس وائي چه د نجاساتو لرې کولو دپاره به پاکې اوبه استعمالولې شي، او هغه به په پاکو اوبو سره وینځلې شي۔

١ – نجاست په دوه قسمه دے (١) يو نجاست باطني، لکه جنابت او بے اودسي وغيره۔

٢ – دويم نجاست ظاهري، دا عام طور سره په اوبو لرے کيږي، او بعضے نجاستونه د اوبو نه علاوه په بل شئ سره هم لرے کيږي، لکه دا داحنافو رائے هم ده، وهو الراجح دليلا۔ ★ او د جمهورو مذهب دادے چه نجاسات د اوبو نه علاوه په بل شئ سره نه زائل کيږي، مثال د هغه نجاساتو چه د اوبو نه علاوه بل څه سره لرے کيږي، لکه زمکه چه پليته شي، نو د هغے پاکوالے په اوچ والي سره راځي، يا گنده څپلئ چپړه زمکے پورے راکاږه او مسجد ته داخل شه، يا څرمنے ته چه رنګ ورکړے شي نو پاکه شي۔

بيا نجاسات اوپليتئ ډير اقسام لري : (١) ولوغ الكلب (٢) مني (٣) د حيض وينه (٤) بول متيازے (٥) د ماشومانو بول (٦) چقړو کښے ګنده کيدل (٧) څرمن ۔ د هريو دپاره خپل خپل زائل کول اوصفا کول دی۔ چه تفصيل به ئے راشي۔

---

## الفصل الأول اولنے فصل

١ – عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : اِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ فِيْ اِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْسِلْهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ : طُهُوْرُ اِنَاءِ اَحَدِكُمْ اِذَا وَلَغَ فِيْهِ الْكَلْبُ اَنْ يَغْسِلَهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ اُوْلَاهُنَّ بِالتُّرَابِ .

**ترجمه** : ابو هريرةؓ فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کله چه ستاسو کښے د چا په لوښي کښے سپے څکل اوکړي، نو هغه دے اووه کرتے اووينځي ۔ (بخاري، مسلم) او د

مسلم په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : پاکوالے د لوښی د یو کس ستاسو - کله چه په کښې سپے خله اووهی - دادے چه دا اووه ځله اووینځی، چه په دے کښې به ئے اول ځل په خاوره اووینځی۔

**تشریح** : اِذَا وَلَغَ فِيْهِ الْكَلْبُ :وَلَغَ د باب فتح نه مصدرئے وُلُوْغاً اويَالَغُ وَلْغاً بسکون اللام فی المصدر : ۱- اذا شرب بطرف لسانه ۲- او ادخل لسانه فيه فَحرّكهٗ۔یعنی د سپی وغیره په طرف د ژبه باندے اوبه څکل- یا ژبه په لوښی کښ داخلول او هغے کښ خوزولو ته ولوغ وائی کذا فی لسان العرب (٦/٤٩١٧) فتح العلام ص (۵۵)۔

**مسئلة ولوغ الكلب** : صورت د مسئلې : سپے چه کله په لوښی کښے خله اووهی نو هغه لوښے پاك دے كه پليت ؟ په دے کښے دوه قوله دی۔

(۱) امام مالك او امام بخاری مذهب دادے چه دغه شے او اوبه پلیت نه دی، او ددے نه لوښے وینځل ضروری دی، او دا حکم تعبدی دے (۲) او جمهور علماء وائی : هرکله چه لوښے پلیت شو نو هغه شے به هم پلیت وی، لیکن امام بخاری جواب کوی چه شے پاك دے او د لوښی وینځلو حکم تعبدی دے، د نجاست په وجه نه دے۔

۲ - **دویمه مسئله** :لوښے به څو کرته وینځلے کیږی کله چه پکښے سپی خله اووهی؟ نو دے کښے اختلاف دے :

۱ - امام مالك، شافعی، احمد، ابن عباسؓ، عروه بن الزبیر، ابن سیرین، اسحق، اوزاعی رائے داده چه اووه (۷) کرتے وینځل واجب دی۔

۲ - احناف وائی درے کرته وینځل کافی دی اووه (۷) او اته (۸) کرته وینځلو ته ضرورت نشته۔ بلکه که اووه کرت وینځی نو صرف مستحب قدرے دی۔

او هر چه په خارو باندے ککړول دی نو مالکیه وائی چه صرف اووه کرتے وینځل کافی دی نه اته کرته او تتریب (یعنی په خاورو باندے ککړول) هم نشته۔

۳ - او شوافع د خاورو سره اووه (۷) کرتے وائی۔

٤- او حسن بصریؒ پدے حدیث عمل کړیدے چه وائی اته کرتے وینځل دی سره د

خاورو نه یعنې یو ځل به ئې په خاورو ککړل کړي او اووه ځل به ئې په اوبو وینځي ۔ او هم دده قول راجح دے کما رجحه الصنعاني في سبل السلام (۳۲/۱)۔

نو احناف اووه کرته وینځل او خاورو سره صفا کول په درجه د وجوب کښې نه منې، بلکه وائي چه درے کرتے به وینځلے شي، لکه عام نجاساتو پشان حکم لري۔

كذا ذكره الشوكاني في النيل (۱/۴۲-۴۶) والمباركفوري في التحفة (۹۳/۲) والنووي في شرح مسلم (۱۳۸/۱)۔

**دلائل** : احناف قاعده كليه پيش كوي چه حديث كښې ذكر ده۔

اذا استيقظ احدكم من منامه فلا يغمس يده في الاناء حتى يغسلها ثلاثا. رواه الشيخان وقد مر في اول باب سنن الوضوء۔

وجه د استدلال امام طحاوي داسې بيانوي چه هركله بول او براز په درے كرته وينځلو سره پاكيږي – چه دا اغلظ النجاسات دي – نو سؤر الكلب خو په طريقه اولىٰ سره په درے كرته وينځلو سره پاكيدل پكار دي. او دا قاعده كليه ده په زائل كولو د ټولو نجاساتو كښې. او دوئ وائي دا حديث مخالف دے ددے قاعدے نه، نو دوئ وائي درے ځل وينځل واجب دي، او اووه ځل وينځل مستحب دي۔

**جمهور جواب** وركوي چه دغه قاعده كليه نه ده، بلكه دهغه مقام پورے خاص ده، ځكه ډير اوقاتو كښې يو ځل وينځل هم راغلي دي، لكه تاسو دا وئيلي دي چه د پيشو جوټه به يو ځل وينځلے كيږي، كما مرّ. نو هغه هم ددے قاعده كليه نه مخالف شو، نو معلوميږي چه د سپي په باره كښې قانون جدا دے، او دغه قانون جدا دے. نو دواړه حديثونه جدا جدا قاعدے دي. يوه قاعده په بله كښې نه دي مدغم كول پكار۔

او دارنګه دا حديث په استحباب باندے حمل كول هم صحيح نه دي، ځكه چه نبي ﷺ په روايت د أبو هريرةؓ كښې عند مسلم (۱۳۸/۱) والدارقطني (۶۳/۱) كما ذكره المصنف) داسې فرمائيلي دي : (طهور اناء احدكم .... الحديث) ۔ يعنې دائې د پاكولو حد دے، او ددے نه په كم سره پاكوالے نه حاصليږي. نو د ځانه قاعده جوړول، او بل حديث په هغې باندے حملول د مذهب په بناء باندے صحيح نه دي، بلكه احاديث ټول په خپله

قواعد دی۔

۲ - **دویم دلیل** : دا وائی چه دا حدیث ابو هریرةؓ نقل کړیدے، او دارقطنی (٦٢/١) کښے دی چه ده فتویٰ ورکړیده په درے کرته وینځلو سره، لکه هغے کښے (عن عبد الملك عن عطاء عن أبی هریرة : اذا ولغ الکلب فی اناء احدکم فلیغسله ثلث مرات)، نو تعارض راغلو په مابین د روایت د روای کښے او عمل او رائے د راوی کښے۔ نو مونږ د راوی رائے لره اعتبار ورکوو، نه روایت ده لره۔ ځکه چه هرکله راوی د خپل روایت مخالف فتویٰ ورکړی، معلومیږی چه دا روایت ده په نیز نه دے ثابت۔

**جواب** : ددے دوه جوابونه دی :

۱ - **اول جواب** دادے چه دارقطنی (٦٣/١) کښے دده بله فتویٰ هم موجود ده۔ (عن ابی هریرة فی الکلب یلغ فی الاناء قال : یهراق ویغسل سبع مرات - صحیح موقوف)، او دا صحیح موقوف دے، کما قال الدارقطنی، نو تعارض راغلو ددوه فتویٰ ګانو دده، نو دواړه به پریدو، اګرکه د تثلیث فتوی ئے په ضعیف سند سره نقل ده او حدیث مرفوع باندے به عمل اوکړو، کوم چه ده نقل کړیدے۔

بله دا چه دا روایت د ډیرو صحابوؓ نه نقل دے، د علی، ابن عباس او ابن عمر - رضی الله عنهم - نه، چه اووه (۷) کرته به ئے وینځی۔ کما فی الدارقطنی (٦٣/١) یوائے د ابو هریرةؓ روایت نه دے۔

۲ - دارنګه قول او فعل د ابو هریرةؓ چه دارقطنی نقل کړیدے هغه هم په روایت د عبد الملك بن أبی سلیمان سره دے، اوده باره کښے علماء فرمائی : (صدوق له اوهام، و کان یخطئ). کما قال الحافظ فی التقریب (٣٦٣)۔

امام بخاریؒ په خپل صحیح کښے په ده باندے احتجاج نه دے کړے، کذا فی التحفة (٩٣/١) وتنقیح التحقیق (٥٥/١)۔ دارنګه امام بیهقیؒ په المعرفة کښے فرمائی : عبد الملك په خپل روایت کښے د ثقاتو نه خلاف کړیدے : وعبد الملك لا یقبل منه ما یخالف فیه الثقات لمخالفته أهل الحفظ و الثقة فی بعض روایته ترکه شعبة بن الحجاج. انظر التعلیق المغنی : ٦٤/١۔

نو عبد الملك په خپل روایت کښې خطاء شویدې چه د تثلیث روایت ئې د ابو هریرةؓ نه نقل کړیدې، او نورو ملګروئې تسبیع نقل کړیده، نو د حاشیه والاخبره صحیح نه ده چه فرمائي : رواه الدارقطني باسناد صحیح. بلکه کلام په کښې دې (فهی روایة منکرة).

۳ – دارنګه دا حدیث که صحیح ثابت هم شي نو بیا هم مخالف دې د مرفوع حدیث نه، او عند التعارض مرفوع حدیث له به اعتبار وي په مقابله د موقوف کښې.

٤ – دارنګه دویم **جواب** دادې چه دا قاعده ضعیفه ده چه کله تعارض په مابین د رائې د راوي او د روایت د راوي کښې راشي نو رائې له به اعتبار وي. بلکه صحیح خبره داده چه روایت له به اعتبار وي په مقابله د رائې دده کښې. ځکه د رائې په باره کښې دا احتمال کیدې شي چه دا په نسیان د روایت باندې بناء وي، لکه ډیر راویان وائي حدثني فلان عني. یعنې روایت به ترې هیروي، او رائې به ئې د روایت مخالف قائمه شوې وي، لکه داسې ډیر واقع شوي دي، لکه مثلاً ابو هریرةؓ (لا عدوی ولاطیرة) والا حدیث هیر کړې وو، او ددې په خلاف ئې رائې قائمه شوې وه، چا ورته اووئیل : تا نه مونږ دا روایت آوریدلې دې. نو هغه غصه شو او په غصه کښې ئې په حبشه ژبه کښې خبرې اوکړې، بیا ئې ورته اووئیل چه ته به وائې ماته ئې کنځلې اوکړې، ما دا اووئیل چه زه ددې خبرې انکار کوم. مانه هیر شوې دې.

دارنګه احنافو هم په مختلفو ځایونو کښې د راوي رائې د هغه د روایت په مقابله کښې پریښې ده، او روایت ئې اخستې دې، لکه د عثمانؓ او عائشةؓ نه روایت دې چه په سفر کښې رکعتین دي، او هغوئ به پخپله عمل په څلورو رکعتونو باندې کولو، او تاسو د هغوئ عمل ترك کړیدې او د هغوئ مرفوع روایت مو اخستې دې.

۲ – یا داچه د هغه راوي به دا عقیده وي چه اووه کرتې وینځل مستحب دي، نو ځکه په درې کرتې باندې فتویٰ ورکړیده.

نو ددې نه دا نه لازمیږي چه دا روایت دې منسوخ وي، بلکه ما سیوا د ابو هریرةؓ نه د عبد الله بن مغفلؓ نه هم دا روایت د تسبیع نقل دې، هغې کښې دا احتمال نشي راتلې. کذا فی التحفة (۱/۹۳). نو مرفوع روایت په تثلیث کښې نشته، نه دې ثابت، او تول ضعیف دي، لکه دارقطني او ابن عدي فی الکامل راوړیدي. او موقوف معارض د مرفوع نشي

جو ړيدلې. كما عرفتَ.

**دلائل الجمهور** : ١ - **اول دليل** : حديث الباب د ابو هريرةؓ دے، چه دے کښے أمر دے په تسبيع باندے. او په روايت د مسلم کښے (اولاهن بالتراب) راغلي، او په روايت د عبد الله بن مغفلؓ کښے (فاغسلوه سبع مرات، وعفروه الثامنة بالتراب) رواه مسلم. راغلى دى. دغه شان روايت د ابن عمرؓ هم دے.

نو احناف اووه ځله وينځل او په خاورو ككړول نه منى په درجه د وجوب كښ.

٢ - او مالكيه اووه كرته منى، ليكن آتم ځل خاورو سره ككړ كول نه منى، حديث ورته نه دے رسيدلے.

٣ - او شوافع اووه كرته سره د خاورو نه منى، ليكن آته كرته وينځل نه منى.

نو ټولو ددے احاديثو د ظاهر خلاف كړيدے، يا ورته حديث نه دے رسيدلے. ليكن بعض علماؤ د خپل مذهب په خاطر جمع كړيده په دے رواياتو كښے، لكه امام نوويؒ وائى (عفروه الثامنة) معنىٰ داده چه اغسلوه سبعا واحدة منهن بالتراب مع الماء. نو دلته خاوره قائم مقام د جدا وينځلو ده. نو ځكه ثامنه وئيلے ده. ورنه دا اووه كرته وينځل دى، سره د خاورو نه. نو لهذا دا حديث د شوافعو د قول مطابق شو ليكن علامه الامير الصنعانى په سبل السلام (٣٢/١) كښے فرمائى : (وهو تاويل مستكره، وتاويل من قال باخراجها من الحقيقة الى المجاز كل ذلك محاماة عن المذهب والحق مع الحسن البصرى) . يعنى پدے حديث كښے تاويل كول مستكره (قبيح) دى او دا د مذهب مدافعت دے چه جائز ندے. او حق د حسن بصريؒ سره دے.

او بعضے احنافو په دے احاديثو اعتراض كړے چه دا مضطرب دى، ځكه بعضے رواياتو كښے (اولاهن بالتراب) راغلي، كما فى روايه مسلم او بعضو كښے ( اولاهن او أخراهن بالتراب) دى، كما فى روايه الترمذى والبزار او بعضو كښے (احداهنّ بالتراب) دے كما فى رواية الدارقطنى. او بعضو كښے عفروه الثامنة بالتراب دے كما فى مسلم والنسائى.

**جواب** : اضطراب دوه قسمه دے (١) يو قسم هغه دے چه تطبيق ممكن نه وى، نو دا مضر دے صحت د حديث ته (٢) دويم هغه دے چه تطبيق په كښے ممكن وى، او دلته

تطبیق ممکن دے، هغه دا چه (اولاهن بالتراب والا روایت قوی دے من حیث الاکثریة والاحفظیة او من حیث المعنی هم ( لان تتریب الاخیرة یقتضی الاحتیاج الی غسله اخری لتنظیفه) یعنی ځکه چه آخر ځل خاوره راخکل احتیاج راولی دوباره وینځلو ته دپاره د صفا کولو د لوښی د خاورو نه، او (اخراهن) والا روایت کښې شك د راوی دے نو د نورو روایاتو سره ئے تطبیق دا دے چه اولاهن لفظ صحیح دے نه اخراهن۔ او یوائے اخراهن والا روایت ضعیف دے۔

او (احداهن) والا روایت مطلق دے، چه حمل دے په (اولاهن) باندے۔ او هغه ئے بیان دے۔ او دارنګه د (عفروه الثامنة ) نه مراد دادے چه یو کرت به په خاورو اووینځی، اووه کرته په اوبو۔ نو کله چه دواړه جمع شی آته کرته شو، چه جدا حساب شی۔ نو اوبه اووه ځل شوے او خاوره یو ځل۔ ددے وجے نه د سبع مرات اوثمانی مرات منافات نشته۔

بعضے احناف وائی : دا حدیث د أمر بالتسبیع منسوخ دے، اودا په هغه وخت کښے وو، کله چه أمر شوے وو په قتل الکلاب – سپو وژلو – باندے۔ بیا دغه أمر منسوخ شو نو حکم د تسبیع هم منسوخ شو۔ لکه چه دا ابن الهمام اوصاحب د تنظیم الأشتات وئیلی دی۔

**جواب** : (۱) اول خو ستاسو خپل مینځ کښې اختلاف او تردد راغلو هغه دا چه کله وایئ دا حکم حمل دے په استحباب باندے یعنے اووه کرتے وینځل مستحب دی او کله وایئ چه منسوخ دے نو آیا منسوخ حکم مستحب جوړیدے شی، خو دا د حدیث د ورانولو دپاره حیلے دی۔

۲– دویم دا چه : د منسوخ کیدو خبره سراسر خطاء ده، ځکه چه امر د تسبیع په روایت د ابو هریرةؓ او ابن المغفلؓ سره نقل دے کما فی مسلم (۱۳۷) او د ابو هریرةؓ او ابن المغفلؓ اسلام په اووم (۷) کال د هجرت وو، او أمر بقتل الکلاب دا په اوائلو د هجرت کښے شویدے۔ نو دواړو مابین کښے ډیره فاصله ده۔ او متقدم څنګه ناسخ جوړیدے شی د متأخر دپاره۔ دارنګه د عبد الله بن المغفلؓ په روایت د مسلم (۱/۱۳۷) او طحاوی شرح معانی الآثار ص (۲۱) کښے دی چه دا فرمائی : امر رسول الله ﷺ بقتل الکلاب ثم قال ما

بالهم و بال الكلاب ثم رخص فى كلب الصيد و كلب الغنم .وقال اذا ولغ الكلب فى الاناء فاغسلوه سبع مرات وعفروه الثامنة فى التراب. واللفظ لمسلم۔

یعنی رسول الله ﷺ د سپو په وژلو امر اوکړو بیا ئے د ښکاری او د بزو د حفاظت دپاره د سپی ساتلو اجازه ئے ورکړه او وے فرمائیل: کله چه سپے په لوښی کښی خوله اووهی نو اووه کرت ئے اووینځئ او اتم کرت ئے په خاورو ککړل کړئ۔ وكذا أخرجه الترمذی وحسّنه۔

نو دے نه صراحت سره معلومه شوه چه أمر د قتل الكلاب مخکښے وو، بیا منسوخ شو، او د تسبیع حکم ذهغے نه پس اوشو، لکه دا خبره په السعایة کښے علامه عبد الحی لکنوی" صاحب هم تفصیلا کړیده، او رد ئے کړیدے په امام طحاوی" او ابن الهمام" باندے۔ او بیائے په آخر کښے وئیلی دی (ولعل المنصف غير المتعسف يعلم بعد ملاحظة هذا البحث ضعف كلام أرباب التثليث، وقوة كلام أصحاب التسبيع والتثمين)۔

او ښه تفصیل ددے مسئلے علامه مبارکفوری" په أبكار المنن ص (۳۵) او تحفة الاحوذی (۹٤/۱) کښے کړیدے۔ سره درد نه په علامه نیموی باندے۔ او د هغه په تعصب مذهبی باندے۔

**اعجوبه**: أطباء او ډاکټرانو دا معلومه کړیده چه د سپی په خله کښے داسے جراثیم دی چه دا بغیر د خاورو نه نه لرے کیږی، دا وجه ده چه نبی ﷺ حکیم الحکماء دے، په دے وجه ئے د تسبیع اوتتریب حکم کړیدے، او دا دلیل دے چه دا حکم وجوبی دے۔ ځکه ددے نه په غیر په درے ځله وینځلو سره جراثیم په لوښی کښے پاتے وی۔ نو مرضونه ترے پیدا کیږی۔ او یو انګریز په دے حکم تجربه اوکړه، هغه اووه کرته په اوبو سره اووینځلو نو جراثیم لرے نشو، بیا چه کله ئے خاوره استعمال کړه، او په خورد بین ئے اوکتل نو هغه جراثیم ختم شو، نو ایمان ئے راوړو۔ چه د الله پیغمبر ﷺ لوئے ساینسدان وو، نو دا حدیث د طب سره برابر دے، اوکه د طب برابر هم نشی، نو دالله د نبی ﷺ خبره ده، دا بغیر د تجربے نه هم واجب الاطاعت ده۔

---

۲ ـ وَعَنْهُ رضی الله عنه قَـالَ : قَـامَ أَعْرَابِيٌّ فَبَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَتَنَاوَلَهُ النَّاسُ فَقَالَ لَهُمْ

النَّبِيُّ ﷺ : ( دَعُوهُ وَهَرِيقُوا عَلَى بَوْلِهِ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ اَوْ ذَنُوبًا مِنْ مَاءٍ، فَاِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِيْنَ وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِيْنَ ). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : ابو هريرهؓ فرمائي : يو بانده چې پاڅيده او په جومات كښې ئې په ولاړه متيازې اوكړې، خلق هغه پسې شول۔ نو نبي ﷺ اوفرمائيل : دې پريدئ او ده په متيازو باندې د اوبو يو ډول واړوئ، ځكه چه تاسو آساني كونكي راليږل شوي يئ او سختي كونكي نه ئې راليږل شوي۔ (بخاري)۔

**تشريح** : ددې اعرابي باره كښې راځي چه دې سائل، قائل او بائل دې۔ سائل خو ځكه دې چه تپوسونه ئې كړيدي۔ او بائل ځكه دې چه په مسجد كښې ئې بول كړيدی۔ او قائل ځكه دې چه دعاء ئې كړيده (اللهم ارحمني ومحمدا، ولا ترحم معنا احدا)۔ يعنې : اې الله ! ما او محمد ﷺ اوبخښه او مونږ سره بل هيڅوك مه بخښه۔ نبي ﷺ دده باره كښې اوفرمائيل : هو أضلّ أم بعيرهُ۔ دې ډير ناپوهه دې اوكه دده اوښ۔ يعنې دعائې خطاء ده۔ دده نوم يا خو ذو الخويصرة اليمامي، يا أقرع بن حابس التميمي دې۔ يا عُيَيْنَةَ بن حصن الفزاري دې۔ أعرابي ورته ځكه وائي چه دا په بانډه كښې اوسيدل، بيا اعرابي عام دې كه عربي وي اوكه عجمي، خو چه بانډه كښې اوسيږي هغه ته أعرابي وائي۔

**فائده** : د روايت په ابتداء كښې چه كله اعرابي راشي ته پوهه شه چه څه ناشنا كار به شوې وي۔

فَبَالَ فِي الْمَسْجِدِ : ١ – **مسئله** : كله نا كله بول قائما جواز لري، دليل دا حديث دې چه دلته نبي ﷺ په ده باندې رد نه دې كړې چه په ولاړه بول مه كوه۔ نو دا تقرير د نبي ﷺ دې۔ او اعرابي په ولاړه بول كړيدی، لكه راتلونكي روايت كښې دي (فقام يبول)۔ ددې مسئلې تحقيق په فصل ثاني كښې په حديث (٣٠) د عمر باب آداب الخلاء كښې تير شويدې۔

دَعُوهُ : دلته په ظاهر كښې نبي ﷺ صحابهؓ منع كړل د نهي عن المنكر كولو نه، او وې فرمائيل چه دې پريدئ چه مسجد كښې شروع كړې بول پوره كړي۔ او دا خو منكر كار دې۔ ددې وجه داده چه دا قانون دې چه په شريعت كښې چه كله يو مقام كښې

مصلحت او مفسدت راجمع شي، او مصلحت ډیر وي د مفسدت نه، نو مصلحت اختیارول پکار دي، په نسبت سره لګ مفسدت ته. اودلته مصلحت ډیر دے په دے کښې چه دا اعرابي بول پوره کړي. ولے که دا منع کړے شي د بول کولو نه، نو دے کښې مفسدت ډیر راځي: ۱- ځکه که دا منع شي نو منډه به کړي، نور مسجد به ګنده شي، او جامے به ئے هم خرابے شي، ۲- دارنګه هغه ته به د بول په ایسارولو سره ضرر اوتکلیف اورسیږي.

۳- دریم دا چه مسجد کښې شور جوړیږي. ٤- دارنګه دے منع کولو سره انسان بد اخلاقه معلومیږي، ځکه دا انسان ناپوهه دے او ناپوهه سره سختي کول مناسب نه دي.

۵- بل دا چه یو ځل ئے مسجد ګنده کړیدے لګ وي اوکه ډیر، او بل طرفته په پریخودلو کښے دده فائده هم ده چه تول متیازے خلاصے کړي.

٦- او په دے کښے عمل دے په قاعده شرعیه د (من ابتلى ببليتين فليختر أهونهما) باندے، ځکه دلته هم دوه فسادونه دي، که متیازو ته ئے پریدو نو مسجد ګنده کیږي، اوکه منع کړوئے، نو دغه ډیر مفاسد مذکوره راځي، نو ځکه یو مفسدت - د بول کولو - اختیار کړے شو. شیخ بسام فرمائي: عند تزاحم المفاسد يرتكب اخفها. یعنی کله چه ډیرے مفاسد راجمع شي نو اخف او آسان به په کښې اختیارولے شي توضیح الاحکام (۱۱۳/۱).

**فائده** : ۱- په تعلیم او دعوت کښې به د جاهل سره نرمي کولے شي سختي به ورسره نشي کیدلے.

۲- په احکام شرعیه ؤ باندے چه په ژوند کښې کوم آثار مرتب وي نو دا صرف په حق د هغه چا کښې دي چه عالم وي په حکم باندے، خو کله چه څوك په یو حکم باندے جاهل وي د هغے د ګناه او عقوبت نه نه وي خبر نو هغه باندے ملامتیا نه وي لیکن تعلیم به ورته ورکولے شي، دے دپاره چه آینده کښې پدے حکم عمل اوکړي. لکه چه په بل روایت کښې راغلي دي چه نبي ﷺ دا اعرابي را اوغوښتو او ورته ئے اوفرمائیل چه مساجد ددے بول او ګندګئ دپاره مناسب ندي دا خو د الله د ذکر او مونځ او تلاوت دپاره دي. لکه روستو حدیث راروان دے.

وَهَرِيْقُوْا عَلٰى بَوْلِهٖ سَجْلًا : هريقوا : بفتح الهاء وكسرالراء (يعنى اوبه واړه وئ) هاء بدل د همزے نه راغلے ده اصل کښې باب افعال دے اراق الماء يعنى اوبه ئے تويه کړے. او دا هاء بيا لازم شويده د کلمے سره او کله نا کله همزه او هاء دواړه جمع کيږي. اهراق وئيلے شي.

## د پليتے زمکے پاکولو څه طريقه ده ؟

١ – احناف وائي : په اوبو هم پاکيږي، اگرچه دا گند په دے اوبو سره په زمکه تقسيم شي. ٢ – او په اوچ والى سره هم پاکيږي، چه زمکه اوچه شي نو پاکه شوه. او دا صحيح او راجح قول دے. د احاديثو مطابق دے.

يو دليل أثر د ابو قلابهؒ دے په مصنف عبد الرزاق کښے (جفوف الأرض طهورها). كما فى فقه السنه (١/٣٠).

٢ – عائشةؓ نه موقوفا نقل دى (زكاة الأرض يبسها)، وكذا فى ابن أبى شيبة وعبد الرزاق. انظر كشف النقاب (٣/١٢٧) والتلخيص الحبير (١/٣٧) قال الحافظ ولا اصل له فى المرفوع.

٣ – حديث د ابن عمرؓ کښے دى (كانت الكلاب تقبل وتدبر فى المسجد فلم يكونوا يرشون شيئا من ذلك – أبو داود و البخارى تعليقا). دباب المسح على الخفين نه مخکښے را روان دے. د ابوداؤد (١/٥٥) په روايت کښې ورسره (وتبول) لفظ هم راغلے دے.

دلته هم طهارت بالجفاف شويدے، نه بالماء.

او احناف وائي : کله چه لامده وى نو وينځل هم شته. ليکن احناف ورسره دا فرق کوى چه دغه نجسه زمکه چه په نمر اوچه شوے وى په دے مونځ کول جائز دى خو تيمم کول پرے ناجائز دى. د دوئ په دے فرق باندے هيڅ دليل نشته. قياسى خبره ده. ځکه مونځ خو اعلىٰ دے د تيمم نه، دا فرق بين المتماثلين دے، چه جائز نه دے، شريعت ورته پاکه وائي.

٢ – جمهور علماء وائي : صرف په اوبو سره پاکيږي. دليل دا وائي چه دلته رسول الله ﷺ صرف په اوبو باندے أمر کريدے.

**جواب** : دلتـه صرف يـوه طريـقـه اختيار کړے شويده۔ ددے نه دا نه لازميږی چه بله طريقـه نشتـه، وجـه داده چه روستو راځی چه ځپلئ وغيره هم صرف په زمکه راښکلو سره پاکيږی، نو اوبه د پاکوالی دپاره متعين نه دی۔

بعضے شوافع د (كانت الكلاب) حديث نه دا جواب کوی چه په دے روايت کښے مونږ تاويل کوو، چه (كـانـت الكلاب تبول خارج المسجد، وتقبل وتدبر فی المسجد)، ليکن دا نـور عـلـمـاء ورته وائی چه بيا داسے ولے نه وايئ چه سپو به بهر متيازے کولے او هلته به ئے استـنـجـاء هـم کـولـه او بيـا بـه مـسـجـد تـه راتلل۔ نه ! سپو کښے عقل نشته، چه هغه دے خامخا بهر بول اوکړی او روسته دے مسجد ته راځی۔ بلکه دلته کښے مسجد کښے دننه بـول کـول مـراد دی۔ د عبـد الـلـه بـن عـمـرؓ غرض په دے حديث سره هم داده چه سپی که مسـجـد تـه راشی نو مسجد وينځل لازم نه دی، اوکه متيازے اوکړی او اوچے شی نو دهغے وينځل هم لازم نه دی۔

**فَاِنَّمَا بُعِثْتُمْ** : د بعث لفظ ډيرے معنے دی : را پورته کيدل، را پاڅيدل، مقرول، راليږل وغيـره۔ دے وجے نـه دا لفظ د غير نبی دپاره هم استعماليږی۔ په معنٰی د مقررولو سره، او پـه دے کښے أدب دے دوئ تـه چـه تاسو د أمت داعيان ئے او داعيانو دپاره آسانی کول پکار دی دجاهلانو سره، نه سختی۔

---

٣– وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ : بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ إِذْ جَاءَ أَعْـرَابِـيٌّ فَـقَـامَ يَبُـوْلُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ : مَـهْ مَـهْ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : لَا تُـزْرِمُـوْهُ دَعُـوْهُ، فَتَرَكُوْهُ حَتّٰى بَالَ ثُمَّ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ دَعَاهُ فَقَالَ لَهُ : إِنَّ هٰذِهِ الْمَسَاجِدَ لَا تَصْلُحُ لِشَيْءٍ مِنْ هٰذَا الْبَوْلِ وَالْقَذَرِ، إِنَّمَا هِيَ لِذِكْرِ اللهِ وَالـصَّلَا ةِ وَقِرَائَةِ الْقُرْآنِ . أَوْ كَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ. قَـالَ : وَأَمَرَ رَجُلًا مِنَ الْقَوْمِ فَجَاءَ بِدَلْوٍ مِنْ مَاءٍ فَسَنَّهُ عَلَيْهِ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .

**ترجمه** : انـسؓ فـرمـائی : يو ځل مونږ په جومات کښے د رسول الله ﷺ سره ناست

وو چه يو بانده چې راغے او په ولاړه ئے په جومات کښے متيازے شروع کړے، نو د رسول الله ﷺ ملګرو ورته اووئيل : مه کوه مه کوه! رسول الله ﷺ اوفرمائيل : په ده باندے متيازے مه بندوئ، پريدئ، نو خلقو پريخودلو تردے چه متيازے ئے پوره کړے، بيا دے رسول الله ﷺ را اوغوښتلو او ورته ئے اوفرمائيل : بيشکه دا جوماتونه ددے متيازو او ګندګو دپاره نه ښائيږي، دا خو د الله د ذکر، مانځه او قرآن لوستلو دپاره دي - يا رسول الله ﷺ ددے پشان خبره ورته اوکړه - انسؓ فرمائی : (دے نه پس) رسول الله ﷺ په دغه خلقو کښے يو سړي ته حکم اوکړو نو هغه يو ډول اوبه متيازو باندے اوبهيولے۔ (بخاري، مسلم)۔

**تشريح** : مَهُ مَهُ : دا اسم فعل دے په معنىٰ د اکفف سره، يعنے بند شه بند شه۔ اصل کښے دا ماهذا ؟ دے۔ نو د زجر دپاره استعماليږي۔ بيا په کښے تخفيف اوکړے شو۔ په دے کښے تنوين وئيل هم جائز دي۔ مَهٍ مَهٍ۔

لَا تُزْرِمُوْهُ : بضم التاء وسكون الزاى، د ازرام نه ماخوذ دے، قطع او پريکولو ته وائی، أي لا تقطعوا عليه بوله۔

اِنَّمَا هِىَ لِذِكْرِ اللهِ وَالصَّلَاةِ وَقِرَائَةِ الْقُرْآنِ : د ذکر الله نه مراد هغه ذکر دے چه شرعي طريقے سره وی، چه هغے کښے سکون او آرام وی، او په پټه باندے وی۔

بيا مسجد صرف دے درے خبرو پورے خاص نه دے، بلکه نور عبادات هم په مسجد کښے کيدے شی لکه جهادی کارونه وغيره۔ دا ټول په ذکر الله کښے داخل دي۔

۲ - يا دا چه دلته چه کوم حصر - په درے څيزونو کښے - شويدے نو دا په مقابله د بول کښے دے، يعنے نور ګندونه وغيره مسجد کښے نه دی پکار، بلکه دا کارونه او ددے پشان نور کارونه کول پکار دی۔ بيا مسجد کښے لکه څنګه ګندونه، بول وغيره کول ناجائز دی، نو دغه شان فضول خبرے، ورك شوی شئ اعلان کول، د مړی اعلان کول، بيع شراء ټول نا جائز دی۔

۲ - دا حديث دليل دے چه وقفی زمکه او مسجد کښے بيت الخلاء نشی جوړيدے، ځکه مسجد ته ضرر رسيږی۔ دا هله چه مسجد مخکښے جوړ شوے وی۔ اوچه کله

روسته زمکه وقف کړے شي نو څه حصه کښې دے مسجد جوړ کړي اوڅه کښې دے بيت الخلاء جوړه کړي.

. اَوْ كَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : دا د راوي شك دے نبي ﷺ به داسے الفاظ وئيلي وي اوکه نه ددے پشان نور الفاظ، نو ځکه ذا الفاظ استعمالوي. معنیٰ ئے داده : (او أقول : كما قال رسول الله ﷺ، يا قال هذا القول أو قولا شبيها به) . امام نووي" فرمائي : راوي او د حديث لوستونکی له دا پکار دی چه کله په هغه باندے کوم لفظ مشتبه شي او په طريقه د شك ئے اولولي نو روستو دے داسے الفاظ اووائي : (أو كما قال). دے دپاره چه په نبي کريم ﷺ باندے دروغ وئيل رانشي. دارنګه ځوك چه روايت بالمعنیٰ کوي هغه دپاره هم مستحب دی لکه چه دا کار به صحابهؓ او تابعينو" کولو، او دے باره کښے امام دارمي" په خپل مسند کښے ډير آثار نقل کړيدي په (باب من هاب الفتيا مخافة السقط) کښے.

وَأَمَرَ رَجُلًا : ۱ - د مسجد نه پخپله هم ګندګي لرے کول سنت عمل دے، لکه نبي ﷺ مسجد کښے خراشکے اوليدلو نو هغه ئے پخپله صفا کړو، دارنګه بل ته هم حکم کول سنت دی، لکه دلته ئے أمر کړيدے.

فَسَنُّهُ عَلَيْهِ : دلته بعضے نسخو کښې فسنه لفظ دے په سين سره او بعضو کښې فشنه لفظ دے په شين سره . د دواړو يوه معنی ده چه اړول د اوبو. ليکن لږ فرق دے چه سنّ هغه اوبو اړولو ته وائي، چه په يو ځل سره وي، او تفريق په کښے نه وي. او شنّ ديته وائي چه په هغے کښے د تفريق په طور لګے لګے اړوي. كذا في صحاح اللغة والقاموس.

۱ - **فائده** : بول باندے کله چه ډيرے اوبه واچول شي نو د هغے نجاست ختميږي، تس نس شي، اګرچه يو کرت وي، خو شرعا نجاست ختم شي. او دا ضروري نده چه خاورے د دغه ځائے نه نقل کړے شي، يا زمکه اوکنستے شي، که دا ضروري وے نبي ﷺ به پرے امر کړے وے او کوم روايت کښے چه امر په نقل التراب راغلے دے نو هغه منقطع او مرسل روايت دے او ضعيف دے. كما في نصب الراية (١/٢١٢) فتح الباري (١/٢٥٩).

دارنګه د خاورو نقل کول که ضروري وے نو بيائے پرے د اوبو راړولو تکليف خله کولو؟ ځکه چه پدے کښې خو بے فائدے تکليف دے، زمکه خو پرے هسے هم نه پاکيږي؟.

٢ - دا حديث دليل دے په دے خبره چه نجاست باندے يو كرت اوبه اړول هم نجاست زائل كوي په بعضے شيانو كښے. او تثليث ضروري نه دے. نو دا رد دے په احنافو باندے چه هغوئ وائي د نجاست په زائل كولو كښے درے ځل والے ضروري دے او درے ځلو نه په كمو باندے نه صفا كيږي. ٣ - اشاره ده چه د انسان بول نجس دی، نو زمكه او بدن او جامه به ددے نه پاكولے شي.

٤ - بعض علماء ددے حديث نه دا **استدلال** كوي چه زمكے ته نجاست اورسي او په نمر يا په هواء باندے اوچه شي نو نه پاك كيږي ځكه كه دا ځيزونه هم كافي وے نو د اوبو اړولو تكليف ئے ولے كولو؟. ليكن **جواب** دا دے چه حديث كښې اوبه ځكه ذكر شويدی چه مسجد زر پاك شي ځكه دا ورځ وه. كيدے شي چه د مانځه وقت له اوچه نشي نو ځكه ئے اوبو سره پاكي حاصله كړه نو پدے سره نفي د نورو طريقو د پاكئ نه راځي.

---

٤ - وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ : سَأَلَتِ امْرَأَةٌ رَسُولَ اللهِ ﷺ فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ ! أَرَأَيْتَ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ كَيْفَ تَصْنَعُ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : ( إِذَا أَصَابَ ثَوْبَ إِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ فَلْتَقْرُصْهُ ثُمَّ لْتَنْضَحْهُ بِمَاءٍ ثُمَّ لْتُصَلِّ فِيهِ ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : اسماء بنت ابي بكرؓ وائي : يوے زنانه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو، وے وئيل : يا رسول الله ! دا راته اوښايه چه كه مونږ كښے څوك د حيض وينه په كپړے بيامومي نو څه به كوي ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : پتاسو كښے چه د چا جامے ته د حيض وينه اورسي نو هغه دے ګرولو سره اومږي، بيا دے په اوبو اووينځي او بيا دے په كښے مونځ كوي. (بخاري، مسلم).

**تشريح** : سَأَلَتِ امْرَأَةٌ : په يو روايت د امام شافعيؒ كښے دي چه دا تپوس كونكے زنانه خپله اسماء ده.

**فوائد** : ١ - د حيض وينه نجس ده په اتفاق د علماؤ سره، ځكه امر راغلے دے په

وينځلو ددې سره. لږه وي که ډيره. او ددې د زائل کولو دپاره قرص، ګرول هم پکار دي. دې دپاره چه اثرئې ختم شي.

★ **نجاست دوه قسمه دے** (١) نجاست مرئي (٢) نجاست غير مرئي.

د نجاست **مرئيه** د طهارت طريقه داده چه کله په ثوب او بدن باندې وي نو ددې اثر به زائل کولے شي، مګر که مشقت د هغې په زائله کولو کښې وو، نو بيا خير دې، که زائل نشي .٢ - **غير مرئيه** لکه بول متيازې، ددې دپاکوالي طريقه داده چه اوبه به پرې واچولے شي تردې چه يقين ئې راشي چه پاك شو. احناف وائي درې ځله به پرې اوبه واچوي او هر ځل به ئې نچوړ کوي، ليکن دا خبره بے دليله ده، په دې باره کښې هيڅ حديث نشته، أصح داده چه غالب ګمان له اعتبار دې، که غالب ګمان سره پاکه شوه نو پاکه ده، اګرچه د درې ځلونه زيات يا کم وي.

**٢ - بيا نجاست په دوه قسمه دے** (١) نجاست شرعيه (٢) نجاسات اجتهاديه.

په نجاست **شرعيه** کښې **مغلظ او مخفف نشته**، او نه په کښې **معافي** شته، بلکه د ټولو پاکول واجب دي، لکه : ١- بول ٢- براز ٣ - دم الحيض. او په دې باندې دليل دادې چه قرآن کښې دي ﴿ وثيابك فطهر ﴾، جامې دې پاکې کړه. په دې کښې د ربع الثوب او قدر الدرهم استثناء نه ده شوې. (٢) نجاسات اجتهاديه کښې بعضې علماؤ بعضې څيزونه نجس ګڼړي او بعضې ورته پاك وائي. لکه ذات د خمر عند الأحناف نجس دې. او بعض علماء لکه ليث بن سعدؒ، مزني صاحب الشافعي، او ربيعهؒ وائي چه ذات د خمر پاك دې. كذا في تفسير القرطبي (٢٨٨/٦).

٢ - يا لکه قئ عند الأحناف نجس دې. او جمهور محققينو په نيز پاك دې.

٣ - او مني هم د نجاساتو اجتهاديه نه ده، په دې کښې به راجح او مرجوح ته کتلے شي.

**ثُمَّ لِتَنْضَحْهُ** : د نضح دوه معنے دي (١) الغسل الخفيف (معمولي وينځل) (٢) چنړکاؤ کول د اوبو. او دلته مراد غسل خفيف دے.

**فائده** : ددې حديث نه هم نفي د تثليث معلوميږي. ثلاثائې ورسره نه دې وئيلي.

٥ - وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ : سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنِ الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ، فَقَالَتْ : كُنْتُ اَغْسِلُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَيَخْرُجُ إِلَى الصَّلَاةِ وَأَثَرُ الْغَسْلِ فِيْ ثَوْبِهِ ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : سليمان بن يسارؒ وائي : ما د عائشهؓ نه د منی باره کښې تپوس اوکړو چه کپړے ته اورسی، نو هغې اوفرمائيل : مابه د رسول الله ﷺ د جامې نه منی وينځله بيا به هغه مانځه ته په داسے حالت کښې وتلو چه د وينځلو اثر به د هغه په کپړه کښې وو. (بخاری، مسلم).

## تشريح : مسئلة طهارة المنى و نجاسته :

د منی په طهارت او نجاست کښې اختلاف دے. اول خو په دے کښې اتفاق دے چه منی مستقذر شے دے، يعنے طبيعت ئې بد او قابلِ نفرت ګڼړی. دويم : په دے کښې هم اتفاق دے چه لمده وی نو وينځی به ئې اويا به ئې پر سرګړی لرے کوی کما قال ابن عباسؓ. خو په نجاست کښې اختلاف دے :

١ - امام مالكؒ فرمائی : د انسان منی نجس ده، او د اوبو نه علاوه په بل څه نه پاکيږی، برابره خبره ده که په جامو لګيدلے وی اوکه په بدن باندے.

٢ - امام ابو حنيفهؒ فرمائی : منی نجس ده، خو که لمده وی نو په اوبو به وينځلے شی، اوکه اوچه وی نو په مږلو سره پاکيږی. دا درميانه قول دے. مګر دویٔ يو بل قول کړيدے چه نجاست کله په بدن او جامه باندے واقع شی، نو دا به صرف په اوبو سره پاکولے شی، نه په مږلو سره. نو دا قول معارض دے د دغه مخکنی قول سره چه په باب د منی کښې ئې کړيدے.

٣ - ليث بن سعدؒ فرمائی : منی نجس ده مګر که دچا په يوه کپړه منی لګيدلی وی او مونځ ورسره اوشی نو اعاده واجب نه ده. او دا قول د حسن بصریؒ هم دے. مګر هغه د بدن او جامے فرق کوی، چه د جامے نه اعاده د مانځه نشته او که په بدن لګيدلے وی نو اعاده ضروری ده.

٤ – او د اکثرو علماؤ دا مذهب دے چه مني پاکه ده، او دا قول د علي بن أبي طالب، سعد بن أبي وقاص، ابن عمر، ابن عباس، عائشه – رضي الله تعالى عنهم – داؤدؒ او روايت د امام احمدؒ او مذهب د امام شافعيؒ او محدثينو دے، كما قال في التحفة (١/١١٤). وهو قول ابن تيمية وابن القيم وابن المنذر – رحمهم الله۔

## د نجاست د قائلينو دلائل :

١ – رسول الله ﷺ وينځلے ده، او وينځل دليل د نجاست دے۔

قائلين د **طهارت** د اجواب كوى چه وينځل دوه قسمه دى (١) يو د طهارت د وجے نه (٢) بل د نظافت د وجے نه، نو دلته د نظافت د پاره وينځل شويده، لكه خيرى، ګرنګ وغيره هم وينځلے كيږى، خو نجس نه دى. اوكه دا نجس وے نو فرك (مږل) او ګرول به ئے كافي نه وے۔ لكه د وينے پشان به ئے وينځل ضرورى وے۔

٢ – دويم دليل : مني د بول په لاره راځي، نو بول به ورسره ملګرى شوى وى۔ نو ځكه نجس ده۔

نور علماء جواب كوى چه لارو كښے فرق دے، مني د شا نه راوځي په بيلو رګونو كښے، او بول د مثانے نه راوځي په جدا رګونو كښے، او په وتلو د مني كښے د بول لاره صفا وى، كما هو مشاهد معلوم۔

## د طهارت المني د قائلينو دليلونه :

كوم علماء چه مني ته پاكه وائى د هغوئ (١) **دليل** هغه احاديث دى چه په هغے كښے فرك او سلت وغيره راغلي دى، كما في حديث مسلم (١/١٤٠) دلته مشكاه كښے هم عائشهؓ فرمائى : ما به د رسول الله ﷺ د جامے نه مني ګروله، نو كه مني نجس وے نو پكار ده چه ګرول نه كافي كيدلے، بلكه وينځل به ئے ضرورى وو، ليكن دا قانون په جامه كښے دے نه په موزو كښے۔

٢ – مسند احمد (٦/٢٤٣) السنن الكبرى (٢/٤١٨) ارواء الغليل (١/١٩٧) كښے د عائشهؓ روايت دے (كان رسول الله ﷺ يسلت المني من ثوبه بعرق الأذخر، ثم يصلي فيه ويحته يابسا ثم يصلي فيه – و سنده صحيح)، نو په دے روايت كښے په سرګرى سره مني

صفا شویده، حال دا چه په سرګړي (بروَزے) سره مني پوره طور سره نه لرے کیږي، ضرور اثر ئے باقي وي، بلکه په دے سره صفا کولو باندے نوره هم خوریږي. او دا ئے په دے وجه پاکه کړیده چه مخکښے تیر شو چه مني طبعا مستقذر (کرکجن) شے دے. نو دا صفائی د نظافت حاصلولو دپاره ده، نه ددے وجے نه چه ګنے دا نجس ده، ځکه نجس شے په سرګړي سره لرے کولو سره نه پاکیږي.

**٣ - دریم دلیل** : عن ابن عباسؓ قال : سئل النبی ﷺ عن المنی یصیب الثوب، قال : انما هو بمنزلة المخاط و البزاق، و انما یکفیك أن تمسحه بخرقة أو باذخرة.

(ابن عباسؓ وائی نبی ﷺ نه تپوس اوشو د مني باره کښے چه کپړے ته اورسي، نو نبی ﷺ جواب ورکړو : چه مني د ګړنګ او لاړو پشان ده، تاله دا کافي ده چه هغه په کپړه یا سرګړي سره لرے کړے).

دا حدیث دارقطني (١٢٤/١) امام بیهقي (٤١٨/٢) امام طحاوي (٤١/١) ذکر کړیدے. و کذا فی نصب الرایة (٢١٠/١) مجمع الزوائد (٢٧٩/١). دا روایت څوك موقوفا ګڼړي او څوك مرفوع. و التحقیق فی نصب الرایة.

٤ - حدیث دعمر فاروقؓ دے چه د هغه نه تپوس اوشو چه زه کله په خپله بستره جنب شم نو د خپلے مني سره څه اوکړم ؟ نبی ﷺ جواب ورکړو : که لونده وی نو وے وینځه، اوکه اوچه وی نو وے ګروه، اوکه نه ئے وینے نو بیا ورته چنړکاؤ اوکړه په اوبو سره. (ابن أبی شیبة : ٨٥/١، نصب الرایة : ٢١٠/١).

په دے حدیث کښے هم وینځل د نظافت دپاره دی، ځکه ګرول هم په کښے راغلی دی، قاله ابن الجوزی کذا فی تنقیح التحقیق (٨٢/١) ونقله فی نصب الرایة (٢١٠/١).

٥ - حدیث د مصعب بن سعد ابن أبی وقاصؓ دے : دا فرمائي : کله چه به زما پلار - سعد بن أبی وقاصؓ - ته مني اورسیدله نوکه لونده به وه، نو مسح به ئے کړه، اوکه اوچه به وه، نو اوبه ئے ګروله. بیا به ئے په همدغه جامه کښے مونځ کولو. (کذا فی ابن ابی شیبة ٨٤/١)، والبیهقی السنن الکبری (٤١٩/١). امام بیهقیؒ فرمائي : کله کله چه مني وینځل کیږي داسے ده لکه چه یو سړے د پوزے اوبه په اوبو سره وینځي د نظافت د وجے نه،

نه ددیے وجے نه چه دا د پوزیے اوبه گنیے گنده دی۔

٦ – که منی نجس وے، نو رسول الله ﷺ به حکم کړے وے په لریے کولو او پاکولو سره، او په نجاست د هغیے سره۔ حال دا چه نبی ﷺ په دیے باب کښیے دانه دی فرمائیلی چه دا نجس ده۔ سره ددیے نه چه دا منی خارجیدل خپله د نبی ﷺ نه او د صحابهؤ په زمانه کښیے د صحابوؓ نارینه او زنانهؤ نه واقع کیدل۔ نو پکار ده چه رسول الله ﷺ ددیے پوره تفصیل کړے وے، سره ددیے نه چه ددیے نه کم واقع کیدونکی څیزونه ښه واضح بیان کړے شوی دی، لکه د سپی جوټه، د پیشو جوټه، وغیره دا کم واقع کیږی او د منی واقع کیدل زیات دی۔ او تاخیر د بیان د وخت د حاجت نه جائز نه دیے۔ که منی والا جامه- کپړه- استعمالول ناجائز وے یا منی نجسه وے، نو ضرور به رسول الله ﷺ ددیے بیان فرمائیلے وے، هرکله چه نبی کریم ﷺ ددیے نجاست بیان نه کړو – نه قولاً، نه فعلاً، نه صراحةً اونه دلالةً – نو دا دلیل د طهارت د منی دیے په بیان الحال سره۔

**سوال** : که څوك اووائی چه دلیل موجود دیے چه نبی ﷺ وینځلے ده۔

**جواب** : نبی ﷺ مرلے او گرولے هم ده، نو دا وینځل دلیل د نجاست نه دیے، بلکه دا د نظافت په طور سره وینځلے شویده۔ لکه د پوزیے گرنگ وغیره نجس نه دیے لیکن خلق هغه صفا کوی۔ او فعل د رسول الله ﷺ دلیل د وجوب هم نه دیے، کله چه دوام پکښیے نه وی، بلکه استحباب او سنیت په کښیے وی۔

٧ – په صحیح مسلم (٢٣٨/١) کښیے د عائشهؓ روایت دیے چه د هغیے یو میلمه وو، چه د شپیے ئے ورته یوه بستره واچوله د خوب دپاره، نو د هغه احتلام اوشو، او ددیے په وجه ئے هغه بستره هغیے ته بیرته داسیے ورنه کړه، بلکه په اوبو کښیے ئے غوپه کړه، او بیا ئے عائشےؓ ته واپس کړه۔ عائشهؓ اوفرمائیل : ولے ئے زمونږ بستره خرابه کړه په اوبو باندیے، ده له دا کافی وو چه په گوتو باندیے ئے منی گرولے وے، څکه مابه ډیر کرته د رسول الله ﷺ د کپړو نه په گوتو سره منی گروله۔ کما فی الترمذی (١/ ٢٠٠) بتعلیق الشیخ أحمد شاکرؒ۔

٨ – **دلیل** دادیے چه منی په خِلقت کښیے هم مخالفه ده۔ منی د خاورو پشان ده۔ د مذی او ودی او بولو نه په رنگ او بوئے او غلظت کښیے هم مخالفه ده، څکه منی غلیظه

(تیـنـګـه) ده، اودا څیزونـه رقیق (نرم) دي. په دې وجه دا پاکه ده اودغه نور څیزونه نجس دي.

دارنـګـه مـنـي أصل د خلقت د انبياء عليهم السلام او أولياء اوصالحينو ده، او دا څنګه کیدې شي چه د يو نجس او پلیت شئ نه پاك خلق پيدا شي. او ددې پاکو خلقو أصل او بنيـاد نجس شي. فـان الـخبيـث لا ينشأ منه الا الخبيث . او دا خـو د عيـب خبره ده چه د چا اصـل داسـې خبيـث او پـليت شي. او دا پښتو کښې يوه کنځله هم ده، خلق وائي د پې أصله ځـويه ! حال داچه عام انسانان هم مكرم او محترم دي، ځکه چه اصل ئې نجس او پلیت نه دې، پاتې لا انبياء كرام عليهم السلام او اولياء او صالحين !

نو دا دليل اِني شو په طهارت د مني باندې.

اوکـوم مُلـيـانـو چه دا وئيلي دي چه بيا غسل پرې ولې واجبيږي ؟ نو دا دليل د نجاست دې. **جواب** : غسـل د مـنـي پـه راتـلـو سره ددې وجې نه نه واجبيږي چه ګنې دا نجس ده، بـلـکـه پـه دې وجه دې چه ددې په وتو سره بدن کښې فتور او سستي راځي، چه دا مفضي کیـږي تـعـلـق د شيطان او ترك عبادت ته، او چه کله غسـل اوکړې شي نو بدن کښې تازګي پیدا کیږي.

او دې مُلـيـانـو تـه دا وئيـل پـکار دي چه ستاسو ددې قياس تقاضا داده چه تاسو د ډکو متيـازو په وجه غسل کوئ او د مني په وجه صرف اودس کوئ. ځکه ډکې متيازې تاسو د جامو نه نه ګروئ او او چه مني د کپړو نه ګروئ ؟ حال داچه دا قياس غلط دې.

حـافـظ ابـن حـجـرؒ په فتح الباري (١/٢٦٥) کښې پدې مسئله کښې داسې تحقيق کوی چـه څـوك مـنـي تـه طاهر وائي هغوی د حديث الفرك او حديث الغسل داسې تطبيق کوی چـه ويـنـځـل حـمـل دي پـه اسـتـحـبـاب بـانـدې دپاره د تـنظيف ( نظافت حاصلولو) نه په وجوب . او دا طریقه د امام شافعيؒ، احمد او اصحاب الحديث ده.

او څـوك چه مني نجس ګڼې د هغوی په نيز باندې وينځل حمل دي په لامده اوګرول حمـل دي پـه اوچه باندې او دا طريقه د احنافو ده ليکن اوله طريقه راجحه ده ځکه په هغې کـښې عمل دې په حديث او قياس دواړو باندې ځکه چه مني که نجس وي نو قياس تقاضا

کوی چه وينځل دے واجب شی لکه د وينے پشان او په ګرولو دے اکتفاء اونکړے شی ځکه احناف په وينه کښے په فرك (ګرولو) باندے اکتفاء نکوی، نو پکار ده چه په منی کښې خو په طريق اولیٰ اکتفاء اونکړی) او ددے دويمے طريقے ترديد په روايت د ابن خزيمه کښې دے چه په بل سند د عائشے رضی الله عنها نه نقل دی :

[ كانت تسلت المنى من ثوبه بعرق الاذخر ثم يصلى فيه وتحكه يابسا من ثوبه ثم يصلى فيه] ـ نو دا حديث متضمن دے ترك د غسل ( وينځلو) لره په دواړو حالتونو کښې يعنی لامده او اوچه دواړو صورتونو کښې نده وينځل شوے۔ او احناف خو دا وائی چه لامده به خامخا وينځی نو مذهب ئے د حديث خلاف شو۔ انتهى بتصرف يسير. (فتح الباری) ۔

ددے مسئلے ښه تفصيل په مجموعة الفتاوى (٥٩١/٢١) کښے سره د جوابونو د مخالفينو نه اوګوره۔ دارنګه فتاوى الدين الخالص (٤١٢/١) والتحقيقات فى رد الهفوات ص (٣٤)۔

---

٦ – وَعَنِ الْأَسْوَدِ وَهَمَّامٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كُنْتُ اَفْرُکُ الْمَنِیَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

٧– وَبِرِوَايَةِ عَلْقَمَةَ وَالْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ وَفِيْهِ (ثُمَّ يُصَلِّىْ فِيْهِ).

**ترجمه** : اسود او همام دواړه د عائشۀ نه روايت کوی چه دے اوفرمائيل : مابه د رسول الله ﷺ د کپړے نه (اوچه) منی ګروله۔ او علقمه او اسود د عائشۀ نه هم ددے پشان روايت کړے او په دے کښے دا الفاظ دی : بيا به رسول الله ﷺ په هغه کپړه کښے مونځ کولو۔

**تشريح : ثُمَّ يُصَلِّىْ فِيْهِ** : مصنف پدے زيادت ذکر کولو کښې رد کوی په مالکيه ؤ باندے چه بعض مالکيه وائی چه کومے جامے نه عائشۀ منی ګروله نو هغه د خوب جامه وه او کومه ئے چه وينځله نو هغه د مانځه جامه وه ليکن دا تاويل صحيح ندے ځکه نبی ﷺ په همغه جامه کښې چه منی ترے ګرول شويده – مونځ کړيدے لکه په بل روايت د مسلم کښے :(فيصلى) په فاء تعقيب مع الوصل سره راغلے دے يعنی ددے ګرولو نه پس ئے متصل مونځ کړيدے او مالکيه دا تاويل ځکه کوی چه د هغوی په نزد د لامدے او اوچے دواړو وينځل ضروری دی۔

۸ – وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيْرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَأَجْلَسَهٗ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِي حِجْرِهٖ فَبَالَ عَلٰى ثَوْبِهٖ فَدَعَا بِمَاءٍ فَنَضَحَهٗ وَلَمْ يَغْسِلْهُ ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ام قيس بنت محصنؓ نه روايت دے چه دے خپل يو وړوکے ځوئے چه لا خوراك ئے نه ؤ کړے رسول الله ﷺ ته راوستو، رسول الله ﷺ هغه په خپله غيږه کښې کينولو، نو هغه ماشوم د هغه په جامه باندے متيازے اوکړے، نو رسول الله ﷺ اوبه را اوغوښتے او په هغې ځائے باندے ئے چنړکاؤ کړے او هغه ئے اونه وينځلو.

**تعارف : د أم قيس بنت محصن** : رضي الله عنها :

دا د عكاشه بن محصنؓ خور ده، د بنو أسد قبيلې نه ده، په مکه مکرمه کښې ئے ابتداءً اسلام قبول کړيدے، او د نبي ﷺ سره ئے بيعت کړيدے، او مدينے ته ئے هجرت اوکړو، ددے خپل نوم آمنه دے. ټول (۲٤) احاديث ئے أمت ته نقل کړی دی. ديته نبي ﷺ د اوګد عمر دعاء کړے وه دا وجه ده چه په ټولو صحابياتو کښې ددے عمر زيات وو.

**تشريح** : أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيْرٍ : دا ماشوم ئے : ۱- د تحنيك (يعنی مرئ کښې د ژولے کهجورے اچولو) دپاره راوستے وو، يا د تبرك حاصلولو دپاره.

★ په دے کښې نفی د علم غيب ده د نبي ﷺ نه، ځکه چه هغه ته دا پته نه وه چه دا ماشوم به متيازے کوی.

★ او په دے کښې شفقت د رسول الله ﷺ ته هم اشاره ده چه د ماشومانو نه نفرت نکوی چه هسے نه متيازے راباندے اونکړی.

★ په حديث کښې مسئله داده چه کوم ماشوم لا طعام نه وی خوړلے، بلکه د مور په پيئو باندے اکتفاء کوی، نو د هغه بولو کښې تخفيف دے، صرف اوبه ورته چنړکاؤ کول کافی دی. او پوره طور سره ئے وينځل ضروری نه دی. او دا قانون صرف په هلك کښې دے، او دا قول د جمهورو علماء او محدثينو دے. او هرچه د ماشومے جينۍ بول دی نو د هغې وينځل واجب او ضروری دی.

د احنافو او امام مالكؒ رائے داده چه د هلك اوجينئ بولو كښے فرق نشته، د دواړو وينځل واجب دی، البته د محدثينو احنافو په نيز د هلك په بولو كښے غسلِ خفيف دے، او د جينئ په بولو كښے غسل غليظ (مضبوط وينځل) دی۔

**د جمهورو دلائل** : ١- يو دليل حديث د أم قيس دے چه په دے كښے نضح چنړكاؤ راغلے دے، او نفی د غسل شويده۔ (ولم يغسله) او په بل وايت د مسلم كښے (١٣٩/١) ولم يزد على ان نضح بالماء ۔ او په دے كښے تاويل كول خلاف الأصل دی۔او دا واضح دليل دے چه صرف چنړكاؤ شويدے۔

٢ – روايت د لبابه بنت الحارث فی الفصل الثانی كښے دی، نبی ﷺ فرمائی : (انما يغسل من بول الأنثى وينضح من بول الذكر) رواه احمد وابوداود وأحمد۔

٣ – په نسائی او ابوداود كښے د أبی السمح په روايت كښے داسے دی۔ (يغسل من بول الجارية ويرش من بول الغلام) قال البخاری حديث حسن وصححه الحاكم .مرعات (٢٠٠/٢)۔ نو دلته د نضح تفسير په (رش) سره اوشو، نو معلومه شوه چه د نضح نه مراد رش دے، چه چنړكاؤ ته وائی، ځكه د نضح لفظ دوه معنے دی (١) چنړكاؤ كول (٢) او وينځل۔ دلته ترے مراد چنړكاؤ كول دی، دارنګه بل دليل په دے چه د نضح نه مراد چنړكاؤ دے دادے چه ددے په مقابله كښے نفی د غسل شويده (لم يغسله) دويم : نور احاديث د عائشهؓ او عبد الله بن عمرو او زينب نه ترمذی بشرح التحفة (٧٦/١)، كښے راوړيدی چه هغه دليل دے چه فرق په مابين د بول الغلام وبول الجاريه كښے ضروری دے۔ چه يو كښے وينځل دی او بل كښے چنړكاؤ كول۔

٢ – د احنافو دُليل په عدم فرق باندے حديث د (استنزهوا من البول) دے چه دا عام دے بول الغلام او بول الجاريه دواړو ته شامل دے۔

ليكن ددے نه **جواب** دادے چه دواړه حديثونه منل پكار دی، دا حديث په باره د نارينه ؤ كښے دے، او هرچه بول الغلام دی، نو هغه ددے نه مستثنیٰ دی۔ او نبی ﷺ پخپله مستثنیٰ كړيدی، قولاً او عملاً۔ عملی حديث خو دا حديث دے (فنضحه) لفظ راغلے دے۔ او قولی حديث فصل ثانی كښے د لبابة بنت الحارث حديث دے (وينضح من بول

الذكر)۔

او احناف داسې كار كوي چه احاديثو كښې تعارض پيدا كوي، او بيا د خپل مذهب مطابق توفيق او تطبيق كوي۔ نو حديثونو كښې هيڅ تعارض نشته، بلكه په ټولو احاديثو عمل داسې راځي، چه كومو حديثونو كښې فرق دې په بول الغلام والجاريه كښې، نو په هغې عمل كوه، او كوم حديث كښې چه (استنزاه من البول) باندې أمر راغلې دې نو هغه په ما سوا ډ بول الغلام باندې حمل دي۔ او دا عام دی او حديث د لبابه خاص دې والخاص يقضى على العام لانه بمنزلة الاستثناء من القاعدة الكلية۔

احناف د مذهب دپاره په دغه مذكوره احاديثو كښې تاويلونه كوي۔ چه نضح نه مراد غسل (وينځل) دې، اود رش نه هم مراد غسل دې، ليكن دا تاويل خطاء دې، ځكه (لم يغسله) لفظ چه كله راغلو نو واضحه شوه چه څنړكاؤ شويدې، نه وينځل۔ نو احناف ددې احاديثو د عمل نه محروم دي په تاويلاتو سره۔ اوكوم احناف چه د احاديثو نه متأثر دي، نو هغوئ وائي : نضح نه مراد غسل دې، خو غسل خفيف دې، نه غسل غليظ۔

صاحب المرعات (٢/١٠٢) شيخ عبيد الله مباركفوريؒ وائي چه دا حديث او ددې پشان نور احاديث رد كوي په هغه چا چه د هلك او جينۍ ترمينځ فرق نكوي او د قياس تابعداري كوي چه دا بول قياس كوي په بول الشيخ باندې - د دوئ پدې كار كښې تقديم د قياس دې په نص باندې او صحيح صريح سنت رد كول دي په قياس باندې۔

**حكمت** : د دې څه حكمت دې چه د جينۍ او هلك بولو كښې فرق دې ؟

نو بعضې وائي حكمت دادې چه د جينۍ په بولو كښې بدبوئي ډيره وي او د هلك په بولو كښې بدبوئي كمه وي۔ (٢) يا دا چه هلك سره زيات ألفت اوتعلق وي په نسبت سره جينۍ ته، په دې وجه هلك په غيږه كښې ډير اخستې شي، نو دده په بولو كښې تخفيف اوكړې شو، دې دپاره چه امت په حرج كښې پرې نه وځي۔ نو كوم خلق چه فرق نه كوي نو هغوئ په أمت باندې په زوره سختي راولي، كومه چه د شريعت د يسر او سماحت منافي ده۔ (٣) دارنګه هلك بول نه خوريږي، او د جينۍ بول خوريږي، نو په دې كښې ټولې جامې خرابيږي۔ ذكره الحافظ ابن القيمؒ۔

(٤) يو دا چه د هلك بول نرم وي د جينۍ د بولو نه، نو د محل پورې نه پيوسته كيږي، نو د هلك په بولو كښې تخفيف اوشو. هر څه حكمت چه وي خو نبي ﷺ فرق كړيدے. مونږ به په دے فرق كولو باندے عمل كوو. او مومن سړے به په عمل كولو كښې حكمت ته نظر نكوي بلكه د الله او د رسول د خبرے منل او اتباع به كوي. زمونږ وظيفه حكمتونه معلومول ندي بلكه اتباع ده.

**سوال** : د هلك بول خو تاسو هم منئ چه نجس دی، او نجاست چه كله بدن يا جامے ته اورسيږي، نو هغه بغير د وينځلو نه نه پاكيږي. نو مونږ به ضرور د نضح (چنړكاؤ) نه مراد غسل (وينځل) اخلو.

**جواب** : دا خبره مخكښې تيره شوه چه د غلام په بولو كښې چنړكاؤ د نبي ﷺ نه ثابت دے، نه غسل. او دا خبره چه جامے او بدن ته نجاست اورسيږي نو صرف په وينځلو سره پاكيږي دا خبره غلط ده، ځكه تاسو خپله ددے خبرے خلاف كړيدے چه د مني په باره كښې وائے دا نجس ده او كله چه اوچه شي نو ګرولو سره هم پاكيږي. نو دغه شان بول الغلام چه بدن يا جامے ته اورسي دا اګرچه نجس دی خو چنړكاؤ كافي كيږي.

**خلاصه** : دا چه د جمهورو مذهب د حديث مطابق دے او د احنافو مذهب د ظاهر حديث نه مخالف دے، نو ځكه تاويلونه كوي.

**تنبيه** : دا اختلاف په هغه صورت كښې دے چه ماشوم لا خوراك نه وي كړے بلكه صرف په پيئو باندے اكتفاء كوي، او كله چه خوراك شروع كړي او زمانه د رضاع ئے ختم شي (نوويؒ شرح مسلم ١٣٩/١) نو بيا اتفاق دے چه دده بول وينځل ضروري دي. برابره خبره ده كه بول الغلام وي او كه بول الجاريه، لكه دا خبره قتادةؒ په خپل حديث عليؓ كښې كړيده. قال قتادة : هذا ما لم يطعما الطعام فاذا طعما غسلا جميعا- وقال ابن شهاب مضت السنة ان يرش من بول من لم يأكل الطعام من الصبيان. ( ابن ابي شيبة وابن حبان).

**تنبيه** : د نضح نه څه مراد دے؟. امام نوويؒ شرح د مسلم (١٣٩/١) كښې وائي نضح نه مراد دا دے چه كوم شئ ته بول اورسي نو هغے باندے به دومره اوبه واچول شي چه اوبو كښې پټ شي او دومره چنړكاؤ اوكړے شي چه اوبه بهيدلو ته او نه رسي او اونه څاڅي.

سبل السلام (٥٤/١). ____________

٩ – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ : (إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ ) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه فرمائيل ئے : كله چه څرمن رنګ کړے شي نو هغه پاکه شوه. (مسلم).

**تشريح** : اِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ :

**د دباغت معنى** : دڅرمنے بد بوئي او نجس رطوبات زائل كولو ته دباغت وائي. دا رنګ كول په دوايانو سره هم كيږي لكه قرظ ( د كيكر پانړے) يا په نمر باندے اوچولو سره يا په هواء سره يا په خاورو سره يا په انار پوستكي سره يا په نور جديد كيميكل موادو سره دا ټول صورتونه د پاكوالي دي.

## د څرمن نه فائده اخستلو كښے اختلاف

د څرمن متعلق اختلاف دے چه آيا ددے نه فائده اخستل جائز دي كه نه ؟.

نو د هر ماكول اللحم حيوان څرمن نه فائده اخستل بغير د څه شرط نه جائز دي.

خو د غير ماكول اللحم او مردار شوي حيوان د څرمنے نه فائده اخستلو كښے اختلاف دے :

١ – د امام احمد رحمه الله او امام مالك رحمه الله نه يو يو روايت دادے چه هيڅ څرمن په دباغت (رنګولو) سره نه پاكيږي. او دا حكم منسوخ دے. وهو مروى عن عمربن الخطاب وابنه عبد الله وعائشة رضي الله عنهم.

٢ – د ماكول اللحم حيواناتو څرمن په رنګ كولو پاك كيږي او د غير ماكول اللحم نه پاك كيږي او دا مذهب د اوزاعيؒ، ابن المباركؒ، ابوثورؒ، او اسحق بن راهويه دے. (نووى ١٥٩/١).

٣ – امام مالكؒ وائي : ټولے څرمنے په رنګولو سره پاكيږي، خو صرف لامده څيزونه به په څرمن كښے نه استعمالوي. يعنے ظاهر د څرمنے پاكيږي، او باطن ئے نه پاكيږي. كيناستل او مونځ كول پرے جائز دي. دے تفصيل باندے دليل نشته.

٤- د امام ابو حنيفةؒ او امام شافعيؒ او يو روايت د امام احمدؒ نه دادے چه ټولے څرمنے که د مردار حيوان وی او که د پاك حيوان - په رنګولو سره پاکيږی۔ اوچ او لامده ټول اشياء په کښے اچول جواز لرى۔ بيا امام ابو حنيفةؒ ددے عموم نه د انسان او خنزير څرمنه مستثنىٰ کوی۔ د کرامت او نجاست العين د وجے نه۔ او امام شافعيؒ د خنزير، انسان او سپى څرمن مستثنىٰ کوی، سپی قياس کوی په خنزير باندے د وجے د علت د نجاست نه۔ دا په ﴿ فانه رجس ﴾ سره مستثنىٰ کوی۔

٥ - ټولے څرمنے په دباغت سره پاکيږی ظاهراً او باطناً اګرکه د خنزير او سپى هم وی او دا مذهب د داود ظاهری، اهل ظاهر او امام ابويوسف دے او ديته علامه شوکانی راجح وئيلے دے۔ ځکه چه پدے باب کښے چه کوم احاديث راغلى دى هغے کښے فرق د سپى او خنزير وغيره نشته۔ خو حق داده چه په احاديثو کښے د جلود السباع والنمر وغيره نه منع راغلے ده، چه دا به په رنګ کولو هم نه پاکيږی۔ لکه روستو روايت د ابو المليح او مقدام کښے دى (نهى رسول الله ﷺ عن جلود السباع)۔ أبوداود، نسائی۔

او دارنګه خنزير او کلب د نجاست په وجه مستثنىٰ دی۔ او انسان د کرامت په وجه۔

٦- امام زهریؒ وائی : بغير د د باغت او رنګولو نه د هر مردار حيوان څرمنه پاکه ده، او په هرڅه کښے ئے استعمالول جائز دی اوچه که لامده۔ استدلال کوی په ( فهلا انتفعتم باهابها) باندے، چه په بعض رواياتو کښے ورسره دباغت نه دے ذکر ليکن دا مذهب ضعيف دے، وجه دا ده چه دا مطلق روايت محمول دے په دباغت باندے۔ او شايد چه زهری ته به نور روايات او احاديث نه وی رسيدلی په کوم چه دباغت شرط ګرځولے شويدے۔ شوکانی نقل کړيدی چه دا قول د اجماع نه هم مخالف دے۔ النيل (٧٦/١)۔

**دلائل العلماء** : ★ امام مالكؒ سره په فرق باندے هيڅ دليل نشته، صرف عقلی فرق دے او نبی ﷺ د مردارے ګډے په څرمن کښے اوبه اچولی دی۔

★ د امام احمدؒ دليل دادے چه حديث د عبد الله بن عکيمؒ کښے دی چه : نبی ﷺ جهينه قبيلے ته خط اوليږلو چه : (انی رخصت لکم فی جلود الميتة، فاذا جائکم کتابی هذا فلا تنتفعوا من الميتة باهاب ولا عصب)۔

(أخرجه الترمذي، وقال : هذا حديث حسن وصححه ابن حبان، ورواه أبوداود)۔
دا الفاظ په روايت د ابو داود کښې دي۔ اود احمدؒ په روايت کښې دا الفاظ دي :
(أتانا كتاب رسول الله ﷺ قبل وفاته بشهر أو شهرين : أن لا تنتفعوا من الميتة باهاب ولاعصب)۔
په دے کښې عموم دے چه قبل الدباغة وي که بعد الدباغة وي۔ نو دا حديث ناسخ دے رواياتو د اباحت لره۔ او اباحت منسوخ دے۔
ليکن دے روايت کښے اول خو ضعف دے اضطراب دے لکه روستو راځي، اوکه صحيح شي نو په دے کښے صحيح تاويل شته چه دے کښے (اهاب) لفظ راغلے، او اهاب کچه غير رنګ شوے څرمنے ته وائي، او داخو نور علماء هم جائز نه ګڼړي ترڅو چه رنګ شوے نه وي۔ خبره په رنګ شوے څرمن کښے ده چه پس د رنګ کولو نه پاکه ده، نو داحديث هم مخالف نه دے د نورو حديثونو نه ۔

## د جمهورو دلائل :

جمهورو سره په اباحت (جواز) د جلد ميته باندے پس د رنګولو نه پنځلس روايات دي۔ چه يو د هغے نه دا روايت د ابن عباسؓ دے چه په روايت د مسلم کښے ورسره : (أيما اهاب) لفظ راغلے دے چه دا قاعده کليه ده چه هره څرمنه چه رنګ کړے شي پاکه ده۔
٢ – بل روايت روستو متصل را روان دے چه د (ميمونهؓ نه ګډه مرداره شوه نو نبي ﷺ په هغے تير شو او وے فرمائيل : (هلا أخذتم اهابها فدبغتموه فانتفعتم به ؟) تاسو ولے ددے څرمن نه راخسته چه رنګ کړے مو وے او فائده مو ترے اخستے وے ؟ هغوئ اووئيل : دا خو مرداره ده ؟ نبي ﷺ اوفرمائيل : ددے خوراك حرام دے، نه د څرمنے استعمال ۔ (بخاري،مسلم)۔
او **جواب** د حديث د عبد الله بن عكيمؓ نه دادے چه دا حديث ضعيف دے په ډيرو وجهو سره : (١) يو خو ددے سند منقطع دے (٢) دويم سند ئے مضطرب هم دے، ځکه بعضے رواياتو کښے داسے وائي (عن كتاب النبي ﷺ) بعضو کښے (حدثنا مشيخة لنا من جُهَينة) بعضو کښے (عمن قرأ الكتاب) لفظ راغلے دے

او متن کښې ئې هم اضطراب دے چه بعضو کښې (قبل موته بشهر) دے، او بعضو کښې (بشهرین) دے، او بعضو کښې (أربعین یوما او ثلاثة أیام) دے، او بعضو کښې ددے هر قسم قید نه مطلق راغلے دے. او دا حدیث مرسل هم دے ځکه عبد الله بن عکیم د نبی ﷺ نه آوریدلی نه دی او انقطاع هم ده، چه عبد الرحمن بن أبی لیلیٰ د عبد الله بن عکیم نه آوریدل نه دی کړی. نو دا حدیث مضطرب او منقطع او مرسل دے، نو قابل حجت او استدلال نه دے، کما فی حاشیة المغنی لابن قدامة (۱/۸۵).

او هرچه احادیث د اباحت دی نو هغه ډیر هم دی او صریح هم دی او صحیح هم دی.

۲ - دویم **جواب** دادے چه که اومنو چه دا حدیث د عبد الله بن عکیم صحیح دے، نو بیا هم نقصان نشته، وجه داده چه په دے روایت کښې منع د (اهاب) نه راغلے ده، چه د اهاب نه فائده مه اخلئ، او اهاب کچه پے رنګه څرمنے ته وائی. چه پخه شوی نه وی اوکچه وی. اوکله چه رنګ شی نو هغے ته شن او قربه وائی. لکه دا خبره د اهل اللغة نه نقل ده، کذا فی الصحاح والقاموس. او نضر بن شمیلؒ نه امام ابوداودؒ نقل کړیدی.

او داسے څرمن نه فائده اخستل د عامو علماؤ په نیز جائز نه دی. او په دے روایت کښې بعد الدباغه (پس د رنګ کولو نه) منع نشته، او په دے سره تطبیق د ټولو احادیثو راځی. دا وجه ده چه امام ترمذیؒ فرمائی: امام احمدؒ دا حدیث د عبد الله بن عکیم په آخر کښې پریښے دے د وجے د اضطراب نه. او د جمهورو مذهب په دے باره کښې حق دے.

---

۱۰ - وَعَنْهُ رضي الله عنه قَالَ: تُصُدِّقَ عَلٰی مَوْلَاةٍ لِمَیْمُوْنَةَ بِشَاةٍ فَمَاتَتْ فَمَرَّ بِهَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ، فَقَالَ: هَلَّا أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا فَدَبَغْتُمُوْهُ فَانْتَفَعْتُمْ بِهَا؟ فَقَالُوْا: إِنَّهَا مَیْتَةٌ فَقَالَ: إِنَّمَا حُرِّمَ أَکْلُهَا) مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

**ترجمه**: ابن عباسؓ فرمائی: د میمونےؓ آزاد کړے شوے وینځے ته په صدقه کښې یوه بیزه ورکړے شوه، بیا هغه مړه شوه. رسول الله ﷺ په هغے باندے تیر شو، نو وے فرمائیل: تاسو ولے ددے څرمن وانه خسته چه رنګ کړے مو وے او د هغے نه مو فائده اخستے وے؟. خلقو عرض اوکړو: دا خو مرداره ده، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ددے خو

صرف خوراك حرام دے۔ (بخاري، مسلم)

**تشريح** : فَانْتَفَعْتُمْ بِهَا : دا فائده اخستل عام دي كه داوچے څرمنے نه وي اوكه د لمدۓ نه وي، نو په دے كښے ردّ دے په قول د امام مالكؒ باندے۔ دارنګه په دے كښے اوبه اچول او بيا د هغے نه اودس كول هم جواز لري۔ دارنګه دا د هغه علماؤ دليل دے چه د څرمن او غوښے نه علاوه ويښته او غاښونه او ښكر وغيره نه فائده اخستل جائز ګڼړي۔ ځكه په دے كښے حيات اوژوند نشته۔ نو په مرګ سره په كښے نجاست نه راځي۔ لكه دا خبره امام بغويؒ په شرح السنه كښے ذكر كړيده۔

---

١١ – وَعَنْ سَوْدَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَتْ : مَاتَتْ لَنَا شَاةٌ فَدَبَغْنَا مَسْكَهَا ثُمَّ مَازِلْنَا نَنْبِذُ فِيهِ حَتّٰى صَارَ شَنًّا) رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : د رسول الله ﷺ بي بي، سودةؓ فرمائي : زمونږ يوه چيليۍ مړه شوه نو مونږه د هغے څرمن رنګ كړه، بيا به مونږ په هغے كښے هميشه دپاره (د اوبو او قجورو) شربت جوړولو تردے چه هغه زوړ مشك شو۔

## تعارف : د سوده رضى الله عنها :

دا د زمعه بن قيس لور ده، او ام المؤمنين د رسول الله ﷺ بي بي ده۔ د مكے پخوانۍ مسلمانه ده۔ دے د خپل خاوند – سكران بن عمرو – سره حبشے ته هجرت اوكړو، او خاوند ئے هلته وفات شو۔ بيا رسول الله ﷺ سره ئے نكاح اوشوه، او په مكه كښ ئے ورسره واده اوشو۔ روسته د وفات كيدو د خديجےؓ او مخكښے د نكاح د عائشےؓ نه۔ بيا دے مدينے ته هجرت اوكړو۔ دا چه كله بوډۍ شوه نو نبي ﷺ ددے د طلاقولو اراده اوكړه، نو دے عرض اوكړو : ما خپل نمبر عائشےؓ ته اوبخښلو۔ نو نبي ﷺ دا اراده پريخودله۔ په سنه (٥٥) كښے وفات شويده۔

مَسْكَهَا : په فتح د ميم سره، څرمنے ته وائي، مسك ورته ځكه وائي چه په دے كښے څيزونه ساتلے شي۔ لكه اوبه وغيره۔

١ – دا حديث هم دليل دے په اباحت د څرمن د مردار حيران باندے، اونه دے منسوخ۔

۲- او دليل دے چه لامده څيزونو دپاره هم د مردار حيوان څرمن استعمالول جواز لري
نَنْبِذُ : بكسر الباء من باب ضرب يعنے نبيذ به مو په كښے جوړول۔
شَنًّا : بفتح الشين وتشديد النون، زړه تېپكه او مشك۔

## الفصل الثاني - دويم فصل

۱۲ - عَنْ لُبَابَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ : كَانَ الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ رضي الله عنه فِيْ حِجْرِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَبَالَ عَلٰى ثَوْبِهٖ، فَقُلْتُ : اِلْبَسْ ثَوْبًا وَّأَعْطِنِيْ إِزَارَكَ حَتّٰى اَغْسِلَهٗ، قَالَ : اِنَّمَا يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْأُنْثٰى، وَيُنْضَحُ مِنْ بَوْلِ الذَّكَرِ ) رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاؤُدَ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : لبابه بنت الحارث وائي : حسين بن عليؓ د رسول الله ﷺ په غيږه كښے وو، نو د رسول الله ﷺ په جامه ئے تشے متيازے اوكړے، ما ورته عرض اوكړو : بله جامه واغونده او لنګ دے راكړه چه وے وينځم۔ رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د ماشومے جينۍ متيازے وينځلے شي، اود ماشوم هلك متيازے چنړكاؤ كولے شي۔ (احمد، ابوداود، ابن ماجه)۔

### تعارف : د لبابة بنت الحارث رضي الله عنها :

دا د عباس بن عبد المطلبؓ بي بي ده، أم الفضل، د فضل بن عباسؓ مور او د ميمونهؓ خپلبه خور ده۔ دا اولنۍ زنانه ده چه د خديجهؓ نه روستو ئے ايمان راوړيدے۔ دا ډيره شريفه زنانه وه، نبي ﷺ به ئے ملاقات كولو۔ د عثمان رضي الله عنه په دور خلافت كښے وفات شويده، د خاوند نه پس۔

**تشريح** : ددے حديث تشريح مخكښے تيره شوه۔ چه په بول الصبي والجاريه كښے فرق شته دے۔ او دا صريح دليل دے چه د هلك په متيازو به صرف چنړكاؤ كولے شي ځكه دلته نضح مقابل د غسل ذكر شويدے فتدبر۔

**درجة الحديث** : وسنده صحيح اخرجه احمد (۶/۳۳۹-۳۴۰) وابوداود رقم

(۳۷۵) وابن ماجة (۵۲۲) والحاكم (۱/۱٦٦) وصححه ووافقه الذهبي۔

---

۱۳ - وَفِيْ رِوَايَةٍ لِأَبِيْ دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ عَنْ أَبِي السَّمْحِ قَالَ : يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْجَارِيَةِ، وَيُرَشُّ مِنْ بَوْلِ الْغُلَامِ).

**ترجمه** : اود ابوداود او نسائي په روايت کښې د ابو السمح نه نقل دی چه دے فرمائی : د ماشومے جينئ متيازے به وينځلے شی اود ماشوم **هلك** متيازو ته به چنړکاؤ کولے شی۔

**تعارف : د أبی السمح** : دا د رسول الله ﷺ غلام او خادم دے، خپل نوم ئے أياد دے، صحابی دے، صرف دا يو حديث ترے نقل دے۔

**تشريح** : دا حديث هم دليل دے په دے چه مخکښے روايت کښے چه (نضح) ذکر دے، د هغے تفسير په (رش) سره دے. يعنے چنړکاؤ کول مرادی ۔ وينځل نه دی مراد۔

اوکوم علماء چه دا فرق نه کوی نو هغوئ قياس مقدم کړيدے په نص صريح واضح باندے، چه هغوئ بول الرضيع قياس کړيدی په بول الشيخ باندے۔ وقد مر تفصيل المسئلة في هذا الباب۔

**درجة الحديث** : وسنده صحيح اخرجه ابوداود (۳۷٦) والنسائي (۱/۱۵۸) وابن ماجة (۵۲٦) وصححه الحاكم في المستدرك (۱/۱٦٦) واقره الذهبي۔

---

۱٤ - وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (إِذَا وَطِئَ أَحَدُكُمْ بِنَعْلِهِ الْأَذٰى فَإِنَّ التُّرَابَ لَهٗ طَهُوْرٌ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَلِابْنِ مَاجَه مَعْنَاهُ.

**ترجمه** : ابو هريرةؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کله چه پتاسو کښے څوك په خپلے څپلئ سره په گندگئ ځی نو خاوره د هغے پاکونکے ده۔(ابوداود) او ابن ماجه ددے پشان مضمون نقل کړيدے۔

**تشريح** : په دے حديث کښے د نجاست د پاکولو بله طريقه ذکر ده۔

کله چه د يو شخص څپلئ، چپړه گنده شی نو د هغے دپاکوالی دپاره په زمکه باندے د

هغې راخکل کافي دي، او په اوبو سره وينځل نه دي پکار، ځکه چه په اوبو وينځلو سره خرابيږي۔

**فائده** : ددې حديث د ظاهر نه احنافو خلاف کړيدې لکه صاحب هدايه (۷۲/۱) باب الانجاس کښ وائي : کله چه په څپلۍ وغيره پورې ذي جرم نجاست اولګي او اوچ شي نو بيا زمکې پورې مږل کافي دي، اوکه نجاست ذي جرم نه وي - لکه متيازې - يا ذي جرم وي خو لوند وي، نو بيا په مږلو باندې نه پاکيږي، بلکه وينځل ئې ضروري دي۔ ځکه چه په زمکه راخکلو سره نور هم پليتي زياتيږي۔ حال دا چه دا فرق صحيح نه دې، په دې حديث کښې دا فرق نشته، بلکه هر قسم نجاست - اوچ وي که لوند، ذي جرم وي که غير ذي جرم - ټولو دپاره صرف زمکې پورې مږل کافي دي، وينځل ضروري نه دي۔ دا وجه ده چه احنافو په دې باب کښې د امام ابو حنيفةؒ مذهب پريښې دې، او رجوع ئې کړيده مذهب د امام ابو يوسفؒ ته، لکه نهايه، عنايه، فتح القدير(۱۷۲/۱) او البحر الرائق (۲۲۳/۱) کښې وائي : وعليه الفتوىٰ لعموم البلوىٰ، ولاطلاق الحديث، انتهى. شامي (۲۰۶/۱)۔

ليکن علامه شيخ مبارکفوريؒ په أبكار المنن ص (٤٦) کښې فرمائي : : دا حديث د ابو يوسفؒ د مذهب هم خلاف دې ځکه د ابو يوسفؒ مذهب دادې چه چپړه څپلۍ په مږلو سره پاکيږي کله چه ورته ذي جرم نجاست اورسيږي اوچ وي که لوند۔ اوکله چه ورته غير ذي جرم نجاست اورسي لکه بول وغيره، نو بيا په غير د وينځلو نه هم نه پاکيږي۔ نو پدې فرق هم دليل نشته، بلکه حديث مطلق دې که ذي جرم نجاست وي اوکه غير ذي جرم وي۔ د دواړو يو حکم دې، چه زمکه پورې راخکلو سره پاکيږي اګرچه نجاست باقي وي، ليکن هغه شريعت معاف کړيدې۔ نو د امام ابو حنيفةؒ او ابو يوسفؒ مذهب خطاء دې، د ظاهر د حديث نه - چه په ابتداء د فصل ثالث کښې را روان دې - خلاف دې۔

۲- **فائده** : حديث نه معلومه شوه چه نجاست پاکول صرف اوبو پورې خاص نه دي

**درجة الحديث** : رواه ابوداود : دا حديث په طريقه د وليد بن مزيد او أبو المغيره اوعمر بن عبد الواحد عن الأوزاعي سره نقل دې، اوزاعيؒ فرمائي : أنبئت أن سعيد الخ۔

نو په دې روايت کښې اوزاعيؒ خپل استاذ نه دې ذکر کړې نو هغه مجهول دې، ليکن

شايد چه هغه استاذ محمد بن عجلان وی، لکه په بل روايت د ابوداود کښې په سند د محمد بن كثير الصنعانی عن الأوزاعی عن ابن عجلان عن سعيد نقل دے، او محمد بن كثير اګر چه متكلم فيه راوی دے، ليکن متابعين دده موجود دی، چه يو ابو المغيره او بل وليد او بل عمر دے، اودا ټول ثقه راويان دی. او محمد بن عجلان هم متكلم فيه راوی دے، مګر اکثرو دده توثيق کړيدے.

نو ثابته شوه چه دا حديث صحيح دے، لکه ابن حبان اوحاکم په خپل کتاب کښې وئيلی دی چه : صحيح على شرط مسلم. امام نوویؒ په الخلاصه کښې وائی : رواه أبوداود باسناد صحيح. ابن همام وائی : حديث أبی هريرة حسن، لم يطعن فيه. كذا فی المرقات (٣٥٦/١) وقال النيموی : حديث حسن الاسناد. او ددے حديث دوه شاهده نور هم شته، أبوداود راوړيدی د عائشهؓ او ابو سعيدؓ نه. قال الالبانی فی تعليق المشكاة (١٠٦/١) فی سنده انقطاع ووصله بعض الضعفاء فصححه بعض المتساهلين. لكن الحديث صحيح لان له شاهدين احدهما عن عائشة والآخر عن ابی سعيد الخدریؓ باسنادين صحيحين ذكرتهما فی صحيح ابی داؤد رقم (٣٧٤-٣٧٥) وقال رمضان فی تعليق المشكاة (٢٢٣/١) اسناده صحيح بشواهده.

---

١٥ – وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ لَهَا امْرَأَةٌ : إِنِّىْ اُطِيْلُ ذَيْلِىْ وَأَمْشِىْ فِى الْمَكَانِ الْقَذِرِ، قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَهُ) رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِىُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالدَّارِمِىُّ. وَقَالَا : اَلْمَرْأَةُ أُمُّ وَلَدٍ لِإِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ.

**ترجمه** : ام سلمهؓ نه روايت دے چه دے ته يوے ښځے ووئيل : زما لمن اوګده ده او زه په ګنده ځائے کښې ګرځم. ام سلمهؓ ورته ووئيل : رسول الله ﷺ فرمائی چه ددے نه پس چه کومه زمکه راځی نو دے لره پاکوی. (احمد، مالك، ترمذی، ابوداود، دارمی) او ابوداود او دارمی وئيلی دی چه هغه تپوس کونکے ښځه د ابراهيم بن عبد الرحمن بن عوف ام ولده وه (چه د هغې نوم حميدهٔ وو – تابعية صغيرة مقبولة).

(ام ولده : هغه وينزه چه د مالك نه ئے ماشوم پيدا شوے وی. داسے وينزه د مالك د

مرګ نه پس پخپله آزادیږی)۔

**تشریح** : په دے حدیث کښې د نجاست زائل کولو دپاره بله طریقه بیانوی، هغه داچه کله یو انسان په یو ګنده ځائے باندے تیر شی او د هغه د څادر یا د زنانه د قمیص لمن یا برقع په هغې ګند باندے ګنده شی، یا د باران په خټو باندے ګنده شی نو چه کله په روستو پاکه اوچه زمکه ورتیر شی نو هغه جامه برقع او قمیص پاکیږی۔ او وینځلو ته ئے ضرورت نشته۔

په حاشیه د مشکوة کښې تاویل کوی چه کله لمن پورے اوچه ګندګی او بول اونخلی او په پاکه زمکه تیر شی نو پاکیږی۔ نو ګندئے خاص کړو د اوچ پورے۔ (و کان القذر یابسا)، او ملا علی قاریؒ وائی : دا تاویل متعین دے اجماعاً۔

لیکن دا **تاویل** صحیح نه دے، بلکه ددے حدیث خلاف دے، ځکه چه دا زنانه په اقذار رطبه – لامده ګندونو – باندے تیره شویده (بدلیل یطهره ما بعده) ځکه ما بعد ددے زمکے نه اوچه ده، په هغې سره پاکیږی۔ بلکه ددے نه مراد د باران خټے او چقړے دی، لکه ددے حدیث تشریح په اول حدیث د فصل ثالث ددے باب کښې را روانه ده، هلته د باران په باره کښې تپوس شویدے، او مقصود په دے حدیث کښې آسانی د شریعت ده لکه دا خبره شاه ولی الله دهلویؒ په المسوی شرح الموطأ کښې تفصیلا بیان کړیده۔

وکذا فی فقه السنة (١/٣١) قال کمیل بن زیاد : رأیت علیا یخوض طین المطر ثم دخل المسجد فصلی ولم یغسل رجلیه. الشامی (١/٢٠٦) المجموع شرح المهذب (١/٢٠٩) مجموعة الفتاوی ۔ نو دا حدیث حمل دے په طِیْنُ الْمَطَرِ، وَوَحْلِهٖ باندے۔

**درجة الحدیث** : رواه مالك۔ دا حدیث بعضے علماؤ ضعیف ګڼلے دے ځکه امرأه په کښې نه ده معلومه چه څوك ده۔ نو مجهول راوی په کښې راغلو ۔ لیکن صحیح خبره داده چه دا حدیث صحیح دے، اوکه امرأه مجهوله ده، نو هغه خو تپوس کونکے ده د ام سلمهؓ نه، او هغه خو په سند کښې نه ده راغلې، بلکه روایت خو أم سلمهؓ پخپله نقل کوی، نو که امرأه مجهوله شی، نو روایت ته هیڅ ضرر نه رسیږی۔ فتدبر!

٢ - **دویم جواب** داچه ابوداود او دارمی دا وئیلی دی چه امرأه أم ولد د ابراهیم ده،

کما فی الکتاب. او تقريب کښې حافظ عسقلانیؒ وائی : دا وروکې تابعيه ده، او مقبوله ده. نوم ئې حميده دے. دارنګه امام مالکؒ د مدينې په خلقو ډير أعرف دے. نو چه کله هغه ددے حديث نقل کړو، معلوميږی چه هغه ته دا معلومه ده، نو مجهوله پاتې نشوه د هغه په نيز. دا جواب هله دے چه کله راويهٔ ډغه تپوس کونکې زنانه شي. وقال الشيخ الالبانی اسناده صحيح بشاهد صحيح يأتی فی اول الفصل الثالث.

---

١٦ - وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيْكَرِبَ ﷺ قَالَ : نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَنْ لُبْسِ جُلُوْدِ السِّبَاعِ وَالرُّكُوْبِ عَلَيْهَا ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** : مقدام بن معديکربؓ فرمائی : رسول الله ﷺ د درندګانو د څرمنو اغوستلو او په هغې باندے د سوريدلو نه منع فرمائيلے ده. (ابوداود، نسائی).

**تشريح** : جُلُوْدِ السِّبَاعِ : د درنده ګانو د څرمنو نه فائده اخستل حرام دی. لکه عربو به ددے څرمنې د اس په شا باندے اچولې، بيا به پرے کيناستل اودا د جابره او متکبرانو خلقو کار دے.

بيا دا په دباغت او رنګ کولو سره هم نه پاکيږی. څکه چه دباغت خو خلق د فائدے اخستلو دپاره ورکوی او ددے نه فائده اخستل حرام شو. او دامخصص دے هغه احاديثو د دباغت لره. او د (اذا دبغ الاهاب فقد طهر) د عموم نه دا مستثنیٰ دی. علامه شوکانیؒ فرمائی : په دے حديث کښې صرف د رکوب ددے څرمنو او د اغوستلو ددے نه منع ده، ددے نه دا نه لازميږی چه دادے نجس هم وی. بلکه په دباغت سره پاکيږی. وهو الظاهر من حيث الادلّة.

**مناسبت** : د حديث د باب سره دادے چه بعضے څيزونه نجس العين دی، نو د هغې د پاکوالی هيڅ صورت نه وی، لکه جلود السباع. او يا که په دباغت پاك شی بيا هم استعمال ئې ندے جائز.

**درجة الحديث** : رواه ابوداود والنسائی : تول رجال ئې ثقات دی ليکن په دے روايت کښې بقيه بن الوليد دے اودا صدوق کثير التدليس راوی دے عنعنه ئې کړيده، ليکن په

مسند أحمد (١/١٣٢) كښې دديې قصې يو طرف ذكر دې او په هغې كښې تصريح بالتحديث موجود ده، نو حديث ثابت دې۔ قاله المباركفوري في المرعات (٢/٢٠٤).

---

١٧ – وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ اَبِيهِ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ : (نَهٰى عَنْ جُلُوْدِ السِّبَاعِ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ أَنْ تُفْتَرَشَ.

**ترجمه** : ابو المليح بن اسامه د خپل پلار په واسطې سره د نبي كريم ﷺ نه دا روايت نقل كوي چه نبي ﷺ د درندګانو د څرمنو – استعمالولو – نه منع فرمائيلې ده۔ (احمد ابوداود، نسائي) او ترمذي او دارمي دا الفاظ زيات نقل كړي دي چه دديې نه ئې منع فرمائيلې ده چه دغه څرمنو نه فرش جوړ كړې شي۔

**تعارف : د أبي المليح** : ابن أسامه، دده نوم عامر دې، د اوساط التابعين نه دې، په (٩٨) كښې وفات دې، پلار ئې صحابي دې۔

**تشريح** : يعني د ځيرونكي حيواناتو لكه پړانګ، زمرې، ګيدړ وغيره د څرمنو استعمالولو نه منع شويده چه دديې اغوستل يا پدې باندې كيناستل وغيره حرام دي ځكه دا قسم څرمنې انسان كښې تكبر او فخر پيدا كوي۔ بعض وائي منع ځكه شويده چه پدې باندې ويښته وي او هغه نجس دي دباغت نه قبلوي۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح اخرجه احمد في المسند (٥/٧٤، ٧٥) والدارمي (٤/٣٤٧) والترمذي (١٧٧٠ – ١٧٧١) والنسائي (٧/١٧٦) وليس في رواية احمد وابي داود والنسائي ذكر ...... ان تفترش۔

---

١٨ – وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ أَنَّهُ كَرِهَ ثَمَنَ جُلُوْدِ السِّبَاعِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : د ابو المليح باره كښې منقول دي چه هغه به د درندګانو د څرمنو قيمت هم مكروه ګڼړلو۔ (ترمذي)۔

**تشريح** : أَنَّهُ كَرِهَ ثَمَنَ جُلُوْدِ السِّبَاعِ : په دې حديث کښې يو قانون دې هغه داچه : هر هغه شے چه د زنانه او سړی د دواړو دپاره استعمالول جائز وی، يا د يو دپاره استعمالول جائز وی، اوحرام اوحلال پرے دواړه کيږی لکه ريډيو، ټائيپ، ريښم، سره، سپين وغيره، نو د هغے اخستل خرڅول جائز دی۔ اوکوم چه نارينه زنانه دواړو دپاره نا جائز وی، لکه ټی، وی، وی۔سی آر وغيره څيزونه نو د هغے اخستل خرڅول حرام دی۔ څکه ددے نه فائده نشی اخستل کيدے۔ نو د جلود السباع نه فائده اخستل حرام دی نو دهغے خرڅول هم حرام دی او دا د ابو المليح مسلك هم دے۔

**درجة الحديث** : رواه : دلته د مشکاة مصنف دا روايت نه دے موندلے نو بياض ئے پريخے دے۔ اصل کښے دا اثر د ابو المليح امام ترمذیؒ راوړيدے په کتاب اللباس (١٧٧٠) کښے۔ امام جزریؒ فرمائی : هذا الأثر سنده جيد، وقال الطيبی : سنده و جيه۔ ليکن که ددے سند پيدا هم نشی نو څه ضرر نشته څکه دا د تابعی وينا ده۔ قال الشيخ الالبانی فی صحيح الترمذی (١٥٣/٢) رقم (١٨٤٤) الحديث سنده صحيح۔

---

١٩ - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُكَيْمٍ ﷛ قَالَ : أَتَانَا كِتَابُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ : ( أَنْ لَا تَنْتَفِعُوْا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه .

**ترجمه** : عبد الله بن عکيم فرمائی : مونږ (جهينه قبيلے) ته چه د رسول الله ﷺ کوم خط راغلے وو په هغے کښے دا وو : چه د مردارے د (کچه) څرمنے او پلے (پټے) نه فائده مه اخلئ۔ (ترمذی، ابوداود، نسائی، ابن ماجه)۔

## تعارف : د عبد الله بن عُکيم ﷛ :

دده کنيه ابو معبد الجهنی، مخضرم، ثقه دے۔ دا ډير علماؤ په صحابوؓ کښے شميرلے دے۔ ليکن صحيح خبره داده چه دا تابعی دے، او د نبی ﷺ زمانه ئے نه ده موندلے۔ نبی ﷺ ئے نه دے ليدلے، او روايت ئے هم ترے نه دے نقل کړے۔ او د نبی ﷺ خط ئے آوريدلے

دے کوم چه جهینه قبیلے ته لیږلے شوے وو۔ په زمانه د امارت د حجاج بن یوسف کښے وفات شویدے۔

أَنْ لَا تَنْتَفِعُوْا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ : اهاب کچه څرمنے ته وائی، چه رنګ شوے نه وی۔ او عصب پلے ته وائی کوم چه په جسم کښے خورے دی۔ او په هغے سره انسان حرکت او حس کوی، او ددے څیزونو نه څکه فائده نشی اخستل کیدے چه دا نجس دی۔ په مرګ سره په دے کښے نجاست پیدا کیږی۔

دا حدیث د امام احمدؒ دلیل دے چه څرمن په دباغت سره نه پاکیږی، لیکن ددے جواب مخکښے تیر شویدے چه یو خو دا حدیث مرسل دے۔ عبد الله بن عکیم رسول الله ﷺ نه دے لیدلے، او دا روایت نقل کوی۔

۲ – دویم انقطاع ده په مابین د عبد الرحمن بن أبی لیلیٰ او عبد الله بن عُکیم کښے۔

۳ – دریم اضطراب کثیر دے۔ کما مرّ۔ نو دا حدیث ضعیف دے قابل د استدلال نه دے۔ او که چرے صحیح شی نو بیا په کښے دا تاویل دے چه (اهاب) هغه څرمنے ته وائی چه نه وی رنګ شوے۔ او دا مسلم ده اتفاقا چه بے رنګه کچه څرمن پاکه نه ده۔ دارنګه پدے روایت کښے قبل ان یموت بشهر او بشهرین نه خو دا نه معلومیږی چه دا ناسخ دے تولو احادیثو د جواز لره څکه چه روستو حدیث د میمونه کښے چه د شاه واقعه ذکر ده نو د هغے تقدم یقینی ندے څکه کیدے شی چه دغه ورځو کښے د جواز دغه حدیث وئیلے شوے وی نو د نسخ قول خو علم بالتاریخ غواړی او هغه نشته۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذی (۱۷۲۹) وأبوداود (٤١٢٨) .والنسائی (۱۷۵/۷) وابن ماجة (۳٦١٣)۔ امام ترمذی فرمائی : هذا حديث حسن۔ لیکن دا تحسین د جهت د ثقات راویانو نه دے، ورنه په اعتبار د انقطاع او ارسال او اضطراب سره ضعیف دے۔

دا وجه ده امام احمدؒ په دے روایت کښے تردد کړیدے چه راویان ثقه دی لیکن اضطراب دے په کښے۔ نو په دے وجه ئے بیا رجوع اوکړه مذهب د جمهورو علماؤ ته، کما نقل الترمذی رجوعه۔ لیکن شیخ البانی په صحیح ابی داود او صحیح الترمذی کښں ورته صحیح وئیلے دے او شیخ رمضان په تعلیق المشکاة (۲۲٦/۱) کښں د هغه تائید کړیدے

او همدا خبره صحيح ده، دے باره کښې ډير زيات روايات په مختلف سندونو راغلي دي كما في صحيح ابي داود۔

---

**٢٠ – وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَمَرَ أَنْ يُسْتَمْتَعَ بِجُلُوْدِ الْمَيْتَةِ إِذَا دُبِغَتْ . رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : عائشة فرمائي : رسول الله ﷺ حکم فرمائيلے دے چه د مردارے د څرمنے نه د رنګ کولو نه پس فائده اخستلے شي۔ (مالك، ابوداود)۔

**تشريح** : اَنْ يُسْتَمْتَعَ : دا حديث رد دے په هغه چا باندے چه د مردارے څرمن پاکه ګنړي په دباغت سره خو بيائے خاص کوي په اوچ شيانو پورے، چه اوچ شيانو دپاره ترے فائده اخستل جواز لري، نه په لامده څيزونو۔ ځکه چه حديث کښے استمتاع مطلق ده، که اوچ شيان اچوي اوکه لامده تول جواز لري۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود رقم (٤١٢٤) ومالك في الموطأ (٢/٢٩٨) رقم (١٨) ورجاله ثقات كلهم غير ام محمد بن عبد الرحمن بن ثوبان فانها تروى عن عائشة ولا تعرف. ولكن الحافظ قال انها مقبولة ( اى حين المتابعة) ولذا قال الشيخ الالباني في تعليق المشكاة (١/٢٥٨) وسنده حسن في المتابعات وتبعه الشيخ رمضان فقال سنده حسن۔

---

**٢١ – وَعَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ : مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ رِجَالٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَجُرُّوْنَ شَاةً لَهُمْ مِثْلَ الْحِمَارِ، فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (لَوْ أَخَذْتُمْ اِهَابَهَا قَالُوْا : اِنَّهَا مَيْتَةٌ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : ميمونة فرمائي : د قريشو څه سړي په رسول الله ﷺ باندے په داسے حال کښے تير شو چه هغوئ خپله يوه چيلئ لکه د خره غوندے راخکله۔ نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل : کاش چه تاسو ددے څرمن اوخکلے وے۔ هغوئ عرض اوکړو : دا خو مرداره ده، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : دا د کيکر پاڼړے او اوبه پاکوي۔ (حمد، ابوداود)۔

**تشريح : يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ** : قرظ د كيكر ونے پاڼړو ته وائى چه دا اوړه كړى په دے كښے اوچ والے او ټينګوالے وى. نو كله چه دا د اوبو سره ګډ شى نو څرمن پرے رنګ كيږى او اوچيږى. دے نه علاوه په نورو طريقو سره رنګول ئے هم جائز دى، لكه انار پوستكى سره، نمر سره، هواء وغيره سره. دلته صرف يوه طريقه ذكر ده. كما قال النووى.

**فائده** : د څرمن رنګولو دپاره صرف اوصرف دباغت راغلے دے، او ددے دپاره بيا ډيرے طريقے دى، او دباغت نه ما سيوا څيزونو باندے پاكوالے صحيح نه دے. صاحب الهدايه (۴۱/۱) وائى : ثم ما يطهر جلده بالدباغ يطهر بالذكاة، لانه يعمل عمل الدباغ فى ازالة النجاسة والرطوبة. يعنى په ذبح كولو د يو مردار حيوان سره هم د هغه څرمن پاكيږى، مثلا خر ذبح كړى او وينه ترے لاړه شى نو څرمن ئے پاكه شوه اګرچه رنګ نه وى وركړے شوے. دارنګه غوښے ته ئے هم پاكه وائى. شرح الوقايه (۹۰/۱). دا خبره صحيح نه ده، بلكه بے دليله قياسى خبره ده، څكه حديثونو كښے (اذا دبغ الاهاب فقد طهر) او بل روايت كښے (طهور كل اهاب دباغه) راغلے دے. اخرجه مسلم والبيهقى فى السنن (۲۰/۱).

نو دباغ شرط دے. او دے باندے امام بيهقیؒ باب تړلے : باب اشتراط الدباغ فى طهارة جلد ما لا يوكل لحمه وان ذكى. نو فقه حنفى ددے حديث خلاف شوه. او په ذبح كولو سره ازاله د رطوباتو هم نه راځى، دا هسے دعوىٰ ده.

**درجة الحديث** : واسناده صحيح كما فى صحيح ابى داود رقم (۴۱۲۶).

---

**۲۲ - وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ رضي الله عنه قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ جَاءَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ عَلٰى أَهْلِ بَيْتٍ فَاِذَا قِرْبَةٌ مُعَلَّقَةٌ فَسَأَلَ الْمَاءَ فَقَالُوْا لَهُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! اِنَّهَا مَيْتَةٌ. فَقَالَ : دِبَاغُهَا طُهُوْرُهَا ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : سلمه بن المحبقؓ فرمائى : رسول الله ﷺ د غزوه په موقعه د يو سړى كور ته تشريف راوړلو، ناڅاپى په يو زړوند مشك باندے ئے نظر اولګيدلو. نو رسول الله ﷺ اوبه ئے وغوښتلے. نو خلقو عرض اوكړو : يا رسول الله ! دا خو د مردارے څرمن ده. رسول

الله ﷺ اوفرمائیل : رنګولو دا پاکه کړیده۔ (احمد، ابوداود)۔

## تعارف : د سلمه بن المحبق : رضی الله عنه :

دده کنیه ابو سنان دے، بعضے وائی دده نوم سنان بن المحبق دے۔ د هذیل قبیلے نه دے، د بصرے اوسیدونکے مجاهد صحابی دے، بعض وائی : دا هغه اصحاب بابا دے کوم چه دلته په پینبورمتهیٔ کښے پروت دے، دلته د بت پرستو د مقابلے دپاره په سنه (۴۳) هـ کښے راغلے وو، کما فی تاریخ البلارزی. و الکامل فی التاریخ لابن الاثیر ۔ مظلوم صحابی دے۔ احناف دده باره کښے وائی : کله چه دده حدیث راشی او د عقل او قیاس خلاف وی نو قیاس له ترجیح وی دده په حدیث باندے۔ کذا فی الحسامی باب السنة۔

دا خبره د دویٔ **غلطه** ده۔ دده نه دولس (۱۲) احادیث نقل دی۔ او د احنافو ناپوهه عوام دده په قبر باندے شرکیات کوی۔

دا حدیث هم صریح دلیل دیٔ په دے چه دباغت سره څرمن مطلقا پاکیږی، او د اوچ او لمدو څیزونو فرق په کښے نشته، په دے څرمن کښے اوبه ساتلے شوی دی۔ نو دا تائید دے د قول د جمهورو، او رد دے په قول د امام مالکؒ باندے۔

**درجة الحديث** : اخرجه احمد (۱/ ۳۳۴) وابوداود و النسائی (۷/ ۱۷۴) والدارقطنی (۱/ ۴۵) وصححه ابن حبان واورده الهیثمی فی موارد الظمآن رقم (۱۲۲) وحسن سنده الشیخ رمضان وقال الشیخ الالبانی سنده صحیح کما فی صحیح ابی داود رقم (۴۱۲۵)۔

---

## الفصل الثالث - دریم فصل

۲۳ – عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِيْ عَبْدِ الْأَشْهَلِ قَالَتْ : قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! اِنَّ لَنَا طَرِيْقًا اِلَى الْمَسْجِدِ مُنْتِنَةً فَكَيْفَ نَفْعَلُ اِذَا مُطِرْنَا ؟ قَالَتْ : فَقَالَ : اَلَيْسَ بَعْدَهَا طَرِيْقٌ هِيَ أَطْيَبُ مِنْهَا ؟ قُلْتُ : بَلٰى. قَالَ : فَهٰذِهٖ بِهٰذِهٖ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : د بنو عبد الأشهل د یوے ښځے نه روایت دے دا وائی : ما عرض اوکړو : یا رسول الله ! مسجد ته چه کومه لاره زمونږ ده هغه ګنده ده، نو کله چه باران اوشی نو

مونږ څه اوکړو؟ هغه ښځه وائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : آیا دغه ګنده لارے نه پس بله صافه لاره نه راځی ؟ ما عرض اوکړو : ولے نه، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : دا پاکه لاره د دغه ناپاکے لارے په بدل کښے ده۔ (ابوداود)۔

**تشریح** : عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ : دا صحابیه ده اونوم ئے نه دے ذکر شوے۔ او صحابهؓ ټول عادلان دی۔ کذا فی أسد الغابة لابن الأثیر الجزری، والتهذیب۔ نو دا صحیح حدیث دے، هیڅ علت په کښے نشته۔

اودا حدیث دلیل دے په دے چه لمده ګندګی او اوچه ګندګی چه څادر یا لمن پورے اونخلی او په پاکه زمکه ورتیر شی او په هغے پورے راخکلے شی نو پاکه شوه، او تخصیص د اوچے ګندګی په کښے نشته۔ او مراد ترے نه د باران ختے دی چه ګندونه ورسره ملاؤ شوے وی۔ دا شریعت معاف کړی دی، وینځل ئے ضروری نه دی بلکه د زمکے په مړلو سره هم پاکیږی۔

**درجة الحدیث** : رواه ابوداود رقم (۳۸٤) وابن ماجة (۵۳۳) واسناده صحیح قاله الالبانی فی تعلیق المشکاة (۱/۱۵۹) وتبعه رمضان۔

---

۲٤ - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ ﷺ قَالَ : كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَلَا نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطِئِ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : عبد الله بن مسعودؓ فرمائی : مونږ به د رسول الله ﷺ سره مونځ کولو او په (ګنده) زمکه باندے د تلو په وجه به مو اودس نه کولو۔ (ترمذی)۔

**تشریح** : وَلَا نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطِئِ : دا په فتحه د میم او سکون د واؤ او کسره د طاء او همزے سره دے، یا په فتحه د طاء او همزے سره دے، دا اسم ظرف دے د وطئ نه معنیٰ ئے داده (الوضوء من وطئ الموضع القذر) یعنے مونږ به اودس نه کولو د پائمال کولو د ګنده ځائے نه۔ علامه عراقیؒ وائی : پدے حدیث کښے د وضوء نه مراد لغوی وضوء دے چه هغه تنظیف دے یعنی مونږ به خپے د ختو وغیره نه نه صفا کولے۔ ځکه د صحاب کرامؓ عادت مبارك دا وو چه هغوی به کور کښے اودسونه کول او بیا به مسجد ته تلل نو که په لاره

کښې موزه یا څپلۍ وغیره به د ګندګۍ یا ختو سوتو وغیره نه اولګیدله نو خپې به ئې نه وینځلې او اودس به ئې هم دوباره نه کولو۔

دا حدیث حمل دے په حدیث د امرأة الأشهلية او أم سلمةؓ باندے چه اوچه یا لمده ګندګی جامے یا قدم پورے اونخلي او بیا په پاکه زمکه تیر شي نو دغه پاکه شوه۔ او اودس کول ضروری نه دی۔ او د هغه قدم او جامے وینځل ضروری نه دی۔ بلکه دا نجاست زائل شویدے۔

**درجة الحديث**: رواه الترمذی تعليقا و ابن ماجة رقم (۱۰٤۱) وابوداود (۲/۲۷) وابن خزيمة (۱/۲۵) وعبد الرزاق (۱/۳۳) والحاكم (۱/۱۳۹) وصححه ووافقه الذهبی وصححه الالبانی۔

---

**۲۵ – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ : كَانَتِ الْكِلَابُ تُقْبِلُ وَتُدْبِرُ فِي الْمَسْجِدِ فِي زَمَانِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرُشُّوْنَ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ ). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه** : ابن عمرؓ فرمائی : د رسول الله ﷺ په زمانه کښے به په جومات کښے سپی تلل راتلل، او صحابوؓ به د هغوئ د تګ راتګ په وجه هیڅ نه وینزل۔ (بخاری)۔

**تشريح: فَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرُشُّوْنَ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ :**

صحابه کرامؓ به مسجد ته د سپو په راتلو او تیریدو سره مسجد نه وینځلو۔ وجه داده چه (۱) د سپی بدن دانسان یا د زمکے وغیره سره اولګی نو نجس نه دے، ځکه دلته خو داسے نه ده چه سپو متیازے کړی دی، بلکه تیریدل را تیریدل ذکر دی۔ اودا بغیر د بول نه هم متصور دے۔ (۲) یا که متیازے ئے کړے وی په مسجد کښے لکه د ابوداود (۱/۵۵) په روایت کښې ورسره (وتبول) لفظ هم راغلے دے نو حکم دادے چه زمکه کله ګنده شی په بولو سره او هغه اوچه شی (فذكاة الأرض يبسها) كما مر ۔ یعنے هغه اوچیدو سره پاکه شوه۔ نو ځکه ئے پرے اوبه نه دی اچولی۔ لکه چه امام ابوداود هم پدے حدیث باندے داسے باب تړلے دے : باب فی طهور الارض اذا يبست۔

**فائده** : دلته نفی د (رش) شویده، ځکه دا مبالغه ده په نفی د غسل کښے۔ یعنے څنړکاؤ قدرے به ئے پرے هم نه کولو۔ اوکه نفی د غسل شوے وے نو بیا مبالغه نه راتله،

نو ددے نه د هغه احنافو استدلال هم صحيح نه دے چه (رش) په معنىٰ د غسل سره هم استعماليږي. لکه فلم يکونوا يرشون په معنىٰ د يغسلون سره اخلي. فتدبر. تفصيل مخکښې په (٧- حديث د ام قيس) کښې تير شو.

---

٢٦ - وَعَنِ الْبَرَاءِ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : لَا بَأْسَ بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ). ٢٧- وَفِيْ رِوَايَةِ جَابِرٍ قَالَ : (مَا أُكِلَ لَحْمُهُ فَلَا بَأْسَ بِبَوْلِهِ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه** : براء رضي الله عنه وائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د کوم حيوان غوښه چه خوړلے شي د هغه په متيازو کښې هيڅ باك نشته. او په روايت د جابر رضي الله عنه کښې دي : د کوم حيوان غوښه چه خوړلے شي نو دهغه په متيازو کښې څه حرج نشته. (احمد، دارقطني).

**تشريح** : لَا بَأْسَ بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ : دا حديث دليل دے چه بول د ماکول اللحم حيوان پاك دي. ليکن دا حديث ضعيف جدا دے، قابل د استدلال نه دے، اګرچه معنىٰ ئے صحيح ده. د نورو دلائلو په وجه چه هغه دلالت کوي په طهارت د بول ماکول اللحم وغيره، کما مرت المسألة .و هذا الحديث اخرجه الدارقطني . او په دے کښې سوار بن مصعب متروك الحديث راوي دے.

او روستو روايت د جابر رضي الله عنه کښې عمرو بن الحصين عن يحى بن العلاء دے او دا دواړه متروك راويان دي. ذاهب الحديث دي، کذا قال الحافظ في التلخيص (١/٤٣) : اسناد کلا الحديثين ضعيف جدا.

ليکن ددے دواړو رواياتو شپاړس (١٦) تائيدات موجود دي. چه هغه په خپل ځائے کښې بيان شوي دي. حديث العرنيين و مرابض الغنم.

* * * * * * * * * * *

# باب المسح علی الخفین

داد شریعت بله آسانی ده چه په موزو باندے مسح جائز کړیده۔ امام ابو حنیفهؒ نه نقل شویدی چه فرمائی چه ما په ابتداء کښے په موزو باندے مسح نه منله (حتی جائنی فیه مثل ضوء النهار) تردے چه ماته ډیر احادیث را ورسیدل لکه د ورځے د رنړا پشان۔

او دائے هم فرمائیلی دی چه د اهل السنة والجماعت مسلمانانو علامه داده چه (اکرام الشیخین، وحب الختنین، والمسح علی الخفین) یعنے: چه د ابو بکرؓ او عمرؓ اکرام او تعظیم اوکړے شی، اود عثمانؓ او علیؓ سره محبت اوکړے شی، او په موزو باندے مسح اوکړے شی) اودا خبره ئے په رد د شیعه ګانو کښے کړے وه ځکه په کوفه کښے شیعه ګان ډیر وو او غلطے غلطے عقیدے ئے لرلے۔ دا وجه ده چه امام ابو حنیفهؒ به ډیر احادیث هم د هر چا نه نه نقل کول دپاره د احتیاط، هسے نه چه د شیعه نه حدیث نقل نه کړی۔ او دا خبره د امام مالکؒ نه هم نقل ده۔

بیا مسح علی الخفین اتفاقی مسئله ده په مابین د اُمت مسلمه کښے چه دا جائز ده او دا رخصت دے د شریعت محمدیه ﷺ۔

صرف شیعه ګان او روافض مسح علی الخفین نه منی۔ ځکه آیت کښے غسل الرجلین ذکر ده۔ لیکن ددے نه جواب دادے چه غسل الرجلین په هغه وخت کښے دے کله چه موزے نه وی او چه موزے اچولی وی نو بیا غسل (وینځل) نشته بلکه مسح جائز ده۔ اودا مسح په موزو باندے په سفر او حضر، ضرورت او غیر ضرورت تولو کښے جائز ده۔ او دا په متواتر احادیثو سره ثابت ده۔ او دا اجماعی مسئله ده لکه امام نوویؒ فرمائی:

(مذهبنا ومذهب العلماء کافة جواز المسح علی الخفین فی الحضر والسفر وقالت الشیعة والخوارج لایجوز– وقد نقل ابن المنذر فی کتاب الاجماع الاجماع علی جواز المسح علی الخف ویدل علیه الاحادیث المستفیضة فی مسح النبی ﷺ فی الحضر والسفر وامره بذلك وترخیصه فیه واتفاق الصحابة فمن بعدهم علیه. انتهی. المجموع (۱/۴۷٦).

وكذا قاله الشوكاني في النيل (١/٢٢٢).

حسن بصريؒ فرمائي : ماته اويا (٧٠) صحابوؓ دا حديث بيان كړيدے چه رسول اللّٰه ﷺ په موزو مسح كړيده. أخرجه ابن أبي شيبه وكذا في شرح مسلم (١/١٣٢) او ابو القاسم بن منده په تذكره كښے د مسح على الخفين راويان أتيا (٨٠) صحابهؓ ذكر كړيدي، او دغه شان بو جماعت په كښے ترمذي او سنن كبرى (١/٢٦٩) راوړيدي. انظر المجموع (١/٤٧٧)

**تعريف الخف** : خف (موزه) څه ته وائي ؟ نو صحابهؓ او تابعينو او سلفوؒ زمانه كښے خف هرهغه شئ ته وئيل كيدلو چه خپے ته اچولے شي او د خپے نه راتاؤ وي، برابره خبره ده كه اوبه جذب كوي كه نه، او دا به د څپلو، چپړو په ځائے استعماليدله، مزل به په كښے كيدلو، برابره ده چه كه توټے نه وي اوكه د څرمنے نه اوكه د وړئ نه وي. او دا مذهب د ابن حزمؒ هم دے (كما في المحلى: ١/٣٣٤).

**فائده جليله** : په مسح على الخفين كښے **شرطونه دوه قسمه دي** (١) شرعي شرطونه (٢) اجتهادي شرطونه.

**شرعي شرطونه** څلور دي (١) يو دا چه خپے به پاكے وي، لكه را روان متفق عليه حديث كښے دي (فاني أدخلتهما طاهرتين) يعنے داوداسه نه پس به موزے اغوندي (٢) دويم شرط دا چه : موقت به وي په وقت پورے. يعنے په موده د مسح كښے به مسح كوي، چه هغه يوه ورځ او شپه ده د مقيم دپاره، او درے ورځے او درے شپے د مسافر دپاره. لكه دا به حديث د شريح بن هانيؒ كښے را روان دے.

٣ - دريم دا چه : موزه به پاكه وي كه ګنده وي نو مسح به پرے نه كوي، كما في حديث خلع النعال. (٤) مسح به د جنابت په حالت كښے نه كيږي. بلكه په وړه بے اودسئ كښے به كيږي . او د جنابت په واجبيدو سره به موزه اوباسي او د خپے وينځل به واجب وي. لكه دا په حديث د صفوان بن عسالؓ كښے راغلي دي : (كان رسول الله ﷺ يأمرنا اذا كنا سفرا أن لا ننزع خفافنا ثلاثة أيام ولياليهن الا من جنابة) أخرجه الترمذي وسيأتي في الكتاب.

او **اجتهادي شرطونه** هغه دي چه په كتاب او سنت كښے نه وي ذكر شوي، بلكه

بعضے فقهاؤ د اجتهاد په طور سره وضع کړے وي. نو ددے اجتهادي شرطونو لحاظ ساتل واجب نه دی ، بلکه ددے پرینبودل لازم دی. ځکه په دے کښے په انسانانو باندے تنګی او سختی راځی کوم چه منافی ده د سماحت د شریعت او د جواز د مسح علی الخف سره. (وکل شرط لیس فی کتاب الله فهو باطل) الحدیث.

او هغه **اجتهادي شرطونه** صاحب د نور الایضاح اووه (٧) ذکر کړیدی.

(١) اول : د خپو وینځلو نه پس به ئے اغوندی اګرکه د مکمل اودس کولو نه مخکښے ئے واغوندی (٢) سترهما للکعبین : یعنے ساتر به وی محل د فرضو لره چه کعبینو پورے به وی، که ددے نه لاندے وی او پړکی پټ نه کړی نو مسح به پرے جائز نه وی (٣) امکان متابعة المشی فیهما : یعنے پرله پسے مزل به په کښے ممکن وی، نو دشیشے او لرګی او اوسپنے موزه باندے مسح جائز نه ده (٤) استمساکهما علی الرجلین من غیر شد : یعنے بغیر د تړلو نه به په خپه باندے ټینګیږی (٥) منعهما وصول الماء الی الجسد : یعنے اوبه به نه جذب کوی چه لاندے خپے ته اوبه اونه رسی (٦) ان لا یخرق کل منهما قدر اصابع : یعنے د درے ګوتو په مقدار به په هره موزه کښے شلیدل نه وی (٧) ان یبقی من مقدم القدم قدر ثلاث اصابع من اصغر اصابع الید : یعنے د خپے مخکښے حصه به د لاس د درے وړو ګوتو په مقدار باقی وی، نو که د یو انسان مخکنۍ حصه د خپے پرے کړے شوی وی او صرف قدم پاتے وی، او موزه ئے پرے اغوستے وی، نو په دغه موزه مسح جائز نه ده، ځکه محل د مسح نشته، نو بله موزه به هم اوباسی او دواړه خپے به اووینځی.

(مراقی الفلاح ص : ٣١).

په دے شرطونو کښے سختی ده او نبی ﷺ دا شرطونه نه دی بیان کړی . سره ددے نه چه په صحابه کرامو کښے به ډیر خلق فقیران وو چه دهغوئ موزے به شلیدلے هم وے، او نرئ به هم وے، که چرے دغه مذکوره شرطونه ضروری وے نو نبی ﷺ به ضرور ددے خبر ورکړے وے. او دارنګه د موزو اچولو نه مقصد د خپے پټول نه دی بلکه مقصد خپه ګرمول دی، نو که د درے ګوتو نه زیات شلیدلے وی یا نرئ وی نو په دے تولو باندے مسح کول جائز دی. او دا مسح په موزه باندے ځکه جائز شویده چه ددے ویستل ګران دی، نو

ترڅو پورې چه ورته موزه وئيلې کيږي نو مسح پرې جائز ده ۔ اوکه مونږ دا شرطونه لازم کړونو بيا په موزه باندې چه د کوم غرض او مقصد دپاره مسح کيږي هغه فوت کيږي چه هغه آساني ده ۔ ددې مسئلې ښه تحقيق په المحلى (۳۲٤/۱) کښې او فتاوى الدين الخالص (۳۵٦/۲) کښې اوګوره ۔

---

## الفصل الأول - اول فصل

۱ - وَعَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ قَالَ : سَأَلْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ ﷺ عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ، فَقَالَ جَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ ثَلٰثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ، وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : شريح بن هانئ فرمائى : ما د على بن ابى طالبؓ نه په موزو باندې د مسح باره کښې تپوس اوکړو : نو هغه اوفرمائيل : رسول الله ﷺ د مسافر دپاره درې ورځې او درې شپې، اود مقيم دپاره يوه ورځ او شپه مقرر کړيده ۔ (مسلم) ۔

### تعارف : د شريح بن هانئ رحمه الله :

دا مخضرم تابعى دې، د نبى ﷺ په زمانه کښې وو، دده پلار رسول الله ﷺ په ابو شريح سره مکنى کړې وو ۔ او د على رضى الله عنه ملګرې وو ۔

**فائده** : اول حديث ئې د على رضى الله عنه راوړو دپاره د رد په شيعه ګانو باندې چه دوئ د خپل مشر نه مخالف او منکر دى ۔

**تشريح** : وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ : په دې مقام کښې دوه مسئلې دى (۱) يو **تحديد او توقيت** په مسح کښې شته که نه ؟

۱ -نو د امام شافعىؒ، امام ابو حنيفهؒ، امام احمدؒ، امام اسحقؒ بن راهويه اوصاحبينو ، امام ثورىؒ او اهل ظاهر په نيز توقيت په مسح کښې شته دې چه د مسافر دپاره درې ورځې او شپې دى او د مقيم دپاره يوه ورځ او يوه شپه ده ۔ د جمهورو دپاره دا حديث او ددې پشان ګڼږ احاديث دليل دې، لکه حديث د صفوان بن عسالؓ او ابو بکرهؓ او دا توقيت د

عمر، ابن مسعود، علي، ابن عباس، حذيفه او مغيره بن شعبه رضى الله عنهم نه ثابت دي. د سلو نه زياتو صحابوٌ نه توقيت والا احاديث نقل دي.

٢ - د امام مالكؒ مشهور قول او حسن بصريؒ قول دادے چه په مسح د موزو كښے د مسافر او مقيم دپاره هيڅ **توقيت نشته** بلكه څومره موده ئے چه خوښه شي مسح دے كوي اګركه لس ورځو پورے وي. او دا مذهب د ليث بن سعد هم دے.

او دوئ ته اشكال د حديث د خزيمه بن ثابتؓ او أبي بن عمارةؓ نه راغلے دے چه په حديث د خزيمهؓ كښے داسے الفاظ دي : (المسح على الخفين للمسافر ثلاثة أيام ولياليهن وللمقيم يوم وليلة، ولو استزدناه لزادنا ) رواه أبوداود . او د أبي ابن عماره د حديث الفاظ دادي (قال : يا رسول الله ! أمسح على الخفين ؟ قال : نعم. قال : يوما ؟ قال : ويومين ؟ قال : وثلاثة ؟ قال : نعم وما شئت).

نو په دے رواياتو كښے د درے ورځو نه د زياتو ورځو مسح كولو اختيار راغلے دے، معلوميږي چه توقيت نشته.

ليكن ددے نه جواب دادے چه دا (لو استزدناه لزادنا) د صحابيؓ ګماني خبره ده، چه كه ما د درے ورځو نه زيات اجازت طلب كړے وے نو نبي ﷺ به اجازه راكړے وے، ليكن په واقع كښے نه هغه تپوس كړے دے او نه نبي كريم ﷺ د زيادت اجازت وركړيدے. (والظن لا يغني من الحق شيئا) او بل طرفته په متواتر احاديثو كښے د مسح توقيت راغلے دے نو په هغے به عمل كيدے شي او ددے ګماني خبرے په وجه به يقيني احاديث نشي پريخودلے.

او **جواب** د حديث د أبي بن عمارةؓ نه دادے چه دا حديث ضعيف السند دے، امام أبوداودؒ خپله فرمائي : وقد اختلف في اسناده وليس هو بالقوى . يعني دا حديث قوى الاسناد نه دے بلكه ضعيف دے. قال النوويؒ وهو حديث ضعيف باتفاق اهل الحديث شرح مسلم (١٣٥/١) فيه قطن لين وابى بن عمارة فى حديثه اضطراب . وضعفه الالباني.

٣ - اوكه صحيح شي نو بيا ددے **مطلب** دادے چه ستا څومره خوښه وي نو درے درے ورځے او شپے مسح كوه، اوصرف د يو وقت پورے مه خاص كوه. په هره زمانه كښے ئے كولے شے، او چه درے ورځے او شپے تيرے شي نو بيا درے ورځے او شپے نورے موزے

اچوه، الی آخر الأبد۔ او دا مطلب نه دے چه توقیت نشته، ځکه بیا نبی ﷺ په اول د همدغه حدیث کښے درے ورځے او درے شپے د مسافر دپاره ولے ذکر کولے ۔ او دا مطلب متعین دے، او په دے سره جمع بین الأحادیث راځی۔

٣ - بعضے لا داسے وائی : چه په ابتداء کښے توقیت المسح نه وو، لیکن کله چه صحابو ؓ تپوسونه ډیر کړل نو په ځان ئے سختی اوکړه، الله هم ورسره سختی اوکړه چه توقیت ئے پرے مقرر کړو، لکه د بنی اسرائیلو پشان چه غوا کښے ئے تشدد اوکړو نو الله هم ورسره د سختئ معامله اوکړله۔

٣- دلته یو دریم مسلك هم شته او هغه دا چه په عام حالاتو کښې بغیر د سفر او ضرورت نه مسح کښې توقیت شته البته که یو انسان مسافر وی او موزے ئے اچولی وی او د هغے په ویستلو کښې تکلیف محسوسوی یا که هغه اوباسی او اودس کوی نو د ملګرو (قافله) په حصارولو کښې تکلیف جوړیږی نو بیا بغیر د توقیت نه مسح کول به هم جائز وی دلیل پدے باندے صحیح حدیث د عمرفاروق رضی الله عنه دے چه عقبه بن عامرؓ د دمشق نه را روان شو مدینے ته راتلو او د یوے جمعے نه ئے تر بلے جمعے پورے په موزو مسح کړے وه او مینځ کښے ئے ویستلے نه وے۔نو عمر رضی الله عنه ورته اوفرمائیل : اصبت السنة کما فی السلسلة الصحیحة (٦/ ٢٣٩) رقم (٢٦٢٢).

او دا مسلك د شیخ الاسلام ابن تیمیه او شیخ البانیؒ دے۔

شیخ الاسلام وائی : چه په احادیث د توقیت المسح کښې امر د مسح یوه ورځ او یوه شپه او درے ورځے درے شپے راغلے دے خو په هغے کښې نهی د زیادت نشته مگر هغه صرف د مفهوم مخالف نه معلومیږی او مفهوم کښې عموم نه وی نو که د وقت تیریدو نه پس ئے اوباسی نو هم پدے احادیثو عمل راځی او پدے (ضرورت) باندے به حدیث د عقبه بن عامرؓ حمل کیږی کله چه هغه د دمشق نه مدینے طرفته راووتو او خلقو ته ئے د دمشق د فتحے بشارت ورکولو او یوه هفته ئے په موزو باندے مسح کړے وه، نو عمرؓ ورته اوفرمائیل : اصبت السنة (تا په سنت طریقه عمل کړیدے) وهو حدیث صحیح. انتهی۔ مجموعة الفتاوی (٢١/١٧٧).

او شیخ الاسلام دا هم فرمائی چه ما باندې هم داسې حالت راغلې وو چه زه په یو سفر کښې ووم نو ملګری حصارولو کښې ډیر تکلیف جوړیدلو نو ما ته دا حدیث رایاد شو او عمل مې پرې اوکړو۔ شیخ البانی فرمائی : وهذا من نوادر فقهه رحمه الله۔

**دویمه مسئله : د مسح موده به د کوم وخت نه شروع کیږی ؟**

١ - **اول قول :** دادې چه من وقت اللبس (یعنی د اغوستلو د وخت) نه شروع کیږی۔

٢ - محدثین فرمائی : من وقت المسح (د مسح کولو د وخت) نه شروع کیږی۔

٣ - احناف او شوافع وائی : د حدث او بې أودسۍ نه پس شروع کیږی (من وقت الحدث بعد اللبس)۔ یعنی کله چه موزې واچولې شی، او ددې نه پس انسان اودس مات کړی نو ددغه وخت نه به موده شروع کیږی۔

شرح مسلم (١/١٣٥) وشرح وقایه (١/١١٤)۔

دویم **قول راجح** دې ځکه چه احادیثو کښې لفظ د مسح راغلې لکه (جعل رسول الله ﷺ ثلاثة أيام – ای المسح)۔

---

٢ - وَعَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﷛ أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ غَزْوَةَ تَبُوْكَ . قَالَ الْمُغِيْرَةُ : فَتَبَرَّزَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ قِبَلَ الْغَائِطِ فَحَمَلْتُ مَعَهُ اِدَاوَةً قَبْلَ الْفَجْرِ، فَلَمَّا رَجَعَ أَخَذْتُ أُهْرِيْقُ عَلٰى يَدَيْهِ مِنَ الْاِدَاوَةِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَوَجْهَهٗ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ مِنْ صُوْفٍ ذَهَبَ يَحْسِرُ عَنْ ذِرَاعَيْهِ فَضَاقَ كُمُّ الْجُبَّةِ، فَأَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ وَاَلْقَى الْجُبَّةَ عَلٰى مَنْكِبَيْهِ، وَغَسَلَ ذِرَاعَيْهِ، ثُمَّ مَسَحَ بِنَاصِيَتِهٖ وَعَلَى الْعِمَامَةِ ثُمَّ أَهْوَيْتُ لِأَنْزِعَ خُفَّيْهِ، فَقَالَ : دَعْهُمَا فَاِنِّيْ اَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ، فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا ثُمَّ رَكِبَ وَرَكِبْتُ فَانْتَهَيْنَا اِلَى الْقَوْمِ. وَقَدْ قَامُوْا اِلَى الصَّلَاةِ وَيُصَلِّيْ بِهِمْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ وَقَدْ رَكَعَ بِهِمْ رَكْعَةً، فَلَمَّا أَحَسَّ بِالنَّبِيِّ ﷺ ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ، فَأَوْمَأَ اِلَيْهِ فَأَدْرَكَ النَّبِيُّ ﷺ اِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ مَعَهٗ. فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ النَّبِيُّ ﷺ وَقُمْتُ مَعَهٗ

فَرَكَعْنَا الرَّكْعَةَ الَّتِيْ سَبَقَتْنَا ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : مغیره بن شعبةؓ نه روایت دے چه دے د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کښے غزوه تبوك کښے شریك شوے وو. مغیرةؓ فرمائی : (یو ځل) رسول الله ﷺ د سَحَر مونځ نه مخکښے قضائے حاجت دپاره بهر لاړ، نو ما ورسره د اوبو یو لوښے واخستلو. څه وخت چه واپس راغے نو ما د اوبو لوښی نه د هغه دواړو لاسو نو ته اوبه اچول شروع کړل، نو هغوئ خپل دواړه لاسونه او مخ اووینځلو، او په هغوئ باندے د وړئ یوه چوغه وه، هغوئ اراده اوکړه چه خپلے دواړه څنګلے راښکاره کړی خو د چوغے نستونړی تنګ وو، نو خپل دواړه لاسونه ئے د چوغے نه لاندے را اوویستل او چوغه ئے په اوګو واچوله، او څنګلے ئے اووینځلے، بیا ئے د سر په ابتدائی حصه او پګړئ باندے مسح اوکړه، بیا ما اراده اوکړه چه دواړه موزے ترے اوباسم، خو هغوئ اوفرمائیل : دا پریده ځکه چه دا ما پاکے ورننه ایستی دی، نو په هغے باندے ئے مسح اوکړله، بیا نبی ﷺ اوزه سواره شو او خلقو ته راغلو. خلق د جماعت مونځ ته ولاړ وو، چه عبد الرحمن بن عوفؓ ورته جماعت کولو. یو رکعت ئے ورته کړے وو، کله چه عبد الرحمن د نبی ﷺ په راتګ باندے پوهه شو، نو د روستو کیدلو اراده ئے اوکړه، خو رسول الله ﷺ ورته اشاره اوکړه (چه مه راروستو کیږه) نو رسول الله ﷺ هغه پسے یو رکعت را لاندے کړو، کله چه هغه سلام اوګرځولو نو د الله پیغمبر ﷺ اودریده اوزه هم هغه سره اودریدم، نو مونږ هغه رکعت اوکړو کوم چه مونږ نه تلے وو. (مسلم).

**تشریح** : **فوائد الحدیث** : ۱ – رسول الله ﷺ د فجر نه مخکښے قضاء حاجت دپاره لاړو ددے نه ثابته شوه چه عبادت مثلا مونځ وغیره د وخت شروع کیدو نه مخکښے د هغه عبادت دپاره تیاری کول مستحب دی.

۲ – فَحَمَلْتُ مَعَهُ اِدَاوَةً : دا استعانت او امداد طلب کول دی په اوداسه کښے او دا استعانت فی الوضوء په درے قسمه دے (کما ذکره النووی فی شرح مسلم : ۱/۱۳٤) :

۱ – یو دا چه اوبه وغیره په بل چا باندے را اوغواړی. دا جائز دی مطلقا هیڅ نقصان په کښے نشته. ۲ – دویم دا چه : بل شخص در اچوی او ته اندامونه وینځے، دا دا هم جائز

دی، خو د افضلیت خلاف دے خو د أمت دپاره، نه د نبی ﷺ دپاره، ځکه هغه دپاره مفضول شے افضل وی. ځکه هغه معلم او بیانونکے د امت دے. او د افضلیت خلاف ځکه دے چه د نبی ﷺ د ثوبان رضی الله عنه او ابو ذر رضی الله عنه نه دا لوظ اخستے وو چه دچا نه به هیڅ شے نه غواړی، دا د کامل متقیانو بندګانو عادت او خوئے نه دے. او که عذر او ضرورت وی نو دا تولو طریقے جائز دی. ۳ - دریم دا چه : بل څوک ستا په اندامونو لاس وهی او هغه درله وینځی. عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی : دا هیڅ اودس نه دے.

(فتاوى الدين الخالص : ١/ ٤٧٠) وشرح مسلم (١/ ١٣٤).

وجه داده چه قرآن کریم کښے أمر شویدے په غسل او وینځلو د مخ خپل سره (فاغسلوا وجوهكم) او که بل څوك ستا په اندامونو لاس وهی او وینځی ئے نو ددے امر تعمیل اونه شو.

۳ - جُبَّةٌ : جبه کوټ او چوغے ته وائی، ددے اچول اغوستل جائز دی، دارنګه د وړئ جامه اغوستل هم جواز لری. بیا سنت طریقه داده چه نستونړی دے تنګ وی.

٤ - کله چه رسول الله ﷺ د قضاء حاجت او اودس نه فارغ شو، راغلو نو عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه خلقو ته مونځ کولو، کله چه هغه د أدب په تقاضا روستو کیدو اراده اوکړه، دے دپاره چه رسول الله ﷺ امامت اوکړی نو نبی ﷺ هغه منع کړو او پخپله ئے آخری رکعت د هغه په اقتداء کښے اوکړو. دے نه معلومه شوه چه یو أفضل شخص په مانځه کښے د خپل ځان نه کم درجه شخص پسے اقتداء اوکړی نو دا جائز ده، دارنګه دا هم ثابت شوه چه د امام دپاره معصوم (بے ګناه) کیدل شرط نه دی، په دے سره په امامیه (شیعه) فرقے باندے رد اوشو چه دوئ وائی : د امام معصوم کیدل شرط دے. او په دے کښے فضیلت او منقبت د عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه هم معلوم شو چه نبی کریم ﷺ ده پسے اقتداء کړیده او ده مقتدی جوړ شویدے.

**ثُمَّ مَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ** : دے نه معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ نه په سر او پټکی باندے مسح کول ثابت دی او دا منسوخ نه دی.

**دَعْهُمَا فَإِنِّي أَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ** : ۱ - د امام مالك رحمه الله او شافعی رحمه الله، احمد او اسحق په

نیز (كما فی شرح مسلم١/١٣٤) مسح على الخفين دپاره د اغوستلو په وخت کښې طهارت کامله شرط دے، يعنې اول به پوره اودس اوکړی بیا به موزے اچوی۔

**۱ - د لیل** : یو دا حدیث دلیل دے چه نبی ﷺ په پاکئ سره اچولی دی۔

**۲ - دویم دلیل** : مسند حمیدی کښې د مغیره بن شعبةؓ په روایت کښې دی (أیمسح أحدنا على الخفين ؟ قال : نعم، اذا أدخلهما وهما طاهرتان) وكذا فی مسند أحمد۔

دا حدیث واضح دلیل دے چه طهارت کامله په وقت د اغوستلو د موزو او جورابو کښې شرط دے او ترتیب په اوداسه کښې ضروری دے۔

۳ - او په دے باندے بل دلیل دارقطنی (١/١٩٤) الحاكم (١/١٨١) ( چه فصل ثانی کښې راروان دے) کښې د ابو بکرهؓ روایت دے (أن النبی ﷺ رخص للمسافر وفيه : اذا تطهر ولبس خفيه أن يمسح عليهما) وسنده صحيح - نو دلته تطهر ( اودس) مخکښې ذکر شوے دے چه اول بـه طهارت حاصل کړی یعنی اودس به پوره کړی روستو به موزے او جوراپے واچوی او په دے کښې تاویل هم نشی کیدے۔ ځکه چه تطهر مطلق ذکر دے مراد ترے نه کامل طهارت دے۔

۲ - احناف وائی : ترتیب په اوداسه کښې واجب نه دے بلکه د اودس کولو نه مخکښې کـه خپے اووینځی او موزے واچوی نو مسح کول پرے جائز دی۔ نو د دوی په نیز دطهارت ناقصه نه پس هم مسح کول جائز دی آینده دپاره پرے مسح کولے شی۔

**دلیل** : د دوئ سره هیڅ دلیل نشته، سیوا د تاویلاتو نه، چه دلته صرف طهارت د خپو ذکر دے، نه پوره اودس، نو ترتیب واجب نه دے۔

لیکن **جواب** دادے چه د ترتیب وجوب د نورو دلائلو نه هم معلوم دے، او ددے دلیل نه هم په ډیر واضح انداز سره۔ هغه دا چه نبی ﷺ خو صرف داسے نه دی کړی چه اول ئے خپے وینځلی وی او بیائے روستو اودس پوره کړے وی، دا د کوم ځائے نه دوی ثابتوی ؟ بلکه نبی ﷺ همیشه دپاره په ترتیب سره اودس کړیدے، کما مرّ۔

فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا : **كيفية المسح على الخفين** :

د **مسح طریقه** داده چه دواړه لاسونـه بـه پـه یو ځل په دواړو موزو باندے راکاږی د

کوتو د طرفنه به شروع کوی او پنډو طرفته به ئې بوځي۔ تقدیم تاخیر به نه راولي، دا ډیر اعلیٰ سنت او بهتره طریقه ده۔ او دا ددې حدیث د مغیره بن شعبهؓ نه معلومه ده۔ چه دلته (فمسح علیهما) راغلې دې او (بدأ بالیمنی) ئې نه دي وئیلي۔ دا دلیل دې چه مسح په یو ځل په دواړو لاسونو سره په دواړو موزو باندې شویده، لکه څنګه چه غوږونه مسح کوي۔ او دا ظاهر د سنت دې۔

اګرچه په یو لاس باندې دواړه موزې مسح کول هم جائز دي۔ خو ظاهر د موزو به مسح کوی نه باطن او لاندې طرف۔ لکه علی رضی الله عنه نه امام أبوداودؒ نقل کوی ( لو کان الدین بالرأی لکان أسفل الخف اولیٰ بالمسح من أعلاه، لقد رأیت رسول الله ﷺ یمسح علی ظاهر خفیه)۔ وسیأتی فی الکتاب۔

او کوم روایت د ترمذی کښې چه داسې راځي : چه نبي ﷺ په باطن الخف او ظاهر الخف مسح اوکړه، نو هغه ضعیف السند او معلول اومنقطع حدیث دې، کما قال الترمذی۔ او أبوداود هم ورته ضعیف وئیلې دې۔ وکذا فی التلخیص (١/١٥٩)۔

بیا دا حدیث **دلیل** دې چه مسح علی الخفین په آیت المائده نه ده منسوخ شوې ځکه غزوه تبوك آخري غزوه ده او د آیه المائده نه روستو ده۔ مسلم (١/١٣٣) کښې راځي : اعمشؒ راوی فرمائی : قال ابراهیم : کان یعجبهم هذا الحدیث لان اسلام جریر کان بعد نزول المائدة۔ امام نوویؒ وائي : ددې عبارت مطلب دا دې چه سوره المائده کښې خو امر راغلې دې په وینځلو د خپو باندې په اوداسه کښې نو که اسلام د جریرؓ مقدم وې په نزول د مائده باندې نو بیا به دا احتمال وې چه دده روایت کړه حدیث به منسوخ وي په آیت د مائده باندې۔ لیکن هر کله چه د جریرؓ اسلام مؤخر وو نو مونږ ته معلومه شوه چه د جریر حدیث معمول به دې او دا بیان دې د آیت چه مراد په آیت کښې هغه سړې دې چه موزې ئې نه وي اغوستلي، نو سنت مخصص شو ددې آیت۔ انتهی۔

**فَلَمَّا أَحَسَّ بِالنَّبِيِّ ﷺ** : معنی داده : هر کله چه هغه معلومه کړه چه نبي ﷺ راغلو۔

**فائده** : مانځه کښې په یو کار او خبره باندې پوهیدل د خشوع سره منافي نه دی

بلکه دا دعميق او ژورو زړونو کمال دے چه په خبره هم پوهيږي او مانځه ته هم متوجه وي، په خلاف د صوفيه ؤ نه چه کله په مانځه اودريږي نو په هيڅ خبره نه پوهيږي۔

**ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ، فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ** : دا حديث دليل دے چه د بهرنه مونځ کونکی ته فتح ورکول جائز دی، بيا سوال دادے چه څه وجه ده چه ابو بکر صديق رضی الله عنه چه کله امامتی کوله نو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل : مه روستو کيږه هغه بيا هم روستو شو، او عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه روستو نشو، نو ددے وجه داده چه عبد الرحمن رضی الله عنه عمل کړيدے په دے خبره چه (الأمر فوق الأدب) او ابو بکر صديق رضی الله عنه عمل کړيدے په دے قانون چه (الأدب فوق الأمر) نو عبد الرحمن رضی الله عنه په أمر عمل اوکړو، او ابو بکر رضی الله عنه په أدب عمل کړيدے ځکه چه د ابو بکر رضی الله عنه شان لوئی دے د أدب لحاظ زيات ساتی۔

٢ – بله وجه داده چه ابو بکر صديق رضی الله عنه په ابتداء د مانځه کښے وو، نو روستو کيدلو ضرر نه رسولو، او عبد الرحمن رضی الله عنه يو رکعت کړيدے او نبی ﷺ مسبوق شويدے نو که عبد الرحمن رضی الله عنه روستو شوے وے نو په خلقو به خلل راغلے وے چه نبی ﷺ به يو رکعت خپل پوره کوی او صحابه رضی الله عنهم به ناست وی۔ او دا وجه ډيره مناسبه ښکاری۔

٦ – **فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ النَّبِيُّ ﷺ** : دے نه معلومه شوه چه د يو شخص نه د امام سره يو رکعت اوشی، نو د هغے د اداء کولو دپاره به په هغه وخت کښے پاڅيږی، کله چه امام سلام اوګرځوی۔ لکه چه دا د امام شافعی رحمه الله مذهب هم دے چه مخکښے پاڅيدلو سره مونځ باطليږی۔ په دے کښے سبقيت عن الامام راځی او دا جائز نه دے۔ د احنافو په نيز د سلام ګرځولو نه مخکښے پاڅيدل مکروه تحريمی دی، البته که په دے صورت کښے خوف وی چه که د امام د سلام انتظار اوکړی نو بيا په ده باندے نمر راخيژی نو مخکښ پاڅيدل جائز دی۔ ليکن دا مسئله د فقه حنفی پے دليله ده ځکه اګرچه نمر را اوخيژی، نو هم ددے شخص مونځ نه باطليږی لکه چه ددے تفصيل به په باب المواقيت کښے راشی ان شاء الله تعالی۔

٧ – دے حديث نه معلومه شوه چه که د جماعت دپاره په مستحب وخت کښے امام موجود نه وی او هغه ته په **انتظار** کولو کښے مستحب وخت فوت کيږی نو د امام د

اجازې نه بغیر جماعت اودرول جائز دی. دلته عبد الرحمن بن عوف د مستحب وخت په خاطر د نبی ﷺ د راتلو نه مخکښې جماعت اودرولې دې، دا هله چه د امام د راتګ پته نه وی چه کله راځی. اوکله چه یو امام په خاص ځائے کښې وی، نو بیا د هغه خبرول مستحب دی په وخت د مانځه کښې لکه بلال به نبی ﷺ پسې ورتلو پس د اذان کولو نه چه یا رسول الله ! د مونځ وخت پوره شویدې.

فَرَكَعْنَا الرَّكْعَةَ الَّتِي سَبَقَتْنَا : **فائده** : دلته دوئ ستره نه ده اودرولې ځکه چه دوئ مسبوق وو او: هر مونځ کونکی باندې ستره لازم ده خو آیا **مسبوق** به ئې اودروی اوکه نه ؟..... نو بعض معاصرین علماء وائی چه امام سلام اوګرځوی نو مسبوق به ځان ته ستره اودروی، یا به ځان سترې ته رسوی، یا د بل مونځ کونکی شا ته به اودریږی. دوئ په عموماتو باندې استدلال کوی.

حدیث کښې دی ( لا تصل الا الی سترة) نو ستره په هر مونځ کونکی ضروری ده، اګرکه مسبوق وی.

٢ - ائمه أربعه فرمائی : مسبوق له د سترې حکم نشته، بلکه دا به د امام تابع وی او په وسط الصلاة کښې ستره اودرول نشته، دا مکلف نه دې په دې تکلف باندې چه ځان به ستنې ته رسوی. یو دا حدیث دلیل دې چه نبی کریم ﷺ په صحراء کښې ولاړ دې په اول صف کښې دې اومخې ته ئې ستره نشته وهو الظاهر.

صرف ابن عمر فرمائی : اودا د امام مالك مذهب هم دې چه که د مسجد ستنه نزدې وه نو یو قدم دوه قدمه وړاندې کیدل پکار دی. کذا فی شرح الزرقانی علی مختصر الخلیل (٢٠٨/١) والدین الخالص (٥٥٨/٣).

**دویمه مسئله** : د امام سره چه کوم مونځ لاندې شو آیا دا اولنې مونځ دې اوکه آخرنې مونځ دې ؟ مقتدی له څنګه باقی مونځ پوره کول پکار دی ؟

١ - نو احنافو مذهب دادې چه دا **آخری** مونځ دې، نو چه امام سلام اوګرځوی نو دا مقتدی به سبحان هم وائی، نو که یو رکعت ترې شوې وو، نو اولنی دوه رکعته به ډك (قرأت سره) کوی او آخری به تش (بغیر قرأت نه) کوی.

٢ - او د جمهورو په نیز دا **اول** سر دمانځه دے اوکله چه تا دامام سره کوم رکعت لاندے کړونو هغه ستا اول د مانځه شو، نو چه امام سلام واړوی نو ته به سبحانك اللهم نه وائے بلکه الحمد نه به شروع اوکړے، او تش رکعت ستا دپاره ډك کړځی۔

او په دے اختلاف باندے دا خبره مرتب ده چه بعض اوقاتو کښے به قعده کوی اوکله به ئے نه کوئ۔ مثلا ما ښام مانځه کښے دے یو رکعت لاندے کړونو د احنافو په نیز په دے یو رکعت کښے به سبحان نه وائی، اوچه امام په آخیره قعده کیناستلو نو دا ستا اوله قعده شوه بیا به د دوه رکعاتو مینځ کښے نه کینے، بلکه په آخیره کښے به قعده اوکړے او سلام به اوګرځوے۔ نو یوه قعده دے خپله شوه او یوه د امام سره شوه۔

او دجمهورو په نیز د غه آخری قعدے نه پس به دوه رکعتو کښے کینے نو ستا به درے قعدے شی په ټول مانځه کښے۔

دا حدیث په ظاهر کښے د احنافو دلیل ښکاری، لیکن ددے نه د انه معلومیږی چه دوئ دا اول مونځ حساب کړیدے اوکه آخیر مونځ۔ بلکه صرف دا خبره ده چه مونږ نه کوم رکعت شوے وو هغه مونږ ادا کړو۔ دلائل به روستو راځی۔ په (ما ادرکتم فصلوا وما فاتکم فاتموا) حدیث په باب الاذان کښ ان شاء الله راروان دی۔ خو دلته صرف د مسئلے خاکه ذهن کښے واچوه۔

## الفصل الثانی - دویم فصل

---

٣ - عَنْ أَبِي بَكْرَةَ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ ( أَنَّهُ رَخَّصَ لِلْمُسَافِرِ ثَلٰثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهِنَّ وَلِلْمُقِيمِ يَوْمًا وَلَيْلَةً إِذَا تَطَهَّرَ فَلَبِسَ خُفَّيْهِ أَنْ يَمْسَحَ عَلَيْهِمَا ) رَوَاهُ الْأَثْرَمُ فِي سُنَنِهِ وَابْنُ خُزَيْمَةَ والدَّارِقُطْنِيُّ. وَقَالَ الْخَطَّابِيُّ : هُوَ صَحِيحُ الإِسْنَادِ هٰكَذَا فِي الْمُنْتَقٰی۔

**ترجمه** : ابو بکرهؓ نه روایت دے چه نبی ﷺ د مسافر دپاره درے ورځے او شپے اود مقیم دپاره یو ورځ او شپه په موزو باندے د مسح کولو اجازت ورکړیدے، کله چه دوئ

موزے د اودس کولو نه پس اچولے وی (اثرم، ابن خزیمه، دارقطنی) او خطابیؒ وائی : دا حدیث د اسناد له مخه صحیح دے او په منتقی کښے هم (چه د ابن تیمیهؒ کتاب دے) دغسے دی۔

**تشریح** : رَخَّصَ لِلْمُسَافِرِ : ۱ - **فائده** : رخصت عام دے کله به ضروری وی، اوکله به ضروری نه وی، په سفر کښے قصر کول په مانځه کښ ضروری دی او موزو باندے مسح کول ضروری نه دی۔

**مسئله** : په موزو باندے **مسح** کول أفضل دی اوکه خپے **وینځل** أفضل دی ؟

په دے کښے درے أقوال دی :

۱ - **اول قول** : دادے چه مسح أفضل ده ځکه نبی ﷺ اکثر اوقاتو کښے مسح کړیده، او داد الله تعالیٰ رخصت دے، قبلول ئے پکار دی، او روستو حدیث کښے امر راغلے دے۔ وهو مذهب الشعبیؒ والحکمؒ وحمادؒ۔

۲ **قول ثانی** : دادے چه وینځل افضل دی ځکه دا عزیمت دے، والعمل بالعزیمة اولی من الرخصة۔ دا قول د شوافعو دے، او دا حدیث ئے دلیل دے۔ وذهب الیه عمر بن الخطابؓ وابن عمرؓ وابو ایوب الانصاری رضی الله عنهم۔ نوویؒ (۱/۱۳۳)۔

۳ - **قول ثالث** : دادے چه موقع او محل ته کتل پکار دی۔ که په شیعه ګانو باطل پرستو دارنګه مسح نه منونکو باندے رد کول غرض وی یا تعلیم غرض وی نو مسح أفضل ده، اوکه داسے نه وی نو د خپو وینځل افضل دی۔

**اِذَا تَطَهَّرَ فَلَبِسَ خُفَّيْهِ أَنْ يَمْسَحَ عَلَيْهِمَا** : دا حدیث دلیل دے چه موزے به د پوره اودس کولو نه پس اچوی، او طهارت کامله مخکښے ضروری شرط دے۔ نبی ﷺ شرط کړیدے۔ اود احنافو مذهب ضعیف دے، چه اشتراط باندے قائل نه دی۔ عجیبه خبره داده چه کومے شے رسول الله ﷺ نه وی شرط کړے - لکه مذکوره اجتهادی شرطونه - نو هغه دوئ شرط کړی دی اوکوم شے چه رسول الله ﷺ خپله قولًا او عملًا شرط کړیدے نو هغه دوئ شرط نه ګنړی !۔

**هٰكَذَا فِی الْمُنْتَقٰی** : دا د نیل الاوطار د شوکانی د شرح متن دے چه د شیخ الاسلام

بن تیمیهؒ نیکه لیکلی دی د هغه نوم دی (مجد الدین ابو البرکات عبد السلام بن عبد الله بن أبی القاسم المعروف بابن تیمیة) اودا کتاب المنتقی د هغه په سند نه دی نقل بلکه د بخاری، مسلم، ترمذی وغیره محدثینو د کتابونو نه ئې نقل کړې دی لکه د مشکاة پشان.

**درجة الحدیث** : اخرجه ابن ماجة (۵۵۶) الی قوله وللمقیم یوما ولیلة والدارقطنی فی السنن (۱/۱۹٤) رقم (۱۱) والحدیث صحیح ان شاء الله لانه فی ابن خزیمة (۱/۹۵) قال ابوحاتم صحیح وهو فی موارد الظمآن (۱۸٤) ایضا وصححه الحافظ العسقلانی فی التلخیص (۱/۱۵۷).

**٤ – وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ ﷺ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَأْمُرُنَا إِذَا كُنَّا سَفْرًا أَنْ لَا نَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلٰثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيْهِنَّ إِلَّا مِنْ جَنَابَةٍ، وَلٰكِنْ مِنْ غَائِطٍ وَبَوْلٍ وَنَوْمٍ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.**

**ترجمه** : صفوان بن عسالؓ فرمائی : هرکله چه به مونږ په سفر کښې وو نو رسول الله ﷺ به مونږ ته حکم کولو چه درې ورځو او درې شپو پورې د تشو او ډکو متیازو او خوب په وجه موزې اونه باسو، البته د جنابت د غسل په وجه به ئې اوباسو. (ترمذی، نسائی).

**تشریح** : غلطه مسئله : په امیانو کښې مشهوره ده چه کله دې موزې واچولې نو د موزې د مسح موده به پوره کوې. دا غلطه ده ځکه د شریعت مقصد په مسح د موزو کښې أسانی ده او په دې مسئله کښې تکلیف دې.

**۲ – مسئله : د موزې په ویستلو اودس ماتیږی اوکه نه ؟**

۱ – اول قول دادې چه مسح به راګرځوی، یعنې خپې به وینځی. وهو قول الحنفیة.

۲ – ائمه وائی : که یوه موزه یا دواړه موزې ئې اوویستلې نو دوباره به اودس کوی او بیا به ابتداء د مسح کوی.

۳ – د حسن بصریؒ امام احمدؒ، طاؤسؒ، ابراهیم نخعیؒ او جمهورو علماؤ قول دادې

چه په ویستلو د موزو سره په انسان باندې اودس او خپې وینځل ضروري نه دي، او اودس مات نه دې۔ او دا مذهب د امام بخاريؒ او ابن تیمیهؒ او ابن حزم ظاهريؒ هم دې۔ (کما قال شیخ الاسلام ابن تیمیة فی الاختیارات العلمیة ص (١٥) او دا راجح قول دې۔

د مخکنو قولینو دپاره دلیل نشته، سیوا د دلیل عقلي او قیاس نه چه هر کله په موزه باندې مسح اوشوه ، او بیا موزه ویستلې شوه نو خپو ته بیرته نجاست حکمي را واپس شو چه د هغې حکم وینځل وو، لیکن موزه د وینځلو نه مانع وو اوس مانع لرې شو نو وینځل د خپو ضروري دي۔

د جمهورو **دلیل** حدیث د علی بن أبی طالبؓ دې۔ أخرجه الطحاوی (١/٧٠) والبیهقی (١/٢٨٧) باسناد صحیح ۔ چه ده بول اوکړل بیا ئې اودس اوکړو او په نعلینو ئې مسح اوکړه، بیا مسجد ته دا خل شو او هغه ئې ویستلې او مونځ ئې اوکړو، امامتي ئې اوکړه۔

نو علی بن أبی طالبؓ د صحابهؓ او تابعینوؒ په مخکښې نعلین ویستلي دي او بیائې امامتي اوکړه او هیڅ صحابي او تابعي پرې رد اونه کړو چه بیا اودس اوکړه۔

٢ – دویم دلیل : صحیح قیاس دې، چه یو شخص په سر مسح اوکړي بیا سر اوخروي، نو په ده باندې اودس راګرځول یا دوباره سر مسح کول نشته، عند الجمهور۔ نو دغه شان د موزې اوبګړئ ویستلو په وجه هم اودس نه ماتیږي۔ اونه لازمیږي۔

اوکوم حدیث کښې چه د اعاده د غسل القدمین راغلې ده کما فی البیهقی (١/٢٨٩) وابن أبی شیبه (١/١٨٧) نو هغه ضعیف روایت دې یزید بن عبد الرحمن الدالانی صدوق یخطئ کثیرا مدلس راوي دې۔ او عنعنه ئې کړیده، او دارنګه منقطع هم دې۔ نو قابل د استدلال نه دې۔ او دغه شان بل روایت ئې هم د مغیره بن شعبهؓ نه نقل کړیدې په هغې کښې ( مالم یخلع) لفظ دې۔ لیکن هغه هم ضعیف السند روایت دې، د عمر بن ردیح په وجه چه دا ضعیف راوي دې۔ او دا لفظ د (مالم یخلع) په کښې زیادت منکره دې۔ هیڅ شاهد نه لري، صرف دې ضعیف راوي ذکر کړیدې۔

٢ – اوکه دا صحیح هم شي نو په دې کښې تاویل هم ممکن دې، چه د (مالم یخلع)

معنىٰ داده چه مسح په موزو باندې تر نه ويستلو پورې جائز ده، خو چه كله موزې اوباسي اوپې اودسه شي نو بيا پرې مسح نه ده جائز ترڅو چه اودس اونه كړي.
ددې مسئلې تفصيل په (المحلى : ١/٣٣٨) او فتاوى الدين الخالص (٢/٣٦٠) كښې اوكورئ.

**بله مسئله** : دا موزې بيرته **اچولې شي** كه نه؟ په دې كښې دوه قوله دي :

١ - اول قول دادې چه نه به ئې اچوي ځكه په دې حديث الباب كښې دي (ان لا ننزع خفافنا) يعنې اگركه ستا اودس برحال دې ليكن چه موزې دې اوويستلې نو بيا به ئې نه اچوي.

٢ - دويم قول دادې چه ويستل ننويستل دواړه جائز دي، ځكه دده خپې پاكې دي اود (ان لا ننزع) معنىٰ داده چه مونږ له رسول الله ﷺ دومره مقدار اجازت او رخصت راكړيدې يعنې درې ورځې درې شپې د مسافر دپاره اويوه ورځ او يوه شپه د مقيم دپاره. او دامطلب نه دې چه دمودې ختميدلو نه مخكښې به موزې نه اوباسو، ځكه دا خو بيا حرج جوړيږي، اوموزې د آسانتيا دپاره وي، هركله چه ويستل جواز لري نو نه ويستل هم جواز لري.

په دې حديث كښې څلورم شرط د موزې ذكر دې چه په حدث اصغر كښې به په موزه مسح كولې شي او په حدث أكبر كښې مسح كول جائز نه دي.

**درجة الحديث** : رواه الترمذي والنسائي : ترمذي وائي : دا حديث حسن دې، امام بخاريؒ نه نقل كوي چه دا اصح حديث دې، وصححه ابن خزيمه والخطابي. واسناد ابن خزيمة حسن (١/٩٨) وقال الشيخ الالباني في صحيح سنن الترمذي رقم (٩٦١) سنده حسن وقال الشيخ رمضان اسناده صحيح اخرجه الشافعي في الام (١/٣٤-٣٥) واحمد في المسند (٤/٢٣٩-٢٤٠) والترمذي (٩٦) وقال حديث حسن صحيح.

---

٥ - وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﷺ قَالَ : وَضَّأْتُ النَّبِيَّ ﷺ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوكَ فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه. وَقَالَ

التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ مَعْلُوْلٌ. وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا وَأَبَا زُرْعَةَ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ فَقَالَا : لَيْسَ بِصَحِيْحٍ. وَكَذَا ضَعَّفَهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : مغيره بن شعبهؓ فرمائي : ما غزوه تبوك كښې نبي ﷺ ته اوبه اچولې او هغه اودس كولو، نو هغوئ د موزې بره او خكته طرف باندې مسح اوكړه - (ابوداود، ابن ماجه) امام ترمذيؒ فرمائي : دا حديث معلول دې، ما ددې حديث باره كښې ابو زرعهؒ او امام بخاريؒ نه تپوس اوكړو، نو دواړو اووئيل چه دا حديث صحيح نه دې. دغسې امام ابوداودؒ هم دې حديث ته ضعيف وئيلې دې)- او وجه ئې دا بيان كړيده چه پدې روايت كښې ثور راوي دا حديث د رجاء بن حيوه نه ندې اوريدلې نو روايت كښې انقطاع راغله- وضعفه احمد وقال نعيم بن حماد اضربوا على هذا الحديث انظر التلخيص الحبير (١٥٩/١) تفصيلا-

**تشريح** : فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهٗ : ١ - د جمهورو په نيز مسح په بره طرف د موزو باندې ده، او لاندې طرف باندې مسح نشته، ځكه حرج دې اومقصود په مسح كښې آساني ده- بلكه جمهور وائي : كه صرف په لاندې طرف باندې ئې په مسح كښې اكتفاء اوكړه نو دا ماسح (مسح كونكې) نه دې- او اعاده د مسح ضروري ده- لكه دا قول د امام مالكؒ او مشهور قول د امام شافعيؒ دې- او احناف وائي : د درې گوتو په مقدار باندې مسح ضروري ده په ظاهر د موزه باندې- امام احمدؒ فرمائي : اكثر الخف باندې مسح ضروري ده- امام زهريؒ اوشافعيؒ نه يو روايت دې چه صرف اكتفاء په لاندې طرف هم جائز ده- دا حديث هغه چا دپاره دليل دې چه لاندې باندې دواړو طرفونو باندې مسح كول جائز گنړي، لكه شوافع ليكن دا حديث ضعيف السند دې، لكه مخكښې تير شو، لكه صاحب المشكاة پرې هم جرح نقل كړيده- نو سنت داده چه بره طرف باندې مسح اوكړې شي او د باطن الخف په باره كښې مسح د نبي ﷺ نه په صحيح حديث كښې نه ده ثابت-نو لاندې طرف د موزه باندې مسح كول سنت نشو-

---

٦ - وَعَنْهُ رضي الله عنه أَنَّهٗ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ عَلٰى

ظَاهِرِهِمَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : مغيره بن شعبة ؓ فرمائی : ما نبی ﷺ اوليدلو چه د موزو په پورته طرف باندے ئے مسح کوله ـ (ترمذی، ابوداود)۔

**تشريح** : دا حديث صريح دليل دے چه رسول الله ﷺ نه مسح د موزو په ظاهر باندے ثابت ده۔ نو دا حديث دليل دے په ضعف د مخکنی روايت باندے چه په هغے کښے د موزو په لاندے باندے دواړه طرفونو باندے د مسح ذکر دے۔ او دامونږ په تنوع د عبادت باندے نشو حمل کولے ځکه چه مخکښے روايت ضعيف جدًا او معلول دے، او دا حديث صحيح دے۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذی وقال حديث حسن ورواه ابوداود وقال الحافظ فی التلخيص : إسناده صحيح وصححه الالبانی فی صحيح السنن رقم (١٦١)۔

---

٧ ـ وَعَنْهُ ؓ أَنَّهُ قَالَ : تَوَضَّأَ النَّبِيُّ ﷺ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : مغيره بن شعبة ؓ فرمائی : نبی ﷺ اودس اوکړو، او په جورابو او څپلو باندے ئے مسح اوکړه۔ (احمد، ابوداود، ترمذی، ابن ماجه)۔

**تشريح** : تَوَضَّأَ النَّبِيُّ ﷺ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ :

**فائده** : د نبی ﷺ د نعلينو (څپلو) دپاره دوه تسمے وے چه په يو کښے به ئے غټه ګوته ورکوله او په بل کښے به ئے باقی ګوتے راګيرے وے نو هغه د څپلو او چپړو پشان وے، او دپنړو معنی صحيح نه ده ځکه د نبی ﷺ هغه شان پنړے نه وے کومے چه مروجے دی، بلکه نعلين څپلو او چپړو ته وائی۔ او دلته اصل کښے مسح په جورين شويده د چپړو دپاسه، او په نعلين باندے جدا مسح نه ده کړے (کما قال الخطابی والطحاوی)۔

---

0000000

# رفع العینین الی مسئلة المسح علی الجوربین

په مسح د **جورابو** کښې اختلاف د علماؤ دے :

١ – امام ابو حنیفة ؒ نه دوه رائے نقل دی، اول دا چه : مسح په جورابو باندے نه ده جائز، مګر کله چه مجلدین یا منعلین وی۔ او دا قول د امام شافعیؒ هم دے۔ دوئ فرمائی جوربین به ثخینین وی چه په هغے کښې به مزل کول ممکن وی۔ یا څرمنے والا به وی۔ څرمن ئے خاص کړه ددوه وجونه (١) اوله وجه داده چه دا څرمنے والا وی نو اوبه نه جذب کوی، ولے که اوبه جذب کړی نو بیا جمع په ما بین د مسح او غسل کښې راځی او دا ناجائز ده۔ (لیکن مونږ وایو : په دے باندے څه دلیل دے چه جمع بین الغسل والمسح ناجائز ده، هیڅ دلیل نشته، دارنګه دا خو داسے پوره غسل نه دے چه ټوله خپه لمده شی بلکه لږې اوبه دے اورسیږی هیڅ باك نه لری، شریعت معاف کړیدے (٢) دویمه وجه داده : چه عام احادیث په مسح د خفین (موزو) کښې راغلی دی، او هغه د څرمنے نه جوړے وی، نو که جورابه د خفین مماثله شوه نو مسح به جائز وی لکه چه مجلدین شی نو د موزے سره مشابه شوه۔ اوکه چرے د خفین سره مماثل نشوه نو مسح بیا جائز نه ده، ځکه په دے باب کښې صحیح حدیث نه دے ثابت۔ او د خفین پشان ګڼړ احادیث هم په کښې نشته۔ لهذا ددے مسح به مشروط وی په شرط د تجلید یا تنعیل باندے۔

٢ – دویم روایت د امام أبو حنیفة ؒ نه اباحت مطلقا دے، چه په جورابو باندے مسح جائز ده اورجوع ئے کړیده قول د صاحبینو ته۔ او رجوع ئے دلالت کوی په عدم اشتراط التجلید والتنعیل باندے۔ لکه هدایه (٤٤/١) کښې دی (وعنه انه رجع الی قولهما وعلیه الفتوی)۔

سنن ترمذی نسخه د احمد شاکر کښې دی او نسخه د البانی کښې هم رانقل شویدی (٣١/١) سمعت ابا مقاتل السمرقندی یقول : دخلت علی ابی حنیفة فی مرضه الذی مات فیه فدعا بماء فتوضأ وعلیه جوربان فمسح علیهما ثم قال فعلت الیوم شیئا لم اکن افعله، مسحت علی الجوربین وهما غیر منعلین) (و فی البدائع والصنائع : ١ /٢) : فعلت ما کنت منعت عنه۔

ابو مقاتل السمرقندي وائي زه ابوحنيفةٌ ته ورغلم په هغه بيمارئ کښې چه پکښې وفات شو نو د مرګ نه درنے ورځے مخکښې ئے جوراپې طلب کړے او مسح ئے پرے اوکړه او وے وئيل : چه نن مې هغه څه باندے عمل اوکړو کوم نه چه مخکښې ما منع کوله۔

۲ - صاحبين وائي : مسح على الجوربين جائز ده خو په هغه جورابو باندے چه په غير د تړلو نه خپو نه راتاؤ وي، او ثخينين (مضبوطے) وي۔ او دا قول د امام مالكؒ او شافعيؒ او اسحقؒ او ابن المباركؒ هم دے لکه امام ترمذيؒ ذکر کړی دی۔

ليکن دا **قيد** هيڅ حديث کښې نه دے راغلے، دا قيد اجتهادی دے، او هيڅ دليل پرے نه د حديث نه شته او نه د کوم صحابي د أثر نه او نه د قياسِ صحيح نه۔ لکه په تجليد قيد باندے چه څه دليل نشته۔ او کيدے شي چه ددے علماء کرامو په دے قيد کښې مقصد دا وي چه دومره نرئ نه وي چه خپه په کښې ښکاری چه بيا مسح په خپو رانشي کوم چه د شيعه ګانو مذهب دے، نو د مخالفت د شيعه ګانو دپاره ئے دا قيد لګولے دے۔ ځکه شيعه ګان په خپو مسح کوي خپے نه وينځي۔

لکه ددے ترديد علامه محمود مطرحيؒ په تحقيق المجموع شرح المهذب (١/٥٦٤) کښې کړيدے چه دا بے دليله قيد دے۔

شيخ ابن الهمامؒ په فتح القدير شرح الهدايه (١/١٣٩) کښې د نعلين د قيد ترديد کوي وائي : فتخصيص الجواز بوجود النعل حينئذ قصر للدليل اعني الحديث والدلالة عن مقتضاه بغير سبب فلذا رجع الامام الى قولهما وعليه الفتوى۔ يعنی مسح د جورابو سره دا قيد لګول چه منعلين (يا مجلدين وغيره) به وي دا خو حديث د خپلے تقاضا نه بندول دي بغير د څه سبب نه۔ نو ځکه امام ابو حنيفه د صاحبينو قول ته رجوع اوکړه۔ او په همدے جواز باندے فتوی ده۔

۳ - **دريم قول** : د امام ابن حزمؒ او محدثينوؒ او امام احمدؒ (برواية ابن المنذر) او شيخ الاسلام ابن تيميةؒ دے : هغه دا چه په جورابو باندے مسح مطلقا جائز ده، بلکه هر هغه شے چه عرف او لغت کښې ورته جورب وائي په هغے باندے مسح کيدے شي۔

**تعريف الجورب** : جورب په لغت کښې څه ته وائي ؟ نو علامه عينيؒ او مجد الدين

فیروز آبادیؒ. علامه حلبیؒ، علامه ابو بکر ابن العربیؒ، شیخ الاسلام بن تیمیهؒ او امام ابن حزمؒ ظاهری په نیز د جورابو تعریف **عام** دے، برابره خبره ده که د ورئ نه جوړے وی، اوکه د وینبتو، یا د تارونو نه جوړے وی، خو چه د انسان خپه د یخنئ یا دګرمئ یا د ګرد او غبار نه ساتی دیته جورب وائی. او همدا مقصد په موجوده نیلون وغیره جورابو کښے هم شته نو په دے باندے مسح کول مطلقا جائز دی. او دا تعریف د صحابی أبو مسعود الأنصاری رضی الله عنه د عمل او د انس بن مالك د قول نه معلومیږی، لکه مصنف عبد الرزاق (١/٩٩) رقم (٧٧٤) او تحفة الأحوذی (١/٣٤٥) (وسنده صحيح) کښے دی چه ده به په هغه جورابو مسح کوله کوم چه د وینبتو او ورئ نه جوړے وے.

الأسماء والكنى (١/١٨١) للدولابیؒ کښې د انس بن مالك قول او عمل ذکر دے لکه لږ روستو راروان دے چه هغه د ورئ جورابو ته موزے وئیلی دی.

اوکوم علماؤ چه د **جورب** دا تعریف کړیدے چه جورب فقط د څرمنے نه جوړیږی، لکه طیبیؒ او شوکانیؒ او عبد الحق دهلویؒ چه کړیدے نو په دے باندے هیڅ دلیل نشته. بلکه عام اهل لغت خصوصا صحابی د افهم کړیدے چه جورب هغه شئ ته وائی چه د خپے نه راتاؤ وی، او د خپے حفاظت کوی، د یخنئ او ګرمئ یا غبار نه ئے ساتی.

٢ – دارنګه مقصد او علت د مسح د جورابو په شریعت کښے آسانی پیدا کول دی په امت باندے، اوکه مونږ دا قیدونه د ثخانت او تجلید او تنعیل اولګوو نو په دے کښے په امت باندے حرج جوړیږی، چه دا د مسح د مقصود نه خلاف دے. دا وجه ده چه علامه شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ په مجموع الفتاوی (٢١/٢١٣) کښے فرمائی: څرمن ضروری ګنړل دا **علت مؤثره** نه دے، او دا په حکم د مسح کښے څه تغیر نه پیدا کوی، ځکه چه فرق بین المجلد وغیر المجلد کښے دادے چه یو ډیر وخته پورے باقی وی او بل زر ختمیږی، او دا فرق په جواز او عدم جواز د مسح کښے مؤثر نه دے.

(كذا في التحفة : ١/١٠٤). بلکه کوم حکم چه دموزے دے هغه د جورب هم دے په باب د مسح کښے او دا قیدونه شریعت نه دی لګولی نو مونږ ولے په ځان باندے سختی راولو ؟

لیکن که موجوده نیلون وغیره جورابو ته اوکتلے شی نو د احنافو علماؤ په نیز پدے

باندے مسح جائز کیدل پکار دی ځکه چه د امام ابوحنیفه رجوع صاحبینو ته شوه او صاحبین د ثخانت قید لګوی او د ثخانت معنی شرح وقایه دا کړیده چه په غیر د تړلو نه په خپه پورے ټینګیږی او دا خبره بعینه پدے نن صبا مروجه جورابو کښے ګنے نشته څه ؟ لږ فکر اوکړه !۔

## دلائل د جواز المسح علی الجوربین :

په دے باره کښے ځلور احادیث راغلی دی :

۱ - **اول دلیل** : امام احمد په مسند (٢٧٧/٥) او ابوداود په سنن کښے او حاکم په مستدرك (١٦٩/١) کښے راوړیدے ۔ وقال : صحیح علی شرط مسلم ووافقه الذهبی د ثوبان رضی الله عنه روایت دے (قال بعث رسول الله ﷺ سریة فأصابهم البرد، فلما قدموا علی النبی ﷺ شکوا الیه ما أصابهم من البرد، فأمرهم النبی ﷺ أن یمسحوا علی العصائب والتساخین)۔

(نبی ﷺ یوه فوجی دسته اولیږله نو هغه چه واپس راغله نو نبی ﷺ ته ئے د یخنئ شکایت اوکړو، نبی ﷺ ورته حکم اوکړو چه په پټکو او جورابو باندے مسح کوئ)۔ په دے روایت باندے **اعتراض** دے : چه دا منقطع دے په مابین د راشد بن سعد او ثوبانؓ کښے لکه دا خبره امام احمد کړیده چه راشد د ثوبانؓ نه سماع نه ده کړے (کما فی جامع التحصیل : ١٧٤ للعلائی)۔

۱ - **جواب** : امام بخاریؒ په التاریخ الکبیر (٢٩٢/٣) کښے فرمائی : د راشد سماع د ثوبانؓ نه ثابت ده، نو امام بخاریؒ عارف دے په سماع باندے۔

٢ - **جواب** : امام مسلمؒ په مقدمه (٣٢) کښے فرمائی : چه په صحت د حدیث کښے په مابین د راوی او مروی عنه کښے صرف امکان د ملاقات شرط دے، یعنے معاصرت ضروری دے، او بالفعل د ملاقات او سماع قید لګول صحیح نه دی۔ اود دوئ دواړو معاصرت شته دے، امکان د لقاء شته دے۔ او راشد د معاویهؓ په جنګ صفین کښے شریك وو کوم چه په سنه (٣٢) هـ کښے وو۔ او د ثوبانؓ وفات په سنه (٥٤) هـ کښے شویدے۔ نو معلومه شوه چه حدیث مذکور متصل دے۔ او انقطاع په کښے نشته، او دا د امام مسلمؒ

په شرط هم صحيح دے۔ نو ټول رجال ثقات دی، سيوا د راشد نه چه دا ثقه كثير الارسال دے، عنعنه ئے کړيده ليکن مدلس نه دے، عنعنه ئے مقبوله ده۔

دا وجه ده چه د امام بخاریؒ په رجالو کښے دے، علی بن المدینیؒ فرمائی : دا ماته د مكحول نه ډير غوره دے، امام احمد بن حنبلؒ فرمائی : لا بأس به۔ امام يحيى بن معينؒ فرمائی : ثقه دے، امام يحيى بن سعيد القطانؒ فرمائی : ثقه دے۔ امام ابن أبی حاتمؒ او امام ابن سعدؒ ورته ثقه وئيلی دی۔ نو روايت صحيح او سالم دے، اوکوم علماؤ چه ورته ضعيف وئيلے دے نو هغه د ارسال په وجه ليکن اکثر علماؤ دده حديث ته حسن او صحيح وئيلے دے۔

**٢ - دويم اعتراض** : تساخين صرف موزو ته وائی، نه جورابو ته۔ كما فی النهاية ولسان العرب۔

**جواب** : عون المعبود (٥٦/١) او بلوغ الأمانی شرح مسند احمد الشيبانی (٣٨/٢) کښے ابن رسلانؒ فرمائی : اصل ذلك كل ما يسخن به القدم من خف او جورب ونحوهما۔

(نو تساخين موزو او جورابو دواړه ته وائی، يو پورے خاص کول د لغت خلاف دی، هرکله چه تساخين عام شو، جورابو ته هم شامل شو نو مسح پرے سنت شوه۔

**٢ - دويم دليل** : ابوداود (٢١/١) ترمذی (١٢/١) ابن ماجه (٤٢/١) السنن الكبرى (٢٨٣/١) امام ترمذی فرمائی : دا حديث حسن صحيح دے۔

عن هزيل بن شرحبيل عن المغيرة بن شعبة قال : ان رسول الله ﷺ توضأ ومسح على الجوربين والنعلين ۔

په دے حديث کښے هم مسح د جوربين شويده۔ ددے روايت ټول رجال ثقات دی، كما فی فتاوى الدين الخالص (٣٣٨/٢) په تهذيب السنن (١٢٤/١) کښے علامه عبد الله بن عبد القادر التليدیؒ فرمائی : سنده صحيح ورجاله ثقات، وقد صححه ابن حزم وابن دقيق العيد وجماعة من الغابرين واللاحقين . وقد اعل الحديثَ جماعة من الحفاظ بما لا يقدح الخ فانه حديث مستقل لاينافی حديث المسح على الخفين ولا يخالفه كما قد توهمه من ضعفه۔

٢ - شيخ البانیؒ فرمائی : دا صحيح حديث دے، هيڅ عيب په کښے نشته آهـ ۔

صحيح سنن الترمذي (٩٩).

دا حديث **صحيح** دے، خو بعض علماؤ پرے اعتراض کړيدے ـ لکه امام أبوداودؒ فرمائي : دا روايت شاذ دے، عبد الرحمن بن مهديؒ به دا حديث نه بيانولو ـ وجه داده چه د مغيره بن شعبهؓ نه په موزو باندے مسح نقل کيږي. او صرف هزيل بن شرحبيل په جورېنو باندے مسح نقل کوی ـ نو دا روايت شاذ دے ـ د نورو رواياتو خلاف دے.

**جواب** : دا هيڅ عيب نه دے، لکه علامه أحمد شاکرؒ په شرح د ترمذی کښے فرمائي : چه د مغيره بن شعبهؓ ډير شاګردان دی، نو بعضے شاګردان مسح على الخفين نقل کوی ـ او هغه جدا حديث دے ـ او بعضے شاګردان – لکه هزيل بن شرحبيل – مسح على الجوربين ذکر کوی ـ اودا جدا حديث دے ـ يو د بل منافي نه دے ـ او په يو روايت کښے مخالفت نشته ـ بلکه روايتونه جدا جدا دی ـ لکه بعضے راويان د مغيرهؓ نه په عِمامه باندے مسح ذکر کوی، بعضے مسح على الخفين ذکر کوی ـ نو هغے کښے هم عيب نشته ـ او شذوذ خو هله راځي چه کله يو راوی نفي کولے او بل اثبات ـ نو يو به د بل مخالف وی ـ او دلته داسے نه ده بلکه دا دوه حديثونه دی.

کذا فی المرقات شرح المشکاة (٢/٢٢٣) طبع بيروت ـ

شيخ البانیؒ فرمائي : دا علت قادحه نه دے څکه چه دا زيادت د ثقه دے، او زيادت د ثقه مقبول دے ـ او دا جدا واقعه ده، لکه دا خبره ابن دقيق العيدؒ هم کړيده .

قال الشيخ (ابن دقيق) ومن يصححه يعتمد بعد تعديل ابی قيس علی کونه ليس مخالفا لرواية الجمهور مخالفة معارضة بل هو امر زائد علی ما رووه ولا يعارضه ولاسيما وهو طريق مستقل لم يشارك المشهورات فی سندها. انتهیٰ کذا فی نصب الراية (١/١٨٥) و ارواء الغليل (١/١٣٧) ـ نو په عام اوقاتو کښے ئے مسح على الخفين کړيده، او په دے مقام کښے ئے مسح على الجوربين کړيده ـ اومنافات اومخالفت به هله وی چه مسح على الخفين حديث کښے داسے الفاظ وی چه (مَسَح علی الخفين دون الجوربين) او دلته خو داسے نشته ـ بلکه ديته تنوع فی العبادات وائی لکه رفع اليدين تر اوګو او غوږونو پورے، او طريقه د آذان او تشهد اود صلاة الکسوف او تشهد مختلف طريقے او الفاظ ـ نو تعارض

نشته بلکه دا انواع العبادات دی۔ راجع لتصحیح الحدیث الی المحلی (١/٣٢٢) وصحیح ابن حبان بتحقیق شعیب الارنووط رقم (١٣٣٨) والسنن الکبری مع الجوهر النقی (١/٢٨٥) و توضیح الاحکام (١/٢٥٢)۔

**۳ - دریم دلیل** : حدیث د أبو موسی الأشعریؓ دے :

عن الضحاك بن عبد الرحمن بن شوزب عن أبی موسی الأشعری رضی اللّٰه عنه ان رسول اللّٰه ﷺ توضأ ومسح علی الجوربین والنعلین. أخرجه ابن ماجة (١/٥٦٠) رقم (٥٦٠)۔

ددے حدیث رجال الاسناد ټول ثقات دی، سیوا د عیسی بن سنان الحنفی الفلسطینی نه چه ده ته امام احمدؒ او ابن معینؒ ضعیف وئیلے دے۔ لیکن ابن حجرؒ په التقریب کښے فرمائی : دا راوی لین الحدیث دے۔ او ابن حبان ورته ثقه وئیلی دی، نو ددے راوی ضعف محتمل دے (کما فی فتاوی الدین الخالص : ٣٢٩/٢) لیکن علامه احمد شاکر په مقدمه د المسح علی الجوربین ص (١٢) کښے فرمائی : دا قسم ضعف احتمالی دے او دداسے راوی حدیث حسن ته ډیر نزدے وی په نسبت سره ضعف ته۔ خصوصا دا چه امام بخاریؒ ددے حدیث نه سکوت کړیدے۔ نو که د امام بخاریؒ په نیز دا ضعیف وے نو ضرور به ئے بیان کړے وے، لکه داد هغه عادت دے۔ اوسکوت د هغه دلیل د قوت او صحت ددے دے۔

علامه خزرجیؒ فرمائی چه عیسی راوی ابن معینؒ ثقه ګڼړلے دے په روایت د یعقوب ابن أبی شیبه کښے (خلاصة تذهیب تهذیب الکمال ص : ٣٠٢۔ رقم (٥٥٦٦)۔

**خلاصه** : داچه دا حدیث صحیح دے لکه شیخ البانیؒ په صحیح ابن ماجه (٩١/١) رقم (٤٥٤) او صحیح سنن أبی داود رقم (١٤٨) کښے هم ورته صحیح وئیلے دے۔

اګرچه احتمال د ضعف په کښے شته، خو هغه قوی احتمال نه دے، اوسکوت د امام بخاریؒ دلیل د صحت ددے حدیث دے۔ او ددے حدیث نور شواهد هم شته نو دا حدیث حسن او یا صحیح درجه کښے دے۔ او په جورابو باندے مسح په کښے ذکر ده په غیر د څه قید او شرط نه۔

**اعتراض** : بعضے علماء وائی : ضحاك راوی د أبو موسی أشعری سره ملاقات نه دے شوے، نو دا روایت منقطع دے؟۔

**جواب** : امام بخاریؒ په التاریخ الکبیر (٣٣٤/٢) کښې فرمائی : سمع أبا موسى.
یعني ضحاك د ابو موسیٰؓ نه سماع ثابت ده. بیائے دا روایت ذکر کړیدے او هیڅ علت ئے
په کښې نه دے بیان کړے، اوسکوت ئے کړیدے نو دا دلیل دے چه دا حدیث دده په نیز هم
مقبول او صحیح دے. دارنګه حافظ جمال الدین المزیؒ په نیز هم د ضحاك سماع د
ابو موسی نه ثابته ده.

(روی عن ابی موسی الاشعری) تهذیب الکمال (٤٧٥/٣ – رقم ٢٩٠٧).

**٤ – څلورم دلیل** : امام دولابیؒ په الأسماء والکنی (١٨١/١) کښې فرمائی :

حدثنا الأزرق بن قیس قال : رأیت أنس بن مالكؓ أحدث فغسل وجهه ویدیه ومسح علی
جوربین من صوف، فقلت : أتمسح علیهما ؟ فقال : انهما خفان، ولکنهما من صوف) أی
حکمهما کحکمهما.

(أزرق بن قیسؒ فرمائی : ما أنس بن مالكؓ اولیدلو چه اودس ئے مات کړو، بیائے مخ او
دواړه لاسونه اووینځل او په جورابو باندے ئے مسح اوکړه چه د پشم (وړئ) نه جوړے شوے
وے، ما ورته اووئیل : ته په دے مسح کوے ؟ (دا جائز ده څه ؟) أنس بن مالكؓ جواب راکړو
: چه دا موزے دی اګرچه د وړئ نه جوړے شوی دی (یعنے جورابے دی چه د موزو حکم
لری).

**درجة الحدیث** : دا حدیث هم صحیح دے. ټول رجال ئے ثقات دی. کذا فی فتاوی
الدین الخالص (٣٤٠/٢). او په دے روایت کښې انس بن مالك د وړئ جورابو ته موزے
وئیلی دی او هغه عربِ قُح اهل لسان دے. د نورو لغویینو نه ئے خبره بهتره ده.

مګر په دے روایت باندے چا دا اعتراض کړیدے چه ابو زیاد سهل بن زیاد راوی ته
علامه ازدی په لسان المیزان کښې منکر الحدیث وئیلے دے. وکذا فی المیزان (١١٨/٣).

**جواب** : علامه ازدیؒ چه کله یوائے جرح اوکړی نو دده جرح نامنظور ده، ځکه دا
متشدد دے په جرح کښې. دارنګه سبب د جرح ئے هم نه دے ذکر کړے. علامه عبد الحی
لکنویؒ په الأجوبة الفاضلة للأسئلة العشرة الکاملة ص (١٧٨) کښې، او جمال الدین
القاسمیؒ په المسح علی الجوربین ص (١٣) کښې فرمائی : ازدی متشدد دے په جرح

كښې، چه كله يوائځې دې په يو راوي جرح اوكړي نو نامقبول ده. ځكه دا داسې خلقو باندې جرح كړې چه د باقي علماؤ په نيز ثقه وي.

لكه ددې روايت په باره كښې حافظ ذهبيؒ فرمائي : (ما ضعفوه) يعنې أبو زياد سهل بن زياد عن ايوب راوي هيچا نه دې ضعيف كړې (كذا في ميزان الاعتدال : ٢/١١٨).

طريقة **الاستدلال** : انس بن مالكؓ په جورابو مسح اوكړه او وې فرمائيل : چه د اموزې دي خو د وړئ نه جوړې دي. دا صريح دليل دې په دې خبره چه د نبي ﷺ په زمانه كښې موزې هر قسم جورابو ته هم شاملې وې. او د څرمنې والا موزو ته هم شاملې وې. يعنې موزې عامې دي، كه د څرمنې نه وي اوكه د وړئ نه، اوكه د كپړې يا نيلون نه وي. او أنسؓ صحابي دې، اهل لغت دې، د جوهريؒ اوخليلؒ او ازهريؒ نه مقدم دې په لغت كښې. نو د انسؓ دا قول رد دې په هغه چا باندې چه وائي : موزې صرف د څرمنې نه جوړيږي. دا خبره صحيح نه ده، بلكه موزې د وړئ اوكپړې نه هم جوړيږي. او دغه شان حديث د ابو مسعود الأنصاريؓ نه هم تير شويدې. چه هغه د ويښتانو نه جوړې شوې وې او په هغې باندې ئې مسح اوكړه، نو ګوياكه پنځه روايات شو.

او په هر قسم **جورابو** باندې **مسح** كولو باره كښې د شپاړس (١٦) صحابه كرامؓ عمل موجود دې، لكه أبوداود په سنن (١/٢١) كښې فرمائي :

چه په جورابو باندې مسح : ١-علي بن أبي طالب، ٢- ابو مسعود ٣- برا بن عازب ٤- انس بن مالك ٥- ابو امامه، ٦- سهل بن سعد ٧- عمرو بن حارث، ٨- عمر بن الخطاب ٩- او ابن عباس - رضي الله تعالى عنهم نه نقل ده.

ابن سيد الناسؒ په شرح د ترمذي كښې فرمائي : ١٠- عبد الله بن عمر بن الخطاب، ١١- سعد بن أبي وقاصؓ. او په شرح الاقناع كښې فرمائي : ١٢- ابن ياسرؓ ١٣- او بلالؓ ١٤- او ابن أبي اوفيؓ. او قاسميؒ فرمائي : ١٥- مغيره بن شعبةؓ ١٦- او ابو موسى اشعريؓ هم دي. چه دا ټول شپاړس صحابه كرامؓ شو. چه ددوئ احاديث په ابن أبي شيبه (١/٢١٧) تهذيب السنن لابن القيم (١/١٨٧) ابن حزمؒ په محلى (١/٣٢٣) النووي په شرح المهذب (١/٥٦٤) السنن الكبرى (١/٢٨٥) تنقيح التحقيق (١/١٩٧) لابن عبد

الهادي، التحفة (١/١٠٠) او فتاوى الدين الخالص (٢/٣٤٣) زاد المعاد (١/٢٢٧) کښې راوړی دی ـ ـ ـ او ددې مسئلې ښه تفصيل زمونږ ورور ابو يزيد عبد القاهر صاحب په التحقيقات في رد الهفوات ص (٧٣٨) کښې کړيدې۔

دا ګويا اجماع د صحابه کرامو شوه په دې چه مسح په جورابو باندې جائز او سنت ده۔ نو مقلدين بيا هم د صحابو خبره ارتوی او د خپل امامانو بلکه د متأخرينو خبره اخلی۔ او بيا دعوىٰ کوی چه مونږ د صحابو تعظيم کوو، د هغې په مقابله کښې د امام خبره نه اخلو، سره ددې نه چه د امام ابو حنيفة نه رجوع هم ثابت ده۔

**تنبيه** : شاه انور شاه کشميری صاحب په العرف الشذی (١/٣٠) کښې وئيلی دی چه د امام ابو حنيفة رجوع مجلدينو او منعلينو نه ثخينينو ته شويده، نه مطلقا جورابينو ته۔

**جواب** : دا خبره غلطه او بې دليله ده ځکه په سنن ترمذی کښې دا لفظ دې (وعليه جوربان) کما تقدم نو قيد د ثخانت په کښې نشته۔

نور اقوال د علماؤ په (التحقيقات) کښې اوګوره۔

نو ثابته شوه چه په مطلق جورابو باندې په غير د څه قيد او شرط نه مسح جائز څه چه سنت طريقه ده۔ د وجې ددې پنځه احاديثو او عمل د شپاړس صحابه کرامو نه۔ چه دا په منزله د اجماع د امت ده۔ او مخالف ددې نه دې موجود۔ نو د مقلدينو بهانه ددې نه پس پاتې نشوه۔ اوکوم قيدونه چه بعضې علماؤ لګولی دی هغه بې دليله دی، بلکه په هغې کښې سختی ده په امت باندې په غير د څه باعث نه، فتدبر !

**فائده** : امام نخعی فرمائی : فمن ترك ذلك رغبة عنه فانما هو من الشيطان. ابن ابی شيبة (١/١٨٠) بسند صحيح۔ يعنې څوك چه په جورابو باندې مسح کول ددې د ناخوښئ په وجه پريدی نو يقينا دا د شيطان ملګرې دې۔

**فائده** : په اقوالو د علماؤ کښې دجورابو سره مختلف قيدونه راغلی دی۔ (١) يو **مجلدين** (٢) **منعلين** (٣) **ثخينين** (٤) **جرموقين**۔ مجلدين هغه جورابو ته وائی چه لاندې باندې دواړه طرفونو ته ئې څمره (څرمن) لګيدلی وی۔ او منعلين : هغه جورابو

تـه وائـي چـه صرف لانـدې طرفته ئې څمرہ لګیدلي وي۔ او ثخینین : هغه جورابو ته وائي چـه مـضبـوطې او پیړې وي چه په غیر د تړلو نه په خپه پورې ایساریږي او مزل په کښې مـمـکـن وي۔ او جرموق : هغه حفاظتي څرمنې ته وائي چه د موزو دپاسه اغوستل کیږي دپاره د حفاظت د اصل موزې او دیته موق هم وائي۔

دا ټول **قیدونه** په جورابو کښې لګول اجتهادي دي، احادیثو کښې نه دي ثابت۔ او د مسح الجوربین د فلسفې خلاف دي، چه هغه آساني ده په امت باندې۔

**تنبیه** : بعض مقلدینو په دې حدیث الباب کښې دا تاویل کړیدې چه دلته رسول الله ﷺ مسح کـړیـده پـه جـوربـیـن مـنـعلین باندې۔ ځکه دواړه ذکر دي۔ لیکن دا خبره ډیره خطاء ده، ځکه په ټولو احادیثو کښې جوربین جدا ذکر کیږي او نعلین جدا ذکر کیږي۔ واؤ عـاطـفه په مینځ کښې ذکر دې۔ په دې مقام کښې تقاضا د مغایرت کوي، نو جوربین باندې جدا مسح ده، اونعالو باندې جدا مسح شویده۔ لکه روستو به راشي۔

اوکـه او منو چه رسول الله ﷺ مسح په جوربین مُنعلین باندې کړیده نو په جوربین بـانـدې مسح د تطهر دپاره ده او نعلین ورسره زیاتي وو، لکه دا خبره علامه ابن القیمؒ، امام طحاويؒ، امام خطابيؒ او علامه طیبيؒ ذکر کړیده (کذا في المرعاة : ۲/۲۱۹)۔

نو بیا هم مسح علی الجوربین ثابت شوه۔

## ﴿ المسألة الأخرى ﴾

### په څپلو چپړو (نعالو) **مسح** کول څه حکم لري ؟

۱ – د بـعـضـو علماؤ په نیز په نعلین باندې مسح کول جائز دي، لکه شیخ البانيؒ او په دې بـاره کښې احـادیث پیش کـوي، بـعـضې د هـغې نه مخکښې تیر شو، پنځه احادیث په فتـاوی الـدیـن الـخـالـص (۲/۳٦۲) او اووه په التحقیقات ص (۷۵۰) کښې ذکر شوي دي۔ نقلا عن احکام المسح علی الجوربین للعلامة القاسميؒ، والجو هر النقي (۱/۲۸۸)۔

چـه دغـه احـادیث بـعـضې صحیح، بعضې حسن درجه کښې دي۔ شیخ البانيؒ په تمام الـنـصـح ص (۸۲) کښې صـحـیـح کـړي دي۔ او فـرمـائي : چه په موزو کښې محل د فرض پټولو شرط خطاء دې، بلکه دا رخصت دې نو په نعالو مسح جائز ده۔

٢ - جمهور علماء وائی : په څپلو چپړو باندے مسح کول صحیح نه دی، دا د موزو په حکم کښے نه دی، او ددے په ویستلو کښے هغه حرج او تکلیف نشته کوم چه د موزواو جورابو په هر وخت ویستلو کښے دے، لهذا مسح نه ده پکار ـ او دهغه احادیثو نه څو جوابونه کوی :

١ - **اول جواب** : دادے چه هغه روایاتو کښے څه نا څه کلام ضرور شته۔

٢ - **دویم جواب** : دغه احادیث محمول دی په نفلی اوداسه باندے، نه په فرضی اوداسه باندے۔ لکه دا خبره امام ابن خزیمهؒ (٩٥/١) او علامه قاسمیؒ په احکام المسح علی الجوربین کښے او امام بزارؒ او امام ابن حبانؒ په خپل صحیح (٢/٣٢٤) کښے کړیده۔

٣ - **جواب** : امام بیهقیؒ فرمائی : په نعلین کښے رسول الله ﷺ خپے وینځلی دی او دارنګه ورسره مسحه ئے هم کړیده تتمیمًا یعنی چپړے به ئے په خپو وے او اوبه به ئے پرے واچولے بغیر د ویستلو د هغے نه او لاس به ئے پرے هم راخکلو نو دا غسل الرجلین فی النعلین دے او یوائے مسح علی النعلین ندے فرمائی ددے مثال دا سے دے لکه نبی علیه السلام په ناصیه باندے مسح کړیده او ورسره په عمامه باندے هم ـ السنن الکبری (٢٨٦/١) ـ

٤- **جواب** : امام زیلعی په نصب الرایه (١٨٨/١) کښے فرمائی : امام طحاویؒ په معانی الآثار (٧٠/١) کښے فرمائی : مسح په نعلین شویده خو په جورابو دپاسه، یعنی اصالةً مسح په جورابو شویده او تبعًا مسح په نعلین شویده۔ او مستقلا مسح نه ده شوے۔ لکه دا خبره علامه ابن القیمؒ او علامه خطابیؒ او امام قرطبیؒ کړیده۔

دا وجه ده صالح العثیمینؒ په فتاوی (١٦٨/٤) کښے فرمائی : مسح په نعل نه ده جائز بلکه د نعل ویستل په وخت د اوداسه کښے ضروری دی۔ او قدم وینځل واجب دی۔ امام بخاری هم باب تړی (٢٨/١) باب غسل الرجلین فی النعلین ولایمسح علی النعلین۔ اشاره کوی چه د مسح علی النعلین معنی دا ده چه خپے په نعلین کښے اووینځلے شی ـ

٢- یا اشاره کوی چه پدے باره کښے احادیث ضعیف دی د هغه په نیز۔

**فیصله** : نو احتیاط په دے کښے دے چه په چپړو او څپلو باندے مسح اونه کړے شی،

مګر کله چه د خفين يا جوربين پشان شی چه قدم پټوی او ويستلو کښې ئې حرج وی.

اوډا موجوده چپړې او څپلۍ داسې نه دی، نو مسح نه ده پکار. اوکه چا اوکړه نو هغه ته بد کتل هم نه دی پکار، د وجې ددغه احاديثو نه. او شيخ الباني مجتهد دې نو په خپل اجتهاد ئې عمل کړيدې خو زمونږ په نيز مسح په څپلو چپړو غوره نده. ورنه که چا د دغه احاديثو د ظاهر د وجې نه مسحه اوکړه نو بالکل جواز لری.

---

## الفصل الثالث - دريم فصل

٨ - عَنِ الْمُغِيْرَةِ ﷺ قَالَ : مَسَحَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلَى الْخُفَّيْنِ فَقُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! نَسِيْتَ ؟ قَالَ : بَلْ أَنْتَ نَسِيْتَ. بِهٰذَا أَمَرَنِيْ رَبِّيْ عَزَّ وَجَلَّ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه** : مغيره بن شعبهؓ فرمائي : رسول الله ﷺ په موزو باندې مسح اوکړه، نو ما ورته اووئيل : يا رسول الله ! تاسو نه (خپې وينځل) هير شو ؟ هغوئ اوفرمائيل : بلکه تاته هيره شويده (چه ما طرفته د هيرې نسبت کوې)، څکه په دې باندې ماته خپل رب عز وجل حکم کړيدې. (احمد، ابوداود).

**تشريح** : بَلْ أَنْتَ نَسِيْتَ : يعنې تاته هير شو، دائې په طريقه د مشاکلت سره اووئيل يعنی معنی ئې ده (أخطأتَ) ته خطاء شوې چه ماته دې د نسيان نسبت اوکړو، حال دا چه زه پيغمبر يم، هر عمل زما د الله تعالى د حکم مطابق دې. نو په موزو باندې مسح کول هم د الله تعالىٰ حکم او اجازت دې چه ماته ئې په وحی غير متلو کښې فرمائيلې دې.

مغيره بن شعبهؓ ته د نبی ﷺ په موزو باندې مسح ناشنا ښکاره شوه، څکه ئې نبی ﷺ ته اوفرمائيل : چه يا رسول الله ! خپې وينځل درنه هير شو. يادلته همزه د استفهام حذف ده. نو تپوس کوی چه يا رسول الله ! آيا دخپې وينځل درنه هير شو اوکه نه دا د الله حکم دې ؟ نو نبی ﷺ ارشاد اوفرمايه چه مانه نه دی هير، بلکه ته په دې تپوس کښې خطاء شوې، دا کار زما د ربّ د حکم موافق دې.

بيا دا حديث هم دليل دې چه مسح على الخفين په کتاب الله سره ﷺ ثابت ده، څکه

چه په قرائت د جر د ﴿ وارجلِکم ﴾ کښې حکم دے په مسح باندے په حالت د تخفف (یعنے موزو اچولو) کښې۔

او دا امر په امرني ربی کښې د ندب او اباحت دپاره دے، فرض او لازم نه ده۔

**درجة الحدیث** : واسناده ضعیف فیه بکیر بن عامر البجلی وهو ضعیف کما فی التقریب ضعفه یحیی بن معین والنسائی وابوزرعة ووثقه ابن سعد والحاکم والعجلی وذکره ابن حبان فی الثقات وقال ابوداود لیس بالمتروك۔ مرعات (۲/۲۲۰) وضعفه الالبانی فی ضعیف ابی داود رقم (۲۷) وقال فی تعلیق المشکاة (۱/۱۶۳) وقد وقع للشوکانی فی هذا الحدیث وهم فاحش حیث صحح اسناده وهو یعنی اسنادا آخر صحیحا لغیر هذا الحدیث کما بینته فی ضعیف السنن رقم (۲۰)۔

---

۹ – وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : لَوْ كَانَ الدِّيْنُ بِالرَّأْيِ لَكَانَ أَسْفَلُ الْخُفِّ أَوْلٰى بِالْمَسْحِ مِنْ أَعْلَاهُ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَمْسَحُ عَلٰى ظَاهِرِ خُفَّيْهِ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ ، وَلِلدَّارِمِيِّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه** : علی رضی الله عنه فرمائی : که چرے دین صرف په عقل او رائے پورے موقوف وے نو د موزے لاندے طرف باندے مسح کول به ددے په بره طرف باندے د مسح کولو نه بهتر وو۔ اوما رسول الله ﷺ لیدلے دے چه د خپلو موزو په بره طرف باندے ئے مسح کوله۔ (ابوداود) او دارمی ددے پشان مضمون نقل کړیدے۔

**تشریح** : لَوْ كَانَ الدِّيْنُ بِالرَّأْيِ الخ : د علی رضی الله عنه د خبرے مقصد دادے چه که دین په رائے او عقل او قیاس باندے بناء وے، او روایت او نقل له په کښې اعتبار نه وے، نو پکار ده چه د موزو لاندے طرف مسح شوے وے۔ وجه داده چه ناپاکی اوګندګی د موزے په لاندے طرف باندے لګی، په دے وجه د عقل تقاضا ده چه کوم ځائے باندے د ګندګئ لګیدو شبهه وی د هغه ځائے د پاکوالی دپاره دے مسح اوکړے شی۔ لیکن ما رسول الله ﷺ لیدلے دے چه د موزو په بره طرف باندے به ئے مسح کوله۔ نو عقل چلولو دپاره هیڅ دخل پاتے نشو۔

نو دا حديث دليل دے په دے چه : ١ – مسح په ظاهر طرف د موزو باندے مشروع ده ۔
٢ – دے نه معلومه شوه چه د شريعت مسائل او احكامو كښے عقل لره دخل وركول نه دي پكار ځكه كامل عقل هغه دے كوم چه د شريعت تابع وی، ځكه د الله تعالى حكمتونه او دهغه اسرار معلومولو كښے عقل مطلقا عاجز دے۔ نو عاقل لره دا پكار دی چه هغه بغير د خپل عقل استعمالولو او حكمتونو معلومولو نه د شريعت د احكامو پابند اوتابع شی۔ او د شريعت احكام د عقل مخالف هم نه دی۔ بلكه د كامل عقلونو سره بالكل برابر دی۔ او دلته په دے مسئله كښے هم دا حكم مطابق د عقل دے ځكه چه دلته كه مسح كښے غرض نجاست زائل كول وانخستے شی بلكه آسانی واخستے شی نو آسانی په دے كښے ده چه ظاهر د موزو باندے مسح اوكړے شی ځكه چه باطن (لاندے طرف) باندے مسح كولو كښے حرج دے۔ او شريعت مسح دے دپاره مشروع كړيده چه آسانی راشی په امت باندے۔

* * * * * * * * * *

# باب التیمم

د شریعت د سماحت او آسانئ نه دا هم ده چه هغه په انسانانو باندے د هغوئ د وسع مطابق احکام مقرروی، که یو انسان د اودس او غسل کولو طاقت نه لری نو هغه دپاره ئے بدل تیمم مقرر کړیدے، دے دپاره چه انسانان په حرج کښے واقع نشی۔ کله چه ورته اوبه نه ملاویږی۔ یا بدنی معذور وی او دا صرف ددے امت مصطفویه خصوصیت دے، پخوانو امتونو باندے ګران احکام مقرر شوی وو، دے امت باندے اصر او اغلال (ګران احکام) مقرر نه شو۔ دا خالص د الله رب العزت فضل او مهربانی ده۔ او زمونږ د نبی اکرم ﷺ اعزاز او اکرام دے۔

**مناسبت** : مخکښے طهارت صغری او کبری په اوداسه او غسل سره بیان شو، اوس ددے دواړو خلیفه او قائم مقام او نائب بیانوی چه تیمم دے۔

٢ – دویم دا چه دا باب روستو شو د باب الوضوء نه ځکه چه اودس ډیر واقع کیږی او تیمم ته کله کله حاجت پیښیږی نو ځکه دا روستو کړے شو۔

**معنی لغوی** : تیمم په لغت عربی کښے قصد او ارادے ته وائی۔ المجموع (٢/٢٣٧) المغنی (١/٣١٧) توضیح الاحکام (١/٣٦٧) نیل الاوطار (١/٢٧٦)

**معنی شرعی** : او په شرع کښے قصد کول دی پاکے خاورے ته دپاره د بے اودسئ لرے کولو او مانځه جائز کولو، په مسح د مخ او لاسونو سره په یوه ضربه سره۔ فتح الباری (١/٥٦٩)۔ او دا په قرآن کریم سره ثابت دے ﴿ وان کنتم مرضی او علی سفر او جاء احد منکم من الغائط او لامستم النساء فلم تجدوا ماء فتیمموا صعیدا طیبا فامسحوا بوجوهکم وأیدیکم منه .... الآیة ﴾ المائدة۔ او دا صرف ددے امت خصوصیت دے، په پخوانو امتونو کښے دا نه وو، ددے امت دپاره رخصت او آسانی ده۔

**د تیمم مشروعیت** : د تیمم حکم په غزوه د بنی المصطلق کښے په واقعه د ورك کولو د عائشے ؓ کښے امیل لره نازل شویدے، لکه چه هغه فرمائی : مونږ د رسول الله ﷺ

سره په بعضے سفرونو کښے اووتلو، کله چه بیداء یا ذات الجیش علاقے ته اورسیدو نو زما أمیل ورك شو، کوم چه ما په سوال باندے د (خپلے خور) اسماءؓ نه اخستے وو، نو نبی ﷺ صحابهؓ د هغے په طلب کولو پسے اولیږل، نود مانځه وخت شو او اوبه نه وے، خلقو ابوبکرؓ ته شکایت اوکړو چه عائشےؓ رسول الله ﷺ او صحابهؓ ایسار کړی دی، او اوبه نشته، ابو بکر صدیقؓ راغے او عائشۃؓ ئے په تشو کښے اووهله، ورته ئے اووئیل : ټول خلق دے ایسار کړی دی. نو نبی ﷺ اوده شو تردے چه صبا شو او اوبه نه وے نو الله تعالیٰ د تیمم آیت نازل کړو. نو اسید بن حضیرؓ عائشےؓ ته اووئیل :

جزاكِ الله خیرا، فو الله ما نزل بك أمر قط الا جعل الله لك منه مخرجا و جعل للمسلمین فیه برکة. او بل روایت کښے دی (ماهی بأول برکتم یا آل أبی بکر) مسلم: ١/١٦٠ـ و توضیح الاحکام (٣٦٨/١) ـ او عائشۃؓ فرمائی : کله چه مونږ اوښ پاڅولو نو د هغه لاندے امیل پروت وو.

تیمم د اوداسه پشان دے ځکه د هغه نائب او قائم مقام دے، نو نیت په کښے ضروری دے، لکه اودس کښے نیت ضروری او واجب دے.

**مسئله** : صرف احناف وائی چه تیمم کښے نیت ضروری او واجب دے، او په اودس کښے نیت ضروری نه دے، ځکه چه په تیمم کښے خاورو سره تلوّث او ککړ والے دے، او طهارت په کښے حکما دے. دویم دا چه : په معنی د تیمم کښے نیت او قصد پروت دے، نونیت کول په کښے واجب دی.

لیکن ابن الهمام په فتح القدیر مع الکفایةؒ (٢٨/١) کښې پدے باندے رد کوی فرمائی :

وفیه نظر لانه ینبئ عن القصد لغة والقصد الذی هو النیة انما هو قصد خاص وهو قصد اباحة الصلوة والاعم لا دلالة له علی الاخص ولان الاول مدلول اللفظ والثانی فعل القلب ولادلالة لاحدهما علی الآخر.

یعنی په تیمم کښې د وجوب د نیت دپاره استدلال کول په لفظ د تیمم باندے خطاء دی ځکه چه دا استدلال د اعم دے په اخص باندے او دا صحیح نه دے ځکه چه تیمم په لغت کښے قصد ته وائی او دا عام دے او هغه قصد چه هغے ته نیت وائی هغه خو خاص قصد

دے د مانځه د اباحت دپاره او عام دليل د خاص نه ګرځي - دارنګه قصد خو د تيمم د لفظ معنی ده او هغه قصد چه هغه نيت دے دا خو د زړه فعل دے او د لفظ معنی دلالت نشي کولے په قصد د زړه باندے (بلکه دلته به خامخا جدا قصد ګولے شي - يعني تيمم، لغوی قصد دے او نيت خو شرعي قصد دے دارنګه په معنی لغوی د تيمم (قصد) کښے انشاء نه وی او په تيمم کښے نيت کولو کښے خو انشاء ضرور ده نو په تيمم کښ په معنی لغوی باندے استدلال په وجوب د نيت صحيح نشو).

٢ - **جمهور** علماء فرمائي : په اودس او تيمم دواړو کښے نيت کول ضروری دی، ځکه دا دواړه عبادتونه دی او هر عبادت کښے نيت کول واجب وی. لکه قرآن کريم کښے دی :

﴿ وما أمروا الا ليعبدوا الله مخلصين له الدين ﴾ نو دے آيت کښے أمر شويدے دے په اخلاص د عبادت سره او اخلاص په دے نيت سره حاصليږی نو ځکه واجب دے. (انما الأعمال بالنيات - تشريح ته رجوع اوکړه هلته ددے توضيح تيره شويده).

## المسألة الثانية : تيمم طهارت مطلقه دے اوکه طهارت ضروريه ؟

دوه قوله دی :

١ - امام مالك او قول جديد د امام شافعيؒ دے دوئ فرمائي : تيمم طهارت ضروريه دے، يعنے د ضرورت د وجے نه مشروع شويدے نو د يو مونځ دپاره کفايت کوی، دويم فرض مونځ پرے نه کيږی، بلکه بل مانځه ته به بل تيمم وهی. (فان ما ثبت بالضرورة يقتدر بقدرها) . او ضروری شی په اندازه د ضرورت استعماليږی. بلکه امام مالك په کښے لا دا خبره زياتی کړيده چه په يو تيمم باندے نفل او فرض نه اداء کيږی مګر هغه نفل مونځ پرے کيږی کوم چه د فرضو نه روستو وی. دده په نيز که يو انسان د سحر سنت په تيمم سره اوکړی نو فرض مونځ پدغه تيمم باندے نشی کولے بلکه فرضو ته به جدا تيمم وهی - طرح التثريب (١/١٠٢) للعراقيؒ وفتح البارى (١/٣٥٤).

علامه عراقی فرمائي دا علماء استدلال کوی په آيت ﴿ اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا وجوهكم ﴾ باندے چه آيت کښے هر مانځه ته اودس ضروری ګرځولے شويدے خو کله چه د اودس کولو نه عاجز شی نو تيمم به وهی هر مانځه ته بيا چونکه په حديث سره ثابته

شویده چه نبي علیه السلام په فتح د مکه کښې په یو اودس باندې پنځه واړه مونځونه کړیدی او د تیمم په باره کښې خو دا ندی نقل چه په یو تیمم باندې ئې د یو مونځ نه زیادت کړې وی نو دا په خپل اصل باندې باقي پاتې شو چه هر مانځه ته به تیمم وهي۔

لیکن ددې نه **جواب** دا ورکولې شي چه تیمم ته شریعت قائمقام د اوداسه وئیلې دې نو کله چه په اوداسه باره کښې دا راغلل چه په یو اودس سره ډیر مونځونه ادا کول جائز دی نو دغه حکم د تیمم هم دې ځکه چه تیمم شریك دې د اوداسه سره په پوره طهارت حاصلولو کښې۔ ٢- دویم دا چه ﴿ ولكن يريد ليطهركم ﴾ نه معلومیږی چه تیمم طهارت مطلقه دې د اوداسه پشان فيأخذ حكمه

٢ – ابو حنیفهؒ، ثوریؒ، لیثؒ او داودؒ وائی : دا طهارت مطلقه دې، هر مونځ پرې کولې شی، واجبات، نوافل، تلاوت، فوائت وغیره تر څو پورې چه یې اودسه شوې نه وی یا ئې اوبه موندلې نه وی۔ وهو مذهب اصحاب الحديث قاله الخطابي۔

**دلیل** : فصل ثاني کښې حدیث دې (وان لم يجد الماء الى عشر سنين) او دا قول راجح دې په اعتبار د دلیل سره۔ الله تعالی فرمائی : ﴿ ولكن يريد ليطهركم ﴾ نو تیمم ته ئې طهارت وئیلې دې مطلقا۔ او دا قول د حسن بصریؒ او سعید بن المسیبؒ، زهریؒ او ابن حزمؒ هم دې۔ انظر فتاوى الدين الخالص (٢/٤٢٩)۔

---

## الفصل الأول – اولنې فصل

١ – عَنْ حُذَيْفَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (فُضِّلْنَا عَلَى النَّاسِ بِثَلٰثٍ : جُعِلَتْ صُفُوْفُنَا كَصُفُوْفِ الْمَلَائِكَةِ، وَجُعِلَتْ لَنَا الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا، وَجُعِلَتْ تُرْبَتُهَا لَنَا طَهُوْرًا، إِذَا لَمْ نَجِدِ الْمَاءَ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : حذیفهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې دې : مونږ له په مخکنو ټولو امتونو باندې ددرې څیزونو په ذریعه فضیلت راکړې شویدې (١) زمونږ صفونه د ملائکو د صفونو پشان جوړ کړې شوی دی (٢) مونږ دپاره ټوله زمکه جومات ګرځول

شویده (٣) او د زمکے خاوره مونږ د پاره پاکونکے گرځول شویده۔ کله چه مونږ اوبه نه بیامومو۔ (مسلم)۔

**تشریح** : فُضِّلْنَا عَلَی النَّاسِ بِثَلٰثٍ : دا صیغه د ماضی مجهول جمع متکلم ده او فاعل ئے حذف دے أی فضلنا الله علی جمیع الأمم السابقة۔ یعنے الله تعالی دا امت په پخوانو ټولو امتونو باندے په دے درے خصوصیاتو غوره کړیدے :

هسے خو دا امت محمدیه ﷺ د پخوانو امتونو په مقابله کښے په قسما قسم خصوصیاتو او امتیازاتو سره افضل او بهتر دے۔ په عظمت او فضیلت او شرافت کښے هیڅ امت ددے امت مماثل او برابر نشته۔ لیکن دلته رسول الله ددے امت بعضے امتیازی خصوصیاتو ته اشاره کوی کوم چه الله تعالی دے امت ته ورکړی دی۔ چه زما أمت ته په دے درے امتیازی خصوصیاتو سره خاص فوقیت او غوره والے حاصل دے :

١ **اول** دا چه : د دوئ صفونه د مانځه یا د جهاد به داسے وی لکه د ملائکو د صفونو پشان، څنگه چه ملائك په صف بندئ سره عبادت کوی او ددے په ذریعه الله تعالی ته نزدے کیږی او سعادت ورته حاصلیږی، نو دغه شان به دا امت هم په جهاد او مانځه کښے جماعت سره الله تعالی ته قریب کیږی، ددے وجے نه دا امت د مخکنو امتونو په مقابله کښے افضل دے، ځکه چه مخکنو امتونو کښے صف بندی او جماعت نه وو، بلکه هغوئ به چه څنگه غوښتل مونځونه به ئے کول، یواځے یواځے به عبادت خانو کښے ولاړ وو، الله تعالیٰ ورته د جماعت سعادت او فضیلت نه وو ور نصیب کړے۔

بیا د ملائکو صفونه څنگه دی ؟ نو ددے تفصیل به په باب الصفوف کښے راشی ان شاء الله۔ چه (یتمون الصف الأول ویتراصون فی الصف) یعنے ملائك اولنے صف پوره کوی او صف کښے جوخت جوخت اودریږی، مینځ کښے کهلاؤ ځایونه نه پریدی۔ نو افسوس دے چه دے امت کښے بعضے خلقو دا فضیلت د خپل ځان نه ختم کړو چه صفونه نه جوختوی، بلکه جدا جدا ولاړ وی۔ د یو بل نه خفه او مرور ولاړ وی۔ او یو بل ته جوخت او نزدے اودریدل ورته د وهابیانو عمل ښکاری، که چاته خپه نزدے کړے نو هغه به درته بداوگوری چه دا خو وهابی دے۔ نو د اتفاقی مسئلے نه ورله شیطان سترگے پټے کړے او دا

عمل ئے صرف د **اهلحدیثو** - بارك الله فیهم - پورے خاص کړو. او بیا دعوئ د محبت د نبی ﷺ کوی. افسوس او صد افسوس په داسے جاهلانو ! .

٢ - **دویم فضلیت** : د پخوانو امتونو طریقه داوه چه د هغوئ مونځ بغیر د مسجد نه نه کیدلو، او مسجد کښے به ګډوډ ولاړ وو. لکه روایت د مسند احمد کښے راځی (وکان من قبلی انما یصلون فی کنائسهم) د هغوئ مونځ د خپلو کنیسو (ګیرجو) پورے خاص وو. او زمونږ دے امت ته الله تعالی دا فضیلت او رخصت ورکړو چه اول به مسجد ته ځی دمانځه دپاره، اوکه مسجد نه وی، یا انسان مسافر وی، یا د انسان نه جماعت قضاء شی، یا نوافل کوی، نو په کور کښے هم کیږی. او یا کله چه انسانان ګنړ وی او په یو میدان کښے جماعت کوی نو هم ئے کولے شی. مسجد ورله شرط نه دے، لیکن کله چه مسجد موجود وی، او په هغے کښے جماعت کیږی نو بیا ځانله کور یا پټی کښے مونځ کولو سره انسان ګنهګاریږی. اودا لوئی جرم دے، لکه خپل ځائے کښے به راشی، ان شاء الله.

٣ - **دریم فضیلت** : ددے امت دادے چه دوئ دپاره الله تعالیٰ تیمم مشروع کړو، یعنے کله چه اوبه موجودے نه وی یا موجودے وی خو د هغے په استعمالولو باندے قادر نه وی، یا د اوبو د استعمالولو نه معذور وی، بیمار وی، نو په پاکه خاوره سره دے تیمم وهی، په دے سره به ئے مونځ جائز شی.

وَجُعِلَتْ تُرْبَتُهَا الخ : ددے حدیث نه په ظاهر کښے دا معلومیږی چه تیمم صرف په خاوره باندے جائز دے، نه په بل شی باندے. مګر په دے کښے اختلاف دے.

## مسئله : تیمم په کومو څیزونو سره وهل کیږی ؟

په دے کښے اختلاف دے :

١ - د امام شافعیؒ، امام احمدؒ قول مشهور، او ابن المنذرؒ او داود ظاهریؒ رائے داده چه تیمم صرف په خاورو سره وهل جائز دی، نه په نورو څیزونو سره.

**دلیل** : دا وائی چه احادیثو کښے فقط لفظ د تراب (خاورے) تخصیص راغلے دے، نو تراب او تربت شرط دے نو دا به مراد وی.

٢ - امام ابو یوسفؒ فرمائی : صرف په خاوره اوشګه باندے جائز دے.

٣ – امام ابو حنیفهؒ، امام مالكؒ، عطاءؒ، امام اوزاعیؒ او ثوریؒ رائے داده : چه تیمم په هر هغه شئ باندے جائز دے چه دجنس د زمکے نه وی. لکه خاوره، شګه، کانړے وغیره. یعنے هرهغه شے چه اورئے نه سیزی. په هغے تیمم وهلے کیږی.

لیکن شیخ الاسلام ابنِ القیمؒ په زاد المعاد (١٩٩/١) کښے لیکی چه د تیمم دپاره خاوره شرط نه ده، بلکه په رمل (شګه) خاوره، کانړو وغیره ټولو باندے تیمم کول جائز دی. وجه داده چه قرآن کریم کښے ﴿فتیمّموا صعیداً طیباً﴾ راغلے دے او حدیث کښے دی (علیك بالصعید) لفظ راغلے دے. او صعید په عربی لغتِ کښے (وجه الأرض) یعنی د زمکے مخ ته وائی، او مخ د زمکے کانړی، شګے او خاورے ټولو ته شامل دے کما فی القاموس والمصباح. المعجم الوسیط (٥١٤/١).

٢ – نبی ﷺ او صحابوؓ د تبوك په سفر کښے په کانړو او شګو باندے تیمم وهلو، او دا نه دی نقل چه هغویٔ ځان سره خاورے اخستے دی.

٣ – متفق علیه حدیث کښے دی (ایما رجل من امتی ادرکته الصلاة فعنده مسجده وطهوره) یعنے : زما په هر امتی باندے چه کله د مانځه وخت راشی نو هغه سره مسجد او پاکونکے شے دواړه شته دے.

نو دا حدیث دلیل دے په دے چه څوك غره کښے وی نو دده دپاره په تیمم کښے کاڼړی طهور او پاکونکے څیز دے، اوکه څوك په شګه کښے وی نو دده دپاره شګے طهور دے.

٤ – د رسول الله ﷺ نه په دیوال باندے تیمم وهل نقل دی، لکه روستو حدیث را روان دے، نو کیدے شی چه دا دیوال د کانړو وو.

او دا **راجح قول** دے. علامه ابن حزمؒ په المحلی (٣٧٧/١) او ابوبکر بن العربی په احکام القرآن (٤٦٨/١) او ابن عبد البر په فتح المالك بتبویب التمهید (٤٨١/١) کښے راجح کړیدے. اوکوم احادیثو کښے چه تخصیص د خاورے راغلے دے، لکه دا حدیث شو، یا مسند احمد کښے د علیؓ په روایت کښے دی (وجعل التراب لی طهورا) نو هغه بناء دے په عادت باندے، او هغه نفی د ماعدا نه کوی. چه ګنے په غیر د خاورو نه کیږی. علامه شوکانیؒ فرمائی : دا استدلال په مفهوم اللقب سره دے اودا د اصولینو په نیز ضعیف دے،

صرف ابو بکر الدقاقؒ ئے دلیل گنړی ، نو په دے سره به تخصیص په منطوق کښے نشي کولے. ځکه د نبی ﷺ نه په شګو او کانړو باندے تیمم کول هم نقل دی. (النیل : ٣٢٨/١) -- او یا دیته التنصیص علی بعض افراد العام وائی چه پدے سره تخصیص په عام کښے نه راځی یعنی پدے حدیث کښے بعض افراد د عام ذکر شویدی یعنی په وجه الارض کښے صرف خاوره ذکر شویده چه دا د وجه الارض بعض فرد دے. کما فی سبل السلام (١٤٣/١).

---

٢ - وَعَنْ عِمْرَانَ ﷺ قَالَ : كُنَّا فِيْ سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فَصَلّٰى بِالنَّاسِ، فَلَمَّا انْفَتَلَ مِنْ صَلَاتِهِ إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُعْتَزِلٍ لَمْ يُصَلِّ مَعَ الْقَوْمِ، فَقَالَ مَا مَنَعَكَ يَا فُلَانُ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ الْقَوْمِ، قَالَ : أَصَابَتْنِيْ جَنَابَةٌ وَلَا ماءَ، قَالَ : عَلَيْكَ بِالصَّعِيْدِ ، فَإِنَّهُ يَكْفِيْكَ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : عمرانؓ فرمائی : مونږ د نبی ﷺ سره په یو سفر کښے وو، نو نبی ﷺ خلقو ته مونځ اوکړو، کله چه د مونځ نه فارغ شو نو څه ګوری چه یو سړے جدا ناست دے چه د خلقو سره ئے مونځ اونه کړو. ورته ئے اوفرمائیل : اے فلانیه ! ته څه شي منع کړے چه دے خلقو سره د جمعے مونځ اوکړے ؟ هغه اووئیل : ماته جنابت رسیدلے دے او اوبه نشته. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل : تاله پکار دی چه پاکه خاورره باندے تیمم اوکړے، ځکه تاله دا کافی ده. (بخاري، مسلم).

**تشریح** : مصنف دا حدیث مختصر کړیدے ورنه دا اوږد حدیث دے بخاری باب التیمم بشرح الفتح (٣٥٧/١) کښې راوړیدے تفصیلی واقعه په کښې ذکرده.

**عَلَيْكَ بِالصَّعِيْدِ** : علیك اسم فعل دے په معنیٰ د خُذْ او اِلْزَمْ سره، یعنی تاباندے لازم دی چه په دے خاورو تیمم اووهے.

**فوائد الحدیث** : ١ - دا سړے د خلقو سره په جمعه کښے شریك نشو، دده دا خیال وو چه د جنب سړی دپاره به تیمم وهل جائز نه وی. دا به صرف دے اودسئ په صورت کښے وهلے شی، نو نبی ﷺ ورته ارشاد اوفرمایه چه تیمم اووهه، دا د جنابت دپاره هم مشروع

دے۔ ٢ – د جماعت دومره اهميت دے چه رسول الله ﷺ په دے سړي باندے رډ اوكړو چه د نورو مسلمانانو سره ولے په مانځه كښے شريك نه شوے ؟ **معلومه** شوه چه د جماعت په وخت كښے يواځے كيناستل يا يواځے مونځ كول – سنت وي كه نفل وي – جائز نه دي۔

٣ – دا حديث نص دے په دے كښے چه د جُنب شخص دپاره تيمم وهل جائز دي، اودا اتفاقي مسئله ده۔ سَلَفًا وَخَلَفًا ، هيڅوك په كښے مخالف نشته، مگر د بعضے صحابو ؓ نه – لكه عمر بن الخطابؓ او عبد الله بن مسعودؓ – نه نقل دي چه دوئ به د جُنب دپاره تيمم وهل جائز نه گنړل۔ اود اقول په تابعينو كښے د ابراهيم نخعيؒ نه نقل دے۔ بعضے علماء وائي : عمر فاروقؓ او ابن مسعودؓ د خپل دے قول نه رجوع كړيده (نوويؒ شرح مسلم : ١٦٠/١)۔ او دوئ چه جنب دپاره تيمم جائز نه گنړلو نو دا ئے اجتهاد وو او حديث كښ به ئے تاويل كولو۔ كما في البخاري (٤٧/١)۔ اوروستو هم راوران دے۔

٤ – او دا حديث په دے مسئله هم دليل دے چه تيمم طهارت مطلقه دے، فرائض او نوافل او ډير مونځونه كول پرے جائز دي، ځكه نبي ﷺ ورته دا اونه فرمائيل : چه صرف د فرائض يا صرف په دے وخت كښے ستا دپاره كافي دے، بلكه عامه خبره ئے ورته اوكړه چه ( فَاِنَّهٗ يَكْفِيْکَ ) يعنے خاوره ستا د جنابت په لرے كولو كښے كفايت كوي۔ نو معلومه شوه چه جنابت لرے شو په تيمم سره، نومكمل طهارت حاصل شو۔

٥ – حافظؒ فرمائي : امام بخاريؒ په ( عَلَيْکَ بِالصَّعِيْد ) باندے استدلال كړيدے په دے مسئله چه هر مانځه ته تيمم وهل واجب او ضروري نه دي، ځكه چه نبي ﷺ عموم كړيدے او حافظ فرمائي : چه دا هغه مسئله ده چه امام بخاريؒ پكښے د كوفيينو او جمهورو موافقت كړيدے۔

---

٣ – وَعَنْ عَمَّارٍ ؓ قَالَ : جَاءَ رَجُلٌ اِلٰی عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ؓ فَقَالَ : اِنِّیْ أَجْنَبْتُ فَلَمْ أُصِبِ الْمَاءَ فَقَالَ : عَمَّارٌ لِعُمَرَ : أَمَا تَذْكُرُ أَنَّا كُنَّا فِیْ سَفَرٍ أَنَا وَأَنْتَ فَأَمَّا أَنْتَ فَلَمْ تُصَلِّ وَأَمَّا أَنَا فَتَمَعَّكْتُ فَصَلَّيْتُ فَذَكَرْتُ ذٰلِکَ لِلنَّبِیِّ ﷺ فَقَالَ :

اِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ هٰكَذَا فَضَرَبَ النَّبِيُّ ﷺ بِكَفَّيْهِ الْأَرْضَ وَنَفَخَ فِيهِمَا ثُمَّ مَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ ). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَلِمُسْلِمٍ نَحْوَهُ. وَفِيهِ : قَالَ : اِنَّمَا يَكْفِيكَ أَنْ تَضْرِبَ بِيَدَيْكَ الْأَرْضَ ثُمَّ تَنْفُخَ ثُمَّ تَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَكَ وَكَفَّيْكَ.

**ترجمه** : عمارؓ فرمائي : يو سړے عمر بن خطابؓ ته راغے او عرض ئے اوکړو : زه جنب شوے يم او اوبه مے بيانه موندے (نو څه اوکړم ؟) نو عمارؓ عمر فاروقؓ ته اووئيل : آيا تاته ياد نشي چه زه او ته په سفر کښے وو (او دواړو ته د غسل ضرورت وو) نو تا مونځ اونه کړو، او زه په خاوره کښے ورغښتم او مونځ مے اوکړو، بيا مے دا خبره نبي ﷺ ته وړياده کړه، نو نبي ﷺ راته اوفرمائيل : تاله خو صرف داسے کول کافي وو۔ نبي ﷺ خپل دواړه ورغوي په زمکه اووهل او هغے له ئے پوکے ورکړو، بيائے هغه دواړه په مخ او دواړو ورغوو باندے راخکل۔ (بخاري) او مسلم ددے پشان الفاظ نقل کړي دي او په هغے کښے دي : تا دپاره دا کافي ده چه ته خپل دواړه لاسونه په زمکه اووهے او بيا پوکے ورکړے او په خپل مخ او دواړو ورغوو باندے ئے راخکاږے۔

**تشريح** : جَاءَ رَجُلٌ اِلٰى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ؓ : دا وينا د عبد الرحمن بن أبزیٰ ده، ابتداء د قصے هغه نقل کوی (کما فی الصحيحين) او په دے باندے دليل لفظ د (فقال عمار لعمر) دے، نو دلته مصنف لره داسے وئيل پکار وو چه (عن عبد الرحمن بن أبزی قال : جاء رجل الخ) نه عن عمار.

فَلَمْ اُصِبِ الْمَاءَ : دا د اصابت نه ماخوذ دے په معنی د (لم اجد) سره دے، يعنے زه جنب شوے يم او اوبه نه بيامومـ۔ نو په دے حديث کښے د عمر فاروقؓ جواب نه دے ذکر شوے چه سړي ته ئے څه جواب ورکړو۔ او په روايت د مسلم (١٦١/١) کښے دي (لا تصل) يعنے د جنابت په حالت کښے مونځ مه کوه، ترڅو چه درته اوبه ملاؤ نشي، يا داچه کله دے سړي تپوس اوکړو، نو عمر فاروقؓ په دے مسئله کښے غلے شو۔ وجه داده چه د هغه په ذهن کښے دجنب دپاره تيمم نه وو، نو عمارؓ توله واقعه ذکر کړه، دے دپاره چه عمر فاروقؓ ته دا خبره رايادہ کړي چه د جنب شخص دپاره هم تيمم جائز دے۔

نو غرض د عمارؓ رد کول دي په عمر فاروقؓ باندے چه ولے غلے شوے، يا ولے غلطه

فتوی ورکوے خپله واقعه رایاده کړه۔ لیکن عمر فاروقؓ نه هغه واقعه هیره شوے وه، ځکه ترے انکار کوی۔ چه ماته دا نه دی یاد، اودا نظریه ئے جوړه شوے وه چه تیمم صرف قائم مقام او نائب د اوداسه دے، نه د غسل۔ لیکن د دوئ دا خبره د مرفوع احادیثو موافق نه ده۔ دے وجے نه عام صحابه کرامؓ دده موافق نه دی۔

صرف عبد الله بن مسعودؓ۔ چه دده هم دا اجتهاد وو، او مرفوع حدیث ورسره نه وو۔ او دا مسئله قرآن کښے هم صَرَاحَةً راغلے ده ﴿فلم تجدوا ماء فتیمموا صعیدا طیبا﴾ لیکن ددے دواړو صحابوؓ ذهن پدے باب کښے بند شوے وو، دے وجے نه مسلم (۱/۱٦۱) کښے راځی، شقیق فرمائی : زما په مخکښے ابو موسی اشعریؓ او عبد الله بن مسعودؓ مناظره شروع کړه، ابو موسیؓ اوفرمائیل : یو سړے جُنب شی او یو میاشت پورے اوبه نه مومی دابه د مانځه سره څه کوی؟ عبد الله بن مسعودؓ اوفرمائیل : (لا یتیمم وان لم یجد الماء شهرا) مونځ به نه کوی اګرچه یو میاشت پورے اوبه نه مومی۔ ابو موسیؓ ورته اوفرمائیل : د سورت نساء دے آیت سره به څه کوے ﴿فلم تجدوا ماء فتیمموا صعیدا طیبا﴾؟ نو عبد الله بن مسعودؓ ئے خاموش کړو۔

بیا ابن مسعودؓ د خپل قول توجیه ذکر کړه چه که خلقو ته رخصت ورکړے شی په دے آیت سره نو نزدے ده چه په خلقو به اوبه یخے لګی نو په تیمم به رامنده کوی۔ نو ځان ته به رخصت پیدا کړی او په حرامو کښے به واقع شی (یعنی ابن مسعودؓ فرمائی : مونږ دا منع د احتیاط په وجه کوو)۔

نو دے نه دا معلومه شوه چه خرافین چه دا خبره کوی چه د مجتهدینو هره خبره حقه ده – دا غلطه ده۔ د مجتهد هره خبره حقه نه وی، بعضے مسئلے ئے خطاء هم وی، لکه د صحابه کرامو په اجتهاد کښے هم بعضے مسائل د مرفوع حدیث خلاف راغلی دی، لکه دلته د عمر فاروقؓ او عبد الله بن مسعودؓ قول د اجماع د صحابهؓ او د قرآن او مرفوع احادیثو موافق نه دے۔ اګرکه په دے باندے د مجتهد او صحابیؓ په شان او مرتبه کښے څه نقصان نه راځی۔ مجتهد له الله تعالی په خطاء کیدو باندے هم یو اجر ورکوی۔ لکه چه دا په حدیث کښے راغلی دی (وان اخطأ فله اجر واحد) لیکن د نور امت دا ذمه واری ده چه

هغوی به دده په دے خطاء خبره کښې تابعداری نه کوی، بلکه د مرفوع حدیث او آیت تابعداری به کوی. لکه دا منهج د سلفو صالحینو دے.

**فَتَمَعَّكْتُ** : تمعك ارغښتلو او ارغړیدلو ته وائی یعنے زه په خاورو کښې اورغښتلم. بل روایت د مسلم (۱/ ۱۶۱) کښې دی (کما تمرغ الدابة) لکه حیوان چه په خاورو کښې رغړی. عمارؓ ولے رغښتے دے ؟ وجه داده چه ده صرف د تیمم آیت آوریدلے وو چه اوبه نه وی نو تیمم وهل دی، خو د نبی ﷺ نه ئے طریقه نه وه زده کړے، نو په خپل اجتهاد ئے دا کار اوکړو، او دا قیاس ئے اوکړو چه په غسل د جنابت کښې خو ټول بدن وینځل دی، نو په تیمم کښې به ټول اندامونو ته خاورے رسول ضروری وی. قیاس کله کله انسان خطاء کوی، لکه روستو به راشی چه په تیمم کښې استیعاب شرط نه دے.

او احناف صاحبان وائی : استیعاب ضروری دے، وائی ځکه چه دا قیاس دے په اوداسه باندے چه په اوداسه کښې ټول اندامونه وینځل شرط دی، نو په تیمم کښې به هم ضروری وی. نو ټول مخ او ټول لاسونه تر څنګلو پورے په خاورو ککړ کول ضروری دی، چه هیڅ ځائے درنه هم پے مسح پاتے نشی او په دے کښې سختی کوی.

لیکن دا **قیاس** ددوئ غلط دے، وجه داده چه بیا د سر مسح په اودس کښې شته نو پکار ده چه دلته په تیمم کښې هم په سر باندے مسح اوکړے، هلته اودس کښې د خپو وینځل ضروری دی، نو بیا دلته هم په خپو مسح کول پکار دی. حال دا چه د خپو مسح او د سر مسح په تیمم کښې نشته. معلومه شوه چه په استیعاب کښې تیمم په اودس قیاس کول درست نه دی.

دارنګه تیمم خو د غسل خلیفه هم دے نو بیا پکار ده چه ټول بدن په خاوره ککړ کړی او حال دا چه دا هیڅوك هم جائز نه ګڼړی نو معلومیږی چه استیعاب په تیمم کښې ضروری ندے او قیاس د تیمم په اودس باندے صحیح ندے.

بیا په دے حدیث کښې طریقه او کیفیت د تیمم ذکر دے. او دا چه دا د جنابت دپاره هم وهلے شی. دلته عمارؓ ته د تیمم حکم او کیفیت نه دے معلوم نو نبی ﷺ ورته بیان کوی. او دا اصولی قاعده ده چه ( تاخیر البیان عن موضع الحاجة لا یجوز ) ، او عمارؓ

مسئلے ته محتاج دے۔ او نبی ﷺ ورته همدغه کیفیت او خودلو۔ نو معلومه شوه چه صحیح کیفیت د تیمم همدغه دے۔ نو د شیخ نوویؒ د نورو علماؤ د طرفنه دا توجیه صحیح نه ده چه وائی : دلته مقصود د نبی ﷺ صرف دا وو چه دا ورته اوښائی چه په خاورو باندې به څنګه لاس وهې۔ د هغې کیفیت ورته ښائی چه خاورو کښې د رغښتلو ضرورت نشته بلکه خاوره باندې لاس اووهه۔ دا مقصد نه دے چه ټول کیفیت د تیمم ورته بیانوی۔ په دے وجه عمارؓ هم په روایت کښې صرف یو کرت ضربه بطور تعلیم ذکر کړو (شرح مسلم : ١/ ١٦٠)۔

نو دا اخیره خطاء ده څکه چه نبی ﷺ ورته پوره طریقه ولے نه خودله ؟ سره ددے نه چه دا مقام د بیان دے، او عمار رضی الله عنه هم د تیمم پوره کیفیت زده کولو ته محتاج دے ؟ نو دا حدیث ولے د نیم کیفیت پورے خاص کړے شی ؟ بلکه په دے حدیث کښې چه کوم کیفیت او طریقه د تیمم راغلې ده، همدا صحیح طریقه ده۔ بله دا چه دلته ورسره بیا وجه (مخ) او کفین (ورغوی) ولے ذکر کوی ؟ معلومیږی چه پوره کافی طریقه ورته بیانوی څکه وائی (انما یکفیك الخ)۔

﴿ **كيفية التيمم** ﴾ : **د تیمم په طریقه** کښې اختلاف دے :

١ - **اول کیفیت** : امام ابو حنیفهؒ، امام مالکؒ، امام شافعیؒ، سفیان ثوریؒ، شعبیؒ، سالم بن عبد اللهؒ، علی بن أبی طالبؓ، حسن بصریؒ مذهب دادے چه تیمم دوه ضربه دی، یوه ضربه د مخ دپاره، او دویمه ضربه ده د لاسونو دپاره تر مرفقینو (څنګلو) پورے۔ امام مالکؒ فرمائی : څنګلو پورے مستحب ده او رسغینو (ورغوو) پورے واجب ده۔ (نووی : ١/ ١٦٠)۔

**دلیل** : ددے قول والاؤ سره صحیح مرفوع حدیث نشته، او کوم مرفوع روایت د جابر کښې چه دا دی : التيمم ضربة للوجه وضربه للذراعين الى المرفقين). الحاكم (١/ ١٨٠ - رقم ٦٣٨) دارقطنی (١/ ١٨١ - رقم ٦٨٠) نصب الراية (١/ ١٥١).

ددے په سند کښې متکلم فیه راوی عثمان بن محمد بن الانماطی دے۔ حافظ ذهبیؒ فرمائی : شیخ فیه لین۔ المغنی (٢/ ٥٠ - رقم ٤٠٦٠) حافظ عسقلانی فرمائی : مقبول

یعنی عند المتابعة تقریب التهذیب (۲/۱٤)۔
۲- دویمه وجه دا ده : چه پدے کښے ابو الزبیر محمد بن مسلم بن تدرس دے، صدوق الا انه یدلس. تقریب التهذیب (۲/۱۳۳) ۔ نو ابو الزبیر مدلس دے او پدے روایت کښں ئے عنعنه هم کړیده۔ زیلعیؒ په نصب الرایه (۲/۳٤) کښں د امام نوویؒ نه نقل کړی : المدلس اذا عنعن لایحتج به بالاتفاق آه۔ یعنی مدلس چه کله عنعنه (په عن سره روایت) اوکړی نو دا بالاتفاق قابل قبول نه وی۔ نو دا روایت ضعیف شو۔
۳- دریم دا چه دا روایت شاذ هم دے ځکه ابونعیم دا روایت د عزره بن ثابت نه موقوفا نقل کړیدے او همدا (موقوف کیدل) ئے صحیح دی لکه دا خبره دارقطنی هم کړیده۔ (والصواب انه موقوف) کما فی التلخیص (۱۲۵) نو دا موقوف روایت دے او رفع ئے صحیح نه ده۔
او مرفوع روایت د عائشه کښں هم ضعف دے رواه البزار۔ په هغے کښں الحریش بن الخریت راوی دے۔ ابو حاتمؒ او ابوزرعهؒ او امام بخاریؒ ورته ضعیف وئیلے دے۔ (مجمع الزوائد (۱/۵۹۱) رقم (۱٤۱۸) والمغنی فی الضعفاء (۱/۲٤۱) رقم (۱۳۵۹)۔
او مرفوع روایت د عبد الله بن عمرؓ نه ضعیف جدّاً دے۔ ټول سندونه ئے ضعیف دی :
اخرجه الحاکم فی المستدرك (۱/۱۷۹- رقم ٦۳٤) قال الذهبی فی التلخیص فی سنده علی بن ظبیان واه، قال ابن معین لیس بشئ وقال النسائی لیس بثقة التحقیق لابن الجوزی (۱/۲۳۵)۔
٤- نصب الرایه (۱/۱۵۳) کښں بل روایت د جابرؓ راوړیدے د حاکم نه خو هغے کښں ابوالزبیر مدلس راوی دے، عنعنه ئے کړیده اګرچه زیلعی ورته صحیح وئیلے دے مګر ضعیف دے۔ باقی روایات ټول ضعیف دی۔
البته صحیح موقوف روایات پدے طریقه کښں ثابت دی د عبد الله بن عمرؓ او جابرؓ نه (عن مالك عن نافع انه اقبل عبد الله بن عمر من الجرف حتی اذا کان بالمربد نزل عبد الله فتیمم صعیدا طیبا فمسح بوجهه ویدیه الی المرفقین ثم صلی۔ اخرجه مالك فی الموطأ (۱/٤۱- ٤۲) فهذا موقوف صحیح کما فی التلخیص الحبیر (۱/۱٤۵)۔

يعني ابن عمرؓ دجرف علاقې نه را روان وو کله چه مربد علاقې ته اورسيدو کوز شو او په پاکه خاوره ئې تيمم اووهلو او مسح ئې اوکړه په مخ او لاسونو تر څنګلو پورې بيا ئې مونځ اوکړو۔ نو دا طريقه صرف په درجه د جواز کښې ده چه تر څنګلو پورې تيمم اووهلې شي۔

**۲ - دويم کيفيت** : اودا ډير صحيح او راجح کيفيت دے۔ امام بخاريؒ، امام احمد بن حنبلؒ، امام اسحقؒ، امام اوزاعيؒ، عطاءؒ، مکحولؒ، ابن المنذرؒ، شعبيؒ، بعض اهل ظاهرؒ او عام اهل الحديث مذهب دے (نووی : ۱/ ۱٦٠)۔

او امام احمدؒ فرمائي : زه ددے نه علاوه بل کيفيت نه پيژنم :

او هغه دا چه يوه ضربه ده، د مخ او مړوندو پورے لاسونو دپاره۔ اول به ئې په مخ راکاږي او بيا به ئې په لاسونو باندے۔ اګرکه دا ترتيب د مخ او لاسونو ترمينځ واجب نه دے۔

کما في فتح الباری (۱/ ۳٦۳) و سبل السلام (۱/ ۱۹٦)۔

په بعض رواياتو د بخاری کښې د لاسونو مسح مخکښې ذکر شويده په مخ باندے او مسح د لاسونو عطف شويده په مسح د مخ باندے په ثم حرف عطف سره چه دلالت کوي په ترتيب مع التراخي باندے او اکثر رواياتو کښې مخ رومبے ذکر کيږي او لاسونه پرے عطف کيږي په واو سره چه تقاضا د ترتيب نه کوي۔ نو دواړه طريقے جائز دي۔ کما في سبل السلام (۱/ ۱٤٥)۔

**دليل** : حديث د بخاری (۱/ ٤۸) او مسلم (۱/ ۱۲۱) دے په روايت د عمار بن ياسرؓ کښے دي (نبي ﷺ ده ته اوفرمائيل : تا دپاره دا کافي ده چه لاسونه په زمکه اووهے، او بيا ئې پو کړے او مخ لاسونه تر مړوندونو پورے مسح کړے (لکه دا طريقه عملي طور سره نبي ﷺ عمارؓ ته ښودلے ده)۔ الفاظ دادي :

(فضرب النبي ﷺ بكفيه الأرض ونفخ فيهما ثم مسح بهما وجهه و كفيه)۔

دا حديث صريح دے او دا مقام د بيان دے، او دا طريقه ئې ورته اوخودله، نه بله نو دا دليل د رجحان ددے طريقے دے او ددے سره پوکل هم مستحب دي۔

**۳ - دريم کيفيت** : دوه ضربے دي۔ اول د مخ، بيا د لاسونو تر مړوندونو دپاره۔ لکه په حديث د عمار بن ياسرؓ کښے دي۔ (عن عمار بن ياسر : حين تيمموا مع رسول الله ﷺ

فامر المسلمين فضربوا باكفهم التراب ولم يقبضوا من التراب شيئا فمسحوا بوجوههم مسحة واحدة.ثم اعادوا فضربوا باكفهم الصعيد مرة اخرى فمسحوا بايديهم. وسنده صحيح كما فی ابن ماجة (١/٩٣) وابی داود رقم (٣٣٥-٣٤٢) وسيأتی فی الكتاب ۔

نو پدے روايت کښې ضربتين ذکر دی او آخر کښې ايدی لفظ مجمل دے شامل دے ورغوو ته هم او څنګلو ته هم۔ ليکن ذکر د يد او مراد ترينه کف (ورغوے) دا حقيقت مشهوره دے لکه ﴿ والسارق والسارقة فاقطعوا ايديهما ﴾ کښې لاس صرف مروندونو پورے باتفاق الامت مراد دے۔

٤ - **کيفيت** : امام زهریؒ فرمائی : دوه ضربے دی، يوه د مخ، بله د لاسونو دپاره تر اوګو او ترخونو پورے۔ لکه دا د بعضے صحابوؓ نه ثابت ده۔ نو دا موقوف روايات دی، مرفوعا دا طريقه نه ده ثابت۔ لکه دا د عمارؓ په روايت کښې دی (فتيممنا الی المناکب والآباط) ليکن دا اجتهادی عمل دے، حديث ورته نه دے رسيدلے۔

کما فی الترمذی بشرح التحفة (١/١٣٦)۔

**فيصله** : د يوے ضربے والا احاديث په صحيحينو کښې راغلی دی، چه هغه بيشکه بے شبهے ډير صحيح او راجح دی د نورو کتابونو په حديثونو باندے۔

او احاديث او آثار د ضربتين په درجه د حَسَن کښې دی، ځکه په هريو روايت کښې څه نه څه کلام او مقال ضرور شته۔ دا وجه ده چه علامه مبارکفوریؒ په تحفة الأحوذی (١/١٣٥) کښې فرمائی :

(احاديث الضربتين والمرفقين ضعيفة او مختلفة فی الرفع والوقف. والراجح هو الوقف، ولم يصح من احاديث الباب سوی حديثين احدهما : حديث أبی جهيم بذكر اليدين مجملا، وثانيهما : حديث عمار بذكر ضربة واحدة والكفين، وهما حديثان صحيحان)۔

او دغه شان په السيل الجرار (١/١٣٣) کښې علامه شوکانیؒ هم فرمائی : والحاصل ان جميع الاحاديث الصحيحة ليس فيهما الا ضربة واحدة للوجه والكفين فقط وجميع ما ورد فی الضربتين و كون المسح الی المرفقين لايخلو من ضعف يسقط به عن درجة الاعتبار ولا يصلح للعمل عليه حتی يقال انه مشتمل علی الزيادة والزيادة يجب قبولها. انتهی۔

او حافظ په فتح الباري (١/٣٥٢) کښې خلاصه د بحث بیان کړیده فرمائی : فان الاحاديث الواردة في صفة التيمم لم يصح منها سوى حديث ابي جهيم وعمار وما عداهما فضعيف او مختلف في رفعه ووقفه والراجح عدم رفعه. فاما حديث ابي جهيم فورد بذكر اليدين مجملا واما حديث عمار فورد بذكر الكفين في الصحيحين وبذكر المرفقين في السنن وفي رواية الى نصف الذراع وفي رواية الى الآباط فاما رواية المرفقين وكذا نصف الذراع ففيهما مقال واما رواية الآباط فقال الشافعي وغيره ان كان ذلك وقع بامر النبي ﷺ فكل تيمم صح للنبي ﷺ بعده فهو ناسخ له وان كان وقع بغير امره فالحجة فيما امر به. انتهى۔

لیکن مونږ وایو : ددې نه بعضې احادیث حسن درجه کښې ګرځي۔ نو دا به حمل شي په تنوع د عباداتو باندې۔ نو دا ټولې طریقې جائز دي۔ سیوا د آخرنۍ طریقې نه۔ خو لیکن دا طریقې مرجوحې دي۔ او دویمه طریقه چه (یوه ضربه الی الکفین) ده راجح ده۔ او په دې کښې احتیاط دې۔ ځکه دا قوي متفق علیه ثابت ده۔ او ضربتین والا احادیث مختلف فیها دي۔ نو په دې کښې رد دې په بعضې احنافو باندې چه وائي : ضربتین باندې عمل کولو سره په ضربه واحده هم عمل راځي، او وائي چه په دې کښې احتیاط دې۔ لیکن دا خطاء وائي۔ وجه د خطائي داده چه احتیاط په هغه څیز کښې وي چه قوي اوصحیح ثابت وي، او هغه احادیث الضربة الواحدة دي۔ لکه دا ټول علماء مني چه احادیث د صحیحینو راجح دي په نورو احادیثو د باقي کتابونو باندې۔

دارنګه کومو علماؤ چه دا وئیلي دي (لکه طحاوي او عینيؒ) چه احادیث د عمارؓ مضطرب دي، نو دهغې جواب هم اوشو چه کوم روایت کښې صرف ضربه واحده اوکفین ذکر دي، هغه صحیح او قوي او باقي ضعیف دي۔ یا موقوف دي او موقوف معارض د مرفوع روایاتو نشي کیدې۔ فتدبر!

اوکوم روایت د عمار کښې چه اوږو پورې تیمم راغلې دې، نو حقیقت دادې چه په ابتداء د اسلام کښې چه حکم د تیمم راغلو نو طریقه لا نه وه بیانه شوې، نو عمارؓ په دې وجه په خپل اجتهاد سره په زمکه باندې رغښتې دې۔ بیا ورته نبي ﷺ بیان اوکړو، کما مرّ۔

دارنګه نورو صحابه کرامو‌ؓ په خپل اجتهاد سره تیمم الی المناکب والآباط کړیدې۔ دا

وجه ده چه روستو عمار بن یاسر رضی الله عنه صرف یوه طریقه بیانوی، چه هغه یوه ضربه اوکفین دی۔ کما فی الصحیحین۔ نو په همدې به عمل کولے شی، نه په نورو طریقو۔ لکه عمارؓ به د نبی ﷺ د وفات نه پس په همدې طریقه فتویٰ ورکوله۔ کما قال الشافعیؒ۔

**٢ - دویم جواب** : امام شافعیؒ دا کړیدے چه که اوګو پورے تیمم وهل د نبی ﷺ په امر ثابت وی او صحیح ثابت شی، نو بیا هم دا منسوخ دے په هغه طریقه چه د نبی ﷺ نه روستو ثابت دی۔ دابه ناسخ د هغه مخکنئ طریقے شی۔

**ګواه از خانه** : علامه عبد الحی لکنویؒ په سعایه (٥١٢/١) کښے فرمائی :

اقول : الأقوىٰ فيه من حيث الدليل : هو الاكتفاء بمسح اليدين الى الرسغين لما ثبت فی روایات حدیث عمار الصحیحة : ان النبی ﷺ علمه کیفیة التیمم، حین بلغه تمعکه فی التراب واکتفى فيه بمسح الوجه والكفين. انتهى بحوالة التحفة (١٣٥/١)۔

یعنے : د دلیل په بناء په تیمم کښے صرف په یوه ضربه باندے دپاره د مخ او لاسونو تر مړوندو اکتفاء کول ډیر زیات قوی قول دے۔

ښه تشریح په تحفة الأحوذی کښے اوګوره چه ټول شبهات ئے رد کړیدی۔ او سعایه کښ علامه عبد الحی الکهنوی پدے باب کښ اعتراضات نقل کړیدی او بیا ئے ډیر ښه جوابات کړیدی کتل ئے پکار دی۔

وكذا فی التحقیقات ص (٩٠) وفتاوی الدین الخالص (٤٢٠/٢)۔

**تنبیه** : په تیمم کښے استیعاب ضروری نه دے، لکه چه بعضے خلق یو خاص کیفیت ورکوی۔ چه درے ګوتے د ښی لاس په لاندے طرف د درے ګوتو د ګس لاس راکاږی تر څنګلو پورے۔ او بیائے بره طرفته آخر سرته رسوی الخ۔ دا طریقه په هیڅ حدیث کښے نه ده ثابت، بلکه سنت ددے په خلاف باندے ثابت دے، کما فی حدیث عمار هذا۔

**ایقاظ** : بعض احناف لکه صاحب د شرح وقایه (٩٨/١) وائی چه که غبار ګوتو مینځ ته داخل نشو نو دریمه ضربه به وهی (فیحتاج الی ضربة ثالثة لذلك) - او حاشیه کښ وائی چه دا قول د امام محمد هم دے۔ نو دا خبره خطاء ده، دین کښ زیادت دے، غلو فی

الدين ده درے ضربے په هيڅ صحيح مرفوع او موقوف حديث کښ نشته او استيعاب هم ضروری نه دے۔

٤ - وَعَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ ﷺ قَالَ : مَرَرْتُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَهُوَ يَبُولُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ حَتَّى قَامَ إِلَى جِدَارٍ فَحَتَّهُ بِعَصًا كَانَتْ مَعَهُ ثُمَّ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى الْجِدَارِ، فَمَسَحَ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَيَّ ). وَلَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيحَيْنِ وَلَا فِي كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَلٰكِنْ ذَكَرَهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَقَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه** : ابو الجهيم بن حارث بن صمةؓ فرمائی : زه په نبی ﷺ باندے په داسے حالت کښے تير شوم چه هغوئ تشے متيازے کولے، نو ما پرے سلام واچولو نو ماته ئے جواب را نه کړو، تردے چه ديوال ته اودريدو، هغه ئے په همسا را اوګرولو چه هغه سره وه، بيا ئے خپل دواړه لاسونه په ديوال کيخودل، او خپل مخ او دواړو لاسونو باندے ئے راخکل۔ بيا ئے ماته د سلام جواب راکړو۔ دا روايت ما نه په صحيحينو کښے اونه د حميدیؒ په کتاب کښے بياموندو، البته په شرح السنه کښے (امام بغویؒ) ذکرکړيدے او ديته ئے حسن وئيلی دی۔

## تعارف : د ابو الجهيم ﷺ :

دده نوم عبد الله دے، خو په کنيه (ابو الجهيم) باندے مشهور دے۔ دا د ابی بن کعبؓ خورئے او مشهور صحابی دے، د معاويةؓ د دور خلافت پورے ژوندے وو۔

**تشريح** : دا حديث دليل دے چه لاسونه په زمکه يا خاوره يالوته باندے کيخودل کافی دی، او وهل د هغے ضروری نه دی، ځکه دلته رسول الله ﷺ وضع اليدين (کيخودل د لاسونو) کړيدی۔ ٢ - دارنګه دليل دے چه تيمم کښے يوه ضربه کول اولیٰ او راجح دی۔ خو دے روايت کښے ذراعين راغلل، نو د ذراعين نه مراد به کفين وی، ځکه چه حافظ ابن حجرؒ فرمائی : د ابو جهيم په صحيح او ثابت روايت کښے لفظ د (مسح يديه) راغلی دے۔ (لکه په فصل ثالث کښ متفق عليه روايت راروان دے) نه د (ذراعيه) ځکه چه

د ذراعين روايت شاذ دے۔ ٢ - دارنګه په دے روايت کښے ابو الحويرث ضعيف راوی دے۔
٣ - او د الله ذکر په طهارت کښے افضل او بهتر دے۔ ٤ - هر وخت اوداسه کښے ګرځيدل د مؤمن صفت دے۔ (لا يحافظ على الوضوء الا مؤمن)۔

**درجة الحديث** : شرح السنه کښے دے حديث ته حسن وئيلے شويدے۔ مګر دا خبره صحيح نه ده۔ بلکه دا حديث ضعيف السند دے۔ وضعفه الالباني۔ ځکه په دے کښے يو شيخ د امام شافعیؒ ابراهيم بن محمد بن ابی يحيی دے هغه د محدثينو په نيز ضعيف دے۔ او د ابراهيم استاذ چه ابو الحويرث دے هغه هم ضعيف متکلم فيه دے۔ دارنګه په مابين د اعرج او ابو الجهيم کښے انقطاع ده۔ عمير راوی ساقط شويدے۔ لکه دا په روايت د بخاری کښے ذکر دی۔ واعله الحافظ فی الفتح (١/٤٤٢-٤٤٣) وقال الثابت فی حديث ابی جهيم ايضا بلفظ يديه لا ذراعيه فانها رواية شاذة)۔

ليکن معنی ددے حديث په صحيحينو کښے موجود ده۔ صرف په دے روايت کښے شلور زيادته دی (١) يو ذراعين ذکر دی (٢) دويم : د الجدار زيادت دے (٣) او ديوال په همسا ګرول (٤) او سلام في حالة البول زيادت دے۔ دا شلور زيادات په صحيحينو کښے نشته، نور باقی روايت موجود دے۔ لکه فصل ثالث کښے به راشی۔

---

## الفصل الثاني - دويم فصل

٥ - عَنْ أَبِیْ ذَرٍّ ﷛ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اِنَّ الصَّعِيْدَ الطَّيِّبَ وُضُوْءُ الْمُسْلِمِ وَاِنْ لَّمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِيْنَ، فَاِذَا وَجَدَ الْمَاءَ فَلْيُمِسَّهُ بَشَرَهُ، فَاِنَّ ذٰلِکَ خَيْرٌ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِیُّ. وَرَوَی النَّسَائِیُّ نَحْوَهُ اِلٰی قَوْلِهٖ عَشْرَ سِنِيْنَ.

**ترجمه** : ابو ذرؓ فرمائی : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلے دے : پاکه خاوره د مسلمان دپاره پاکونکے ده اګرکه لسو کالو پورے اوبه بيانه مومی۔ خو کله ئے چه اوبه بيامونده نو بدن پرے وينځل پکار دی ځکه دا بهتر دی۔ (احمد، ابوداود، ترمذی) او امام نسائیؒ ددے

پشان روايت ذكر كړيدے تر (لسو كالو) لفظ پورے۔

**تشريح** : ابوداود رقم (٣٣٣) كښے ددے حديث سره د ابوذر واقعه ذكر ده۔ دا فرمائی : رسول الله ﷺ ته څه ګډے بزے راجمع شوے نو ما ته ئے اوفرمائيل : اے ابوذرؓ دا ځان سره چرته بانديے ته بوځه ! نو زه ربذے ته لاړم ( بل روايت كښے دی چه زه د اوبو نه وراندے اوم او ما سره زما اهل وو نو ما ته به جنابت رسيدلو او پنځه شپږ ورځو پورے به مے بغير د اوداسه نه مونځ كولو ) نبی عليه السلام ته راغلم، دا خبره مے ورته عرض كړه نو هغه يوے تورے ښځے ته حكم اوكړو هغے په يوه كاسه كښ اوبه راوړے نو د اوبښ شاته شوم او غسل مے اوكړو ( نو ګويا كښ ما د ځان نه غر ګوزار كړو) نو نبی عليه السلام راته دغه ارشاد اوفرمايلو : الصعيد الطيب الخ يعنی داسے حالت كښے اګر كه لسو كالو پورے اوبه نه وی نو ته تيمم وهلے شے۔ بيا د لسو كالو ذكر د تحديد دپاره نه دے صرف د فراخئ د حكم دپاره دے يعنی هر څومره موده چه اوبه نه وی نو تيمم د هغے په ځائے كار وركوی۔

**وُضُوْءُ الْمُسْلِمِ** : تيمم ته ئے اودس ولے اووئيلو ؟ نو وجه دا ده چه دا تشبيه بليغه ده ادات د تشبيه حذف دی ای الصعيد الطيب كوضوء المسلم فی التطهير يعنی خاوره په هغه خاص طريقه استعمالول د مسلمان د اوداسه پشان دی چه پاكی راولی۔

٢- بعض وائی چه وضوء ئے مجازا ذكر كړيدے او مراد طهور دے ای الصعيد طهور المسلم يعنی خاوره مسلمان لره پاكونكے ده خو وضوء ئے ځكه ذكر كړو چه غالبا طهارت او پاكی په اوداسه سره حاصليږی۔ (مرقات)

**فوائد الحديث** : ١- دا حديث دليل دے چه تيمم طهارت مطلقه دے هر قسم مونځ پرے كول جائز دی (اذا لم يجد الماء عشر سنين) نه معلوميږی۔

٢ - تيمم طهارت صغری اوكبرئ دواړو دپاره مشروع او جائز دے۔

٣ - امام مالك او شافعیؒ وائی : كله چه وخت تير شی نو تيمم مات شو هر فرض مانځه ته به جدا جدا تيمم وهی۔ **استدلال** كوی په عمل د ابن عمرؓ باندے چه هغه به هر مانځه ته جدا تيمم وهلو۔ **جواب** : دا مستحب عمل دے خو واجب نه دے۔ ځكه د صحابیؓ په عمل باندے يو شے واجب كيږی نه ۔ او ابن عمرؓ خو به هر مانځه ته اودس هم

کولو، عملاً بالاستحباب۔ اصح داده چه یو تیمم تر هغه وخته پورے کار ورکوی چه ترڅو بے اودسه نشی۔ لکه د اوداسه پشان حکم لری۔ اودا حدیث پرے دلیل دے چه تیمم ته وضوء المسلم وئیلے شویدے۔

امام خطابی فرمائی : یحتج بهذا الحدیث من یری ان للمتیمم ان یجمع بتیممه بین صلوات ذوات عدد وهو مذهب اصحاب الحدیث انتهی۔ مرعات (۲۲۸/۱) ۔

٤ - تیمم قائم مقام د اوداسه دے نو د هغه حکم اخلی، ترڅو چه دلیل قائم نشی په خلاف ددے باندے۔

٥ - د حدیث شان ورود دا وو چه ابو ذرؓ عرض اوکړو : یا رسول الله ! زه په بانډه کښے اوسیږم او چه جنابت راته اورسی او اوبه نه وی نو څه به کوم ؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل : تیمم وهه دا د غسل په ځائے کار ورکوی۔

نو دے نه یوه بله نادره مسئله معلومه شوه چه : یو سړے سفر کښے دے اوده ته یقینی معلومه ده چه اوبه نه ملاویږی نو آیا دا د خپلے ښځے سره جماع کولے شی اوکه نه ؟ نو اصح داده چه دے جماع کولے شی ، او په تیمم به عمل کوی او دا حدیث د ابو ذر پرے دلیل دے ۔کما مر (شرح مسلم : ۱۶۰/۱) ۔ دغه شان حکم د هغه سړی دے چه د اوبو د استعمال نه عاجز وی د مرض د وجے نه، نو هغه له هم د جماع کولو اجازت شته دے، او په دے باره کښے آثار سنن کبری (۲۱٦/۱) کښے امام بیهقیؒ راوړی دی۔

٦ - یو شخص د جنابت یا د بے اودسئ دپاره تیمم اووهلو نو په مانځه کښے دننه اوبه ملاؤ شی نو اودس هم مات شو او مونځ هم مات شو۔ او اعاده به کوی۔ ځکه (فان ذلك خیر لفظ دلیل دے چه اوبه استعمالول خیر دے او خلاف ددے شر دے۔

نو په دغه اوبو به غسل یا اودس کوی بیا به مونځ کوی۔ اوکه مونځ ئے اوکړو روستو اوبه ملاؤ شوے نو اعاده د مانځه مستحب نه ده، لکه دا په حدیث د ابو داود کښے راغلی دی، کما یأتی فی الکتاب۔ دوه کسانو په تیمم مونځ اوکړو بیا اوبه ملاؤ شوے، یو شخص اعاده اوکړه، او بل اونه کړه۔ نو نبی ﷺ هغه شخص ته اوفرمائیل چه اعاده ئے نه وه کړے : (اصبت السنة) تا په سنت طریقه عمل اوکړو۔

٧ – داوبو طلب کول او هغې پسې گرځیدل څومره حد لري؟ نو حد دادې چه د مانځه وخت فوت نشي، تر هغه وخته پورې به طلب کوي. یا که ملگري او قافله ترې تلله نو بیا هم تیمم وهل جواز لري، ځکه قرآن او حدیث کښې (لم یجد) لفظ دې چه اوبه موجودې نه وي، حتی الوسع. نو هله به تیمم وهي، وهذا مذهب البیهقي ایضا (١/٢٣٣).

او ابن عمر رضی الله عنهما به درې میله کښې طلب نه کولو. رواه البیهقی فی السنن الکبری(١/٢٣٣).

نو احناف چه په فقه حنفي کښې دا لیکلي دي چه د یو میل پورې که اوبه نه وي نو تیمم به نه وهي بلکه طلب به کوي او که د یو میل نه زیاتې لرې وي نو بیا به تیمم وهي. دې خبره باندې شرعي دلیل نشته، او تحدید او مقدار د څیزونو به شریعت بیانوي او شریعت کښې د میل خبره نشته.

**وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِيْنَ** : لس کاله موده د تحدید دپاره نه ده، بلکه د کثرت دپاره ده، یعنې که دومره طویل مدت پورې هم اوبه ملاؤ نشوې نو د غسل یا د اوداسه دپاره تیمم وهلې شي، او بیا چه کله دومره اوبه ملاؤ شي چه د غسل یا اودس دپاره کافي کیدې شي او د څکلو دضرورت نه زیاتې وي او دارنګه د هغې په استعمال باندې قادر هم وي نو غسل یا اودس کول پکار دي، په دې صورت کښې به تیمم کول جائز نه وي.

**درجة الحدیث** : رواه الترمذی (١٢٤) باسناد حسن صحیح وصححه الحاکم (١/١٧٦) وابن حبان وابو حاتم وابن القطان والدارقطني والذهبي والنووي وصحح سنده کل من الالباني ورمضان.

---

**٦ – وَعَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ : خَرَجْنَا فِيْ سَفَرٍ فَأَصَابَ رَجُلًا مِنَّا حَجَرٌ فَشَجَّهُ فِيْ رَأْسِهِ فَاحْتَلَمَ فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ : هَلْ تَجِدُوْنَ لِيْ رُخْصَةً فِي التَّيَمُّمِ ؟ قَالُوْا : مَا نَجِدُ لَکَ رُخْصَةً وَأَنْتَ تَقْدِرُ عَلَى الْمَاءِ، فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ ﷺ أُخْبِرَ بِذٰلِکَ، قَالَ : قَتَلُوْهُ قَتَلَهُمُ اللّٰهُ، أَلَا سَأَلُوْا إِذْ لَمْ يَعْلَمُوْا، فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ، إِنَّمَا کَانَ يَكْفِيْهِ أَنْ يَتَيَمَّمَ وَيُعَصِّبَ عَلٰى جُرْحِهٖ خِرْقَةً ثُمَّ يَمْسَحَ عَلَيْهَا،**

وَيَغْسِلَ سَائِرَ جَسَدِهِ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

٧- وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَه عَنْ عَطاءِ بْنِ أَبِيْ رَبَاحٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه** :جابرؓ فرمائي : مونږ په يو سفر كښې اووتو نو مونږ كښې يو سړے په كانړي اولګيدو چه د هغه سرئے زخمي كړو (اتفاقي طور سره) هغه ته د لامبلو حاجت شو (محتلم شو) هغه د ملګرو نه تپوس اوكړو چه تاسو ماله د تيمم كولو رخصت بيا مومئ؟ هغوئ اووئيل : مونږ تا دپاره د تيمم رخصت نه بيامو مو په داسے حال كښې چه ته په اوبو باندے قادر ئے. نو هغه سړي غسل اوكړو او د (يخنئ نه) مړ شو. هر كله چه مونږ نبي ﷺ ته راغلو نو دا واقعه مو ورته بيان كړه. نبي ﷺ اوفرمائيل : خلقو هغه قتل كړو الله دے هغوئ قتل كړي (بيائے اوفرمائيل چه ) هغوئ ته چه كومه خبره معلومه نه وه د هغے تپوس ئے ولے اونه كړو، ځكه چه د ناپوهئ د بيمارئ علاج خو تپوس كول دي. هغه له خو دا كافي وه چه تيمم اوكړي او په خپل زخم باندے يوه ټوټه اوتړي او بيا په هغے باندے مسح اوكړي او باقي بدن اووينځي. (ابوداود) او ابن ماجه دا روايت د عطاء بن ابي رباح په واسطے سره د ابن عباسؓ نه نقل كړيدے.

**تعارف : د عطاء بن ابي رباح** رحمه الله :

دده كنيه ابومحمد المكي ده قريشو كښے د بنو فهر آزاد كرده غلام دے اصل كښے دا د جند د مولدينو نه دے خو په مكه كښے لوئي شويدے او د مكے والو لوئي مفتي وو ثقه، فقيه، فاضل دے ليكن كثير الارسال دے. عطاء د رنګ نه تور، شيړا (كانړے) وو، شل او ګډ وو او روستو ړوند شوے هم وو خو لوئي عالم كثير الحديث وو او د عبد الله بن زبير په ملګرتيا كښے ئے لاس هم پريكړے شوے وو. ابن عباس به فرمائيل : يا اهل مكة تجتمعون الي وعندكم عطاء. ابوحنيفه فرمائي : ما رأيت فيمن لقيت افضل من عطاء . په مكه كښے په سنه (١١٤) كښے د (٨٨) كالو په عمر باندے د رمضان په مياشت كښے وفات شويدے.

**تشريح** : ١ - ډير كرت كم علمي او د مسئلے نه ناواقفتيا ديوے خطرناك مصيبت او واقعے سبب جوړ شي، لكه وئيلے شي چه (نيم طبيب خطره جان - نيمګړے مُلا خطره ئے ايمان) دلته هم كله چه دا شخص په سفر كښے جُنب شو او معذور شو او د خپل عذر په

باره كښې ئې د ملګرو نه تپوس اوكړو چه آيا په داسې حالت كښې چه زما سر زخمي دې او اوبه دې دپاره نقصان ده دي، نو د جنابت لرې كولو دپاره د غسل په ځائې تيمم وهلې شم اوكه نه ؟ نو ملګري د مسئلې نه ناواقف وو، نو په مسئله كښې ئې تشدد اوكړو، او دا خيال ئې اوكړو چه ﴿ فلم تجدوا ماء فتيمموا ﴾ مطلب دادې چه تيمم به صرف په هغه وخت كښې جائز وي چه اوبه نه وي موجود، او دلته خو اوبه موجودې دي. نو دې سړي ته ئې فتوٰى وركړه چه ستا دپاره بالكل تيمم كول جائز نه دي. حالانكه هغوئ په دې خبره نه پوهيدل چه د تيمم وهلو خو صرف يو صورت نه دې، بلكه (١) كله چه اوبه نه وي. (٢) يا اوبه وي خو انسان ددې په استعمالولو باندې قادر نه وي (٣) يا قادر وي خو د هغې په استعمال سره د كوم نقصان او ضرر خدشه او خطره وي. نو په دې ټولو صورتونو كښې تيمم وهلې شي. نو هغه سړي ددې ملګرو په خبره اعتماد اوكړو او په همدې حالت كښې ئې غسل اوكړو، نتيجه داشوه چه اوبه د هغه په زخم كښې شدت پيدا كړو، او د يخنئ موسم وو نو د هغې په وجه وفات شو.

**قَتَلُوْهُ** : رسول الله ﷺ ته چه ددې واقعې خبر اوشو نو وې فرمائيل : دا سړې دوئ قتل كړو. د قتل نسبت ئې دوئ ته ځكه كړيدې چه دوئ غلطه فتوٰى وركړه، او بې تحقيقه مسئله ئې بيان كړه، ليكن رسول الله ﷺ د دوئ نه قصاص او ديت وانخستلو. وجه داده چه دا كسان مفتيان وو، او په مفتي باندې ديت او قصاص نه وي، كله چه فتوٰى خطاء وركړي. البته د بې تحقيقئ په وجه مستحق د ملامتيا او زجر اوتهديد وو. ځكه ورته نبي ﷺ زجرا ښيرې اوكړې (قتلهم الله).

٢ - **قَتَلَهُمُ اللهُ** : دا د نبي ﷺ ښيرې دي، او نبي ﷺ د الله تعالىٰ سره دا لوظ كړې وو، چه زه چا مسلمان ته ښيرې اوكړم نو دا به ته دهغه د پاكئ او د رحمت دپاره سبب ګرځوې.

٣ - **أَلَّا سَأَلُوْا إِذْ لَمْ يَعْلَمُوْا** : مقلدين ددې حديث نه **استدلال** كوي په اثبات د تقليد باندې چه سوال تقليد دې، يعنې دې خلقو تقليد ولې نه كولو چه د عالمانو نه ئې دا مسئله زده كړې وې، بيا به ئې دې ملګري ته بيان كړې وې.

**جواب** : په دې حدیث کښې رد دے په تقلید باندے۔ وجه داده چه دغه صحابي ددے نورو ملګرو تقلید اوکړو، نو څکه مړ هم شو۔ که ده د بل زیات پوهه عالم نه تپوس کړے وے او هغه ورته د تیمم فتویٰ ورکړے وے په دلیل سره، نو دا به ان شاء الله نه مړ کیدلے۔ او دوئ خو ورته د خپل ذهن خبره اوکړه (ما نجد لك) او آیت او حدیث ئے ورته بیان نه کړو۔ نو څکه نبي ﷺ په دوئ باندے رد اوکړو چه کله تاسو ته دلیل نه دے معلوم، نو ولے د خپل ذهن مطابق فتوی ورکوئ؟ اودے صحابي ترے هم د دلیل مطالبه اونه کړه، نو په ځان باندے ئے زحمت راوستلو۔ دا د تقلید د وجے۔

٢ – دویم : په دے حدیث کښې دي (اذ لم يعلموا) یعنې کله چه په قرآن او سنت نه پوهیدلے نو هله به د بل عالم نه تپوس کوے، اوکله چه خپله قرآن او سنت باندے پوهیدلے نو تپوس ته ضرورت نشته۔ نو دا تپوس به د چانه کیږي؟ ضرور د ژوندي نه کیږي، نو پکار ده چه دا سائل مقلد شي د ژوندي عالم، او مقلدین خو دعوئ د امام صاحب د تقلید کوي۔ کوم چه دیارلس سوه کاله مخکښې تیر شویدے۔ نو مدعي یو څه ده او دلیل بل څه دے۔

٣ – دارنګه دا تپوس بیا خاص نه دے د یو عالم پورے، نو د هر جیّد عالم نه تپوس کیدے شي نو پکار ده چه تقلید د ډیرو خلقو اوکړے شي۔ او دوئ خو صرف د امام صاحبؒ پورے تقلید خاص کوي۔

٤ – دارنګه مونږ وایو : چه **سوال** تقلید نه دے بلکه دا تحقیق دے، او تحقیق باندے شریعت امر کړیدے څکه تقلید خو د یو سړي د رائے پسے روانیدلو ته وائي۔ او په سوال کښې د قرآن او سنت متعلق تپوس وي، لکه دے حدیث کښې هم دیته اشاره ده چه سوال به د هغه چانه کولے شي چه په قرآن او حدیث پوهه وي۔ ورنه نفس تپوس خو دے صحابي هم کړے وو، مګر هغه بے دلیله فتویٰ ورکړه۔ نو نبي ﷺ اوفرمائیل : داسے خلقو نه تپوس پکار دے چه دلیل د کتاب او سنت ورسره وي۔ د **تقلید** مسائل ټول **خرافات** او دجل او شیطاني وسوسے دي، چه قرآن او حدیث باندے د عمل کولو رکاوټ جوړوي۔

دا کوم عقل دے چه ټول دین د یو عالم پورے خاص کړے شي او په لکونو علماء

پريخودلے شی !! بيا اهل الحديث ته وائی چه دوئ امامان نه منی، حال دا چه د اسلام په بيشماره علماؤ کښې صرف يو امام راتينګول او نور پريخودل هيڅ د انصاف خبره نه ده۔ او ددے نورو تولو امامانو نه منل دی۔

شايد چه د احنافو په نيز به د امامانو منل دا وی چه د يو امام نه علاوه نورو تولو ته د هغوئ د هرے خبرے جواب ورکړے شی، اوکه هغوئ صحيح خبره هم کوی خو چه د دوئ د امام نه خلاف وی نو د هغے جواب ته کلك ولاړ وی !!

فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ : عِيِّ په کسره د عين او تشديد د ياء سره چاړاتوب او تحير فی الکلام ته وائی، لسان العرب کښې دی چه (العِيّ هو الجهل) معنیٰ ئے داده چه د جهالت شفاء تپوس کول دی۔ يعنے جهل يوه بيماری ده او ددے شفاء په تپوس او تعلم سره حاصليږی۔

اِنَّمَا كَانَ يَكْفِيْهِ : ددے ځائے نه روسته الفاظ صحيح حديث کښې نه دی ثابت (انما شفاء العی) پورے حديث صحيح دے۔ وجه دا ده چه دا حديث دوه سندونه لری کوم چه صحيح سند دے نو هغے کښې دا روستنی الفاظ نشته او کوم چه ضعيف سند دے هغے کښې دا الفاظ شته۔ نو (انما كان يكفيه) نه روستو حديث ضعيف دے۔ په دے کښې زبير بن خريق ضعيف الحديث راوی دے، او په دے روايت کښې متفرد هم دے۔ او زاعیؒ دده نه مخالف راوړيدے . قال الدارقطني وليس بالقوی۔ انظر المرعاة (٢/٢٣٠) والتعليق المغنی (١/١٩٠) والإرواء (١/١٤٢)۔

نو په دے الفاظو کښې مسئله داده چه جمع بين الغسل والتيمم والجبيرة څنګه ده ؟ لکه چه دا د امام شافعیؒ مذهب دے، چه که په اوبو باندے قادر وی، نو باقی بدن به وينځی او په جبيره باندے به مسح کوی۔ اوکه قادر نه وی نو تيمم به وهی، او مسح علی الجبيره به هم اوکړی۔ ٢ – جمهور وائی : جمع بين الغسل والتيمم نشته۔

١ – **دليل** : رسول الله ﷺ امت ته نه ده ښودلے۔

٢ – عقلی دليل : جمع بين المبدل والمبدل منه راځی او دا ناجائز ده۔ ليکن اول دليل قوی دے۔ او دا حديث ضعيف السند دے، كما عرفت۔۔۔۔۔ **صحيح** مسئله داده چه : که

غسل کولے شي نو غسل به اوکړي، اوپه پټئ باندے به مسح اوکړي، اوکه په غسل کولو باندے قادر نه وي نو تیمم به اووهي او په پټئ باندے مسح کول نشته۔

**فرع : في المسائل الخارجية :**

یو سړے د جنابت په حالت کښے دے او دومره اوبه ورسره وي چه صرف اودس پرے کیږي، نه غسل۔ نو آیا دابه تیمم او اودس دواړه جمع کوي اوکه نه ؟

١ – احناف وائی : دواړه به نه جمع کوی، ځکه بیا جمع بین البدل والمبدل منه لازميږي۔

٢ – لیکن تحقیقی قول د حنابله، شوافعو او محدثینو دے چه دواړه به جمع کوی۔

١ – **دليل** : عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه وئیلی دی چه زه په سفر کښے جنب شوم نو اودس او تیمم دواړه مے اوکړل او امامتی مے ورکړه، ملګرو راباندے اعتراض اوکړو، نو نبی ﷺ ته راغلم، دا قصه مے ورته ذکر کړه، نو هغه اوخاندل۔ نو دا تقریری سنت شو۔ (رواه ابوداود رقم (٣٣٥) والدارقطنی (١٧٨/١) مع التعليق المغنی۔

٢ – دویم : په اوداسه سره تخفیف په جنابت کښے راځی، دا وجه ده چه د جنابت په حالت کښے خوب کونکی ته د اوادسه کولو حکم شویدے، دے دپاره چه تخفیف د جنابت راشی، فهو نور علی نور۔

٢ – **دویمه مسئله** : یو سړی سره دومره اوبه دی چه یو لاس یا مخ وغیره دپاره کافی کیږي، او مکمل اودس پرے نه کیږي نو څه به کوی ؟۔

١ – نو د صالح العثيمينؒ فتوٰی داده چه تیمم او اوبه دواړه به جمع کوی۔ ځکه قرآن کریم کښے دیٰ ﴿ فاتقوا الله ما استطعتم ﴾ او دده دومره استطاعت دے۔ او حدیث کښے دی (اذا امرتکم بامر فأتوا منه ما استطعتم ) متفق عليه: نو که بعض اندامونه اووينځی او اوبه ختمے شي نو دا دده استطاعت دے، د البته نه په دے اندازه اوویریدلو۔ لکه دا خبره په المحلی (٢٦١/١) کښے هم ذکر شویده او علامه المجد ابن تیمیه او علامه شوکانی په نیل الاوطار (٣٢٩/١) کښے راجح کړیدے۔

٢ – **تحقیقی قول**: دادے چه جمع نشته، صرف تیمم به وهی، ځکه ده ته مستطیع

نشي وئیلے، بلکه استطاعت هله وي چه کله مکمل اندامونه وینځلے شي، ځکه چه اودس تول یو عمل دے، ځکه ﴿فلم تجدوا ماء﴾ کښے ماء مطلق دی، او صَرف ئے کامل ته کیږي۔ او کاملے اوبه هغه دي چه اندامونه پرے پوره طور اووینځلے شي۔ (کما في المختارات الجلیة : ١/٣٣) لناصر السعديؒ۔

٣ - **دریمه مسئله** : په جبیره (پټۍ) باندے مسح کول واجب دي که نه ؟ په دے کښے اختلاف دے :١ - ائمه اربعه فرمائي : مسح على الجبیره واجب ده۔

**دلائل د وجوب** دادي : ١ - یو دا حدیث الباب دے۔ لیکن دا ضعیف دے۔

٢ - دویم حدیث د ابن ماجه (١/٢١٥) کښے د علیؓ نه نقل دي چه دا فرمائي : ما ته نبي ﷺ حکم اوکړو چه مسح په پټۍ باندے اوکړه (فامرني ان امسح على الجبائر)۔ لیکن دا روایت هم واهي او ضعیف جدا دے۔ (بلوغ المرام) کښے حافظ راوړیدے (وقال رواه ابن ماجة بسند واه جدا)، امام صنعانيؒ په سبل السلام (١/١٥١) کښے فرمائي : په دے کښے عمرو بن خالد الواسطي کذاب راوي دے۔ ابن ابي حاتمؒ ورته بے اصله باطل حدیث وئیلے دے۔ قال النوويؒ : اتفق الحفاظ على ضعف هذا الحدیث۔

٣ - د عبد الله بن عمرؓ نه مرفوعا نقل دي۔ (ان النبي ﷺ کان یمسح على الجبائر) (اخرجه الدارقطني : ١/٢٢٦) - لیکن په دے کښے ابو عماره ضعیف جداً راوي دے، کما قال الدارقطني۔ دا مرفوعا صحیح نه دے۔ لیکن بیهقي (١/٢٢٨) فرمائي : دا د ابن عمرؓ نه صحیح دے موقوفا علیه۔

٤ - **عقلي دلیل** : د پټۍ ځائے وینځل واجب دي، نو مسح د دے په ځائے قائم مقام ده، نو هغه هم واجب ده۔

٢ - امام ابن حزم ظاهريؒ او اهل حدیثؒ فرمائي : مسح على الجبیره مباح ده۔ او واجب نه ده۔ ځکه واجب حکم کول د واجبو پشان قوي دلیل غواړي۔ او په دے باره کښے هیڅ قوي صحیح مرفوع حدیث نشته۔ نو په زوره په ځان یو شے ولے فرض کړو؟ او حال دا چه دا الله رسول نه دي فرمائیلي۔

٢ - **دلیل** : د ځائے وینځل ساقط دي۔ د وجے د عذر نه۔ نو مسح على الجبیره هم

ساقط ده۔ او قیاس ده په تیمم باندې۔ چه هلته ساقط ده۔ نو دلته هم ساقط ده۔

٣ – زمونږ په نیز **راجح** داده چه: په پټو باندې مسح کول افضل او مستحب دی۔ ځکه د ابن عمرؓ نه موقوفا صحیح حدیث ثابت دې۔ اګرچه مرفوع احادیث په کښې ضعیف دی۔ اوقیاس په تیمم باندې صحیح نه دې۔ ځکه چه عباداتو کښې قیاس کول منع دی۔ ځکه دارو مدار د عباداتو په توقیف باندې دې۔

## ٤ – المسئلة الرابعة :

## مسح على الخفين او مسح على الجبيره کښې څه فرق دې ؟

نو دا یو څو فرقونه دی: ١ – مسح علی الخفین دپاره معینه موده ده۔ او مسح علی الجبیره دپاره موده معین مقرر نه ده۔ ٢ – جبیره په یو مخصوص اندام پورې خاص نه ده۔ او مسح علی الخفین په یو اندام پورې خاص ده چه هغه خپې دی

٣ – مسح علی الخفین کښې دا شرط دې چه په طهارت به ئې اچولی وی۔ او په جبیره کښې د مخکښې نه طهارت شرط نه دې۔ د وجې د حرج نه۔

٤ – جبیره باندې مسح په حدث اصغر او اکبر دواړو کښې جائز ده۔ او مسح علی الخفین صرف په حدث اصغر کښې کولې شی۔ نه په حدث اکبر (جنابت) کښې۔ د اشروط په احادیثو کښې ذکر شوی دی۔ والحدیث اسناده ضعیف کما مر فی تفصیل المسئلة.

---

٨ – وَعَنْ أَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ رضي الله عنه قَالَ : خَرَجَ رَجُلَانِ فِیْ سَفَرٍ فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَلَیْسَ مَعَهُمَا مَاءٌ فَتَیَمَّمَا صَعِیْدًا طَیِّبًا، فَصَلَّیَا ثُمَّ وَجَدَا الْمَاءَ فِی الْوَقْتِ، فَأَعَادَ أَحَدُهُمَا الصَّلَاةَ بِوُضُوْءٍ، وَلَمْ یُعِدِ الْآخَرُ، ثُمَّ أَتَیَا رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَذَکَرَا ذٰلِکَ، فَقَالَ لِلَّذِیْ لَمْ یُعِدْ : أَصَبْتَ السُّنَّةَ وَأَجْزَأَتْکَ صَلَاتُکَ، وَقَالَ لِلَّذِیْ تَوَضَّأَ وَأَعَادَ : لَکَ الْأَجْرُ مَرَّتَیْنِ ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالدَّارِمِیُّ. وَرَوَی النَّسَائِیُّ نَحْوَهُ.

٩ - وَقَدْ رَوَى هُوَ وَأَبُوْدَاوُدَ أَيْضًا عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلًا.

**ترجمه** : ابو سعید خدری" فرمائی : دوه سړی په سفر روان شو (په لاره کښې) مونځ وخت شو خو هغوئ سره اوبه نه وې۔ دواړو پاکه خاوره باندې تیمم اوکړو، اومونځ ئې اوکړو (کله چه مخکښې لاړل) نو هغوئ اوبه بیامونده اود مونځ وخت هم باقی وو۔ نو په دوئ کښې یو کس اودس کولو سره مونځ را اوګرځولو۔ او هغه بل مونځ را اونه ګرځولو۔ بیا دا دواړه رسول الله ﷺ ته راغلل او دواړو دا خبره ورته ذکر کړه۔ نو نبی ﷺ هغه کس ته چه هغه مونځ نه وو راګرځولے اوفرمائیل : ته سنت (طریقې) ته اورسیدې او مونځ دې کافی شو، او هغه بل کس ته چه اودس کولو سره ئې مونځ کړے وو اوفرمائیل : ستا دوه اجره اوشو۔ (ابوداود، دارمی) او نسائی ددې پشان روایت نقل کړیدے۔ او امام نسائی او ابوداود د عطاء بن یسار نه مرسلا نقل کړیدے۔

## تعارف : د عطاء بن یسار رحمه الله :

دا ام المؤمنین میمونې رضی الله عنها آزاد کرده غلام دے ابو محمد الهلالی ئې کنیه ده د مدینې اوسیدونکے دے ثقه، فاضل، لوئی واعظ، او عبادت ګذار وو د صغار التابعین نه شمار دے دا په مدینه کښې د مشهور تابعینو نه حساب دے د عبد الله بن عباس نه زیات روایتونه نقل کوی اسکندریه کښې په سنه (٩٤) یا (٩٧) یا (١٠٣) د (٨٤) کالو په عمر وفات شویدے۔ رحمه الله۔

**تشریح** : په تیمم سره چه کوم مونځ اداء شو نو هغه صحیح دے او د مونځ کولو نه روستو که اوبه ملاؤ شی نو د مونځ راګرځولو ضرورت نشته۔ او همدا د سنت موافق مسئله ده۔لکه چه مخکښې هم تیره شوه۔

**فَصَلَّيَا** : دلته یو څو صورتونه دی (١) یو سړی تیمم اووهلو، مونځ ئې لا شروع کړے نه دے چه اوبه پیدا شوې۔ نو عند الجمهور تیمم فاسد شو، ځکه اصل موجود شو نو فرع (تیمم) ته ضرورت نشته۔

٢ - داؤد ظاهری" وائی : تیمم نه دے فاسد ځکه دا عمل باطلول دی ﴿ ولا تبطلوا اعمالکم ﴾ سره منع شویده۔ لیکن اصح داده چه اصل (اوبه) موجود شو نو خلف (تیمم)

تـه ضرورت پاتے نشـو۔ ځکه دا عند الضرورت وو، کله چه ضرورت ختم شو نو تيمم هم ختم شو۔ او دا بطلان د عمل نه دے، بلکه اصل ته رجوع کول دی۔

(۲) **دويم صورت** : مونځ کښے داخل شو او اوبه ورته ملاؤ شوے۔ نو :

۱ – عـنـد الجمهور مونځ دے پوره کړی (۲) امام ابو حنيفهؒ او امام مالكؒ وائی : مونځ او تيمـم بـاطـل دے۔ او اعاده به کوی به د مانځه په اوداسه سره۔ او دا راجح قول دے۔ ځکه قـرآن کښے ﴿فـلـم تـجـدوا ماء﴾ دے او دلته اوبه نه وے موجود، بيا پيدا شوے نو دا عادم د اوبـو نـه دے۔ بلکه واجد د اوبو دے۔ ۲ – مخکښے حديث د ابو ذرؓ کښے تير شو (فاذا وجد الماء فليتق الله وليمس بشرته) نو دلته اوبه پيدا شوے نو اوس حکم دے چه اودس به کوی ۔ قال الشوكانی وهو استدلال صحيح۔ النيل (۱/۲۳۷) ۔

۳ – **دريم صورت** : دادے چـه مـونـځ ئے پـه تيـمـم باندے خلاص کړو، بيا روستـه د مـانـځـه نـه اوبـه پيـدا شوے۔ نـو د جـمهورو او ائمه اربعه په نيز به مونځ نه راګرځوی۔ او مستحب هم نه ده چه راوے ګرځوی۔

۲ – طاوسؒ، عـطـاء، مـکـحـولؒ، ابن سيرينؒ، زهریؒ، او ربيعهؒ وائی : مونځ به ځکه راګرځوی چه پـه وخت کښے ورته اوبه ملاؤ شوے۔ ليکن د دوئ قول ددے حديث خلاف دے، ځکه دلته مونځ نه راګرزونکی ته (اصبت السنة) وئيلے شويدے۔

**سوال** : دادے چـه ددے حـديـث نـه خو دا مـعـلـومـه شوه چه کوم شخص مونځ را اوګرځولو نو د هغه دوه اجره دی، او ته وائے چه دا مستحب هم نه دے۔ ددے څه وجه ده ؟

**جواب** : ددے وجـه داده چـه دا شـخص په دے مسئله باندے نه پو هيدلو چه اعاده کول ضـروری نـه دی، او دا سنت نه دی، بلکه سنت داده چه اعاده اونه کړے شی۔ نو اجتهاد سره ئے داسے عمل اوکړو، نو ځکه ورته دوه اجره ملاويږی۔ اوکله چه تاته پته اولګيده چه سنت عـمـل دادے چه اعاده به نه کوے (اصبت السنة) او بيـا هم ته سره د علم نه ددے خلاف کوے نو ته مبتدع ئے، اجر لا څه چه د عذاب مستحق ئے۔

او دا **دليل** دے ددے خبرے چـه ډير عـمـل لـره اعتبار نشته بلکه د سنتو تابعدارئ له اعتبار دے، لکه يو سړے د سحَر سنت اوږده کوی په دے نيت چه دا وخت د فضيلت دے، او

دا ورته معلومه وی چه سنت داده چه مختصر اوکړے شی، نو دا شخص د سنتو مخالف دے، عمل ئے مردود دے۔

**فَأَعَادَ أَحَدُهُمَا** : دا اعاده دے صحابیؓ اوکړه د اجتهاد په بناء باندے۔ او په داسے مقام کښے اجتهاد کول واجب دی۔

**لَکَ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ** : چاته چه داسے حدیث معلوم شو نو د هغه دپاره اعاده کول نا جائز دی، ځکه ده ته سنت معلوم دے چه نه راګرځول سنت دی، اوکه بیا هم دے اعاده کوی تقلیدا، نو دا حرام دی ځکه مونږ ته نص را اورسیدو، نو ددے په مقابله کښے به د عالم یا صحابی په اجتهاد باندے عمل نشی کیدے، سره د احترام د هغه نه۔او پدے حدیث کښے دا تاویل کول چه دے دوه سړو اوبه موندلے وے پس د وتلو د وخت نه – صحیح ندی ځکه چه دا دحدیث ددے لفظ نه خلاف ده چه فوجدا الماء فی الوقت۔ علاوه لکه دا چه پس د خروج الوقت نه که اوبه ملاو شی نو په طریق اولی به مونځ نه راګرځوی۔

**درجة الحدیث** : رواه ابوداود(٣٣٨) والنسائی (٢١٣/١) والدارقطنی (٢) والحاکم (١٧٩/١) والدارمی (١٩٠/١) وسنده ضعیف فیه عبد الله بن نافع الصائغ وهو ضعیف الحفظ ، و روی النسائی وابوداود روایة عطاء بن یسار مرسلا لکن رواه ابن السکن بسند صحیح موصول عن عمرو بن الحارث وعمیرة بن ابی ناجیة وهما ثقتان فزیادة الثقة مقبولة وله شاهد من حدیث ابن عباس عند اسحق بن راهویة فی مسنده وذکره الالبانی فی صحیح ابی داود (٣٦٥) وصححه الحاکم وقال : هذا صحیح علی شرط الشیخین. فاسناده صحیح۔

## الفصل الثالث - دریم فصل

١٠ – عَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ رضی الله عنه قَالَ : أَقْبَلَ النَّبِيُّ ﷺ مِنْ نَحْوِ بِئْرِ جَمَلٍ فَلَقِيَهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ ﷺ حَتَّى أَقْبَلَ عَلَى الْجِدَارِ، فَمَسَحَ بِوَجْهِهِ وَيَدَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابو جهیم بن حارث بن صمهؓ فرمائی : نبی ﷺ د جمل کوهی د طرفنه مخامخ راغے نو (په لاره کښے) ورسره یو سړے ملاؤ شو او سلام ئے ورته اوکړو، خو نبی

ﷺ ورله جواب ورنه کړو، تردے چه نبی ﷺ ديوال ته متوجه شو او (تيمم ئے اوکړو) مخ او لاسونه ئے مسح کړل بيائے ورته د سلام جواب ورکړو۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشريح** : د رجل نه مراد پخپله ابو الجهيم دے لکه په بل روايت د امام شافعی کښے ددے تصريح راغلے ده۔ چه په هغے داسے الفاظ دی فسلمت عليه۔

حَتّٰی اَقْبَلَ عَلَی الْجِدَارِ : بعضے علماؤ دے نه دا استدلال کړيدے چه په کانړو باندے هم تيمم وهلے کيږی اگرچه غبار پرے نه وی وجه دا ده چه د مدينے ديوالونه د تورو کانړو نه جوړ دی چه په هغے باندے خاوره نه حصاريږی۔ خو صاحب المرعات وائی : ظاهر دا ده چه د مدينے ديوالونه د خاورے نه جوړ دی يا که د کانړو نه وی نو بيا هم احتمال شته چه نبی عليه السلام د کانړو مينځ کښے چه کومه ختُه ده په هغے ئے تيمم وهلے وی ليکن اصح دا ده چه په ديوال باندے هم تيمم وهل جائز دی اگرکه غبار پرے نه وی۔

---

١١ – وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رضی الله عنه اَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ اَنَّهُمْ تَمَسَّحُوْا وَهُوَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ بِالصَّعِيْدِ لِصَلاَةِ الْفَجْرِ فَضَرَبُوْا بِاَكُفِّهِمُ الصَّعِيْدَ ثُمَّ مَسَحُوْا بِوُجُوْهِهِمْ مَسْحَةً وَاحِدَةً، ثُمَّ عَادُوْا فَضَرَبُوْا بِاَكُفِّهِمُ الصَّعِيْدَ مَرَّةً اُخْرٰی فَمَسَحُوْا بِاَيْدِيْهِمْ كُلِّهَا اِلَی الْمَنَاكِبِ وَالْآبَاطِ مِنْ بُطُوْنِ اَيْدِيْهِمْ . رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : عمار بن ياسرؓ نه روايت دے چه دے به دا خبره کوله چه يو څو صحابهؓ د نبی ﷺ سره ملګری وو (داوبو نه موندلو په وجه) د سحر مونځ دپاره هغوئ پاکے خاورے باندے داسے تيمم اوکړو چه اول ئے خپل لاسونه خاوره باندے اووهل او په خپل مخونو ئے راخکل، بيائے په دويم ځل خپل لاسونه په خاوره اووهل او خپل ټول لاسونه تر اوګو او ترخونو پورے ئے مسح کړل د لاسونو د دننه طرف نه۔ (ابوداود)۔

**تشريح** : اِلَی الْمَنَاكِبِ وَالْآبَاطِ : مناکب جمع د منکب ده اوږے ته وائی او آباط جمع د اِبط ده مذکر او مونث دواړو دپاره راځی۔ يعنے د اوږو او ترخونو پورے ئے مسح اورسوله۔ نو دے حديث کښے دوه ضربے راغلے سره د مسح د اوږو او ترخونو۔

خو مونږ دا مخکښې په کیفیاتو د تیمم کښې ذکر کړل چه دا طریقه په ابتداء د اسلام کښې وه۔ لکه چه د اخیره زمونږ د مشائخو شیخ شاه محمد اسحق محدث دهلویؒ هم ذکر کړیده چه دا د صحابوؓ قیاس وو، په ابتداء د اسلام کښې، مخکښې د بیان د نبی ﷺ نه۔ او پس د بیان نه هغوئ کیفیت التیمم او پیژندلو۔ کذا فی المرعاة (٢/٢٣٤). لکه اسحق بن راهویهؒ هم فرمائی : چه عمار بن یاسرؓ په دے حدیث کښې دا نه دی وئیلی چه دا مونږ ته نبی ﷺ حکم کړے وو، بلکه دا د صحابوؓ اجتهاد وو، او د نبی ﷺ نه تیمم د وجه اوکفین راغلے دے۔ دا وجه ده عمار بن یاسرؓ به پس د وفات د نبی ﷺ نه د تیمم کیفیت داسې خودلو چه (ضربة للوجه والكفين) كما مرّ فی حدیثه۔ نو معلومه شوه چه دا روسته طریقه به معتبر او معمول بها وی۔

حافظ ابن حجر په عبارت کښې تیر شویدی چه د عمار دا عمل که په امر د نبی علیه السلام واقع وی نو هر تیمم چه د نبی علیه السلام نه په صحیح سند روستو ثابت شویدے، هغه به ناسخ وی د عمل د عمار دپاره او که بغیر د امر د نبی نه ئے دا عمل کړے وی نو پدے کښې حجت نشته بلکه حجت د پیغمبر په امر کښې دے۔

فتح الباری (١/٣٥٢) شرح السنة (٢/١١٤) کښې امام بغوی فرمائی : هذا حكاية فعلهم لم ينقله عن رسول الله ﷺ كما حكى عمار عن نفسه التمعك فی حال الجنابة فلما سأل النبی ﷺ وامره بالوجه والكفين انتهى اليه واعرض عن فعله۔

**درجة الحديث** : اخرجه ابوداود (٣٢٠) اعله المنذر بالانقطاع لكن وصله النسائی (١/١٦٨) وغيره مختصرا وسنده صحيح ووصله ابوداود ايضا بتمامه وسنده صحيح ايضا. وصححه الالبانی وتبعه الشيخ رمضان۔

* * * *

* * * * * *

# باب الغسل المسنون

یعنې هغه غسلونه چه کول ئې سنت دی۔

**مناسبت** : بعضې د طهارتونو نه غسل کول دی، مخکښې قائم مقام او نائب د اوداسه او غسلِ واجب بیان شو، اوس غسل مستحب بیانوی۔ په دې باب کښې به اغسالِ مستحبه بیانیږی۔ مخکښې اغسالِ واجبه او کیفیت د غسل ذکر شو۔

دا **اغسال مستحبه** په سنت مطهره کښې دولس (١٢) دی، او اجتهادی ډیر دی تقریبا شپاړس غسلونه صاحب د نور الایضاح ذکر کړی دی۔ مراقی الفلاح (٢٥/١)۔

**١ - اول د مستحب** د غسلونو نه : الغسل للاحرام دې۔ لکه ترمذی (١٧١/١) او روستو مشکاة ص (٢٦٣) کښې به هم راشی۔ زید بن ثابت‌رضی الله عنه فرمائی : ما نبی ﷺ اولیدلو چه د احرام دپاره بربنډ شو او غسل ئې اوکړو۔ وسنده صحیح۔

٢ - مکې مکرمې ته د داخلیدو په وخت غسل کول۔ ابن عمر‌رضی الله عنه به په ذی طوی مقام کښې شپه اوکړه او سحَر به ئې غسل او مونځ اوکړو او مکې مکرمې ته به داخل شو، او دا به ئې وئیل چه دا عمل د نبی ﷺ دې۔ (متفق علیه) المشکاة : ١/٢٢٣۔

٣ - د حاجیانو دپاره په ورځ د عرفه باندې غسل کول : علی رضی الله عنه نه ذاذان‌رحمه الله تپوس اوکړو چه هره ورځ غسل کووم ؟ هغه اوفرمائیل : هغه غسل کوه کوم چه مسنون غسل دې چه هغه د جُمعې، عرفې، یوم النحر او یوم الفطر غسل دې۔

(اخرجه البیهقی : ٣/٢٧٨) باسناد صحیح کذا فی الارواء (١/١٧٦)۔

٤ - غسل یوم الفطر۔ ( د وړوکی اختر غسل)۔

٥ - غسل یوم النحر (ابن ماجه رقم : ١٣١٥، البیهقی : ٣/٢٧٨) ۔

ابن عباس‌رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې چه نبی ﷺ به په یوم الفطر او یوم الأضحی کښې غسل کولو۔ لیکن په دې باره کښې حدیثونه ضعیف دی کما قال صاحب المرعات

(٢٣٥/٢) مګر محقق د السيل الجرار (١/٢٩٧ - ٢٩٨) وائي چه پدے باره کښے د ابورافع مرفوع حديث صحيح دے کما في مسند البزار۔ کشف الاستار (١/٣١١)۔

٦ - غسل د جُمعے په ورځ : په دے کښے اختلاف را روان دے۔

٧ - چا چه مړی له غسل ورکړو، هغه به غسل کوی۔ مسند احمد (٢/٢٨٠) کښے د ابو هريرةؓ نه روايت دے (من غسل ميتا فليغتسل) دا أمر د استحباب دپاره دے۔

٨ - د هرے جماع نه روستو غسل کول مستحب دی۔ لکه ابوداود (١/٢٩) کښے دی : ابو رافع فرمائی : نبی ﷺ په خپلو زنانو باندے په يوه شپه کښے اوګرځيدلو، د هرے زنانه سره به ئے غسل کولو۔ کما مرّ۔

٩ - د مستحاضے زنانه هر مانځه ته غسل کول يا ماسپخين او مازيګر دواړو ته۔ يا ماښام او ماسخوتن دواړو دپاره يو غسل کول مستحب دی۔

لکه ابوداود کښے دی چه : ام حبيبةؓ او حمنه بنت جحشؓ ته نبی ﷺ دغه شان حکم ورکړے وو۔ ١٠ - د بے هوشئ نه پس غسل کول : لکه حديث د عائشةؓ کښے دی چه نبی ﷺ باندے درے ځل بے هوشی راغله نو درے ځل ئے غسل اوکړو، نو دا مؤکد سنت دے (متفق عليه)۔

١١ - د مشرك د دفن کولو نه پس غسل کول : لکه نبی ﷺ علی بن ابی طالب ته د ابو طالب په دفن کولو سره د غسل کولو حکم کړے وو، کما في النسائي (١/١١٠) والبيهقي (١/٣٠٤) تمام المنة ص (١٢٢) الارواء (١/١٧٦)۔

١٢ - د اسلام راوړلو په وخت د کافر غسل کول سنت دی۔ لکه حديث د ثمامه بن اثال او قيس بن عاصم کښے دی چه (ما د اسلام اراده اوکړه نو نبی ﷺ راته د غسل حکم اوکړو۔ ليکن دا د جمهورو په نيز سنت دے، او د امام احمدؒ په نيز واجب دے ځکه نبی ﷺ په دے باندے حکم کړيدے۔ لکه روستو راځی۔ دا اغسال صرف مستحب دی۔ د باقی غسلونو په استحباب باندے دليل نشته۔

## الفصل الأول - اول فصل

١ - عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ

فَلْيَغْتَسِلْ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابن عمرؓ وائی : رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمايه : کله چه پتاسو کښې څوك جُمعې مونځ دپاره راځی نو هغه له پکار دی چه غسل اوکړی۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشريح** : اِذَا جَاءَ اَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ :

په دې کښې اختلاف دې چه د **جُمعې** د ورځې **غُسل** د ورځې دپاره دې که د مانځه دپاره دې ؟۔ پدې کښې درې اقوال دی۔

**١ - اول قول** : دادې چه دا غسل د مانځه دپاره دې، او دا شرط دې چه د مانځه سره به نزدې کولې شی او که معمولی شان فاصله راغله نو خير دې۔او دا قول امام مالكؒ (مالكيه) دې او د احنافو نه د ابو يوسفؒ دې۔ ليکن دا مطلب ندې چه د غسل نه بعد پې اودسی مضره ده بلکه غسل قبل الصلاة سنت دې۔

**دليل** : دا حديث د ابن عمرؓ دې چه دلته وائی : کله چه ستاسو نه څوك جُمعې ته راشی نو غسل دې اوکړی۔ نو راتګ خو مانځه ته کيږی، نو غسل هم د مانځه دپاره دې۔ وجه داده چه دا طهارت د مانځه دپاره کيږی۔ نه د ورځې دپاره۔ او دا مراد دې په هغه احاديثو کښې چه يوم الجمعة په کښې ذکر ده۔ يعنې يوم الجمعه للصلاة۔ ځکه دا مطلق دی او مطلق به محمول وی په مقيد باندې پدې مقام کښې۔

**٢ - دويم قول** : دادې چه دا غسل د ورځې دپاره دې خو د مانځه نه مخکښې به کولې شی او نزدې والې شرط ندې او مانځه ته نزدې کول ئې مستحب دی او دا قول د جمهورو دې۔ دليل دادې چه : عام احاديثو کښې لفظ د (يوم الجمعة) راځی او (للصلاة) نه ذکر کيږی ۔ لکه روستو حديثونو کښې راځی (غسل يوم الجمعة واجب) او (من اغتسل يوم الجمعة)۔

٣- او داود ظاهریؒ او ابن حزمؒ وائی چه دا غسل د تولې ورځې دپاره دې او بعد الصلاة هم غسل کولې شی تر غروب الشمس پورې۔ خو دا رأی غلطه ده، بې دليله ده او ابن عبد البرؒ د اجماع دعوی کړيده پدې خبره چه چا د مانځه نه پس غسل اوکړو نو ده غسل د جمعې دپاره اونکړو۔

جمهور وجه دا بيانوي چه دا غسل خو ددے دپاره کولے شي چه خيرې او بدبوياني ختمے شي او مونځ کونکو ته ضرر اونه رسي او دا خو د جمعے نه بعد نه حاصلیږي۔

پدے کښے **راجح قول** د جمهورو دے دليل دا دے چه په احاديثو کښے د جمعے مانځه ته د وختي تللو ترغيب راغلے دے ( ومثل المهجر كالمهدى بدنة ) يا دا قول (من بكر وابتكر) يا دا قول ( من راح الى الجمعة فى الساعة الاولى ) نو كله چه يو مسلمان په اته بجے يا نهه بجے مسجد ته ځي نو ضرور به ئے مخکښے غسل کړے وي ولے که دا غسل مانځه ته نزدے کوي نو بيا خو ترے دا فضيلت د وختي راتللو فوت کيږي۔ او پدے قول کښے آساني ده . والله تعالى اعلم. انظر الدين الخالص (٦/ ١٩٦)۔

## مسئله : آيا د جنابت غسل د جُمعے د غسل دپاره كافى كيږي ؟

يعني د جنابت غسل د جمعے په غسل کښے مدغم کول څنګه دي او ديته مسئله د تداخل فى العبادت وائي۔ پدے کښے دوه قوله دي۔

١ – **قول اول** : دادے چه دواړه به جدا جدا کولے شي او يو په بل کښے داخلول صحيح نه دي او دا قول ابن حزم او حافظ ابن حجر او شيخ الباني غوره کړيدے۔

كذا فى الفتح (٢/ ١٠) والمحلى (٢/٢٨٩) وتمام المنة (١٢٦)۔

دوئ سره پدے قول باندے څه خاص دلائل نشته صرف دا چه د بعض صحابه او تابعينو عمل پيش کوي لکه جابر بن زيد، حسن، قتاده، ابراهيم نخعي، حكم، طاؤس، عطاء، عمرو بن شعيب، زهري، ميمون بن مهران وغيره چه دوئ به د جمعے په ورځ دوه غسلونه کول۔ يو غسل د جنابت او بل غسل د جُمعے د مانځه دپاره لکه دا آثار امام طحاوي په شرح معاني الآثار کښے او علامه ابن الحزم په المحلى (٢٨٩/٢) کښے ذکر کړيدي شيخ الباني وائي د ابوقتاده هم دغه مذهب وو لکه حاكم (٢٨٢/١) کښے د عبد الله بن ابى قتاده اثر راوړيدے چه هغه فرمائي ما باندے پلار داخل شو او ما د جمعے په ورځ غسل کولو ما ته ئے اوفرمائيل د جنابت غسل دے که د جمعے ؟ هغه فرمائي : ما ورته اووئيل : د جنابت۔ هغه راته اوفرمائيل : (اعد غسلا آخر) دوباره بل غسل اوکړه ! څکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائي : چاچه د جمعے په ورځ غسل اوکړو دا

به تر راتلونکې جمعې پورې په طهارت کښې وی ( د ګناهونو نه به پاك وی) وهو اثر صحيح تمام المنه ص (۱۲٦)۔

**۲- قول ثانی** : د اکثر اهل علمو دے چه د جنابت غسل کافی کیږی د جمعې د غسل دپاره۔ او پدے باندے ډیر دلائل دی چه بعضې د هغینه دادی :

(۱)- انما الاعمال بالنيات وانما لامرئ ما نوى - حافظ په فتح البارى کښې فرمائی :

(فيه اشارة الى تعدد المنوى فيجوز التداخل فى بعض العبادات ).

چه پدے حدیث کښې اشاره ده تعدد د منوی ته چه په یو عمل کښې د ډیرو څیزونو نیت اوکړے شی نو معلومیږی چه تداخل په بعض عباداتو کښې جائز دے لکه حدیث دے ( لك أجر الصدقة وأجر القرابة ) نو په انفاق کښې په خپلوانو باندے اجر د صدقې هم دے او اجر د خپلولۍ هم دے۔ یا لکه تداخل د تحية المسجد په فرض مانځه کښې کله چه انسان مسجد ته ننوځی او فرض مونځ ته اقامت اوشی نو تحية المسجد ترے ساقط شو۔

(۲) - مسلم کښې د ابن عباس روایت کښې دی : چه نبی ﷺ په ذو الحليفه کښې شپه اوکړه او په نهه بی بیانو باندے اوګرځیدو ، بیا ئے د جنابت او احرام دپاره (یو) غسل اوکړو۔ كما اشار اليه الحافظ ابن كثير فى البداية (۱۰٤/۳) ۔ نو دا واضح دلیل دے چه نبی علیه السلام د احرام او د جنابت په غسل کښې تداخل کړیدے۔

(۳) متفق علیه حدیث د ابو هریره کښې مرفوعا دی ( من اغتسل غسل الجنابة ...... الحديث ) نو پدے کښې هم اشاره ده چه چا د جمعې په ورځ د جنابت غسل اوکړو نو دا ورله کافی کیږی۔ کما اشار الیه فی المغنی (۲۰۱/۲)۔

(٤) - ترمذی او ابوداود (٥٦/١) کښې د اوسؓ مرفوعا حديث دے ( من غسل يوم الجمعة واغتسل ) اى جامع امرأته واغتسل ۔ یعنی چا د جمعې په ورځ جماع اوکړه او بیا ئے غسل اوکړو) او دا یوه معنی د حديث ده.

کما فی المغنی (۲۰۱/۲) واختاره فی المرعاة (٤٧١/٤) ونقله عن اهل اللغة۔

(٥) - ابن ابی شیبه (۱۰۰/۲) کښې د ابن عمر موقوفا روایت دے ( انه كان يغتسل للجنابة والجمعة غسلاً واحدا ) و رجاله ثقات غير ليث وهو صدوق فى حفظه كلام ۔ نو ابن

عمر د جنابت او د جمعې غسل کښې تداخل کړیدے۔

(٦) صاحب المغنی (٢/٢٠١) پدے باب کښې اجماع نقل کړیده فرمائي :

( لا نعلم فیه خلافا) وری ذلك عن ابن عمر ومجاهد ومکحول ومالك والثوری والاوزاعي والشافعي وابي ثور۔

(٧) د ابو هریره په مرفوع حدیث کښې دی ( ایعجز احدکم ان یجامع اهله فی کل یوم جمعة ؟ فان له اجر اثنین، اجرغسله واجر غسل امرأته ) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان (٣/٩٨) وکذا فی المرعات (٤/٤٧١) ۔ نو پدے روایت کښې د جنابت په غسل باندے اجر ملاؤ شویدے او د جمعې د ورځې جدا غسل ندے ذکر شوے معلومه شوه چه غسل د جنابت کافی کیږی د جمعې د غسل نه۔ نو دا قول په اعتبار د دلیل سره ډیر قوی دے د اول قول نه ۔ والله تعالی اعلم۔

٢ – وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ ﷺ قَالَ :قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابو سعید خدریؓ وائی : رسول الله اوفرمائیل : د جُمعې دورځې غسل کول په هر بالغ شخص باندے واجب دی۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ : **د جُمعې د غسل په حُکم** کښې اختلاف دے چه آیا دا واجب او فرض دے اوکه سنت دے ؟

١ – د امام مالکؒ، امام بخاریؒ، علامه ابن حزمؒ، حسن بصریؒ، داؤدؒ او بعضے نور سلفو زائے داده چه د جُمعې د ورځې غسل واجب دے۔ او دا مذهب د عمر بن الخطابؓ او ابو هریرهؓ، او عمار بن یاسرؓ دے۔ ونصره الشوکانی فی النیل والمبارکفوری فی المرعاة ۔

**دلیل** ددےقول : ١ – یو دا حدیث دے۔ دویم مخکښې حدیث د ابن عمرؓ دے۔

او یو روستو حدیث د ابو هریرهؓ دے (حق علی کل مسلم ان یغتسل فی کل سبعة أیام یوماً) چه دلته ورته واجب یعنی لازم وئیلے شویدے۔ او امر شویدے په غسل باندے والأمر للوجوب۔ او د صحابوؓ آثار په دے دلیل دے چه هغوئ به جمع بین الغسلین کوله په ورځ د جُمعې۔

٢ – ائمه ثلاثه او نور محدثین فرمائی : دا غسل د جُمعې سنت او مستحب دے۔ دلائل د استحباب دادی (١) فصل ثانی کښې حدیث د سمره بن جندبؓ کښې دی (ومن اغتسل فالغسل افضل) نو دلته ورته افضل وئیلے شوی دی۔

طریقه د استدلال : هرکله چه غسل ډیر افضل شو نو اودس ورسره په نفس غوره والی کښې شریك دے نو اکتفاء په نفس اودس هم غوره ده۔ فتح الباری (٢/٤٦٠) عون المعبود (١٤/٢)وسنده حسن کما سیأتی۔

**٢ – دلیل** : حدیث د بخاری (٨٧٨) کتاب الجمعة باب فضل الغسل یوم الجمعة مسلم (٨٤٥) ابوداود (٣٤٠). دے چه د عمر رضی الله عنه خطبے دوران کښې عثمان رضی الله عنه راغلو نو عمر فاروقؓ پرے رد اوکړو چه ولے ناوخته راغلے ؟ هغه اوفرمائیل : زما څه کار وو (فما زدت الا أني توضأت و جئت) صرف اودس مے اوکړو اوراغلم۔ نو عمر فاروقؓ ورته اوفرمائیل : نا وخته هم راغلے او اودس دے هم کړے (غسل دے نه دے کړے) أیا تا د نبی ﷺ نه دا خبره نه ده آوریدلے (اذا راح احدکم الی الجمعة فلیغتسل) یعنی کله څوك پتاسو کښې د جمعې مانځه ته ځی نو غسل دِے اوکړی۔

طریقه د **استدلال** داسے ده : چه که غسل واجب وے، نو عمر فاروقؓ به عثمانؓ واپس کړے وے، لیکن هرکله چه واپس ئے نه کړو اوصحابوؓ پرے رد هم اونه کړو، نو دا اجماع شوه چه غسل مستحب دے، نه واجب۔

دلته قائلین د وجوب وائی : عثمانؓ ئے ځکه واپس نه کړو چه دلته دوه واجبه متعارض شو، یو مونځ د جُمعې، بل غسل۔ نو غسل حکم ساقط شو دمانځه د وجے نه۔ ځکه دا مقصود دے او فوت کیږی۔ او دعمر فاروقؓ رد کول دلیل د وجوب دے۔

لیکن **اصح** خبره داده چه احادیث د وجوب ټول منسوخ شوی دی ۔ او دلیل په دے روستو فصل ثالث کښې د عکرمۀ عن ابن عباسؓ حدیث کښې دی چه ابتداء وخت کښې صحابهؓ فقراء وو، د وړئ جامے به ئے اغوستلے او په شاګانو باندے به ئے کارونه کول او د مسجد چت تنګ وو، نو نبی ﷺ په یوه ګرمه ورځ مسجد ته را اوتلو نو بد بوئی وه، صحابهؓ د بوئی نه ډیر تنګ شو۔ نو نبی ﷺ حکم اوکړو چه غسل کوئ په دے ورځ۔ ابن عباسؓ فرمائی : بیا الله مالداری او فراخی راوستله او غلامان اونیولے شو۔ خلقو به په

خپلو بدنونو كارونه نه كول، او مسجد هم فراخه شو. او هغه بدبويانې ختمې شوې، نو حكم د وجوب منسوخ شو.

دا حديث حسن الاسناد دے، كما يأتي، او ناسخ دے د احاديثو الوجوب دپاره. ځكه علت د وجوب اوس ختم شو.

او دوئم **جواب** كوى ددے حديث الباب نه چه واجب لفظ راغلے دے نو د واجب نه مراد معنىٰ لغوى ده، چه ثابت دے. امام نووىؒ فرمائى: واجب نه جواب دادے چه واجب په معنىٰ د متأكد سره دے، كما يقول الرجل لصاحبه : حقك واجب عليّ أى ثابت (شرح مسلم: ١/٢٧٩) ---- ليكن قائلين د وجوب وائى چه دا معنىٰ اخستل دلته مناسب نه دى، ځكه مستحب هم ثابت دى، نو نبى ﷺ بيا ثابت ولے نه وئيلو. اودوئم جواب كوى د حديث (فالغسل افضل) نه چه دا منافى نه دے د وجوب سره، ځكه واجب هم افضل وى، اوزيادت باندے به به عمل وى. او (من توضأ) والا حديث باندے مونږ عمل كوو په وخت د ضرورت كښے لكه چه عثمانؓ پرے عمل كړيدے.

دارنګه كه وجوب منسوخ هم شى نو سنت مؤكد خو ضرور باقى دے. او دا تحقيق د ابن حزمؒ دے په المحلى (١/٢٦٣) كښے.

او دائے وئيلى دى چه بعضے صحابوؓ به د جُمعے په ورځ دوه غسلونه كول، يو د جنابت اويو د جُمعے. نو دا هم دليل دے چه د جُمعے غسل جدا واجب دے. دارنګه عمر فاروق په منبر باندے اعلان كوى : ( ان رسول الله ﷺ كان يأمر بالغسل ) يعنى رسول الله ﷺ د جمعے د غسل حكم كړيدے. نو دا اجماع د صحابو شوه ځكه هيڅ صحابى په هغه رد اونكړو. دا وجه ده د عمرؓ د وفات نه روستو به ابو هريره، سعد، ابو سعيدخدرى او ابن عباس په وجوب د غسل د جمعے باندے فتوے وركولے دا دليل دے چه دا غسل ضرورى او فرض دے. المحلى (١/٢٥٦).

نو د انصاف تقاضا داده چه مؤكد سنت شى، پريخودل ئے بلا ضرورته نه دى پكار دليل پدے باندے دا دے چه په حديث د مسلم (١/٢٨٣) كښے راغى وسيأتى فى باب الجمعة (١/١٢٢) من المشكاة عن ابى هريرة قال قال رسول الله ﷺ من توضأ فاحسن الوضوء ثم اتى الجمعة فاستمع وانصت، غفر له ما بينه وبين الجمعة وزيادة ثلاثة ايام ومن مس

الحصي فقد لغا) ـ نو پدې حديث کښې اکتفاء صرف په اوداسه شويده ـ او دا صريح دليل دې په عدم فرضيت د غسل کښې حافظ په التلخيص (٦٧/٢) کښې فرمائي :

وهو من اقوى ما يستدل به على عدم فرضية الغسل للجمعة و كذا في نيل الاوطار (٢٧٢/١) . يعنې دا ډير قوي دليل دې چه غسل د جمعې فرض ندې ـ

اګر چه حافظ پدې کښې دا وئيلي دي چه پدې کښې نفي د غسل نشته او په بل روايت کښې من اغتسل لفظ راغلې دې ـ نو دا احتمال شته چه د اودس ذکرد هغه چا په حق کښې وي چه جمعې ته د تللو نه مخکښې ئې غسل کړې وي نو دوباره اودس کولو ته محتاج شوې وي انتهى ـ ـ ـ ـ ـ په دې باندې بله **مسئله** تفريع ده : هغه دا چه يو سړې اعتکاف ته ناست دې نو د غسل دپاره به د جُمعې په ورځ کورته ځي که واجب ورته اووئيلې شي ـ او که سنت ورته اووئيلې شي نو د غسل کولو دپاره به کورته نه ځي ـ او ظاهره داده چه دا سنت مؤکد دې، ځکه نبي ﷺ په اعتکاف کښې سر وينځلو او غسل به ئې نه کولو، يعنې کورته به نه داخليدلو ـ

## مسئله : آيا دا غسل په زنانو باندې شته او که نه ؟

نو صحيح دا ده چه کومه زنانه چه مانځه ته تلل غواړي نو هغه به غسل کوي او کومه نه ځي هغې باندې غسل نشته ـ دليل پدې باندې حديث د صحيح ابن خزيمه (١٢٦/٣) دې ـ عن ابن عمر قال : قال رسول الله ﷺ ( من اتى الجمعة من الرجال و النساء فليغتسل، ومن لم يأتها فليس عليه غسل من الرجال و النساء ) وهو حديث صحيح، ورواه ابن حبان ايضا، واشار اليه الحافظ في الفتح (٢٥٨/٢) ـ

---

٣ – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( حَقٌّ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ أَنْ يَغْتَسِلَ فِيْ كُلِّ سَبْعَةِ أَيَّامٍ يَوْمًا يَغْسِلُ فِيْهِ رَأْسَهُ وَجَسَدَهُ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابو هريره فرمائي : رسول الله ﷺ اوفرمائيل : په هر مسلمان باندې واجب دي چه په هر اوو ورځو کښې په يو ورځ کښې اولامبي، سر په کښې اووينځي او باقي بدن اووينځي ـ (بخاري، مسلم)ـ

**تشریح** : حَقٌّ عَلٰی کُلِّ مُسْلِمٍ : څوك چه د جُمعې غسل واجب ګڼړی هغوئ د حق نه مراد لازم او فرض اخلی، یعنې په هر مسلمان باندې په اووه (۷) ورځو کښې یوه ورځ - یعنې د جُمعې په ورځ - غسل کول حق او لازم دی. لیکن جمهور علماء جواب کوی چه حق په معنیٰ د ثابت سره دې، یعنې دا حکم هم مسلمان دپاره مشروع او مستحب دې. خو ظاهر د دې حدیث دلیل دې په وجوب د غسل یوم الجمعه باندې.

رَأْسَهُ : سرئې د جسد نه روستو ذکر کړو، دیته تخصیص بعد التعمیم وائی، اګرکه جسد کښې سر هم داخل دې خو بیا ئې جدا ذکر کړو دپاره د اهتمام، ځکه په هغه وخت کښې به ئې سر کښې تیل او خطمی استعمالول او اول به ئې سر وینځلو بیا باقی بدن.

---

## الفصل الثانی - دویم فصل

٤ - عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : ( مَنْ تَوَضَّأَ یَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ، وَمَنِ اغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ أَفْضَلُ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِیُّ وَالنَّسَائِیُّ وَالدَّارِمِیُّ.

**ترجمه** : سمره بن جندبؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چاچه د جُمعې په ورځ اودس اوکړو، نو ده په رخصت عمل اوکړو او ډیر ښه دې. اوچاچه غسل اوکړو نو غسل غوره دې. (احمد، ابوداود، ترمذی، نسائی، دارمی).

**تشریح** : فَبِهَا وَنِعْمَتْ : ۱ - ددې یوه معنیٰ ده : فیکتفی بتلك الفعلة التی هی الوضوء ونعمت هذه الخصلة. یعنې په دې اودس دې صرف اکتفاء اوکړی، اودا ښه کار دې. یعنې چا چه صرف په اودس اکتفاء اوکړله نو دا هم شرعا مذموم نه دې.

۲ - یا معنیٰ ده : فبهذه الخصلة او الفعلة - ای الوضوء - ینال الفضل ونعمت الفعلة هذه. یعنې دجُمعې په ورځ صرف په اودس کولو هم فضیلت حاصلیږی . او دا هم ښه کار دې. ۳ - جمهور وائی معنیٰ ده : فبطهارة الوضوء حصل الواجب، ونعمت الطهارة للصلاة هذه. یعنې په صرف اوداسه سره واجب حاصل شو، او دمانځه دپاره دا ښه طهارت دې. او غسل کول واجب نه دی. ٤ - بعضې داسې معنیٰ کوی : فبالرخصة اخذ، ونعمت الرخصة

هذه ـ يعنې صرف اودس کولو سره ده په رخصت عمل اوکړو، او دا رخصت ښه شے دے۔

٥- ازهریؒ معنی کوی : فبالسنة اخذ ونعمت السنة ـ چا چه اودس اوکړو نو په سنت ئے عمل اوکړو او ښه سنت دے دا۔

**وَمَنِ اغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ أَفْضَلُ** : یعنې چاچه اودس او غسل دواړه اوکړل نو دا به غوره وی د هغه چانه چه صرف اودس اوکړی، او دامقصد نه دے چه غسل غوره دے په اودس باندے، ولے څکه چه اودس فرض دے او غسل سنت دے، نو سنت څنګه په فرض باندے افضل کیدے شی ؟ نو دلته په نفس اودس باندے تفضیل د غسل نه دے مراد، بلکه دلته تفضیل الغسل دے په هغه اودس باندے چه غسل ورسره نه وی۔ دا حدیث دلیل د جمهورو دے چه غسل مستحب اوسنت دے۔ واجب او فرض نه دے۔

**درجة الحديث** : اخرجه احمد (٥/١٦، ٢٢) والدارمی (١/٣٦٢) وابوداود (٣٥٤) والترمذی (٤٩٧) وقال حديث حسن والنسائی (٣/٩٤) وسنده حسن او صحيح۔

اګرچه حافظ پدے روایت کښے دوه علته بیان کړیدی یو عنعنه د حسن بصری چه دا مدلس دے دویم په روایت کښے اختلاف شویدے چه بعضے راویانو د حسن بصری او سمره په مینځ کښے بل راوی ذکر کړیدے لیکن تحقیق دا دے چه دا حدیث صحیح دے۔ حسنه الالبانی فی ابی داود رقم (٣٥٤) وصححه الشيخ رمضان لشواهد كثيرة۔

---

**٥ - وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : (مَنْ غَسَّلَ مَيِّتًا فَلْيَغْتَسِلْ) رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه وَزَادَ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ : (وَمَنْ حَمَلَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ).**

**ترجمه** : ابو هریرةؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چاچه مړی له غسل ورکړل نو هغه دے غسل اوکړی۔ (ابن ماجه) او احمد، ترمذی، او ابوداود دا الفاظ زیات نقل کړی دی : (او چاچه مړے یوړلو نو هغه دے اودس اوکړی)۔

**تشريح** : مړی له غسل ورکولو نه پس خپله څکه غسل کول پکار دی چه کیدے شی چه د غسل ورکولو په وخت کښے هغه ته دارے شوے وی۔ لهذا د پاکئ حاصلولو

دپاره لامیل پکار دی۔

**مسئله : چاچه مړے اولمبولوآیا ده دپاره غسل کول واجب دی که نه ؟**

۱ – ابو هريرةؓ، علیؓ، ابن حزمؒ او بعضے سلفوؒ دا مذهب دے چه دا غسل واجب دے۔

**دلیل** : یو دا حدیث دے چه امر شویدے والأمر للوجوب۔

۲ – جمهور علماء وائی : دا امر د ندب او استحباب دپاره دے۔ نه د وجوب دپاره۔ په دے باندے دلیل دادے چه په حدیث دابن عباسؓ کښے مرفوعا دی (ليس عليكم في غسل ميتكم غسل اذا غسلتموه ان ميتكم يموت طاهرا الخ) ۔ یعنے په لمبونکی باندے غسل نشته۔ اخرجه البيهقي (۱/۳۰٦) حافظ ابن حجرؒ فرمائی : دا حدیث حسن الاسناد دے۔ او په دے سره جمع بین الأحادیث راځی چه امر دپاره د استحباب دے۔

۲ – دویم حدیث دابن عمرؓ دے دا فرمائی : مونږ صحابوؓ به مړے لمبول نو بعضو به غسل کولو او بعضو به نه کولو۔ حافظ ابن حجرؒ په التلخیص کښے فرمائی : وسنده صحیح۔ نو دا دلیل دے چه غسل کول واجب نه دی۔

۳ – دارنګه حدیث د موطأ مالك (۱/۱۰٤) ومصنف عبد الرزاق (٦١١٣) ابن ابی شيبه (۳/۲٤۹) کښے د اسماء بنت عمیسؓ واقع ذکر ده چه دے ابو بکر صدیقؓ له غسل ورکړو، او صحابوؓ نه ئے تپوس اوکړو چه زه روژه یم اودا ورځ ډیره یخه ده، نو آیا په ما باندے غسل شته ؟ نو صحابوؓ ورته اوفرمائیل : پتا باندے غسل لازم نه دے۔ انظر احكام الجنائز للعثيمين ص (۸۵) وللالبانی ۔

وَمَنْ حَمَلَهُ : حاشیه کښے وائی : دے نه مراد دادے چه چا اراده د مړی د اوچتولو اوکړه نو مخکښے دے اودس اوکړی، دے دپاره چه د جنازے مونځ ترے قضاء نشی۔ لیکن دا تاویل غلط او فاسد دے۔ ځکه مخکښے اودس کولو ته هیڅ ضرورت نشته، ممکن ده چه روستو اودس اوکړی او جنازے ته حاضر شی۔ بلکه دا چه یو انسان جنازے ته راځی نو غالبا د هغه اودس وی، نو بیا په دے الفاظو کښے جدیده فائده نه ښکاری۔ دارنګه که یو انسان صرف مړے یو ځائے پورے یوسی او بیرته را واپس کیږی یا جنازے کولو نه پس مړے مقبرے پورے یوسی نو آیا هغه دپاره هم اودس کول مخکښے مستحب دی، د هغه په حق

کښې دغه علت نه دے موجود چه هغه مانځه ته ځان تیارول دی۔ خو مقلدین چه په حدیث کښې تاویل اونکړی او خپل مذهب ته ئے راتاؤ نکړی نو ساعت پرے نه تیریږی۔ بلکه ظاهره داده چه دلته هم دا امر د استحباب دے، یعنے چه جنازه دے په اوګو باندے واخسته نو د هغے نه روستو اودس کول بهتر او مستحب دی، او واجب نه دی، یعنے که ته په دے اودس باندے فرض مونځ کوے نو دا به مناسب نه وی۔

او په دے باندے هم دلیل حدیث د ابن عباسؓ دے (فحسبکم ان تغسلوا أیدیکم) ۔ یعنی اودس کول فرض ندی۔

**درجة الحدیث** : اخرجه إحمد (٢/٢٧٢-٤٥٤) وابوداود (٣١٦١) والترمذی (٩٩٣). دا حدیث ترمذی راوړیدے او حسن ئے ورته وئیلی دی۔ حافظ په تلخیص ص (٥٠) کښې فرمائی : دا حدیث په ډیرو طریقو سره نقل دے، د تولو رجع دیته کیږی چه دا حدیث حسن درجه کښې دے۔ وقال الشیخ الالبانی فی تعلیق المشکاة (١/١٦٩) الحق انه حدیث صحیح واعلاله بانه روی عن ابی هریرة موقوفا لیس بشیٔ لان الرفع زیادة من ثقة فوجب قبولهما انتهی. وقال الشیخ رمضان اسناده صحیح (١/٢٤٠)۔

---

٦ – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ: مِنَ الْجَنَابَةِ، وَيَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَمِنَ الْحِجَامَةِ، وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ . رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : عائشةؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به د څلورو څیزونو په وجه د لامبلو حکم ورکولو (١) د جنابت یعنے ناپاکئ نه (٢) جُمعے دپاره (٣) ښکر لګولو یعنے وینه ویستلو سره (٤) مړی لامبولو سره۔ (ابوداود)۔

**تشریح** : كَانَ يَغْتَسِلُ : دلته د یغتسل لفظی معنی نه ده مراد، ولے که لفظی ترجمه واخستے شی نو معنیٰ به دا شی چه نبی ﷺ به ددے څلورو کارونو په وجه غسل کولو، حال دا چه د نبی ﷺ په باره کښې دا هیچرته نه دی ثابت چه هغه مړی لمبولے وی۔ دا کار اګرچه جائز دے مګر بعضے کارونه د یو عظیم المرتبه شخص سره مناسب نه وی، لکه د مسجد په امام باندے مړی لمبول مناسب کار نه دے، په دے وجه دلته به معنیٰ

دا کیږي چه نبي ﷺ به ددے څلورو څیزونو په وجه د غسل او لامبلو حکم کولو۔ (أی یأمر بالاغتسال من هذه الأربع) ۔ او ددے مثال په روایت د ماعز کښے داسے دے (انه رجم ماعزاً) یعنی نبی علیه السلام ماعز لره رجم کړو حال دا چه نبی علیه السلام پخپله هغه ندے رجم کړے بلکه حکم ئے کړے وو چه دا رجم کړئ ( ای أمر برجمه ) ۔

وَمِنَ الْحَجَامَةِ : د ښکر لګولو په وجه غسل کول د هغه چا دپاره مستحب دی چه هغه ښکر اولګوی۔ وجه داده چه په دے سره ګندونه او د وینے کوم څاڅکی چه ورته لګیدلی وی د هغے د صفائی په نیت باندے دِے اولامبی او نظافت حاصلول مستحب کار دے۔ په دے حدیث کښے امر مشترك دے په بعضو کښےوجوب دے لکه جنابت اود جُمعے په ورځ په یوقول کښے۔ او د مړی لمبولو نه روسته او حجامت نه روستو غسل کول سنت او مستحب دی۔

**درجة الحديث** : اخرجه ابوداود (٣٤٨) (٣١٦٠) وسنده علی شرط مسلم لكن فيه مصعب بن شيبة وهو ضعيف عند الجمهور وعن عائشة عن النبي ﷺ قال يغتسل من اربع ..... اخرجه احمد (١٥٢/٦) وابن خزيمة (٢٥٦) وصححه الحاكم (١٦٣/١) وقال صحيح على شرط الشيخين واقره الذهبي ۔

٧ - وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ ﷛ أَنَّهُ أَسْلَمَ فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ ﷺ أَنْ يَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ .

**ترجمه** : قیس بن عاصمؓ نه روایت دے چه ده اسلام قبول کړو نو نبی ﷺ ده حکم اوکړو چه په اوبو اود بیرے په پاڼړو سره اولامبی۔ (ترمذی، ابوداود، نسائی)۔

## تعارف : د قیس بن عاصم ﷛ :

دا صحابی په حلم او صبر سره ډیر مشهور دے۔ د بنی تمیم په وفد کښے په نهم کال باندے نبی ﷺ ته راغلو او اسلام ئے قبول کړو۔ کله چه نبی ﷺ دے اولیدلو نو وے فرمائیل : هذا سید اهل الوبر۔ دا ډیر عاقل، صبرناك، سخی صحابی دے۔ احنف بن قیس ته چا اووئیل : حِلم دے دچانه زده کړے؟ هغه اووئیل : د قیسؓ نه۔ ده په جاهلیت زمانه کښے په خپل ځان باندے شراب حرام کړی وو۔ بصره کښے ئے ځانله یو کور جوړ

کړے وو، په هغے کښے اوسیدو۔ او هلته وفات شویدے۔ دوه دیرش(۳۲) نارینه اولادئے پریښی دی۔

**تشریح** : فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ ﷺ أَنْ يَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ :

داسلام راوړو په وخت غسل کول د امام احمدؒ په نیز واجب دی۔

**دلیل** : یو دا حدیث دے چه نبی ﷺ امر کړیدے۔

۲ – دارنګه حدیث د ابو هریرةؓ کښے دی چه ثمامه اسلام راوړو۔

نو نبی ﷺ امر اوکړو چه دا فلانی باغ ته بوځئ او امر ورته اوکړئ چه غسل اوکړی۔

اخرجه احمد (٢/٢٦٧) والبخاری (٤٦٢) وابوداود(٢٦٧٩) وابن خزیمه (٢٥٣)۔

شوکانیؒ په السیل الجرار (١/١٢٣) کښے فرمائی : د وجوب الغسل حکم ظاهر دے او چاچه دا استدلال کړیدے په عدم وجوب باندے چه نبی ﷺ هرچاته په وخت د اسلام راوړلو کښے حکم د غسل نه دے کړے، نو که چرے د اسلام راوړو په وخت غسل کول واجب وے نو هر چاته به ئے حکم کړے وے چاچه د اسلام قبلولو اراده کولے۔ نو د اخبره خطاء ده ځکه چه دا صحابوؓ کښے معلومه مسئله وه۔ دا وجه ده چه ثمامه اسلام قبول کړو نو لاړو او غسل ئے اوکړو، کما فی الصحیحین۔ اوکله چه بعضو ته حکم اوشو نو دا حکم دے ټولو ته۔ او چاته چه دا حکم نه وی معلوم نو د هغه اسلام قبلول بدون الغسل دا په بل چا باندے حجت نه دے۔ ۲ – جمهور وائی : دا حکم د غسل کولو د استحباب دپاره دے۔ او دلیل ئے مخکښے بیان شو چه نبی ﷺ هر اسلام قبلونکی ته د غسل کولو حکم نه دے فرمائیلے۔ او تا د هغے ردّ هم اوپیژندلو په قول د علامه شوکانیؒ کښے۔ او قول د وجوب راجح دے د ظاهر الأحادیث نه۔

**درجة الحدیث** : اخرجه احمد (٥/٦١) وابوداود (٣٥٥) والترمذی (٦٠٥) والنسائی (١/١٠٩) وابن خزیمة (٢٥٤). امام ترمذیؒ فرمائی : دا حدیث حسن دے، امام ابو داودؒ پرے سکوت کړیدے۔ وحسنه المنذری والحافظ فی الفتح وصححه ابن السکن وابن خزیمة (المسند الجامع (١٤/٥٣٤– رقم ١١٢١٥). وقال الالبانی بعد قول الترمذی قلت بل صحیح فان اسناده صحیح کما بینته فی صحیح ابی داود رقم (٣٥٥). وله شاهد من حدیث عائشة عند البخاری ومسلم وابی داود۔

## الفصل الثالث - دريم فصل

٨ - عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوْا فَقَالُوْا : يَا ابْنَ عَبَّاسٍ ! أَتَرَى الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبًا ؟ قَالَ : لَا، وَلٰكِنَّهُ أَطْهَرُ وَخَيْرٌ لِمَنِ اغْتَسَلَ وَمَنْ لَمْ يَغْتَسِلْ فَلَيْسَ عَلَيْهِ بِوَاجِبٍ. وَسَأُخْبِرُكَ كَيْفَ بَدْءَ الْغُسْلُ. كَانَ النَّاسُ مَجْهُوْدِيْنَ يَلْبَسُوْنَ الصُّوْفَ وَيَعْمَلُوْنَ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ وَكَانَ مَسْجِدُهُمْ ضَيِّقًا مُقَارِبَ السَّقْفِ اِنَّمَا هُوَ عَرِيْشٌ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فِيْ يَوْمٍ حَارٍّ، وَعَرِقَ النَّاسُ فِيْ ذٰلِكَ الصُّوْفِ حَتّٰى ثَارَتْ مِنْهُمْ رِيَاحٌ آذٰى بِذٰلِكَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا، فَلَمَّا وَجَدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ تِلْكَ الرِّيَاحَ قَالَ : أَيُّهَا النَّاسُ! اِذَا كَانَ هٰذَا الْيَوْمُ فَاغْتَسِلُوْا وَلْيَمَسَّ أَحَدُكُمْ أَفْضَلَ مَايَجِدُ مِنْ دُهْنِهٖ وَطِيْبِهٖ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : ثُمَّ جَاءَ اللّٰهُ بِالْخَيْرِ وَلَبِسُوْا غَيْرَ الصُّوْفِ وَكُفُوا الْعَمَلَ وَوُسِّعَ مَسْجِدُهُمْ وَذَهَبَ بَعْضُ الَّذِيْ يُؤْذِيْ بَعْضُهُمْ بَعْضًا مِنَ الْعَرَقِ . رَوَاهُ أَبُوْدَاوٗدَ.

**ترجمه** : عکرمهؓ فرمائي : د عراق څو سړي راغلل او ابن عباسؓ نه ئے تپوس اوکړو چه آيا ته د جُمعے په ورځ غسل واجب (لازم) گنړې ؟ هغه اووئيل : نه، خو د جُمعے په ورځ غسل کول ډيره زياته صفائي اوپاکوالے دے، او کوم سړے چه اولامبي هغه دپاره ډيره غوره ده۔ او څوك چه اونه لامبي نو په ده باندے لامبل واجب نه دي۔ او زه تاسو ته خبر درکوم چه د جُمعے په ورځ د غسل ابتداء ولے اوشوه۔ (يعنے د جُمعے په ورځ غسل په وڅه وجه شروع شو، نو خبره دا وه چه د اسلام د شروع زمانه کښے) خلق په تکليف او غربت کښے وو، دوئ به دوړئ جامے اغوستلے او په خپلو شاګانو به ئے کارونه کول او ددوئ جومات تنګ وو او دهغے چهت ښکته اود قجورو د څانګو وو۔ يو ځل دجُمعے په ورځ چه سخته ګرمي وه نبي ﷺ جومات ته راغے او خلق په دغه وړئ کښے خوله شوی وو تردے چه د دوئ نه داسے بويونه ختل چه په دے سره خلقو يو بل ته تکليف ورکړو، کله چه رسول الله ﷺ دا بويونه محسوس کړل نو ارشاد ئے اوفرمايه : اے خلقو ! کله چه دا ورځ شي نو

تاسو غسل کوئ او په تاسو کښې دے هر يو تن ته چه کوم ښه تيل او خوشبوئی ملاويږی هغه دِے لګوی۔ ابن عباسؓ فرمائی : بيا الله تعالیٰ فراخی راوسته او خلقو د وړئ نه سيوا نورے جامے اچول شروع کړل او (خادمانو د دوئ په ځائے کار کول شروع کړل، او ددوئ جومات فراخه شو او ځينے هغه بدبويانے ختمے شوے چه په هغے سره به دوئ يو بل ته تکليف ورکولو د خولے په وجه ۔ (ابوداود)۔

**تشريح** : وَمَنْ لَمْ يَغْتَسِلْ فَلَيْسَ عَلَيْهِ بِوَاجِبٍ : دا قول د ابن عباسؓ په اجتهاد دے، او نبی ﷺ دا نه دی فرمائيلی چه د جُمعے په ورځ غسل کول منسوخ دی۔

د ابن عباسؓ د قول خلاصه مخکښے تيره شويده، مختصر دا چه ابن عباسؓ د نبی ﷺ د جُمعے د غسل په باره کښے د حکم وجه او علت بيانوی۔ چه صحابهؓ ابتداء د اسلام کښے اکثر فقراء او تنګدسته وو۔ او د وړئ جامے به ئے اغوستلے او په هغے کښے به ئے کارو بار هم کولو او د جُمعے په ورځ به مسجد ته بغير د غسل کولو نه راتلل او مسجد هم تنګ وو، نو په دے حال کښے به خولے شو، او د وړئ د جامو اغوستلو په وجه به د دوئ د بدن نه د خولو بوئی ختلو۔ په دے سره به يو بل ته تکليف رسيدلو۔ نو نبی ﷺ د غسل کولو حکم اوکړو۔ چه کله مسجد ته راځئ نو غسل کوئ چه يو بل ته تکليف اونه رسيږی۔

خو کله چه اسلام کښے مسلمانانو ته فراخی راغله او جامے زياتے شوے نو خولے کمے شوے نو هغه علت چه يو بل ته تکليف رسول وو هغه ختم شو، نو د جُمعے د ورځے د غسل د حکم وجوب هم ختم شو۔ او سنيت ئے باقی پاتے دے د نورو احاديثو په وجه۔ دا خبره چه ابن عباسؓ ذکر کړيده نو دا دده اجتهاد دے۔ او د نبی ﷺ قول ئے نه دے ذکر کړے۔ چه هغه فرمائی د غسل وجوب منسوخ دے۔ بلکه دے علت ته ئے اوکتل چه هرکله علت - يو بل ته ضرر رسول - ختم شو نو د غسل فرضيت هم ختم شو۔ او ممکن ده چه دا اجتهاد د ابن عباسؓ د حق موافق وی۔ ځکه چه نبی ﷺ (فالغسل افضل. او فبها ونعمت) فرمائيلے دے۔ خو سنت مؤکد ضرور دے۔ د نورو دلائلو په وجه او تفصيل ئے مخکښے تير شويدے۔

مَجْهُوْدِيْن : دا د جهد بالفتح نه جوړ دے په معنی د تنګ دست او قحط زده سره۔

عراق : دا هغه ښارونه دی چه د عبادان نه شروع دی او په موصل باندے ختميږی طولاً

او د قادسیه نه تر حُلوان پورې عرضاً دې۔ كذا فى القاموس ۔ عراق مشهور اسلامی ملك دې، کوفه، بصره، او بغداد پکښې مشهور ښارونه دی د دریائې دجله او فرات په ساحل کښې واقع دې۔ د عراق د وجه د تسمیه په باره کښې علامه حموی په معجم البلدان (٤/٩٣-٩٤) کښې مختلف اقوال بیان کړیدی :

١- بعضې وائی عراق د سمندر کنارې ته وائی چونکه عراق د دریائې دجله او فرات په کناره باندې واقع دې پدې وجه ورته عراق وائی۔ ٢- بعضې وائی د عراق معنی : په خبرو کښې برابر والې او استواء ده چونکه د عراق زمکه هم هواره او مستوی ده پدې وجه ورته عراق وائی ٣- بعضې وائی دا د فارسی لفظ (ایراه) نه عراق جوړشویدې۔

حمویؒ وائی : العراق اعدل ارض اللّٰه هواء واصحها مزاجا وماء، فلذلك كان اهل العراق هم اهل العقول الصحيحة والآراء الراجحة والشمائل الظريفة والبراعة فى كل صناعة مع اعتدال الاعضاء وسمرة الالوان ۔ عراق د هواء په اعتبار سره ډیر معتدل دې او د آب وهواء او مزاج په لحاظ ډیر صحتمند ملك دې پدې وجه د عراق خلق سلیم عقلونو والا او راجح رائې والا او ښائسته خصلتونو والا او په هر کار کښې د مهارت مالکان دی، د اندامونو په لحاظ معتدل او غنم رنګی دی۔

**عَرِيْشٌ** : هغه کوټې ته وائی چه انسان د هغې لاندې سورې حاصلوی۔ دلته ترې مراد دا دې چه د مسجد چت د کجورو د پوستکو او پټونو نه جوړ شوې وو۔ بعض وائی معنی دا ده چه د مسجد چت د نورو چتونو په شان پوره نه وو بلکه د یو منا ( چوپال) پشان وو چه خلق پرې د نمر نه ځان سوری ته کوی۔

**كُفُوا** : صیغه د ماضی مجهول ده : اى كفاهم الله باستغنائهم وباعطائهم الخدم ووسع مسجدهم من كل جانب۔ قال ابن حجر ووسعه النبى ﷺ فى آخر عمره۔

**درجة الحديث** : رواه ابو داود (٣٥٣) وسكت عليه وقال الحافظ : حسن اسناده كما مرّ. وحسنه الالبانى (٣٥٣) قال : وصححه الحاكم والذهبى على شرط البخارى وحسنه النووى والعسقلانى وهو الصواب. تعليق المشكاة (١/١٧٠)۔

* * * * * * * * * *

# باب الحیض

**مناسبت** : ۱ – مخکښې عمومي احکام وو چه شامل وو زنانه او نارینه دواړو ته۔ اوس خصوصي احکام د زنانه ؤ بیانوي۔
۲ – دا باب روستو شو ځکه دې کښې د زنانه احکام دي، او زنانه به همیشه د نارینه ؤ نه روستو وي ( أخروهن من حیث اخرهن الله – قاله ابن مسعودؓ )۔

**معنی لغوي د حیض** : حیض په فتحې د حاء سره په لغت کښې جمع، او جریان اوسیلان ته وائي۔ ځکه چه حیض په خاصه موده کښې جمع کیږي او په خاصه موده کښې جاري کیږي۔ مصدر ئې حَیْضًا او مَحَاضًا او مَحِیْضًا راځي۔

**د حیض شرعي معنیٰ** : په اصطلاح د شرع کښې حیض (۱) : هُوَ دَمٌ یَنْفُضُهٗ رَحِمُ امْرَأَةٍ بَالِغَةٍ لا دَاءَ بِهَا ۔ یعنې حیض هغې وینې ته وائي چه د بالغې – پیغلې – زنانه د رحم نه روانیږي چه په هغې باندې څه مرض نه وي او نه د ولادت نه پس وي۔
۲ – بعضې داسې تعریف کوي : جریان دم امرأة في اوقات معلومة من رحمها بعد بلوغها۔ دا هغې ته نزدې دې۔ یعنې د زنانه د رحِم نه وینه روانیدل په خاص اوقاتو کښې پس د بلوغ د هغې نه۔

## د حیض ابتداء د کوم وخت نه شویده:

پدې باره کښې دوه قسمه حدیثونه راغلي دي بعضو کښې راغلي دي چه( هذا شيئ کتبه الله علی بنات آدم) اخرجه البخاري (۱/۳۴۲) في الحیض ومسلم (۱۲۱۱) (۱۱۹) (۱۲۰) او بل روایت کښې لکه امام بخاري تعلیقا (۱/۳۴) ذکر کړیدې وقال بعضهم کان اول ما ارسل الحیض علی بني اسرائیل. حافظ ابن حجر فرمائي امام بخاري اشاره کوي هغه روایت د ابن مسعود ته چه عبد الرزاق په صحیح سند راوړیدې :
کان الرجال والنساء في بني اسرائیل یصلون جمیعا فکانت المرأة تتشوف للرجل فالقی الله علیهن الحیض ومنعهن المساجد . فتح الباري (۱/۳۱۸) یعنې بني اسرائیلو کښې به سړو او ښځو په یو ځائې مونځ کولو نو ښځو به سړو ته ځانونه مخې ته مخې ته کول نو الله

تعالی په هغوی باندې حیض واچولو او (پدې سره ئې) د مساجدو نه منع کړې.

پدې دوه حدیثونو کښې **تطبیق** داسې کیږي:

١- علامه داودیؒ وائي چه دواړو حدیثونو کښې مخالفت نشته ځکه د بني اسرائیلو زنانه هم د آدم علیه السلام لونړه دي نو بناء پدې قول بناتِ آدم عام دې او مراد ترې نه خاص د بنيِ اسرائیلو زنانه دي نو د دوئ نه ابتداء د حیض شویده.

٢- د امام بخاري د قول نه تطبیق داسې معلومیږي چه هغه فرمائي (وقول النبی ﷺ اکثر) حافظ ددې یوه معنی دا کوي (ای اشمل) یعني مرفوع حدیث کښې عموم دې چه بنات آدم په کښې ذکر دي نو دا اسرائیلیات زنانو ته هم شامل دې او د دوئ نه مخکنو ښځو ته هم شامل دې.یا اکثر یعنی اکثر قوة و أکثر شواهد.

حافظ ابن حجر ددې په تائید کښې داسې تحقیق کوي چه ابتداء د حیض د آدم علیه السلام د زمانې نه شروع دې او بنات آدم عام دې بني اسرائیلو ته هم شامل دې خو د بني اسرائیلو تخصیص ځکه اوشو چه په هغوی باندې به د سزاء په طور ډیر راتلو او اوږدیدو به زر به نه ختمیدو. او پدې باندې دلیل د ابن عباس تفسیر دې په (وامرأته قائمة فضحکت) کښې چه هغه وائي ای حاضت یعنی ضحك په معنی د حیض دې معلومه شوه چه د ابراهیم علیه السلام زمانه کښې خو بني اسرائیل نه وو او حیض وو. دا رنګه حاکم او ابن المنذر د ابن عباس نه په صحیح سند نقل کړیدي: چه ابتداء د حیض په حواء باندې راغلو کله چه د جنت نه راکوزه شوه. نو معلومه شوه چه بنات آدم نه د آدم علیه السلام خپلې لونړه دي. ــابن الرفعه فرمائي : وئیلې شویدي چه زمونږ مور حواء چه کله ونه ماته کړه نو الله تعالی ورته اوفرمائیل : لادمینك کما ادمیتها وابتلاها بالحیض هی و جمیع بناتها الی الساعة . کذا فی النسخة الهندیة للمشکاة بتحقیق رمضان (٢٤٢/١).

## د حیض احکام :

د حیض دوه قسمه احکام دي : ١ – یو خارجي احکام چه حائضه به کوم کار کوي او کوم به نه کوي. ٢ – دویم د وینې متعلق احکام دي، نو د وینې او د حیض د مودې متعلق احکام به روسته باب المستحاضة کښې بیانیږي. او خارجي احکام دلته بیانیږي چه بعضې د هغې نه دادي :

۱ - یو حکم دادے چه زنانه ته په حالت د حیض کښے طلاق ورکول حرام دی۔
۲ - که یو ے زنانه سره د خول نه وی شوے نو هغے له قبل الدخول طلاق ورکول جواز لری۔ ۳ - په حالت د حیض کښے واده جائز دے خو جماع کول حرام دی۔
٤ - قرآن کریم راخستے شی که نه؟ په دے کښے اختلاف دے باب مخالطة الجنب کښے تیر شویدے۔ ٥ - حائضه د کعبے نه طواف نشی کولے۔ ٦ - احرام تړلے شی۔
۷ - مسجد ته نشی داخلیدلے۔ ۸ - حائضه سجده د تلاوت کولے شی د محققینو په نیز۔ وجه داده چه دے دپاره تلاوت جائز دے نو په هغے کښے خو به آیت السجده هم راځی نو هغه جائز ده۔ ځکه د سجدے د تلاوت دپاره اودس شرط نه دے اګرکه اودس کول هغے دپاره بهتر دی۔ ۹ - دارنګه د مسجد نه په لاس سره څه شی راخستلے شی۔
۱۰ - مونځ به نه کوی او نه پرے قضاء شته، د روژے قضاء به راوړی۔ دارنګه د خاوند متعلق احکام کتاب کښے راروان دی۔

## الفصل الأول - اول فصل

---

۱ - عَنْ أَنَسٍ رضی الله عنه قَالَ : إِنَّ الْيَهُوْدَ كَانُوْا إِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ فِيْهِمْ لَمْ يُوَاكِلُوْهَا وَلَمْ يُجَامِعُوْهُنَّ فِي الْبُيُوْتِ فَسَأَلَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم النَّبِيَّ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى ﴿ وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ... ﴾. الآيَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم : ( اِصْنَعُوْا كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا النِّكَاحَ فَبَلَغَ ذٰلِكَ الْيَهُوْدَ فَقَالُوْا : مَا يُرِيْدُ هٰذَا الرَّجُلُ أَنْ يَدَعَ مِنْ أَمْرِنَا شَيْئًا إِلَّا خَالَفَنَا فِيْهِ، فَجَاءَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَعَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ فَقَالَا : يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ! إِنَّ الْيَهُوْدَ قَالُوْا كَذَا وَكَذَا، أَفَلَا نُجَامِعُهُنَّ فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم حَتّٰى ظَنَنَّا أَنْ قَدْ وَجَدَ عَلَيْهِمَا، فَخَرَجَا فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم فَأَرْسَلَ فِي آثَارِهِمَا فَسَقَاهُمَا فَعَرَفَا أَنَّهُ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : انس رض فرمائی : یهودو کښے چه به کله د یوے ښځے د حیض ورځے شوے نو هغے خلقو به دهغے سره نه خوراك کولو اونه به ورسره په کورونو کښے شریك اوسیدل۔ نو د نبی صلی الله علیه وسلم صحابو د نبی صلی الله علیه وسلم نه (دے باره کښے) تپوس اوکړو۔ نو الله تعالیٰ (دا آیت)

نازل کړو ﴿ ويسئلونك عن المحيض، الآية ﴾ (يعنې دا خلق تانه د حيض په باره کښې تپوس کوي) --- نبي ﷺ اوفرمائيل : تاسو خپلو ښځو سره د نزديکت نه علاوه نور هر څه کوئ. دا خبره يهودو ته اورسيدله، نو هغوئ اووئيل : دا سړے (يعنې نبي ﷺ) دا اراده لري چه زمونږ په هره خبره کښې زمونږ خلاف کوي. (ديهودو دے خبرے آوريدو سره) دوه صحابه اسيد بن حضير اوعباد بن بشرؓ راغلل او عرض ئې اوکړو : يارسول الله ! يهودو خو دا دا خبره اوکړه، نو آيا مونږ ( ديهودو د ښه مخالفت دپاره) دے حائضه ښځو سره کور والے اونه کړو ؟ (دے آوريدو سره) د رسول الله ﷺ مخ مبارك بدل شو تردے چه زمونږ خيال راغے چه رسول الله ﷺ دے دواړو ته غصه شويدے. دا دواړه صحابه اووتل، نو د دوئ مخے ته د پيئو يوه هديه رسول الله ته راغله، نو رسول الله ﷺ دے دواړو پسے څوك اوليږلو (هغوئ دواړه چه راغلل) نو رسول الله ﷺ دوئ دواړو باندے پئ اوڅښول، نو هغه دواړه پو هه شول چه نبي ﷺ دوئ نه خفه نه دے. (مسلم).

**تشريح** : وَلَمْ يُجَامِعُوْهُنَّ فِي الْبُيُوْتِ : يعنې شريك به ورسره نه کيناستل اونه به ورسره اوسيدل بلکه ځانله به ئې ورله يوه کوټنۍ جوړه کړے وه په هغے کښې به اوسيدله، روټۍ به ئې ورليږله او داسے افراط به ئې کولو.

د (لم يجامعو هن) معنىٰ د جماع کولو نه ده بلکه اختلاط مراد دے.

اِصْنَعُوْا كُلَّ شَيْءٍ اِلَّا النِّكَاحَ : ١ - د حائضے زنانه سره د مباشرت کولو درے صورتونه دی (١) يو دا چه جماع ورسره په فرج کښې اوکړے شي. دا په قرآن او احاديثو سره حرام شوے کار دے. او حلال گنړونکے ئې کافر کيږي.

(٢) دويم صورت دا چه : د نامه نه بره او زنگون نه ښکته مباشرت اوکړے شي، په ښکلولو او په غاړه ورکولو او مسح کولو سره، دا په اتفاق د مسلمانانو سره جائز او حلال کار دے. د منع هيڅ دليل نشته. (٣) دريم صورت دا چه : سيوا د فرج نه ټول بدن نه فائده اخستل. نو په دے کښې اختلاف دے :

١ - امام احمدؒ، امام محمدؒ او يو قول د ابو يوسفؒ، ابن حزمؒ، محدثينؒ، ابراهيم نخعيؒ، اسحٰقؒ، اوزاعيؒ، ثوريؒ، عکرمهؒ او مجاهد رائے داده چه په دے حديث باندے عمل دے او د هرځائے نه فائده اخستل جواز لري (اصنعوا کل شئ الا النکاح - أي الا

موضع الدم) (نووی شرح مسلم : ١٤٢/١)۔

٢ – ائمه ثلاثهؒ، سعید بن المسیبؒ،عطاءؒ، قتادهؒ فرمائی : د نامه لاندے نه تر زنگنونو پورے ترے فائده اخستل حرام دی۔

**دلیل** : حدیث د عائشهؓ او د معاذ بن جبلؓ دے کوم چه روستو را روان دے۔

٢ – حدیث د میمونهؓ کښے دی چه نبی ﷺ به د بعضے بیبیانو نه فائده اخستله تر نیمائی پونډو یا زنگنونو پورے (رواه ابوداود)۔

٣ – مسلم او ابوداود کښے د عائشهؓ قول دے (وأیکم یملك اربه کما کان النبی ﷺ یملك اربه – أی حاجته – مسلم : ١٤١/١) ۔ یعنے که دا جائز شی نو کیدے شی چه انسان د خپل ځان کنټرول اونه کړے شی او جماع کښے واقع شی۔

لیکن راجح داده چه د جمهورو بعضے روایات هم صحیح دی۔ اودا روایت د مسلم (اصنعوا کل شئ الا النکاح) هم صحیح دے۔ خو تطبیق دادے چه د جمهورو په روایاتو کښے د نبی ﷺ دا عمل ذکر دے۔ او همدا افضل ده چه انسان ځان اوساتی۔ دے دپاره چه دا سبب د جماع اونه گرځی لکه د عائشےؓ د قول نه معلومه شوه. نو گناه کښے به واقع شی۔ اوکه یو انسان په ځان کنټرول لری نو بیا ورله د هر ځائے نه فائده اخستل جائز دی، سیوا د فرج نه. او دا حدیث دلیل دے چه هر شے جائز دے، سیوا د جماع نه. او د نبی ﷺ اقتصار په ما فوق الازار باندے محمول دے په استحباب باندے (نووی : ١٤٢/١)۔

★ په دے اختلاف باندے بله نادره فائده مرتبه شوه :

هغه دا چه یو سړے حالت د **حیض** کښے د سفر نه راشی نو دا چه قضاء حاجت کوی نو څه به کوی ؟ نو اصح قول دادے چه ددے سړی دپاره انزال کول په بل ځائے کښے جواز لری، او دا حدیث پرے دلیل دے۔ لیکن دا د افضل خلاف ده۔ څکه د انسان نطفه بے ځایه استعمالیږی، او په دے سره انسان بدنی لحاظ سره خرابیږی۔ ---- او په دے باره کښے ابن أبی شیبه (٩٢/١) باب تړلے دے : باب فی الرجل یجامع امرأته دون الفرج۔ او ډیر آثارئے راوړی دی۔ دارنگه په شرح د مسلم (١٤٣/١) او کشاف القناع (١٩٨/١) رد المحتار (١٩٤/١) سبل السلام (١٠٤/١) کښے ددے مسئلے تفصیل اوگوره۔

**أَفَلَا نُجَامِعُهُنَّ : فائده** : ددے صحابوؓ دا خبره چه مونږ به په حالت د حیض کښے هم

ورسره جماع كوو۔ نو ددې صحابوؓ غرض په دې سره زيات مخالفت كول وو د يهودو۔ خو ليكن دا خبره د شريعت خلاف وه، نو ځكه نبي ﷺ غصه شويدې، نو ددې نه يوه نادره فائده معلومه شوه چه د كفارو، مشركينو او مبتدعينو سره به دومره خلاف او بغض كوې څومره چه د شريعت منشاء وي۔ او دومره حد ته به دا بغض نه رسوى چه د خپل دين په خلاف كښې واقع شي، لكه بعضې خلق په مبتدعينو دومره سختي كوى چه مونځ كول ورپسې مطلقا حرام ګڼړي۔ او بدعتى كافر ګڼړي، نو دا افراط كوى، بلكه د شريعت د اصولو مطابق به ورسره بغض كولې شي۔ لكه بعضې اهل سنت به د شيعه ګانو دومره مخالفت كولو چه هغوئ د دروغو حديثونه جوړ كړي وو چه څوك د عاشوراء په ورځ رانجه اولګوى نو دآينده كال تر دې ورځې پورې به د سترګو شكايت محسوس نكړي ( غنية الطالبين ٢/٥٤، والمنار المنيف ١٢٢ ) ځكه شيعه ګان په دې ورځ غم كوى۔ نو دارنګه مشركانو سره په مخالفت كښې داسې خبره كول چه د هغوئ باباګانو ته كنځل شروع كړي۔ يا مقلدينو سره په مخالفت كښې امامانوؒ ته رد بد او كنځل كول دا تول حرام دي۔ او ددې آيت نه خلاف دي ﴿ ولا يجرمنكم شنآن قوم على ان لا تعتدلوا ، اعدلوا هو اقرب للتقوى ﴾ المائدة آيت (٨).

**فَسَقَاهُمَا** : يعنې دا پئ ئې په دوئ باندې اوڅكول ځكه چه دا د نبي ﷺ عادت مبارك وو چه كله به ئې څوك خفه كړو نو هغه ته به ئې د خوشحالولو دپاره هديه وركوله، او دلته دا خفه كول په دې وجه وو چه ددې صحابوؓ نه اِجْتِهَاداً داسې خبره صادره شوه چه د حكمِ شرعي مخالف وه، اګركه دوئ قصداً مخالفت د حكم شرعي نه كولو، بلكه دا اجتهاد كښې خطائي وه۔

**فائده** : ١ - د يهودو په مخالفت باندې زمونږ دين بناء دې ٢ - په حالت د حيض كښې جماع كول حرام دي ځكه نبي ﷺ غصه شويدې، ٣ - كه چا اجتهادي خطائي اوكړه هغه ته معافي كول پكار دي، ٤ - په اجتهادي خطائي باندې تنقيد كول هم دين دې، چه دا مسئله غلطه ده مثلا، ٥ - د چا د خفه كولو نه روستو هغه ته څه تحفه وركول سنت عمل دې۔

---

٢ - وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ ﷺ مِنْ اِنَاءٍ وَاحِدٍ وَكِلَانَا

جُنُبٌ، وَكَانَ يَأْمُرُنِيْ فَأَتَّزِرُ فَيُبَاشِرُنِيْ وَأَنَا حَائِضٌ وَكَانَ يُخْرِجُ رَأْسَهُ إِلَيَّ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَأَغْسِلُهُ وَأَنَا حَائِضٌ ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : عائشهؓ فرمائي : ما او نبي ﷺ به ديو لوښي نه شريك غسل كولو، په داسې حال كښې چه مونږ دواړه به جنب وو. او (بعضې وخت كښې چه به زه د حيض په حالت كښې ووم نو) نبي ﷺ به ماته حكم كولو چه زه لنګ اوتړم نو ماسره به ئې د حيض په حالت كښې مباشرت كولو (يعنې د نامه دپاسه به ئې راسره بدن لګولو) او نبي ﷺ به ماته سر را بهر كړو په داسې حال كښې چه هغه به اعتكاف كونكے وو نو ما به د هغه سر وينځلو حال دا چه زه به د حيض په حالت كښې ووم. (بخاري، مسلم).

**تشريح** : د عائشېؓ حجره مسجد سره بالكل لګيدلې وه تردې چه د هغې دروازه هم مسجد طرفته كهلاؤ وه، نو نبي ﷺ به چه كله په اعتكاف كښې وو، خپل سر مبارك به ئې ددغه دروازې نه حجرې طرفته را بهر كړو او هلته حجره كښې به عائشهؓ ناسته وه، هغې به د نبي ﷺ سر مبارك وينځلو. دڈې نه معلوميږي چه كه څوك په اعتكاف ناست وي او د خپل جسم څه حصه د مسجد نه بهر اوباسي نو په دې سره اعتكاف نه باطليږي. البته بلا ضرورته د مسجد نه وتلو سره اعتكاف خرابيږي.

**فائده** : ١ - ددې حديث نه ددې آيت تفسير معلوم شو ﴿ ولا تباشروهن وانتم عاكفون في المساجد ﴾ يعنې د مباشرت نه مراد صرف جماع او د هغې دواعي دي، او صرف لاس لګول بغير د شهوت نه دا مباشرت نه دے. نو حرام هم نه دے.

٢ - د حائضې زنانه خوله او بدن پاك دے. ٣ - دحائضې زنانه مسجد ته داخليدل ممنوع دي. ٤ - د ښځې نه خدمت اخستل جائز دي او زنانه له دا كار كول بهتر دي.

٥ - دا حديث د جمهورو دليل دے چه د زنګنونو او نامه ترمينځه حصې نه فائده اخستل جائز نه دي. څكه دلته نبي ﷺ امر كړيدے عائشېؓ ته په لنګ تړلو باندې، لنګ تړلو نه پس به ئې ورسره مباشرت كولو. ليكن دا د نبي كريم ﷺ خپل عمل دے، او مونږ ته ئې اجازت راكړيدے. يا دا محمول دے په استحباب باندې.

---

٣ - وَعَنْهَا قَالَتْ : كُنْتُ أَشْرَبُ وَأَنَا حَائِضٌ ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ ﷺ فَيَضَعُ فَاهُ

عَلٰى مَوْضِعِ فِيَّ فَيَشْرَبُ وَأَتَعَرَّقُ الْعَرَقَ وَأَنَا حَائِضٌ ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ ﷺ فَيَضَعُ فَاهُ عَلٰى مَوْضِعِ فِيَّ ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : عائشۀ فرمائي : ما به د حيض په ورځو كښې اوبه اوڅكلې او بيا به مې هغه (لوښې) نبي ﷺ ته وركړو، نو نبي ﷺ به خپله خله په هغه ځائې كيخودله په كوم ځائې به چه ما خله ايخې وه، او اوبه به ئې څكلې. او كله به ما د حيض په ورځو كښې د هډوكي نه غوښه شوكوله او بيا به مې نبي ﷺ ته وركوله نو هغوئ به خپله خله زما د خلې په ځائې باندې كيخودله. (مسلم).

**تشريح** : نبي ﷺ به دا عمل د دوه وجهو نه كولو (١) يو دا چه د نبي ﷺ د عائشې سره زيات محبت وو (٢) دويم دا چه نبي ﷺ ته د يهودو مخالفت په نظر كښې وو، ځكه چه يهودو به د حائضې زنانه سره تعلقات اوخوراك څښاك نه كولو. او دې طرفته نبي ﷺ د هغې د اوبو څكلو په ځائې باندې خوله ګدى او د هغې هډوكي نه خوراك كوى كوم نه چه عائشې خوراك كړيدې.

**وَأَتَعَرَّقُ الْعَرْقَ** : عرق : په فتحه د عين او سكون د راء هغه هډوكي ته وائي چه څه غوښه پرې پاتې وى لكه ديته عُراق بضم العين هم وائي مقامات حريرى كښې دى (وأغراه عدم العُراق بتطليق العراق). او تعرق په غاښونو باندې غوښه شوكولو ته وائي.

**فوائد الحديث** : ١ - د ښځې او خاوند ترمينځه آزادي وى ځكه عائشې اوبه مخكښې څكلى دى د نبي ﷺ نه، او دا بې ادبي نه ده.

٢ - غوښه په غاښونو شكول سنت عمل دې، او دا بعينه تهذيب دې او فائده ده په كښې. او په لاس باندې شكول سنت نه دى.

٣ - د حائضې سره خوراك څښاك كول جائز دى.

٤ - د عائشې مقصد ددې حديث نه يو خو دغه مسئله واضح كول دى چه د حائضې سره تعلقات لرل جائز دى. ٢ - بل د خپل محبت او نيازبين توب خودل دى چه زه نبي ﷺ ته دومره ګرانه ووم چه مانه به ئې په هيڅ حالت كښې نفرت نه كولو.

---

٤ - وَعَنْهَا : قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَتَّكِئُ فِيْ حِجْرِيْ وَأَنَا حَائِضٌ ثُمَّ يَقْرَأُ

الْقُرْآنَ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : عائشةٌ فرمائي : نبي ﷺ به زما په غيږه كښې تكيه لګوله اوزه به حائضه ووم، بيا به ئې قرآن لوستلو. (بخاري، مسلم).

**تشريح** : يتكئ في حجري : دے حديث نه هم دا خبره واضحه كيږي چه حائضه ښځه ظاهري طور سره پاكه ده د هغې د ناپاكئ حكم صرف حكماً دے. كه حائضه ښځه ظاهرا پاكه نه وے او د هغې د بدن اعضاء نجس وے نو نبي عليه السلام به عائشےؓ باندے په حالت د حيض د هغې كښې تكيه نه وهله.

**فوائد** : ١ - په تكيه باندے قرآن لوستل جائز دي، ليكن بے احترامي ده. يو حديث كښې دي ( يا اهل القرآن لا تتوسدوا القرآن) وسيأتي في فضائل القرآن . يوه معنى ددے داده چه اے قرآن والو ! قرآن ته تكيه مه وهئ په وخت د تلاوت كولو كښې. نو د افضل نه خلاف كار دے. خو دا هله چه قرآن لاس كښې وي. او هرچه قرآن په يادو لوستل دي نو په هر حالت كښې جائز دي اتفاقاً. لكه چه دلته نبي ﷺ په يادو تلاوت فرمائيلے دے.

٢ - دنجاست په خوا كښې قرآن لوستل جائز دي خو كله چه نجاست پټ وي لكه حيض پټ دے، او دلته رسول الله ﷺ د عائشےؓ په غيږه كښې ددے د حيض په حالت كښې قرآن لوستلے دے. كما قاله النووي. ٣ - دے نه د رسول الله ﷺ د قرآن سره محبت معلوميږي چه په داسے حالت كښې هم قرآن لولي.

٤ - د حائضے بدن اوجامے پاكے دي كله چه څه نجاست ورته نه وي لګيدلے .

## مقارنة بين الاديان الثلثة :

ددے حديث نه د اسلام عدل او وسطيت معلوم شو، ځكه چه يهودو به حائضه ښځه پليته نجسه ګڼړله نو د ځانه به ئې جدا كمره كښې ساتله او خوا ته به نه ورتلل د هغې بدن او جامے او بستره او هر څه به ئې پليت ګڼړل خوراك څكاك او جماع به ئې ورسره نه كوله. نو ډير افراط به ئې كولو. د انسانيت نظر به ئې ورته نكولو.

د دوئ په خلاف نصارى (عيسيانو ) به ډير تفريط او نقصان كولو چه په حالت د حيض كښې به ئې جماع هم ورسره كوله نو ددے پليتئ نه به ئې ځان نه ساتلو.

او هر چه اسلام دے نو دا متوسط دے بين الغلو والتفريط او د عدل دين دے نو صرف

نجاست ئے په خاص اندام باندے بند کړيدے چه جماع ورسره حرامه ده نور هرڅه ورسره جائز دی، او حائضه پدے حالت کښے هم همغه ښځه ده کوم چه مخکښې وه صرف جماع ورسره حرامه ده د وجه د ډيرو ضررونو نه۔ کما سيأتی بيانها۔

---

٥ – وَعَنهَا قَالَتْ : قَالَ النَّبِيُّ ﷺ نَاوِلِيْنِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَقُلْتُ : اِنِّيْ حَائِضٌ فَقَالَ : اِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِيْ يَدِكِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : عائشه ؓ فرمائی : نبی ﷺ اوفرمائيل : د جومات نه ماله بزکے (پوزے) راکړه، نو مابه عرض اوکړو: زه خو د حيض په حالت کښے يم؟ (نو جومات ته څنګه لاس دننه کړم؟) نبی ﷺ اوفرمائيل : ستا حيض خو ستا په لاس کښے نه دے۔ (مسلم)۔

**تشريح** : نَاوِلِيْنِي الْخُمْرَةَ : خمره بضم الخاء : هغه بزکی ته وائی چه صرف تندے پرے لګيږی، اوکله کله په عام بزکی باندے ئے هم اطلاق کيږی چه انسان په هغے باندے کينی او مونځ پرے کوی۔

**مسئله** : ١ – په زمکه باندے مونځ کول مطلقاً بهتر او افضل دی۔

٢ – او په داسے څيز باندے مونځ کول جائز نه دی چه سر زمکے ته نه رسوی، لکه اسپنج – فوم – او پيړه کمبل اوبستره وغيره۔

٣ – اوکه سر زمکے ته رسيږی لکه جانماز، بزکے، څادر وغيره نو ددے حکم دادے چه بزکی باندے خو جواز لری ځکه د نبی ﷺ عمل دليل دے۔ او هر چه جانماز او څادر وغيره دی نو دا د نبی ﷺ نه نه دی نقل چه مونځ ئے پرے کړے وی، مګر په سخته ګرمۍ کښے به صحابو ؓ د نبی ﷺ سره په جامه باندے سجده کوله، لکه نستونړی وغيره باندے، لکه انس بن مالك ؓ فرمائيلی دی (كذا فی البخاری : ١/٥٥، وسيأتی بعد ورقة من المشكاة) د ضرورت په بناء باندے په جانماز، څادر وغيره باندے مونځ کول جائز دی، او په غير د ضرورت نه په دے څيزونو باندے مونځ کول نه دی پکار، ځکه چه نبی ﷺ به تندے په زمکه لګولو لکه په مسجد نبوی کښے به په خاورو او کاڼړو باندے سجده کوله، او په دے کښے ډيره خشوع او عاجزی راځی (كذا فی فتاوی الدين الخالص : ٣/٣٩٦).

امام مالك ؓ ورته بدعت وئيلے دے۔ علامه ابن تيمية ؒ په مجموعة الفتاوی (٢٢/١٦٣)

کښې د عبد الرحمن بن مهدیؒ عالم اوفقیه العراق واقعه ذکر کړیده چه ده په مسجد نبوی ﷺ کښې په څادر مونځ اوکړو، امام مالكؒ جیل ته واچولو او ورته ئې اووئیل : (أما علمت ان بسط السجادة فی مسجدنا هذا بدعة ؟) یعنې تاته دا نه ده معلومه چه مسجد کښې جانماز، څادر غوړول بدعت دې ؟۔ ۲ – لیکن نور علماء وائی : په دې ځیزونو باندې مونځ کول جائز دی، خو د افضلیت خلاف دی، کما تقدم۔

مِنَ الْمَسْجِدِ : دا متعلق دې د قال پورې، یعنی قال لی النبی ﷺ : من المسجد۔ یعنې نبی ﷺ د مسجد نه ماته دا خبره اوکړه۔ نو مطلب دا شو چه بزګې (پوزې) په حجره کښې وو او نبی علیه السلام په مسجد کښې وو۔

۲ – علامه سندهیؒ وائی : ظاهر داده چه دا متعلق دې د (ناولینی) سره ۔ نو مطلب دا شو چه بزګې د حجرې دروازې ته نزدې پروت وو او نبی علیه السلام په حجره کښې وو، عائشېؓ ته ئې اوفرمائیل : لاس اوږد کړه، بزګې راواخله !۔نو عائشې لاس را اوویستو او بزګې ئې د مسجد نه را اوچت کړو۔

اِنَّ حَیْضَتَكِ : دا په کسره د حاء سره هغه حالت ته وائی چه حائضه سره لازم وی چه هغه تجنب او جدائی ده یعنی د مسجد نه لاس جدا ساتل لازم ندی او په فتحه د حاء سره وینه د حیض ته وائی یعنی وینه خو ستا په لاس کښې نشته۔ دلته دواړه جائز دی۔

---

٦ – وَعَنْ مَیْمُوْنَةَ قَالَتْ : کَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ یُصَلِّیْ فِیْ مِرْطٍ بَعْضُهٗ عَلَیَّ وَبَعْضُهٗ عَلَیْهِ وَأَنَا حَائِضٌ ۔ مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

**ترجمه** : میمونهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ په یو داسې څادر کښې مونځ کولو چه د هغې ځینې حصه به په ما او ځینې په هغه پرته وه او زه به د حیض په حالت کښې ووم۔ (بخاری، مسلم)۔

**تشریح** : ۱ – : حائضه باندې جامه پرته ده هغې نه سرې په مانځه کښې اولګی نو خیر دې، ځکه د حائضې ظاهری بدن پاك دې۔

۲ – مس المرأه باندې اودس نه ماتیږی، وقد سبق تفصیله فی باب نواقض الوضوء۔

مِرْطٍ : مرط هغه څادر او شړئ ته وائی چه د وړئ یا وریښمو نه جوړ وی، او ددې نه به

ئے څادر او لنګونه جوړول۔

## الفصل الثاني - دويم فصل

٧ - عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (مَنْ أَتٰى حَائِضًا أَوِ امْرَأَةً فِيْ دُبُرِهَا أَوْكَاهِنًا فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجه وَالدَّارِمِيُّ وَفِيْ رِوَايَتِهِمَا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُوْلُ فَقَدْ كَفَرَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : لَا نَعْرِفُ هٰذَا الْحَدِيْثَ، إِلَّا مِنْ حَكِيْمِ الْأَثْرَمِ عَنْ أَبِيْ تَمِيْمَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ .

**ترجمه** : ابو هريرهؓ فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دے : کوم سړي چه د حيض په ورځو کښے ښځے سره نزديکت اوکړو يائے خپلے ښځے سره په شا طرف کښے بد فعلي اوکړه، يا کاهن (ترويتي) ته ( د غيبو خبرو تپوسلو دپاره) ورغے، نو دے سړي په هغه څه باندے کفر اوکړو چه په محمد ﷺ باندے نازل شويدے۔ (ترمذي، ابن ماجه، دارمي) اود ابن ماجه او دارمي په روايت کښے دا الفاظ هم دي چه د کاهن خبره ئے رشتينے اوګڼړله نو دے سړي کفر اوکړو۔ او امام ترمذيؒ فرمائيلي دي : دا حديث مونږ نه پيژنو مګر د حکيم الأثرم نه چه د ابو تميمه په واسطے سره د ابو هريرهؓ نه نقل کوي۔

**تشريح** : دلته نبي ﷺ د درے واړو خبرويو حکم کړيدے چه ( فَقَدْ كَفَرَ ) يعنے دا کارونه چه چا اوکړل کافر شو، ليکن دا په بعضو کښے دے، چه کاهن باندے تصديق کول دي، او هرچه حيض حالت کښے جماع کول، يا دُبر کښے جماع کول دي، نو که دا حلال ګڼړي نو کافر دے، ځکه دا د الله تعالىٰ بيعزتي کول دي۔ دهغه په مقابله کښے اودريدل دي۔ چه الله تعالىٰ ورته حرام وائي او دے ورته حلال۔اوکه حلال ئے نه ګڼړي نو بيا د اهل السنة په نيز کافر نه دے، ځکه نبي ﷺ د حيض په حالت کښے جماع کولو سره کفاره بيان کړيده چه هغه نصف دينار دے۔ نوکه دا کفر وے نو بيا کفارے ته څه ضرورت دے ؟۔ البته خوارج ورته کافر وائي۔خو غلط وائي۔

اوس که ته **سوال** اوکړے چه دلته رسول الله ﷺ ورته کفر وئيلے دے او حال دا چه تا اووئيل : دا نه کافر کيږي ؟۔ **جواب** : دلته د کفر معنىٰ حقيقي نه ده مراد دوجے د نورو

دلائلو نه بلکه دا کفر دون کفر دے، یعنے په ګناه کبیره باندے هم د کفر اطلاق کیږی. ځکه په دے کښے د کافرانو سره مشابهت دے او د کافرانو عمل دے. ځکه زنا لوئی شے دے په هغے نه کافر کیږی نو په حالت د حیض کښے په جماع سره په طریقه اولیٰ نه کافر کیږی.

٢ – امام ترمذیؒ جواب کوی چه داسے احادیث کله راشی نو د هغے مطلب تغلیظ او تشدید وی په دے کارونو کښے، او حقیقت مراد نه وی.

٣ – یا د کفر نه مراد کفران النعمت دے، ناشکری ئے اوکړه د الله تعالیٰ د نعمت.

٣ – (ف) او د ساحر او کاهن خواته ورتلل دوه قسمه دی، که د سیل دپاره ورغے نو څلویښتو ورځو پورے ئے مونځ نه قبلیږی. او که چرے تصدیق ئے اوکړی او خبره ئے رشتینے اوګڼړی، نو بیا کافر کیږی.

**کَاهِنًا** : کاهن هغه شخص ته وائی چه د آینده واقعاتو خبر ورکوی چه مثلا وائی صبا له به دا کار کیږی. ٢ – نجومی دیته وائی چه د ستورو په مدد سره خبرونه ورکوی. د خلقو طالع معلوموی د ستورو په ذریعه فالګر ورته هم وائی.

**درجة الحديث** : رواه الترمذی باسناد فیه مقال : لیکن دا حدیث حسن یا صحیح دے، لکه امام نسائیؒ، ابوداودؒ، ابن حبانؒ، ابن المدینیؒ ورته صحیح وئیلے دے، په روایت د ابن أبی شیبه د حکیم الأثرم نه. وصححه الالبانی فی صحیح الترمذی (١/١٣٥) وقال الشیخ رمضان فی تعلیق المشکاة (١/٢٤٤) واسناده صحیح اخرجه احمد (٢/٤٠٨-٤٧٦) والدارمی (١/٢٥٩) وابوداود (٣٩٠٤).

---

**٨ – وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ ﷺ قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! مَا يَحِلُّ لِيْ مِنِ امْرَأَتِيْ وَهِيَ حَائِضٌ قَالَ : مَا فَوْقَ الْإِزَارِ وَالتَّعَفُّفُ عَنْ ذٰلِكَ أَفْضَلُ). رَوَاهُ رَزِيْنٌ. وَقَالَ مُحْيِ السُّنَّةِ : اِسْنَادُهُ لَيْسَ بِقَوِيٍّ.**

**ترجمه** : معاذ بن جبلؓ فرمائی : ما عرض اوکړو : یا رسول الله ! ماله د خپلے بی بی نه د هغے د حیض په ورځو کښے څه حلال دی ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : د لنګ دپاسه حصه، خو ددے نه هم ځان ساتل غوره دی. (رزین) محیی السنه فرمائی : ددے اسناد قوی نه دے.

**تشریح** : دا حدیث ضعیف دے، معارض نشی جوړیدے د حدیث (اصنعوا کل شیٔ الا النکاح) سره۔ ځکه هغے کښے اجازت دے مطلقا، سیوا د محل النجاست نه۔ او په دے روایت کښے د ما تحت الازار نه فائده اخستل حرام خودل شوی دی۔ علامه عراقیؒ فرمائی : ددے حدیث ضعف ددے روستو لفظ (وَالتَّعَفُّفُ عَنْ ذٰلِکَ أَفْضَلُ) نه هم معلومیږی، ځکه چه دا مخالف دے د هغه څه چه د نبی ﷺ نه منقول دے چه هغه به مافوق الازار نه فائده اخستله، او هغه خو افضل عمل نه پریخودلو نو که دا افضل وے نو بیائے ولے پریخودلو ؟۔

**درجة الحدیث** : رواه ابوداود ایضا (٢١٣) وقال لیس هو بالقوی فاسناده ضعیف فیه بقیة بن الولید وفیه سعد بن عبد الله الاغطش وعبد الرحمن بن عائذ لم یسمع من معاذ کما فی التلخیص والمرعاة (٢/٢٥٠) وضعیف ابی داود رقم (٣٦) باب المذی. وعزاه ابن الحجر فی التلخیص الی الطبرانی (١/١٦٦)۔

---

٩ - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : (اِذَا وَقَعَ الرَّجُلُ بِاَهْلِهٖ وَهِیَ حَائِضٌ فَلْیَتَصَدَّقْ بِنِصْفِ دِیْنَارٍ). رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِیُّ وَالدَّارِمِیُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : ابن عباسؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمائیل : کله چه سړے خپلے ښځے سره د هغے دحیض په ورځو کښے جماع اوکړی، نو هغه له پکار دی چه نیم دینار صدقه کړی۔ (ترمذی، ابوداود، نسائی، دارمی، ابن ماجه)۔

**تشریح** : فَلْیَتَصَدَّقْ بِنِصْفِ دِیْنَارٍ : د ښځے سره په حالت د حیض کښے جماع کولو په **کفاره** کښے اختلاف دے چه کفاره واجب ده که مستحب ؟۔

١ - نو اکثر علماء لکه ائمه ثلاثهؒ فرمائی : کفاره صرف توبه ویستل دی ځکه ګناه کبیره ئے کړیده۔ او مال خرچ کول واجب ندی نه په سړی او نه په ښځه۔ بلکه صرف مستحب دی. وهو قول عطاء وابن ابی ملیکة والشعبی والنخعی ومکحول والزهری وابوالزناد وربیعة وحماد بن ابی سلیمان وایوب السختیانی وسفیان الثوری واللیث بن سعد رحمهم الله. شرح مسلم (١/١٤١) وقال ابن کثیر : فیستغفر الله ۔ دوی وائی چه اصل برائة الذمة دے مګر چه دلیل موجود شی او دلیل نشته ځکه د دوئ په نیز حدیث کښے

اضطراب دے۔ لیکن د دوئ دا خبره ضعیفه ده۔ کما ستعرف۔

٢ – د امام احمدؒ یو قول، د امام شافعیؒ قول قدیم او ابن عباسؓ، حسن بصریؒ، سعید بن جبیرؒ، قتادهؒ، اسحقؒ، اوزاعیؒ فرمائی : چه کفاره مالی واجب ده، او دا قول صحیح دے په اعتبار د دلیل سره۔ او دا حدیث دلیل دے چه کفاره ورکول واجب دی۔ او امر د وجوب دپاره دے۔ او قرینه د استحباب نشته۔

او دا حدیث صحیح دے چاچه په کښے دا اضطراب بیان کړیدے چه کله نصف دینار ذکر کیږی، کله دینار ذکر کیږی نو په کوم به عمل کوو؟ لهذا پدے باندے عمل نشی کیدے۔نو دا خبره د دوئ **صحیح** نه ده۔ وجه داده چه اضطراب نشته ځکه د نصف دینار او دینار د حکم تشریح ابن عباسؓ په بل حدیث کښے کړیده لکه روستو را روان دے چه ابتداء د حیض کښے جماع اوشی نو دینار دے او چه آخر کښے اوشی نو نصف دینار دے۔ نو حدیث کښے هیڅ اضطراب نشته، او صحیح دے او محمول دے په وجوب باندے، امر پکښے راغلے دے او قرینه صارفه د وجوب نشته لکه دا علامه شوکانیؒ په نیل الأوطار (٣٥٢/١) او علامه البانیؒ په آداب الزفاف (٢٥/١) کښے فرمائیلی دی۔ و قال : سنده صحیح ، صححه جماعة من المتقدمین و المتأخرین و اخرجه اصحاب السنن و البیهقی باسناد صحیح علی شرط البخاری وصححه الحاکم و وافقه الذهبی و ابن دقیق العید و ابن القیم والله اعلم کذا فی توضیح الاحکام (٣١٦٣/١)۔

٢ – **بله مسئله** : په حالت د حیض کښے جماع دوه صورته لری (١) یو داچه په خطاء او ناخبرئ سره اوشی لکه د واده په اوله شپه وغیره کښے اوشی، نو په دے کښے کفاره نشته۔ ٢ – اوکه قصدا ئے اوکړی، لکه دلته مراد ده۔ ای اذا وقع الرجل باهله أی قصدا ۔ نو بیا کفاره ورکول واجب دی، ځکه دا مجرم دے۔ بیا دوه کفارے ضروری دی (١) مالی (٢) اوبدنی دینی۔ دینی داچه استغفار او توبه اوباسی۔ مالی داده چه که په حالت د حیض کښے په سره وینه کښے جماع اوکړی، یعنے ابتداء کښے، نو یو دینار به ورکوی، اوکه زیړه وینه کښے اوکړی نو بیا نیم دینار دے، أو ددے وجه داده چه سره وینه په اول د حیض کښے وی، نو دا شخص په اول سر کښے معذور نه دے، ځکه ده او سه پورے خپل حاجت ولے نه پوره کولو، خو هرکله چه دا ناست دے، حاجت نه پوره کوی خو چه حیض راغلو نو دا اوس خپل حاجت پوره کوی نو دا لوئی مجرم دے، پوره دینار به ورکوی۔ او زیړه وینه په آخر کښے وی، نو کیدے شی چه حیض اوګد شی او انسان کمزورے دے نو که دے جرم

کښې واقع شي نو دا څه لږ شان معذور دے، د مخکښې پشان مجرم نه دے نو نیم دینار به ورکوي۔ اودا د شریعت حکمت دے طبیعتونو ته ئے کتلی دی۔

بعض وائي چه په زيړه وينه کښې نصف دينار ځکه مقرر شو چه زيړه وينه په مابين د سره او سپينه کښې ده نو که سپينه وی نو پکار ده چه هيڅ واجب نشي او که سره وی نو پکار ده چه پوره دينار واجب شي نو په زيړه وينه کښې ځکه دينار نيمائي شو چه زيړه هم درميانه ده په مابين د سپينه او سره کښې۔

**فائده : د دينار څه مقدار دے ؟** نو دا معلوميږي د مقدار د نصاب د زکوه نه، شل ديناره د سرو زرو نصاب دے په زکوه کښې۔ او ددے نه اووه نيمے تولے جوړيږي۔ او يو دينار ته يو مثقال وائي۔ نو د دوه نيمو تولو قيمت که څلويښت زره روپۍ شي نو د يو دينار قيمت دوه زره پاکستانۍ روپۍ جوړيږي۔ او نيم دينار نه زر (١٠٠٠) روپۍ جوړيږي۔ او ددينار نه کويتي دينار نه دے مراد بلکه شرعي دينار مراد دے، چه دا ډير دے د کويتي دينار نه ۔ نو بناء پدے سره د يو دينار مقدار (٤٬٢٤) ګرامه سره زر جوړيږي۔

**تنبيه :** ددے حديث په باره کښې امام نوویؒ خطاء شويدے په شرح د مسلم (١٤١/١) کښې چه وائي : دا حديث په اتفاق د حفاظو محدثينو ضعيف دے۔ ليکن هغه بل روايت ضعيف دے چه په هغې کښې (خمس دينار) لفظ دے۔ او دا حديث صحيح دے۔ لکه ارواء الغليل (١٩٧/١) او نصب الرايه کښې اوګوره۔ وقد تقدم الكلام على درجته ضمن البحث.

اخرجه احمد (٣٧٢/١- ٣٢٥) والدارمي (٢٥٣/١- ٢٥٥) وابوداود (٢٦٦) والترمذي (١٣٥) والنسائي (١٥٣/١) وابن ماجة (٦٤٠) وصححه الشيخ رمضان ۔

---

**١٠ – وَعَنْهُ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ : إِذَا كَانَ دَمًا أَحْمَرَ فَدِيْنَارٌ وَإِذَا كَانَ دَمًا أَصْفَرَ فَنِصْفُ دِيْنَارٍ ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

**ترجمه :** ابن عباسؓ فرمائي : نبي ﷺ اوفرمائيل : که د حيض په حالت کښې د وينے رنګ سور وی (او دے حالت کښې خوك نزديکت اوکړی) نو پوره دينار اوکه د وينے رنګ زيړ وی نو نيم دينار صدقه کول لازم دی۔ (ترمذی)۔

## تعارف : د زيد بن اسلم :

دا د عمر بن الخطابؓ غلام دے، ابو عبد الله يا ابو اسامه ئے کنيه ده، مدني ثقه شخص

دے، او د اهل الفقه والعلم نه حساب دے۔ اودا په تفسیر د قرآن کریم کښې ښه پوهه وو۔ ارسال به ئے کولو په احادیثو کښې۔ په سنه (١٣٦) هـ کښې وفات شویدے په ابتدائی عشره د ذو الحجه کښې۔

**تشریح** : د دم احمر نه ابتدائی حالت د حیض مرا دے ځکه چه أبتداء کښې وینه سره وی او د دم اصفر نه آخری حالت د حیض دے ځکه په آخر کښې وینه زیړ والی ته مائل وی نو پدے روایت سره تطبیق د دینار او نصف دینار اوشو۔

(٢) بعض وائی دینار به په وخت د وینه کښې وی او نصف دینار به په وخت د انقطاع د وینه کښې وی۔ (٣) بعض وائی چه دا حکم د اختیار دپاره دے که دینار ورکوی او که نصف دینار۔ او حال د سړی ته به کتلے شی په اعتبار د مالدارئ او غریبئ سره۔ لکه دا په بعض ضعیف روایاتو کښې نقل ده لیکن اول قول غوره دے۔

**درجة الحدیث** : وفی سنده عبد الکریم بن ابی المخارق ابوامیة وهو مجمع علی ضعفه لکن اسناده صحیح وصححه الالبانی فی ارواء الغلیل رقم (١٩٧). قال وصح عن ابن عباس انه فسر ذلك فقال اذا اصابها الدم فی اول الدم فدینار واذا اصابها فی انقطاع الدم فنصف دینار۔ رواه ابوداود وغیره وقد روی مرفوعا والصواب وقفه کما ذکرنا فی صحیح ابی داود رقم (٢٥٧و ٢٥٨)۔

## الفصل الثالث - دریم فصل

---

١١ – عَنْ زَیْدِ بْنِ اَسْلَمَ قَالَ : اِنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ فَقَالَ : مَا یَحِلُّ لِیْ مِنِ امْرَأَتِیْ وَهِیَ حَائِضٌ ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : تَشُدُّ عَلَیْهَا اِزَارَهَا ثُمَّ شَأْنَکَ بِاَعْلَاهَا. رَوَاهُ مَالِکٌ وَالدَّارِمِیُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه** : زید بن اسلم فرمائی : یو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو : ما دپاره د خپلے بی بی نه د هغے د حیض په ورځو کښې څه څه حلال دی ؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل : ته به په هغے باندے لنګ اوتړے بیا د لنګ دپاسه ستا کار دے۔ (مالكؒ او دارمیؒ دا حدیث مرسل روایت کړیدے۔

**تشریح** : ثُمَّ شَأْنَکَ بِاَعْلَاهَا : دا منصوب دے په اضمار د (خذ) سره یعنے خذ شانك باعلاها یعنے د لنګ نه بره فائده د زنانه نه اخله، دے روایت کښې دادی چه حائضے

ښځې نه د لنګ نه بره فائده اخستل جائز دی۔
او د لاندې د لنګ څه حکم دے ؟ نو د هغې اجازه رسول الله ﷺ په (اصنعوا کل شئ) سره ورکړه۔ ۲ – یا دا محمول دے په استحباب باندې چه بهتره داده چه انسان د لنګ نه ښکته فائده وانخلی څکه چه ممکن ده چه جماع کښې واقع شی (وایکم یملك اربه) البته حرام نه ده۔

**درجة الحديث** : اخرجه مالك (۴۹، ۱۲۲) والدارمی (۱۱۲۵) والبيهقی (۷/۱۹۱) وسنده صحيح قال الالبانی وهو مع ارساله صحيح الاسناد وله شاهد من حديث عبد الله بن سعيد الانصاری رواه ابوداود باسناد صحيح كما حققته فی صحيحه رقم (۲۴۰)۔

---

۱۲ – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : كُنْتُ إِذَا حِضْتُ نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ عَلَى الْحَصِيْرِ فَلَمْ نَقْرَبْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ وَلَمْ نَدْنُ مِنْهُ حَتّٰى نَطْهُرَ). رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : عائشة رضی الله عنها فرمائی : زه به چه کله حائضه شوم نو د بسترې نه به بزکی ته راتلم، ترڅو به چه زه پاکه شوې نه وم نو مونږ به نبی ﷺ ته نه نزدې کیدو اونه به مونږ د هغه خوا ته راتلو۔ (ابوداود)۔

**تشريح** : نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ : ای الفراش۔
فلم نقرب رسول الله ﷺ ولم ندن منه : دا حدیث په ظاهر کښې معارض او مخالف دے د مخکښنو روایتونو سره څکه چه دے روایت کښې دی چه عائشه رضی الله عنها فرمائی : چه کله به زه حائضه شوم نو د کټ او بسترې نه به راکوزه شوم، او بزکی باندې به کیناستم او مونږ به نبی ﷺ ته نه نزدې کیدو او هغه به مونږ ته نه نزدې کیدو، د پاکئ د وخته پورې۔ او مخکښې نه ثابته شوه چه رسول الله ﷺ به عائشې رضی الله عنها سره خوراك څکاك وغیره کولو ۔
نو ددې **تطبيق** یو سندی دے او بل معنوی۔ ۱ : سندی تطبیق دادے چه مخکښنی روایتونه صحیح دی اودا روایت ضعیف دے فی سنده ابو الیمان الرحال قال الحافظ فی التقریب : مستور. ذكره ابن حبان فی الثقات. وانظر ضعيف سنن ابی داود رقم (۲۷۱)۔
۲ – معنوی تطبیق دادے چه که دا حدیث صحیح هم شی نو دے کښې مقصود دادے چه د دُنو او قرب (نزدیکت) نه مراد د جماع دپاره نزدې کیدل مراد دی، لکه قرآن کښې دی ﴿ولا تقربوهن حتی يطهرن﴾ نو د قربان نه قِربان للجماع مراد دے۔ اود بسترې نه څکه

راکوزه شویده چه ځان ته څه توته وغیره کیدی، او بستره گنده نشی۔

۲- دویم پدے روایت کښے دا خبره نشته چه رسول الله ﷺ به مونږ ته نه نزدے کیدو بلکه صرف عائشے به احتیاط کولو چه نبی ﷺ خوا ته به نه ورتله ۔ او دا کار هم همیشه دپاره ندے شوے بلکه کله ناکله نزدے والے هم راغلے دے لکه چه مخکښے تیر شو چه نبی علیه السلام ددے په غیږ کښے تلاوت کولو۔

## أضرار الوطئ فی حالة الحیض :

شریعت چه کوم کار حرام کړی په هغے کښې ډیر ضررونه او مصیبتونه وی، کله به انسان ته معلومیږی او کله به نه معلومیږی مگر مسلمان به د هغے د حرمت عقیده ضرور لري لکه د هغه ضررونو نه قرآن حکیم په (اذی) سره تعبیر کړیدے فرمائی : ﴿ قل هو اذی فاعتزلوا النساء فی المحیض ولا تقربوهن حتی یطهرن ﴾ نو په اذی کښې اشاره ده ډیر ضررونو ته۔

دکتور طبیب محمد بن علی البار : فرمائی د حیض په حالت کښے ذکر په فرج کښے داخلول دا هغه میکروبات داخلول دی چه اعضائے تناسل د هغے مقاومت پدے حالت کښے نشی کولے نو ددے نه لاندینی مرضونه راپیدا کیږی :

(۱) د رحم په لارو-کښے التهابات (سوزش) پیدا شی نو د هغے د وجه نه ښځه کښے شندوالے پیدا شی یا نیمگړے بچے پیدا کیږی۔

(۲) کله د سړی د متیازو په لاره کښے داسے گرمائش پیدا کړی چه د هغے د وجه نه مثانه او گردے ته نقصان اورسی او بیا د متیازو ترتیب خراب شی سوزی، او یا بندیږی، یا ورسره قطره بیماری پیدا شی۔

(۳) د ښځے جنسی رغبت کموی، خصوصا په ابتداء د حیض کښے۔

(٤) دے نه نیم سیرے بیماری پیدا کیږی۔

(٥) په ښځه کښے غم او پریشانی او تنگ حالی پیدا کوی چه بیا ئے مزاج خراب وی۔ توضیح الاحکام (۱/ ۳٦۲)۔

* * * * * * * * * * *

# باب المستحاضة

**مناسبت** : حیض کله کله داسې شي چه بالکل وینه په کښې نه اودریږي، رګونه را خلاص شي، نو ددې څه حکم دې ؟ نو هغه بیانوي۔
بعضې کتابونو کښې په دې مقام کښې باب الاستحاض لفظ ذکر دې۔
**معنی لغوي** : استحاض دم العروق (د رګونو وینې) ته وائي۔ چه د رحِم نه نه وي۔
استحاض طبعي حیض نه دې بلکه دا یو مرض دې چه بنځې ته د شیطان د وجې نه رسیږي چه په بنده باندې د هغه عبادات خرابوي او دې استحاض ته نبي علیه السلام عرق (رګ) وئیلې دې او دیته په اصطلاح د طبیبانو کښې عاذل رګ وائي هغوي د استحاض تعریف داسې کوي چه دا هغه وینه ده چه د رحم نه یا د عنق الرحم (د رحم او د فرج ترمینځ لاره کښې د رګ ) نه خارجیږي د وجې د وجود د پړسوب نه یا سوزش پیدا شي په عنق د رحم کښې د هغې په وجه وینه مسلسل جاري شي او دا اکثر د ګولو استعمالولو په وجه باندې راځي۔
استحاض د حیض نه مشتق دې، باب استفعال دې، ددې باب یو خاصیت مبالغه ده۔ بل خاصیت انقلاب د ماهیت دې۔ او استحاض کښې هم دا دړې واړه معاني راتلې شي۔ یعنې زیادت د وینې ته وائي۔ دارنګه د حیض ماهیت هم په کښې بدل شوې دې، چه د حیض وینه د رحم ده، او دا د رګونو ده او احکام د حیض پرې نه جاري کیږي۔ خو لیکن کله کله د حیض او استحاض فرق نه کیږي۔ نو ددې دواړو معلومولو دپاره به څه کوي، نو دا فرق په احادیثو کښې آسان دې، او د فقهاؤ په کتابونو کښې ګران دې۔ امام محمدؒ د حیض او استحاض په مسائلو باندې یو کتاب د دوه سوه صفحاتو په مقدار لیکلې دې۔ امام طحاویؒ د پنځه سوه صفحاتو په مقدار کتاب لیکلې دې۔ او دغه شان کتاب دارمي شافعي هم لیکلې دې۔ او یو لوئې جلد امام نوويؒ او ابن نجیمؒ صاحب د بحر الرائق لیکلې دې۔ او بیائې اقرار کړیدې چه دا مسائل ډیر ګران دي۔ ابن عابدین وائي چه بعضې علماؤ په کښې پنځه جلده کتاب لیکلې دې، بیائې هم پوره حل کړې نه ده۔

**سوال** : هر كله چه په دومره ضخيم كتابونو د امسائل نه حل كيږي نو زنانه به څه كوي؟ هغه به څنګه پوهه شي؟ چه علماء پرے نه پوهيږي؟۔

نو ددے **جواب** دادے چه دا مسائل د محققينو په نيز ډير آسان او مختصر دي، اوكومو متأخرينو چه مسائل د متحيره او اقسام د هغے بيان كړي دي هغه ټول بے دليله او باطل دي۔ دين نه ئے الغاز (ډُوړئ، مُخئ) جوړ كړي دي، اودا د فقهاؤ تعمقات دي۔

اوس دلته بعضے مسائل د حيض بيانيږي۔

## ۱ - اوله مسئله : د حيض اقله او اكثره موده څومره ده ؟

په دے كښے اختلاف دے۔

۱ - امام شافعي" او امام احمد" په نيز اقله موده يوه ورځ او يوه شپه ده۔ او اكثره موده د امام شافعي" په نيز پنځلس ورځے دي، اودا يو روايت د امام احمد" هم دے۔

۲ - امام ابو يوسف" وائي : اقله موده دوه ورځے او د دريمے ورځے اكثره حصه ده۔ او اكثره موده ئے لس ورځے دي۔

۳ - امام ابو حنيفة" او امام محمد" وائي : اقله موده درے ورځے او درے شپے ده۔ او اكثره موده لس ورځے دي۔ دا آسان قول دے مګر هيڅ صحيح حديث ئے دليل نشته۔

٤ - امام مالك" وائي : اقله مودے دپاره حد نشته، او اكثره موده ئے (۱۷) اولس ورځے ده۔ د امام احمد" نه درے روايات دي۔ ددے مخكښے پشان۔

٥ - د محدثينو" او بعضے سلفو" په نيز اقله موده يوه ګينټه هم كيدے شي او اكثرے مودے تعيين هم نشته، بلكه قانون دادے چه هره وينه چه زنانه ئے ګوري هغه حيض دے كه هرڅنګه رنګ ئے وي۔ (الا ان يستمر بها الدم) مګر كله چه وينه پرے هميشه شي نو دا به بيا حيض پيژني په درے طريقو سره چه روستو راځي۔ ان شاء الله۔ اودا رائے د امام احمدؒ ده او د حديثونو مطابق ده۔ وبه نقول وكذا اختاره شيخ الاسلام۔

او هغه خړه او زيړه وينه چه حيض نه پس راځي هغه به هم د حيض نه نه حسابيږي، بلكه هغه به استحاض او بيماري وي۔ لكه حديث د ام عطية" كښے دي (كنا لا نعد الكدرة والصفرة بعد الطهر شيئا – بخاري)۔ زيړه يا خړه وينه د پاكوالي نه پس حيض نه دے)۔

**دلائل الأقوال** :

د احنافو سره په اقله او اكثره موده د حيض كښے هيڅ صحيح حديث نشته، بلكه په

دے باره کښے راغلی ټول روایات ضعیف جداً او **موضوعی** دی۔ لکه ابن جوزی په الموضوعات او ابن القیمؒ په المنار المنیف ((۱/۱۲۲) کښے دا خبره کړیده۔

بیا ملا علی قاریؒ په الموضوعات الکبری ص (۱۰۷) کښے وائی : ددے روایاتو ډیرے طریقے دی نو درجے دحسن ته رسیږی۔ لیکن دا خبره **غلطه** ده۔ وجه داده چه تعدد د طرق سره هله حدیث قوی کیږی کله چه ضعف کم وی۔ او دلته دا ضعف ډیر دے۔ او چه کله ضعف ډیر وی نو بیا تعدد الطرق ضعف نور هم زیاتوی۔ لکه دا خبره مصطلح الحدیث کښے معلومه شویده۔ دا وجه ده علامه زیلعی په نصب الرایه (۱/۱۹۱) کښے هغه احادیث راوړیدی او کلام ئے پرے کړیدے۔

شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ په مجموعه الفتاوی (۲۱/۶۲۳) کښے فرمائی : کومو احادیثو کښے چه دا بیان شوی دی چه د حیض اقله موده درے ورځے او اکثره موده لس ورځے ده نو ټول اهل العلم بالحدیث متفق دی پدے خبره چه دا په نبی علیه السلام باندے دروغ دی او دا احادیث موضوعی دی۔انتهی۔ منهاج السنه (٤/۱۱۵)۔

۲- علامه شوکانیؒ فرمائی : لم یأت فی تقدیر اقل الحیض واکثره ما یصلح للتمسك به بل جمیع الوارد اما موضوع او ضعیف لمرة. السیل الجرار (۱/۳۳۷) ونقله الشیخ الالبانی فی الضعیفة (۳/۶۰۹)۔ یعنی د حیض د مودے په تعیین کښے هیڅ داسے حدیث نشته چه هغه قابلِ تمسك وی بلکه ټول روایات یا موضوعی دی یا ضعیف دی۔

۳- سید سابق صاحبؒ وائی : لا یتقدر اقل الحیض ولا اکثره ولم یأت فی تقدیر مدته ما تقوم به الحجة ۔ یعنی د حیض په اقله او اکثره موده کښے هیڅ تحدید نشته او پدے باره کښں چه کوم روایات راغلی دی هغه قابلِ دلیل ندی۔ فقه السنة (۱/۹۲)۔

او دغه شان خبره علامه نواب صدیق حسن خان په الروضة الندیه (۱/۶۲) کښں کړیده۔ ٤- امام ابن رشدؒ فرمائی : (لامستند لها) ددے اقوالو هیڅ دلیل نشته۔

۵- علامه مراد شکریؒ فرمائی : تحدید الزمن للحیض والطهر ممن حدده لا دلیل علیه وانما رجع للعادة والتجربة. شرح المنخلة النونیة ص (۳۰)۔

یعنے چا چه د حیض او طهر موده تحدید کړیده پدے باندے هیڅ دلیل نشته بلکه ښځه به عادت او تجربے ته رجوع کوی۔

۶- شیخ بسام فرمائی : لا حد لاقل الطهر ولا لاکثره فمادام الدم موجودا فهو دم حیض ومادام النقاء فهو طهر، صحح ذلك فی الکافی وصوّبه فی الانصاف وهو مذهب ابی حنیفة

ومالك۔ توضيح الاحكام (١/٣٥٦)۔

يعني د طهر (اوحيض) اقل او اكثره موده **نه ده معلومه** بلكه وينه چه موده وى حيض دے او كه وينه اودريده نو دا طهر دے او دا مذهب د امام ابو حنيفه او مالك دے۔

**وقال** خليل احمد السهارنفورى فى بذل المجهود : كنت لا اعرف هذه المسائل فقلت لعلها تفتح على عند شرحى لابى داود فلما كتبت الشرح لم يزدنى الا حيرة.

**اقول** : وكذلك التقليد يفعل باهله !!

د شوافعو او حنابلو په اكثره موده د حيض باندے دليل دادے چه حديث كښے ذى :

(ما رأيت من ناقصات عقل ودين) په هغے كښے دا الفاظ دى (تجلس احداكن شطر دهرها فى بيتها لا تصلى ولا تصوم) او شطر په معنىٰ د نصف سره دے، نو مياشت كښے پنځلس ورځے اكثره موده د حيض ده۔ ليكن دا حديث باطل او غير معروف دے پدے لفظ باندے، كما قال النووى وضعفه ابن الجوزى. وقال الحافظ : لا اصل له بهذا اللفظ وقال ابن دقيق العيد ولا يثبت بوجهٍ من الوجوه . التلخيص الحبير (١/١٦٢)۔

اود احنافو دپاره په اكثره موده باندے - چه لس ورځے دى - درے روايات دى چه نصب الرايه (١/١٩١) او تنقيح التحقيق (١/٢٣٩) كښے ذكر دى۔ ليكن هغے كښے ډير كلام دے، او احنافو هم دا منلے ده چه دا ضعيف دى، ليكن دوئ ورته په مجموع الطرق سره حسن وائى، ليكن جمهور محدثين فرمائى : حسن نه جوړيږى ځكه داسے راويان په كښے دى چه هغه متروك دى۔ نو په مجموع الطرق سره هم حسن ته نه رسيږى۔ بلكه لا ضعف زياتيږى۔ په دے وجه ابن جوزىؒ په الموضوعات كښے فرمائى : (الأحاديث فى هذا الباب باطلة) ۔يعنے په دے باب كښے راغلى ټول احاديث باطل دى۔ ابن قيمؒ په المنار ص (١٢٢) كښے فرمائى : ومن ذلك أى من الأحاديث الموضوعة ما نقلت فى تقدير اقل الحيض واكثره لم يثبت من ذلك شئ بل كله باطل ۔

په دے باب كښے د محدثينو **قول راجح** دے۔ **دليل** دادے چه د نبى ﷺ په ازواج مطهرات او عام مومنو زنانو باندے هم حيض راتلو او بيا هم نبى ﷺ دانه دى فرمائيلى چه اقله موده يا اكثره موده دومره ده۔ بلكه كارئے وجود ته پريښے دے يعنے كله چه وينه موجوده شى نو هغه حيض دے، اوكله چه منقطع شى نو دا طهر دے۔

بله دا چه ددے دپاره منضبطه **قاعده** نشته بلكه داد فطرت او واقع مطابق راځى، بعضے ملكونه ګرم وى، نو ډير حيض د زنانو راځى، اوزر زر راځى، او بعضے ملكونه يخ

وی نو حیض لګ راځی، او ډیره موده پس راځی. نو په اعتبار د مکان سره په کښې تغیر راځی، نو شریعت په کښې تحدید او توقیت نه دے متعین کړے. نه د اکثرے مودے او نه د اقلے مودے. بلکه د انسانانو د طبیعت او عادت او تجربے مطابق حکم پریخودے شویدے. او که یو قانون ورله مقرر شی نو بیا خو زنانو کښې د خلقت په اعتبار مساوات پکار وو او حال دا چه په خلقت کښې خو تفاوت دے نو حیض کښې به هم تفاوت وی.

نو په دے تولو اقوالو کښې راجح قول د محدثینو ؒ دے. چه هیڅ تعیین او تحدید د اقلے او اکثرے مودے د **حیض** نشته.

نو اوس به دا مونږ څنګه معلوموو چه دا **حیض** دے او که **استحاض** یا طهر ؟.

نو **قانون** دادے چه کله وینه راغله نو دا به حیض وی، هر څومره وخت چه وی، مګر کله چه د عام عادت د زنانو نه زیاته شی نو آیا دا به حیض وی که استحاض ؟ نو ددے فرق به کوی په یو د درے طریقو سره چه هغه په احادیثو کښې ذکر دی:

(١) - **اوله طریقه** : امام بخاری (٤٧/١) مسلم (٥١/١) حدیث د فاطمه بنت ابی حبیش ؓ ذکر کړیدے چه په دے کښے دا طریقه ده چه زنانه به د خپل عادت انتظار کوی چه عادت ئے شپږ یا اووه ورځے وی نو هغه به حیض حساب شی او ما سیوا ددے نه به استحاض وی. دا هله چه زنانه خپل عادت پیژنی. او عادت ئے مقرر معلوم وی (فاذا اقبلت حیضتك) نه معلومیږی. نو ددے عادت نه پس به غسل اوکړی او مونځونه به کوی اګرکه وینه ترے روانه وی. تردے چه بله میاشت راشی. بله میاشت کښے به بیا خپل عادت په حیض کښے حساب کړی، او ماسِویٰ د هغے به استحاض وی، غسل به کوی او مونځونه به کوی. او دا طریقه په را روان حدیث کښے راځی (قدر الأیام التی کنت تحیضین فیها).

(٢) - **دویمه طریقه** : که په دے هم نه پوهیدله، عادت ورته نه دے معلوم، نو تمییز به کوی په الوان او رنګونو سره. د حیض وینه زنانه پیژنی چه توره وی، او د رګونو وینه سپینوالی ته مائل وی. نو دکومے ورځے نه چه په رنګ کښے تغیر راغلو نو مخکښے به حیض وی او روستو به استحاض وی. او دا په فصل ثانی کښ اول حدیث کښے (فانه دم اسود یعرف) ذکر ده.

(٣) - **دریمه طریقه** : که دا هم نشی پیژندلے نو بیا به قیاس کوی. علی غالب ایام عادة النساء من اهل البلد. یعنے ددے چه کومے همزولے خپلوانے زنانه دی لکه خور ترور

وغیره یا د کلی په همزولې جینکو به قیاس اوکړې شي چه د هغوئ څومره موده حیض وي هغه به ددې زنانه هم حساب کړې شي، لکه مثلاً د عامو زنانو حیض شپږ یا اوه ورځې وي نو ددې زنانه به هم اووه ورځې حیض حساب شي، او باقي به استحاض وي.
اودا قول د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ او علامه شوکانیؒ السیل الجرار(۱/۱۴۳ – ۱۴۶) کښې راجح کړیدې. نو دا قیاس به هله کوي چه کله ددې زنانه په ځان شك پیدا شي چه دا وینه زما د عادت نه زیاته شویده. لکه دا طریقه په حدیث د حمنه بنت جحشؓ کښې را روانه ده.
په دې باندې بله **مسئله تفریع** ده هغه دا چه هره وینه چه په موده د حیض کښې وي نو هر څنګه **وینه** چه وي نو هغه به **حیض** حسابیږي. رنګ لره په دې موده کښې اعتبار نشته. البته که د عادت نه زیاته وینه راغله نو بیا به تمییز بالألوان کوي.
دا طریقې په احادیثو کښې ذکر دي. او ددې نه ماسوا د حیض په باره کښې تفاصیل ورکول هسې تعمقات د فقهاؤ دي. چه دا مسائل ئې قصداً ګران کړیدي. ورنه اصل مسئله آسانه ده. د احادیثو په نګاه چه اوکتلې شي نو په دغه درې (۳) طریقو د حیض او استحاض مسائل حل کیږي. نورو تعمقاتو او تکلفاتو ته هیڅ ضرورت نشته.

## ۲ - مسئله : آیا حیض په یوه میاشت کښې درې کرته راتلې شي که نه ؟

نو اصح داده چه راتلې شي ځکه شریعت ددې دپاره هیڅ حد نه دې معین کړې.
کما فی البخاری باب اذا حاضت فی اشهر ثلاث حیض (۱/۴۷).

**۳ - مسئله : طهر متخلل** بین الدمین له په شریعت کښې هیڅ **اعتبار نشته.**
بلکه د عام امت مذهب دادې چه د طهر موده شریعت نه ده مقرر کړې، یوه ورځ هم کیدې شي لکه څنګه چه د حیض موده نه ده معینه. یوه ګینټه هم کیدې شي. خو طریقه داده چه زنانه لګ آثار د وینې ګوري نو غسل به نه کوي. بلکه دا حیض دې مګر کله چه ښه پاکه شوه اګرچه یوه ګینټه وي نو غسل پرې واجب دې.
**طهر متخلل** : دیته وائي چه ابتداء کښې وینه راشي یوه ورځ پس بیا پاکه شي. نیمه ورځ یا یوه ورځ یا لګ وخت یا زیات . بیا وینه راغله یوه یا دوه ورځې بیا پاکه شوه بیا وینه راغله نو آیا دا مینځنې طهر به حیض حساب وي اوکه طهر ؟ نو دې کښې فقه حنفی

لکه شرح وقایه کښې شپږ مذاهب ذکر کړی دی۔ او تول بے دلیله دی۔ هسې ذهن تیزی او سرزوری ده۔ نو صحیح دا ده چه طهر متخلل به طهر حسابیږی، لږ وی او که ډیر۔

اوس هغه فرضی مسائل چه فقهاؤ بیان کړی دی، د هغې یو جهلك ته نظر اوکړئ:

## ۱ - اوله مسئله : مستحاضه څلور قسمه ده :

(۱) مبتدأه (۲) متحیره (۳) معتاده (٤) ممیزه۔

۱- **مبتدأه** : هغه زنانه ده چه بلوغ ته اورسی او د ابتداء نه همداسې وینه پرې همیشه روانه شی۔ ددې حکم عند الأحناف دادې چه دا زنانه به په هره میاشت کښې اکثره موده د حیض تیره وی او باقی به استحاض حساب شی۔ یعنې لس ورځې حیض باقی استحاض۔ لیکن په دې باندې دلیل نشته۔

۲ - **معتاده** : هغه زنانه ده چه د حیض عادت ئې معلوم وی چه پنځه یا شپږ اووه ورځې دی، لیکن اوس خپل عادت نه وینه زیاته شوه نو دابه څه کوی ؟ حکم ئې دادې چه (ردّت الی ایام عادتها) یعنې دا زنانه به د خپل عادت موده حیض حساب کړی، او باقی چه څو مره وینه راغله هغه به استحاض شی۔ مونځ روژه به په دې ورځو کښې کوی۔ خو دا هله چه کله د لسو ورځو نه واوړی۔ امام مالك" عادت له هیڅ اعتبار نه ورکوی۔

۳ - **ممیزه** : هغه زنانه ده چه هغه د حیض او استحاض تمیز کولے شی په رنګ د وینې سره چه دا وینه د حیض ده اودا وینه د استحاض ده۔

په دې کښې اختلاف دې : ائمه ثلاثه دا تمیز باللون منی او احناف ئې نه منی۔ بلکه وائی چه عادت له اعتبار دې، نه تمییز لره۔ ځکه چه نبی ﷺ په حدیث د ام سلمة" کښې هغه زنانه ته دا فرمائیلی وو (لتنظر عدد اللیالی والأیام التی کانت تحیض من الشهر الخ) ۔ لکه روستو را روان دې۔ یعنې د عادت ورځوته به رجوع کوی۔ او دلته ئې ورته دا اونه فرمائیل چه تمییز کولے شی په رنګ سره۔

لیکن ائمه ثلاثه" وائی : تمییز باللون معتبر دې ، احادیث پرې دلیل دې۔ لکه حدیث د عروه بن الزبیر" کښې را روان دی۔ فاطمه بنت ابی حبیش" ته رسول الله ﷺ اوفرمائیل :

(اذا کان دم الحیض فانه دم اسود یعرف) دا صحیح حدیث د ابوداود دې۔ او تمییز له اعتبار په کښې ورکړے شویدې۔

صاحب المرعاة د دواړو تطبیق داسې کړیدې چه فاطمه" معتاده ممیزه دواړه وه، نو کله

نبي ﷺ فيصله په عادت کړيده اوکله ئې په تميز باللون سره فيصله کړيده.

٤ - **متحيره** : يعنې حيرانه زنانه چه هيڅ نه نه وي خبره. اوله کښې دا معتاده ده، ليکن بيا پرې وينه هميشه شي نو خپل مخکښې عادت هم ترې هير شي.

دا په درې **قسمه** ده :

١ - متحيره بالعاده : چه د خپل حيض ورځې ترې هيرې شوې وي، چه پنځه دي که شپږ وغيره. ٢ - متحيره بالوقت والزمان : چه زمانه د حيض ورته نه ده معلومه چه اول د مياشتې وه که وسط اوکه آخر. اګرکه ورځې د عادت ورته معلومې وي، چه دومره ورځې وې. ٣ - متحيره بهما : يعنې نه ورته عادت معلوم دې اونه ورته زمانه د حيض معلومه ده. ...... ددې حکم دادې چه ائمه ثلاثة فرمائي : که دا مميزه وي يعنې د حيض معلومات د وينې په ذريعه کولې شي نو په دې باندې به عمل کوي.

احناف وائي - لکه بحر الرائق ليکي - چه متحيره د کومو ورځو په باره کښې يقين راشي چه دا د حيض ورځې دي يا ئې غالب ګمان راشي، نو په هغې به عمل کوي. او په دغه ورځو کښې به روژه نيسي او مونځونه به کوي. اوباقي ورځې به طهر حساب شي. او د هر مانځه دپاره به اودس کوي پس د غسل کولو نه.

نو متحيره بالعاده به د خپل حيض د ابتدائي تاريخ نه درې ورځو پورې مونځ پريدي، دا به حيض حسابيږي، ددې نه پس اووه ورځې به غسل د هر مانځه دپاره کوي، ځکه هر وخت او هره ورځ دا احتمال شته چه په دې وخت کښې حيض منقطع شوې وي. او باقي شل ورځې به طهر حسابيږي. نو صرف هر مانځه ته به اودس کوي.

او متحيره بالزمان به د هرې مياشتې د ابتداء نه د خپل عادت مطابق ورځې حيض حسابوي، او هر مانځه ته به اودس کوي. ځکه چه ددې په طاهره او حائضه کيدو کښې شك دې. مثلا عادت پنځه ورځې دې نو د مياشتې د ابتداء نه تر پنځه ورځو پورې به دا کار کوي. اوباقي پنځيشت ورځې به هر مانځه ته غسل کوي. وجه داده چه دا احتمال شته چه د هر مانځه نه مخکښې دا د حيض نه پاکه شوې وي.

اومتحيره بهما به د هرې مياشتې د ابتداء نه درې ورځو پورې د هر مانځه دپاره اودس کوي، اوباقي اوويشت ورځې به هر مانځه دپاره غسل کوي. ځکه د خروج من الحيض شك باقي دې. لکن دا تول تکلفات دي او صحيح مسئله مخکښې تيره شوه په شريعت کښې مستحاضه متحيره نشته.

**فائده** : د نبي ﷺ زمانه کښې يولس (١١) زنانو باندې استحاض راغلې وو۔ لکه حافظ په فتح الباري (٢٨٢/١) کښې ذکر کړې دي۔

(١) فاطمه بنت أبي حبيش (٢) ام المؤمنين زينب (٣) أم المؤمنين سودة (٤) زينب بنت جحش (٥) حمنة بنت جحش زوجة ابو طلحه (٦) أم حبيبه بنت جحش، زوجة عبد الرحمن بن عوف (٧) اسماء اخت ميمونة (٨) زينب بنت ابي سلمة (٩) اسماء بنت الحارثية (١٠) بادية بنت غيلان الثقفية (١١) سهلة بنت سهيل۔

امام احمد او شيخ الاسلام ابن تيمية فرمائي : مسائل د حيض او استحاض په درې احاديثو کښې راګير شوي دي (١) يو حديث د فاطمه بنت ابي حبيش (٢) بل حديث د ام حبيبة بنت جحش (٣) او حديث د حمنه بنت جحش۔ او يا حديث د ام سلمة ، كذا في المغنى (٣٢٣/١) ۔ وتوضيح الاحكام (٣٤٧/١)۔

---

## الفصل الأول - اول فصل

١ - عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : جَاءَ تْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ فَلَا أَطْهُرُ أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ، فَقَالَ : لَا إِنَّمَا ذٰلِكَ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِحَيْضٍ فَإِذَا أَقْبَلَتْ حَيْضَتُكِ فَدَعِي الصَّلَاةَ وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْسِلِيْ عَنْكِ الدَّمَ ثُمَّ صَلِّيْ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : عائشة فرمائي : فاطمه بنت ابي حبيش نبي ﷺ ته راغله او عرض ئې اوکړو: يا رسول الله ! زه يوه داسې زنانه يم چه زما استحاض - وينه - راځي، زه هيڅ وخت پاکه نه يم، نو آيا زه مونځ پريدم ؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل : نه، دا خو د يو رګ وينه ده د حيض وينه نه ده، هرکله چه تاته حيض راشي نو ته مونځ پريده، اوکله چه حيض ختم شي نو د خپل ځان نه وينه اووينځه او بيا - د غسل کولو نه پس - مونځ کوه۔ (بخاري، مسلم)۔

**تشريح** : ”أُسْتَحَاضُ فَلَا أَطْهُرُ“ : يعنې زما وينه نه اودريږي نو زه نه پاکيږم، نو آيا زه حائضه حسابيږم چه مونځ پريدم، اوکه پاکه حسابيږم چه مونځ کوم ؟ نو نبي ﷺ ورته جواب ورکړو چه ته پاکه حسابيږې۔ وجه داده چه دا وينه د حيض نه ده بلکه دا د رګ

د شلیدو په وجه جاري شویده، نو دا استحاض - بیماري - حسابیږي. اوچه کله د حیض عادت راشي نو بیا مونځ پریده. اوباقي ورځے استحاض دے.

د استحاض نه لغوي معنی مراد ده چه وینه جاري کیدل دي نه اصطلاحي فقهي معني چه هغه بغیر د خپل وخت نه وینه جاري کیدل دي.

فَدَعِي الصَّلَاةَ : یعنے مونځ هم پریده. او روژه هم، لکه دا د نورو احادیثو نه معلومه ده. چه روستو به د روژو قضائي راوړي، او د مانځه قضائي پرے نشته.

عائشه رضي الله عنها ته یوه زنانه راغله تپوس ئے اوکړو (ما بال الحائض تقضی الصوم ولا تقضی الصلوة ؟ ) یعنی حائضه ولے د روژے قضاء راوړي او د مانځه قضاء نه راوړي سره ددے چه مونځ په درجه کښے د روژے نه اوچت دے. عائشہؓ ورته اوفرمائیل : (احرورية انت ؟). آیا ته هم حروریه ئے ؟. ( خوارجو پشان خبرے کوے کوم چه حروراء علاقه (عراق)کښے پیدا شوي وو ) بلکه مونږ ته پیغمبر داسے وئیلي دي نو دے کښ د عقل چلولو څه ضرورت ؟. بنده او مسلمان خو دیته وائي چه د الله او د رسول د خبرو تابعدار وي او چون وچرا پکښے نکوي. اګرچه ددے حکمت هم شته لیکن عائشہؓ په هغے رد کولو او نظریه ئے ورله برابرولو څکه ئے ورته حکمت بیان نکړلو علماء د هغے حکمت داسے بیانوي چه روژه په کال کښے یو میاشت وي، او مونځونه په هره ورځ شپه کښے پنځه دي، نو په قضاء د روژه کښے حرج نشته، او په قضائي راوړلو د مانځه کښے حرج او تنګسیا ده. والحرج مدفوع في الشريعه.

۲ - خوارج وائي : د مانځه قضائي به هم راوړي څکه چه مونځ خو د روژے نه بهتر دے، لیکن دا بے دلیله خبره ده، د احادیثو نه خلاف او د تشدد نه ډکه خبره ده. او ځان د الله او رسول نه مخکښے کول، د منصبِ عبدیت نه خلاف ده. اوس هم بعضے صوفیاء د مانځه قضائي ضروري ګنړي، دا جهالت دے.

۳ - بعضے سلفؒ - لکه عطاءؒ - وائي : تشبه بالمصلین به کوي، یعنے د مونځ ګذارو سره به مشابهت کوي. په دے طریقه چه په مصلیٰ به کیني او ذکر اذکار به کوي. دے دپاره چه ددے زنانه زړه سخت نشي څکه په دے ډیره موده کښے چه کله دا مونځ نه کوي، نو زړه به ئے سخت شي. لیکن دا کار افضل دے او واجب نه دے. او مبالغه په کښے بدعت ده.

فَاغْسِلِيْ عَنْکِ الدَّمَ : یعنے وینه د ځانه اووینځه په غسل کولو سره او بیا مونځ

اوکړه۔ بيا د **مستحاضې** زنانه دپاره په احاديثو کښې درې (۳) کيفيات ذکر دی (۱) اول داچه : هر مانځه ته به اودس کوی، يعنې چه کله وخت داخل شی نو مانځه ته به اودس اوکړی، او چه غير موقت مونځ وی نو هغې دپاره به اودس کوی، کله چه د هغې اراده کوی۔
کما في حديث فاطمة في نصب الراية (۲/۲۰۲) وكما يأتي۔

۲ - **دويم کيفيت** : دادې چه جمع بين الصلاتين اوکړی په جمع صوری سره۔ کما في حديث حمنة بنت جحش اخرجه ابوداود (۱/٤٦)، والترمذی (۱/۳۳) واحمد۔

يعنې د ماسپخين او مازيګر يا د ماښام او ماسخوتن مونځونه به يو ځائې اوکړی، چه د ماسپخين مونځ مؤخر کړی او مازيګر مونځ را مخکښې کړی او د هر دوه مونځونو کولو نه پس به غسل کوی۔ او د سحر مونځ به جدا کوی سره د غسل کولو نه د هغې دپاره۔

او دا د نبی ﷺ په نيز اخبّ او خوښ عمل دې۔ لکه حمنهٔ ته ئې اوفرمائيل : (وهٰذا اعجب الأمرين اليّ). وسيأتي۔

۳ - **دريم کيفيت** : دادې چه د حيض نه پس يو غسل اوکړی او دا فرض دې۔ او بيا هر مانځه ته اودس کوی۔ او دا هم فرض دې۔ او هر مانځه ته غسل کول مستحب دی۔ فرض نه دی۔ دليل دادې چه حمنهٔ ته ئې داسې فرمائيلی وو (ان قدرت علی ذلك) يعنې که دا کار دې په وسع کښې وی چه جمع بين الصلاتين دپاره غسل اوکړې نو اوکړه (او واجب نه دې)۔

**فوائد** : ۱ - د حيض وينه نجس ده۔ ۲ - حديث کښې امر دې په ازاله د نجاست باندې۔ ۳ - مونځ په زنانه باندې د وينې د حيض منقطع کيدو سره سمدست واجب دې، که د مانځه وخت وی نو سمدست به لامبی او روستو والې به نه کوی۔ (نووی شرح مسلم : ۱/۱۵۲)۔ او که تاخيرئې اوکړو او ديته په مقدار د غسلو او يو رکعت وقت ملاويدلو نو ددې مونځ به قضاء راوړی . کما في الحديث من ادرك ركعة من الصلاة فقد ادرك الصلاة - بخاری).

## الفصل الثاني - دويم فصل

۲ - عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِي حُبَيْشٍ أَنَّهَا كَانَتْ تُسْتَحَاضُ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ ﷺ اِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضِ فَاِنَّهُ دَمٌ أَسْوَدُ يُعْرَفُ، فَاِذَا كَانَ ذٰلِكَ

فَامْسِكِي عَنِ الصَّلَاةِ فَإِذَا كَانَ الْآخَرُ، فَتَوَضَّئِي وَصَلِّي فَإِنَّمَا هُوَ عِرْقٌ ). رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** : عروه بن زبير د فاطمه بنت ابی حبيش باره كښې فرمائي : چه دے ته به جاري وينه راتلله نو ديته نبي ﷺ اوفرمائيل : كله چه د حيض وينه وي نو دا يوه توره وينه ده چه پيژندلے شي كله چه دا وينه وي نو د مانځه نه بنده شه او كله چه هغه بله وينه وي نو اودس كوه اومونځ كوه ځكه چه دا د رګ وينه ده۔ (ابوداود، نسائی)۔

**تشريح** : إِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضِ فَإِنَّهُ دَمٌ أَسْوَدُ يُعْرَفُ : دا داقبلت حيضتك تشريح ده، يعنې حيض څه ته وائي نو دا توره وينه ده چه زنانه ئې پيژني۔

١ – دا حديث دليل دے چه زنانه كه مميزه وي نو تميز به په رنګ د وينے كوي په مابين د حيض او استحاض كښې۔ په دے كښې رد دے په احنافو باندے چه دوئ تميز باللون نه مني۔

**فَتَوَضَّئِي وَصَلِّي** : يعنې اودس به هر مانځه ته هله كوي چه كله د حيض د مودے تيريدو نه پس غسل اوكړي، او په دے حديث كښې اول كيفيت دے چه هر مانځه ته اودس كول دي۔ ٢ – دارنګه دا حديث دليل دے چه فاطمه مميزه هم وه، لكه څنګه چه معتاده هم وه۔ او دغه شان زنانه په دوارو طريقو عمل كولے شي چه تميز په رنګ اوكړي او رجوع ايامو د عادت ته هم اوكړي۔

**درجة الحديث** : رواه ابوداود (٢٨٦) والنسائي (١/١٨٥) والدارقطني (١/٢٠٧- رقم ٥، ٦) والحاكم في المستدرك (١/١٧٤) وقال صحيح على شرط مسلم واقره الذهبي فاسناده حسن او صحيح۔ ابن القطان دے حديث ته منقطع وئيلے۔ ځكه محمد بن ابي عدي دا حديث كله په غير د ذكر د عائشة نه ذكر كوي۔ عن عروة بن الزبير عن فاطمة۔ او كله مينځ كښې عائشة ذكر كوي۔

ليكن ددے **جواب** ابن القيم وركړيدے چه دا خبره غلطه ده ځكه محمد بن ابي عدي حافظ او متقن دے۔ اودا حديث ئې ښه ياد كړيدے او په دوه طريقو ورته نقل شويدے۔ نو كله واسطه ذكر كوي۔ او كله دغه واسطه نه ذكر كوي۔ دوارو سره ملاؤ شويدے۔ ځكه فاطمه ئې د تره لور وه، او عائشة ئې خاله (ترور) وه۔ نو د انقطاع احتمال ختم شو۔ و

صححه ابن حبان ايضا۔

---

٣ - وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ :إِنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهَرَاقُ الدَّمَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَاسْتَفْتَتْ لَهَا أُمُّ سَلَمَةَ النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ : لِتَنْظُرْ عَدَدَ اللَّيَالِيْ وَالْأَيَّامِ الَّتِيْ كَانَتْ تَحِيْضُهُنَّ مِنَ الشَّهْرِ قَبْلَ أَنْ يُصِيْبَهَا الَّذِيْ أَصَابَهَا فَلْتَتْرُكِ الصَّلَاةَ قَدْرَ ذٰلِكَ مِنَ الشَّهْرِ، فَإِذَا خَلَّفَتْ ذٰلِكَ فَلْتَغْتَسِلْ ثُمَّ لِتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ ثُمَّ لِتُصَلِّ ). رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَرَوَى النَّسَائِيُّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه** : ام سلمهؓ فرمائی : يوه زنانه ته د استحاض وينه راتله د نبی ﷺ په زمانه کښې، ام سلمهؓ هغې دپاره د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو، نبی ﷺ اوفرمائيل : دے له پکار دی چه د شپو ورځو هغه شميرے ته اوګوری چه دے به په مياشت کښې په هغې ورځو کښې حيض تيرولو مخکښې ددے نه چه ديته دا مصيبت اورسی کوم چه ورته اورسيدو، نو د هغې ورځو په اندازه باندے دے د مياشتے نه مونځ پريدی ، او هرکله چه هغه ورځے تيرے شی نو غسل دے اوکړی او لاندے دے جامه اوتړی مونځ دے کوی۔ (ابوداود، دارمی) او نسائی ددے پشان مضمون نقل کړيدے۔

**تشريح** : تُهَرَاقُ الدَّمَ : ١- دا صيغه د مجهول ده او ضمير په کښې راجع دے مرأه ته هغه نائب فاعل دے او الدم منصوب علی التميز دے يعنې دا زنانه به بهيدلے شوه په اعتبار د وينې سره، اوپه الدم کښې الف لام زائد دی۔

٢- يا الف لام عوض د مضاف اليه دی۔ او اضافت د دم ضمير د هاء ته دا استغراق فائده کوی، نو بيا به الدم مرفوع وی، او نائب فاعل به وی، ای تهراق دمائها۔

٣ - يا الدم مرفوع دے اوبدل دے د ضمير د تهراق نه ای تهراق هی الدم، يعنې دا به بهيدلے شوه يعنې وينه به ئے بهيدله ۔ ۔۔ په دے حديث کښې فرق ذکر دے په مابين د حيض او استحاض کښې په رجوع سره ورځو د عادت ته۔

فَاسْتَفْتَتْ لَهَا أُمُّ سَلَمَةَ : دا قول د راوی دے، نه د ام سلمهؓ ۔ دے روايت کښې دی چه ام سلمهؓ ددے زنانه دپاره تپوس کړيدے۔ او په روايت د دارقطنیؒ کښې دی چه فاطمه بنت ابی حبيشؓ چه کله مستحاضه شوه، نو ام سلمهؓ ته ئے حکم اوکړو چه زما دپاره تپوس

اوکړه اومخکښې حديث د عائشةؓ کښې تېر شو چه فاطمېؓ پخپله تپوس اوکړو. او فصل ثالث کښې حديث د اسماء بنت عميسؓ کښې را روان دی، چه اسماء تپوس اوکړو. نو څنګه درې واړو ته نسبت د تپوس شويدې ؟.

ليکن ددې روايتونو ترمينځه هيڅ اختلاف او تعارض نشته. وجه داده چه فاطمې، اسماء او ام سلمه دواړو ته حکم اوکړو چه زما دپاره د نبی ﷺ نه تپوس اوکړئ، نو هغوئ دواړو په يو ځائې جدا جدا تپوس اوکړو، خو بيا فاطمې پخپله هم د زيات احتياط او اعتماد په بناء باندې تپوس اوکړو.

**فائده** : حديث نه معلومه شوه چه استفتاء کښې نيابت جائز دې. ٢ - د زنانه تپوس د عالم سړی نه جائز دې. ٣ - مُشَافَهَةً د سړی نه تپوس هم کولې شی، کله چه د هغې ذاتی مسائل وی. (نووی : ١٥٢/١). ٤ - د زنانه آواز آوريدل عند الحاجت جائز دی (نووی).

**لِتَنْظُرْ عَدَدَ اللَّيَالِيْ وَالْأَيَّامِ** : دا هغه طريقه ده چه مستحاضه زنانه به خپل ورځو د عادت ته رجوع کوی. نو دغه ورځې به حيض حساب شی او باقی به استحاض. مثلا پنځه ورځې ددې په هره مياشت کښې عادت دې د حيض. خو چه کله مستحاضه شوه نو هم په هره مياشت کښې به پنځه ورځې حساب کړی اوباقی به استحاض وی.

**الَّتِىْ كَانَتْ تَحِيْضُهُنَّ** : ای تحيض فيهن . بناء دې په حذف او ايصال باندې فتدبر!.

**فَإِذَا خَلَّفَتْ** : يعنے کله چه دې زنانه روستو پريخودې هغه ورځې د حيض چه دا په کښې عادت وه او د هغې نه واوړيدله، نو بيا به غسل اوکړی د حيض د ختميدو په وجه.

**ثُمَّ لِتَسْتَثْفِرْ** : استثفار ديته وائی چه فرج او دبر په پلنه کپړه باندې اوتړی چه په هغه کپړه کښې ئې مالوچ تاؤ کړی وی، او بيا ددې کپړې دواړه طرفونه د پرتوغاښ سره اوتړی، نو په دې سره به ئې وينه د بهيدلو نه بنده شی. استثفار اصل کښې د کيدړ يا سپی لکئ د ځان نه لاندې کولو ته وائی نو دا زنانه به هم دغه شان کار وکړی.

**فائده** : دا حديث دليل دې په دې چه د حيض د ورځو تيريدلو نه پس يو ځل غسل فرض دې. ٢ - او د مستحاضې حکم د پاکې زنانه دې چه مونځ به هم کوی، روژه به هم نيسی، قرأت د قرآن هم کولې شی، او ټول عبادات کولې شی، او خاوند ورسره نزديکت هم کولې شی، مګر د هر مانځه دپاره به اودس کوی.

**درجة الحديث** : اخرجه مالك (٦٢/١) رقم (١٠٥) والشافعي في الام (٦٠/١)

واحمد (٦/٢٩٣، ٣٢٠) والدارمي (١/١٩٩) وابوداود (٢٧٤) والنسائي (١/١١٩-١٢٠) وابن ماجة بمعناه (٦٢٣)۔

دا حديث هم د بعضو علماؤ په نيز منقطع دے ليکن امام نووی" په الخلاصه کښې او ابن عبد البر" فرمائي چه انقطاع له اعتبار نشته، او حديث صحيح دے۔ ځکه سليمان بن يسار د رجل نه هم آوريدلے دے، او بيا ئے د ام سلمة" نه هم آوريدلے دے، نو ځکه دواړه ذکر کيږی۔ اسناده صحيح على شرط الشيخين وصححه الالباني ورمضان ۔

---

٤ - وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ : جَدُّ عَدِيٍّ اسْمُهُ دِينَارٌ- عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ قَالَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ : تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُ فِيهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، وَتَصُومُ وَتُصَلِّي ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ.

**ترجمه** : عدی بن ثابت د خپل پلار په واسطے سره د خپل نيکه نه چه يحيى بن معين" فرمائي : د عدی د نيکه نوم دينار دے - د نبی ﷺ نه نقل کوی چه نبی ﷺ د مستحاضے باره کښې اوفرمائيل : چه کومو ورځو کښې هغے ته د عادت موافق حيض راتلو هغے له پکار دی چه هغه ورځو کښې مونځ پريدی، بيا دے د هغه ورځو نه پس يو ځل غسل اوکړی او هر مونځ دپاره دے تازه اودس کوی او روژه دے نيسی او مونځ دے کوی۔ (ترمذی، ابوداود)۔

## تعارف : د يحيىٰ بن معين رحمه الله :

دا د بغداد اوسيدونکے دے، مشهور ثقه، حافظ او امام الجرح والتعديل دے۔ په سنه (١٥٨) هـ کښې پيدا شوے، او په سنه (٢٣٢) هـ کښې په مدينه کښې د (٧٧) کالو په عمر باندے د نبی ﷺ په تخته او د هغه په کټ کښې مقبرے ته اوړل شويدے۔ کله چه دده پلار مړ شو، نو ده ته هغه يو نيم لاکهـ درهم پريخودل۔ نو ده ټول د حديث په علم باندے خرچ کړل۔ ده په خپل لاس باندے شپږ لاکهـ احاديث ليکلی دی۔ د امام بخاری" او مسلم"، ابوداود"، احمد"، ابو حاتم"، ابوزرعة" استاذ دے۔ امام احمد" دده په باره کښې داسے فرمائي :

(کل حديث لا يعرفه يحيى بن معين فليس هو بحديث) کذا في تهذيب التهذيب :

(۱۱/ ۲۸۰)۔

**فائده** : په دې روایت کښې هم اعتبار ورکړې شویدې عادت د زنانه له، چه هغې ته به رجوع کوی۔ او په هغه اندازه به حیض حساب کړی۔ او باقی به استحاض شی۔

**وَتَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ** : په دې کښې اختلاف دې چه آیا مستحاضه به هر مانځه ته اودس کوی اوکه د هر مانځه وخت ته ؟۔

۱ – جمهور علماء فرمائی : هر مانځه دپاره به جدا جدا اودس کوی، او صرف یو فرض مونځ به پرې کوی او نوافل پرې هم کولے شی۔ مگر فرض مونځ ته به جدا اودس کوی۔ المجموع (۵۳۵/۲)۔

۲ – حنفی علماء وائی : دا اودس متعلق دې په وخت پورې، یعنې د وخت دپاره به اودس کوی، نوبیا په دې وخت کښې په دې اودس سره وقتی مونځ او قضائی مونځ او نوافل او نذری وغیره هر قسم مونځونه په دې اودس باندې اداء کولے شی، مگر کله چه وخت تیر شی نو بیا نشی کولے۔

دوئ دلیل دا وائی چه (تتوضأ عند كل صلاة) کښې مجاز الحذف دې، یعنې عند وقت کل صلاة۔ لیکن حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری (۳۲۵/۱) کښې فرمائی : (ويحتاج الى دليل الخ) یعنې دا خبره دلیل غواړی، چه مونږ ئې حمل کړو په مجاز الحذف باندې۔

او صاحب الهدایه (۶۷/۱) چه ددې دپاره کوم حدیث ذکر کړیدې چه (المستحاضة تتوضأ لوقت كل صلاة) نو حافظ په الدرایه کښې وائی (لم اجده) دا حدیث په دې الفاظو سره ما نه دې موندلے۔ او علامه زیلعیؒ په نصب الرایه (۲۰۴/۱) کښې وائی : غریب جدا۔ او دا خبره حقه ده۔ او عینیؒ په بنایه (۴۱۶/۱) کښې ددې حدیث د صحت ډیر کوشش کړیدې، مگر څه دلیل ئې ددې په صحت باندې نه دې ذکر کړې۔ راجع البیهقی (۳۴۳/۱)۔ علامه شوکانیؒ فرمائی : چه صحیح حدیث کښې صرف (تتوضأ لكل صلاة) دې او (لوقت كل صلاة) روایت صحیح ندې۔ نیل الاوطار (۳۴۷/۱)۔

دا وجه ده چه علامه ابن حزمؒ په المحلی (۲۳۴/۱) کښې فرمائی : مونږ په شریعت کښې داسې طهارت هیچرې نه دې موندلے چه هغه په خروج الوقت سره ماتیږی۔ او د وخت د قیام پورې صحیح وی۔ نو معلومه شوه چه اولنے قول راجح دې، او هغه دا چه هر مانځه ته به اودس کوی۔ ځکه په عام طرقو د حدیث کښې امر د اوداسه هر مانځه دپاره

راغلي دي۔ لکه په حديث د فاطمه عند البخاری (٣٦/١) کښې داسې دی (توضئ لکل صلاة) او مجاز او تقدير راويستل خلاف الأصل والقياس دی۔ بلا دليله هغې ته عدول نشي کيدلے۔ وانظر فتاوى الدين الخالص (٤٩/٣) وتحفة الأحوذی (١١٨/١)۔

**درجة الحديث** : رواه الترمذی (١٢٦) وابوداود (٢٩٧) وابن ماجه (٦٢٥) والدارمی (٢٠٢/١) : دا روايت په اعتبار د سند سره ضعيف دے، د شريك بن عبد الله النخعی متكلم فيه راوی او د ابو اليقظان عثمان بن عمير الكوفی ضعيف جدا، راوی په وجه۔ ليكن ددے روايت شواهد ډير دی، لکه زيلعیؒ په نصب الرايه او حافظ په الدرايه کښې راوړيدی۔ او معنیٰ د حديث د متفق عليه روايت د عائشےؓ نه معلومه او صحيحه ده۔

وصححه الالبانی فی صحيح الترمذی رقم (١٢٦) وابن ماجة ورمضان فی تعليق المشكاة (٢٤٨/١). فالحديث صحيح۔

---

٥ - وَعَنْ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ قَالَتْ : كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيْرَةً شَدِيْدَةً فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ أَسْتَفْتِيْهِ وَأُخْبِرُهُ فَوَجَدْتُّهُ فِيْ بَيْتِ أُخْتِيْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، فَقُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيْرَةً شَدِيْدَةً فَمَا تَأْمُرُنِيْ فِيْهَا قَدْ مَنَعَتْنِي الصَّلَاةَ وَالصِّيَامَ قَالَ : أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ فَإِنَّهُ يُذْهِبُ الدَّمَ. قَالَتْ : هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ. قَالَ : فَتَلَجَّمِيْ قَالَتْ : هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ. قَالَ : فَاتَّخِذِيْ ثَوْبًا قَالَتْ : هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ. إِنَّمَا أَثُجُّ ثَجًّا. فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ ﷺ : سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ أَيُّهُمَا صَنَعْتِ أَجْزَأَ عَنْكِ مِنَ الْآخَرِ، وَإِنْ قَوِيْتِ عَلَيْهِمَا فَأَنْتِ أَعْلَمُ. قَالَ لَهَا : إِنَّمَا هٰذِهِ رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ فَتَحَيَّضِيْ سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ سَبْعَةَ أَيَّامٍ فِيْ عِلْمِ اللهِ، ثُمَّ اغْتَسِلِيْ حَتّٰى إِذَا رَأَيْتِ أَنَّكِ قَدْ طَهُرْتِ وَاسْتَنْقَأْتِ فَصَلِّيْ ثَلَاثًا وَعِشْرِيْنَ لَيْلَةً أَوْ أَرْبَعًا وَعِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَأَيَّامَهَا، وَصُوْمِيْ فَإِنَّ ذٰلِكَ يُجْزِئُكِ، وَكَذٰلِكَ فَافْعَلِيْ كُلَّ شَهْرٍ، كَمَا تَحِيْضُ النِّسَاءُ، وَكَمَا يَطْهُرْنَ مِيْقَاتَ حَيْضِهِنَّ وَطُهْرِهِنَّ، وَإِنْ قَوِيْتِ عَلٰى أَنْ تُؤَخِّرِيْنَ الظُّهْرَ وَتُعَجِّلِيْنَ الْعَصْرَ فَتَغْتَسِلِيْنَ

وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ : الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، وَتُؤَخِّرِينَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ فَافْعَلِي وَتَغْتَسِلِينَ مَعَ الْفَجْرِ، فَافْعَلِيَ وَصُومِيْ إِنْ قَدَرْتِ عَلَى ذٰلِكَ. قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : وَهٰذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : حمنه بنت جحش ؓ وائي : ماته به ډیره زیاته د استحاض وینه راتله نو زه نبی ﷺ ته راغلم چه نبی ﷺ خبر کړم او هغه نه تپوس اوکړم، نو ما نبی ﷺ د خپلے خور زینب بنت جحش ؓ په کور کښے مونده کړو او عرض مے اوکړو : یا رسول الله ! ماته د استحاض وینه ډیره زیاته راځي چه زه ئے د مونځ روژے نه بنده کړے یم۔ دے باره کښے تاسو ماته څه حکم کوئ ؟ نبی ﷺ اوفرمائیل : زه تا دپاره مالوچ تجویز کوم ځکه چه دا وینه ایساروی۔ حمنه ؓ اووئیل : هغه - وینه - خو ددے نه ډیره ده (دے سره نه بندیږی) نبی ﷺ اوفرمائیل : لنګ تړه، هغے اووئیل : هغه ددے نه هم زیاته ده۔ نبی ﷺ اوفرمائیل : بیا د لنګ د لاندے یوه بله کپړه ګده، هغے اووئیل : هغه دے سره هم نه بندیږی۔ ځکه چه ډیره زیاته ده۔ وینه د بهیدو پشان راځي۔ نبی ﷺ اوفرمائیل : بیا خو زه تاته د دوه خبرو حکم درکوم، هغے کښے چه ته کومه یوه اختیاروے ، نو د بلے نه به کافی کیږی، او که ته په دواړو باندے طاقت لرے نو ته ښه پو هیږے۔ نبی ﷺ هغے ته اوفرمائیل : د استحاض دا وینه د شیطان د لتو نه یوه لته ده، نو ته شپږ یا اووه ورځے د الله په علم کښے په میاشت کښے حیض اوګرځوه، بیا غسل کوه تردے چه ته اووینے چه ته پاکه شوے او ښه صفا شوے نو بیا درویشت یا څلیرشت شپے ورځے مونځ کوه او روژه نیسه، ځکه دا تا دپاره کافی دی، ته هر میاشت کښے دا کار کوه څنګه چه نورے ښځے حیض تیروی او د هغے نه پس پاکیږی، او که ته ددے خبرے طاقت لرے چه ته د ماسپخین مونځ روستو کړے او د مازیګر مونځ را مخکښے کړے بیا غسل اوکړے او دواړه مونځونه جمع کړے، دغه شان د ماښام مونځ روستو کړے او د ماسخوتن مونځ رامخکښے کړے او بیا غسل اوکړے او ددواړو مونځونو ترمینځ جمع والے اوکړے نو دا کار اوکړه، اود سحر مونځ دپاره غسل کولے شے نو وے کړه، او دغه شان که په روژه باندے قدرت لرے نو نیسه ئے۔ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اودا کار په دواړو کارونو کښے ماته زیات خوښ دے۔ (احمد، ابوداود، ترمذی)۔

## تعارف : د حمنه بنت جحش رضی الله عنها :

دا د زینب بنت جحش ؓ أم المؤمنین ؓ خور ده، او د مصعب بن عمیر ښځه ده، کله چه مصعب په غزوه احد کښې شهید شو نو طلحه بن عبید الله ؓ په نکاح واخسته۔ دا صحابیه ده۔ یو حدیث ترې نقل دې۔

**كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيْرَةً شَدِيْدَةً** : حیضه مفعول مطلق دې د استحاض دپاره، او په اصل لغت کښې حیض او استحاض په یوه معنیٰ راځی، او علماء په دې مابین کښې فرق کوی، لکه مخکښې تیر شو۔ نو دلته په اصل لغت کښې خبره کوی۔ نو حیض مفعول مطلق د استحاض دپاره صحیح دې۔ لکه انبته الله نباتا پشان، چه فعل دباب افعال نه دې او مفعول مطلق د مجردو نه دې۔

**فَاتَّخِذِىْ ثَوْبًا** : یعنې دلجام نه لاندې یوه غټه کپړه کیده چه وینه بنده کړی۔

**اِنَّمَا اَثُجُّ ثَجًّا** : یعنې زه بهیږم په بهیدلو سره۔ یعنې ډیره جاری یم، دا معنیٰ هله ده چه کله اثج لازم شی۔ اوکه چرې دا متعدی شی نو معنیٰ داده چه زه وینه بهیوم (جاری کوم) په جاری کولو سره۔ اوله معنیٰ کښې مبالغه زیاته ده یعنې ګویاکه زما نفس توله وینه ده۔

**فائده** : په دې حدیث کښې دریمه طریقه د مستحاضې ذکر ده، چه قیاس به کوی په حیض د همزولو خپلو باندې۔ځکه نبی ﷺ حمنه ؓ ته اووه یا شپږ ورځې حیض مقرر کړو او باقی استحاض۔

**فَقَالَ لَهَا النَّبِىُّ ﷺ : سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ** : تردې ځائې پورې علاجونه د وینې د بندولو بیان شو۔ ددې ځائې نه روستو ورته داوداسه اود پاکوالی حکمونه کوی۔

**فَأَنْتِ أَعْلَمُ** : یعنې زه درته دوه څیزونه بیانوم چه ته ښه پوهیږې چه ستا کوم خوښ وی هغې باندې عمل اوکړه، البته نبی ﷺ په کښې یو ډیر خوښ کړیدې لکه هغه روستو بیانیږی خو اول ورته مقدمه بیانوی په دې لفظ سره چه (هذه رکضه من رکضات الشیطان)۔

**رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ** : یعنې دا وینه د استحاض دا یوه لته ده د لتو د شیطان نه، یعنې شیطان ستا په رګ کښې لته وهلې ده اود هغې په سبب دا وینه روانه شویده۔ اودا

لته وهل په حقیقت باندے بناء دي، مجاز ته ضرورت نشته، ځکه شیطان د انسان په رګونو کښے ګرځي۔ (ان الشیطان یجری من الانسان مجری الدم)۔

بیا ئے شیطان ته ددے وینے د استحاض نسبت اوکړو، وجه داده چه ددے په وجه شیطان انسان لره اوخویوی او په عبادت کښے ورته د خلل پیدا کولو موقع ملاؤ شي، او ددے موقعے نه دا فائده واخلي چه په صفائی او پاکئ او مانځه کښے ورته فساد پیدا کړي۔ ددے وجے نه ورته نبی اکرم ﷺ ددے استحاض حقیقت بیان کړو د مقدمے او تمهید په طور، او ورته ئے اوفرمائیل چه داسے دوه حکمونه درته بیانوم چه په هغے باندے عمل کولو سره شیطان په خپل مقصد کښے نشي کامیاب کیدلے۔

★ یو حکم ئے ورته دا اوکړو چه (فتحیضی ستة أیام او سبعة ایام) : یعنے شپږ یا اووه (۷) ورځے د حیض ورځے شمار کړه، ددے مطلب دادے چه یوه زنانه معتاده ده، یعني په هره میاشت کښے د هغے عادت د حیض شپږ یا اووه ورځے راځي، لیکن د هغے نه دا عادت هیر شي چه شپږ ورځے وو او که اووه۔ نو حکم دادے چه دابه په هره میاشت کښے شپږ یا اووه ورځے تیروي، که غالب ګمان ئے شپږ ورځے وو، نو هغه شپږ ورځے به حیض حساب شي۔ اوکه غالب ګمان ئے اووه (۷) ورځے وو، نو اووه ورځے به حیض وي۔

بیا نبی ﷺ ورسره (فی علم الله) لفظ ذکر کړو، په دے کښے اشاره ده دے خبرے ته چه ته په خپل غالب ګمان باندے عمل اوکړه او اخوا الله تعالی ته علم دے چه دا شپږ دي اوکه اووه ورځے، خو ته مکلفه ئے په خپل غالب ګمان باندے۔ (ای فیما علم الله من امرك)۔ یا مطلب دادے چه (اوسبعة ایام) کښے (او) د شك د راوی دپاره دے، او فی علم الله هم د هغه قول دے، نو معنیٰ داده چه راوی وائي : نبی ﷺ ورته شپږ یا اووه ورځے اوخودلے زما شك دے او الله ته پته ده۔ اول مطلب ظاهر دے۔

**فائده** : علامه شوکانیؒ په السیل الجرار (۱۴۳/۱) کښے فرمائي : د حیض اقله او اکثره موده نه ده مقرر، که یو انسان د حیض موده مقررول غواړي نو پکار ده چه شپږ یا اووه ورځے مقرر کړي ځکه دلته نبی ﷺ د حیض موده حمنیؓ ته دا حد مقرر کړو۔ نه لس ورځے ۔انتهی۔ لیکن دلته دا شپږ اووه ورځے هم د تحدید او تعیین دپاره نه دي۔ ځکه چه (فی علم الله) لفظ ئے ورسره ذکر کړو، یعنے الله ته پته ده چه ستا به شپږ ورځے حیض عادت وي اوکه اووه ورځے، خو داسے ښکاره کیږي چه یا به شك کښے وي، یا به اووه ورځے وي۔ او نبی ﷺ به دا پیژندلے وي ددے د همزولو نه۔ ځکه چه دا د نبی ﷺ ښینے ده، یا به

ورته دے وئیلی وی چه زما شك دے په شپږ او اووه ورځو کښې۔

**وَاسْتَنْقَاتِ** : استنقاء مبالغے سره پاکوالی ته وائی، یعنے ښه پاکه شوے په مودے تیریدو سره۔

**كَمَا تَحِيْضُ النِّسَاءُ** : **فائده** : دا حدیث هم دلیل دے چه مستحاضه زنانه به قیاس کوی په خپلو همزولو باندے اودا دریمه طریقه د پیژندلو د حیض او استحاض ده۔ مطلب ئے دادے چه لکه څنګه ستا همزولو زنانو حیض شپږ یا اووه ورځے وی، نو ته هم هغه شان حیض اوګرځوه۔ او څنګه چه د هغوئ د طهر موده ده، نو ته هم هغه اندازه طهر حساب کړه۔ دغه شان لکه څنګه چه د نورو زنانو حیض په میاشت کښې راځی نو ته هم په میاشت د میاشت کښې حیض حساب کړه۔ اوکه هغوئ اول یا آخر نه راځی نو ته هم دغه شان حساب کړه۔

**خلاصه** د اول حکم داشوه چه ته د خپل حیض موده – برابره خبره ده چه شپږ ورځے وی یا اووه – پوره کړه۔ او هغے نه پس غسل اوکړه۔ بیا هر مانځه دپاره به غسل کوی۔ یا هر مانځه دپاره اودس کول دی۔ لکه چه همدا د نورو روایتونو نه معلومیږی (وسیأتی بعد هذا الحدیث) نو یو غسل او هر مانځه ته بیل بیل اودس کول دا اول حکم شو۔

**وَاِنْ قَوِيْتِ** : ددے ځائے نه دویم حکم بیانوی، چه دا صورت د جمع بین الصلاتین جمع صوری دے۔ یعنے دوه مونځونو ترمینځه به په داسے وخت کښې غسل اوکړی چه د یو مونځ آخری وخت وی، یعنے د ماسپخین آخری وخت وی او ددویم مونځ ابتدائی وخت وی، یعنے د مازیګر ابتدائی وخت وی۔ بیا به ددے نه پس دواړه مونځونه یو ځائے اوکړی۔ دغه شان د مغرب او عشاء هم واخله۔ دیته جمع صوری وائی او دا صرف په دے حدیث کښې راغلے ده۔ د مستحاضے دپاره۔ او په صلاة السفر کښې دا تاویل کول غلط دی، بلکه هلته جمع معنوی او حقیقی دواړه په احادیثو کښې راغلے ده۔ او په دے باره کښې (۳٦) احادیث راغلی دی، لکه چه خپل ځائے کښې به راشی ان شاء الله تعالی۔

**خلاصه** د دویم حکم داده : چه د دوو مونځونو ترمینځه یو غسل کول پکار دی، او هر مانځه ته بیا اودس هم کول پکار دی، او سَحر مونځ ته به جدا غسل کوی۔

**وَهٰذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ** : یعنے دا آخری حکم ماته په دواړو حکمونو کښې ډیر خوښ او پسند دے۔ امرین نه مراد (۱) یا امر اول اودس کول دی هر مانځه ته پس د غسل

کولو نه د حیض نه چه اووه یا شپږ ورځې تیرې شي او دا اودس کول اګرچه پدې روایت
کښې ندی ذکر مګر په بل روایت کښې ذکر دی ځکه چه نبی علیه السلام ته پته وه چه دې
باندې وینه همیشه ده او همیشوالې د وینې خو اودس ضرور ماتوی هر مانځه ته به جدا
اودس کوی نو ځکه ئې اودس ذکر نکړو. امرثانی جمع بین الصلاتین بغسل واحد دې
(۲) یا امر اول غسل کول دی هر مانځه ته، او امر ثانی جمع بین الصلاتین بغسل
واحد دې. ظاهر داده چه امر اول اودس دې هر مانځه دپاره پس د غسل کولو نه، او امر
ثانی جمع بین الصلاتین بغسل واحد دې. نو درې غسل کول مستحب شو. او په دې
کښې آسانی ده په نسبت سره دیته چه هر مانځه دپاره غسل اوکړی او پاکی هم په کښې
زیاته حاصلیږی. ۳- او په دې سره علاج د زنانه هم کیږی چه بدن یخ شي نو وینه به کمه
شي یا به اودریږی.

## آیا مستحاضه دپاره هر مانځه ته غسل کول واجب دی

**فائده** : پدې حدیث د حمنه او روستو حدیث د اسماء بنت عمیس کښې په ورځ او
شپه کښې د درې ځله غسل کولو حکم دې او پدې حدیث کښې ورسره دا بیان شویدی چه
ماسپخین مونځ روستو کوی نو یو غسل به کوی یا چه ماښام روستوکوی نو بل غسل
به کوی نو ددې مفهوم مخالف دا دې چه که زنانه په خپل خپل وخت کښې مونځ اداء
کول غواړی نو دا به هر مانځه ته غسل کوی. نو ددې وجې نه پدې مسئله کښې اختلاف
واقع شویدې چه آیا مستحاضه زنانه دپاره هر مانځه ته غسل کول واجب دی او که نه ؟.
نو ۱- د ابن عمر، علی بن ابی طالب، ابن الزبیر او عطاء بن ابی رباح او ابن عباس نه
نقل دی چه مستحاضه به هر مانځه ته غسل کوی. ۱- استدلال کوی په بعض احادیثو
باندې چه زینب بنت جحش ته رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اغتسلی لکل صلاة رواه ابوداود
والبیهقی وفی سنده محمد بن اسحق وقد حسن المنذری بعض طرقه کذا فی النیل (۳۰۲).
۲- دویم : په مسلم کښې د ام حبیبه بنت جحش روایت کښې دی (فکانت تغتسل عند
کل صلاة ) نو نبی علیه السلام دیته حکم کړې وو چه غسل کوه نو دې به هر مانځه ته
غسل کولو.
۲- جمهور علماء ( مالك ابو حنیفه، شافعی، احمد ) فرمائی : چه په مستحاضه

